# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدرمدرّس مظاهرالعلوم سهارنپور(هند)

**مترجمین**:

[ رفقاء ] دار التصنیف والتحقیق

**زیر نگرانی**

مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

**پښتو.........................اتم جلد**

**خصوصیات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حدیث مفیده مقدمه.

② د بذل المجهود شرح أبي داود عربي شرحې خلاصه اونچوړ

③ د متن ټولو احادیث ته اعراب ورکول

④ د هرکتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.

⑤ د هر حدیث تخریج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.

⑥ د مشکلو لغاتو حل.

⑦ په فقهی مباحثو کښې د مذاهبو بیان.

⑧ دفریق مخالف دلائل

⑨ د فریق مخالف د دلائلو ځخه جوابونه

⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجیح.

**خورونکی**

فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

د کتاب نوم: الدر المنضود فی حل سنن ابی داؤد
مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتہم
زیر نگرانی:- مولانا شاہ فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی: فیصل کتب خانہ محلہ جنگی پیښور

## دملاویدو پتې

- مکتبہ فخر الدین رازی ہرات [نمائندہ فیصل کتبخانہ درہرات]
- جدید اسلامی کتب خانہ خوست
- المصباح کتب خانہ کابل
- روغانیوال کتب خانہ جلال آباد
- رحیمی کتب خانہ خوست
- حرم کتب خانہ کابل
- فلاح کتب خانہ جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانہ غزنی
- مکتبہ خواجہ عبداللہ انصاری غزنی
- واحدی کتب خانہ خوست
- مکتبہ رحمانیہ قندھار
- دعوت کتب خانہ جلال آباد
- تقوی کتب خانہ جلال آباد
- نعمت کتب خانہ کابل
- شریف اللہ کتب خانہ کابل
- حقانیہ کتب خانہ گردیز
- مسلم کتب خانہ جلال آباد
- مکتبہ نعمانیہ غزنی
- کودر کتب خانہ جلال آباد
- مسلم کتب خانہ خوست
- حاجی سردار کتب خانہ کابل
- مکتبہ رشیدیہ کابل

خپرونکي

# فیصل کتب خانہ

مدینہ ټاور محلہ جنگی پیښور قصہ خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست أبواب و مضامين

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



..........

بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب العتق

## دغلامانو دآزادولو بیان

د دې ځائې نه د سنن ابی داؤد پنځویشتمه پاره شروع کیږی د خطیب بغدادی د تجزیه په اعتبار سره چا چه دا سنن په دوه دیرشو اجزاء کښې تقسیم کړې دې.

### (ربط او مناسبت)

د دې کتاب د کتاب الطب سره په مناسبت کښې دا وئیلې کیدې شی چه په طب کښې ازاله ده دمرض جسمانی او په عتق کښې ازاله ده دانسان دغلامۍ، هغه هم یو قسم مرض او عیب دې.

## بَابٌ فِي الْمُكَاتَبِ يُؤَدِّي بَعْضَ كِتَابَتِهِ فَيَعْجِزُ أَوْ يَمُوتُ

### که څوک د بدل کتابت نه څه حصه آزاده کړی او بیا عاجزه شی یا مړشی

[۳۹۲۶]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو عُتْبَةَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِرْهَمٌ".

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه او هغه دده دنیکه نه او هغه دنبی ﷺ نه روایت کوی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی مکاتب دهغه وخته پورې غلام دې ترڅو پورې چه په لیکلې شوي مال کښې یو درهم هم دده په ذمه باندې باقی وي.

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِرْهَمٌ »﴾

د مکاتبت مطلب دا وی چه یو غلام خپل آقا ته اوائی چه زه د خپلې غلامۍ په بدل کښې د دومره مال په عوض باندې آزادیدل غواړم کوم چه به زه ګټولو سره په قسطونو ادا کوم، او هغه خبره د هغه مولی منظوره کړی، نو په دې حدیث کښې دا دی چه مکاتب ترڅو پورې خپل پوره بدل د کتابت ادا نه کړی هغه نه ازادیږی، تر دې چه که یو درهم هم باقی پاتې شو نو بیا به هم هغه ازاد نه وی او په هغه باندې به د عبد احکام جاری کیږی، د جمهور علماء کرامو سره د ائمه اربعه نه هم دا مسلک دې، په دې کښې د بعض علماء کرامو اختلاف منقول دې، پس په کتاب الدیات کښې یو حدیث راروان دې: ﴿عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قضی رسول الله ﷺ فی دیة المکاتب یقتل: یودی ما ادی کتابته دیة الحر، وما بقی دیة المملوک وفی روایة اذا اصاب المکاتب حدا او ورث میراثا یرث علی قدر ما عتق منه﴾ دا روایت په ترمذی کښې هم شته، د دې حدیث په بناء باندې ابراهیم نخعی رحمه الله او د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم رائې دا ده چه مکاتب د بدل کتابت د ادا په اندازه آزادیږی، مثلا که هغه نصف بدل د کتابت ادا کړو نو د دې مکاتب نیمه حصه به ازاده شی او نیم به غلام وی، او په میراث او دیت وغیره احکاماتو کښې به د هغې اعتبار کولې شی او یو قول په دې کښې د بعض حنابله

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۰۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البيوع ۳۵ (۱۲۶۰)، سنن ابن ماجه/العتق ۳ (۲۵۱۹)، مسند احمد (۱۷۸/۲، ۲۰۶، ۲۰۹) (حسن)

دي چه مکاتب د بدل کتابت په دري ربع ادا کولو سره ازادیږی خو د جمهورو عمل په حدیث الباب باندي دي، او هم دا حدیث اولی دي د هغه بل حدیث نه، ځکه چه ددي حدیث امت تلقی بالقبول کړي دي او تقریبا د ټولو فقهاء کرامو عمل په دي حدیث باندي دي، او د حضرت گنگوهی رحمه الله په تقریر کښ د دي حدیث یو توجیه ذکر ده کومه چه به هم دلته انشاء الله وراندي راشی، حدیث عمرو بن شعیب عن جده الاول سکت علیه المنذری والثانی اخرجه الترمذی والنسائی، وابن ماجه، قاله المنذری.....

[۳۹۲۷](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَيُّمَا عَبْدٍ كَاتَبَ عَلَى مِائَةِ أُوقِيَّةٍ، فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشَرَةَ أَوَاقٍ فَهُوَ عَبْدٌ، وَأَيُّمَا عَبْدٍ كَاتَبَ عَلَى مِائَةِ دِينَارٍ، فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشَرَةَ دَنَانِيرَ فَهُوَ عَبْدٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَيْسَ هُوَ عَبَّاسٌ الْجُرَيْرِيُّ، قَالُوا: هُوَ وَهْمٌ وَلَكِنَّهُ هُوَ شَيْخٌ آخَرُ.

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه او هغه دده دنیکه نه او هغه د نبی علیه السلام نه روایت کوی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی کوم غلام چه په سلو اوقیو باندي مکاتبت اوکړو او بیا ئي ټوله مطالبه ادا کړه لیکن لس اوقیي باقی پاتي شوي نو دي غلام دي یعنی آزاد شوي نه دي.

[۳۹۲۸](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ نَبْهَانَ مُكَاتَبِ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أُمَّ سَلَمَةَ، تَقُولُ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ كَانَ لِإِحْدَاكُنَّ مُكَاتَبٌ فَكَانَ عِنْدَهُ مَا يُؤَدِّي، فَلْتَحْتَجِبْ مِنْهُ".

دام سلمه رضی الله عنها نه روایت دي فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته اوفرمائیل کله چه دچا سره یو مکاتب وي او دهغه سره دومره مال موجود وي په کوم سره چه بدل کتابت ادا کولي شي نو دده نه دده مالك له پرده کول پکار دي.

﴿سَمِعْتُ أُمَّ سَلَمَةَ تَقُولُ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنْ كَانَ لإِحْدَاكُنَّ مُكَاتَبٌ فَكَانَ عِنْدَهُ مَا يُؤَدِّى فَلْتَحْتَجِبْ مِنْهُ » ﴾

ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته اوفرمائیل چه کله په تاسو کښ د چا دپاره یو مکاتب وی او هغه مکاتب سره دومره پیسي موجود وی چه په هغي سره بدل د کتابت ادا کړي شی (اگر چه لا هغه پوره نه وی ادا کړي) نو د هغه نه ورله پرده کول پکار دی یعنی اگر چه لا آزاد شوي نه دي خو ازادیدلو نزدي دي نو په دي وجه دي ترې نه د اول نه احتیاطا پرده شروع کړی.

### د زنانه غلام د هغي محرم دي یا نه؟

په دي حدیث کښ یو د حجاب مسئله ده هغه دا چه د زنانه غلام د هغي محرم دي یا نه؟ د هغه نه ورله پرده کول ضروری دی یا نه؟ په ظاهره خو د حدیث نه معلومیږی چه هغه ئي محرم دي د هغه نه پرده نشته، د احنافو په نزد محرم نه دي، او د امام شافعی او احمد نه

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۲۵)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري (۵۰۲۶)، مسند احمد (۲/۱۸۴) (حسن)

(۲): سنن الترمذي/ البيوع ۳۵ (۱۲۶۱)، سنن ابن ماجه/العتق ۳ (۲۵۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۲۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۸۹، ۳۰۸، ۳۱۱) (ضعيف)

دوا ړه روايتونه دی، او د امام مالک رحمه الله نه روايت دې ﴿ان كان وغدا فمحرم والا فلا﴾ يعنی هغوی دا فرمائی چه که هغه غلام ساده او ناپوهه شان وی (چغد) نو بيا خو محرم دې د پردې حاجت نشته، او که پوهه او تيز قسم وی نو بيا ترې نه په دې صورت کښې پرده شته. د احنافو د طرف نه په حديث کښې دا تاويل کړې شوې دې چه په دې حديث کښې د احتجاب نه مراد نفس احتجاب نه بلکه احتجاب مفرد او اهتمام بالحجاب مراد دې ځکه چه د عبد نه پرده خو کولې شی خو د هغه په بار بار راتلو باندې د پردې اهتمام نه شی کولې. ﴿كالكلام معه والنظر الى الكفين والوجه كما تحتجب من غيره من الاجانب﴾ څوک چه د محرميت قائل دی د هغوی استدلال د ﴿او ما ملكت ايمانهن﴾ نه دی [۱] په دې قول د الله پاک کښې ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ په تفسير مدارک کښې د سعيد بن المسيب قول نقل کړې شوې دې. ﴿لا يغرنكم سورة النور فانها فی الاماء دون الذكور﴾ يعنی د ﴿اوما ملكت ايمانهن﴾ نه مراد صرف وينځې دی، غلامان په دې کښې داخل نه دی، وينځې چونکه د هلکانو په شان بې پردې بهر ګرځی نو د هغوی په باره کښې دا خيال کيدې شی چه د هغوی نه د پردې حکم وی، په دې وجه دا تصريح اوکړې شوه چه د هغوی نه پرده نشته.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری....

## بَابٌ فِي بَيْعِ الْمُكَاتَبِ إِذَا فُسِخَتِ الْكِتَابَةُ

### کله چه د کتابت لوظ مات شی نو د مکاتب خرڅول جائز دی

[۳۹۲۹] ([۲]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَخْبَرَتْهُ: "أَنَّ بَرِيرَةَ جَاءَتْ عَائِشَةَ تَسْتَعِينُهَا فِي كِتَابَتِهَا وَلَمْ تَكُنْ قَضَتْ مِنْ كِتَابَتِهَا شَيْئًا، فَقَالَتْ لَهَا عَائِشَةُ: ارْجِعِي إِلَى أَهْلِكِ فَإِنْ أَحَبُّوا أَنْ أَقْضِيَ عَنْكِ كِتَابَتَكِ وَيَكُونَ وَلَاؤُكِ لِي، فَعَلْتُ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ بَرِيرَةُ لِأَهْلِهَا، فَأَبَوْا، وَقَالُوا: إِنْ شَاءَتْ أَنْ تَحْتَسِبَ عَلَيْكِ فَلْتَفْعَلْ، وَيَكُونُ لَنَا وَلَاؤُكِ، فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ابْتَاعِي فَأَعْتِقِي، فَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ، ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَا بَالُ أُنَاسٍ يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللَّهِ مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ، فَلَيْسَ لَهُ وَإِنْ شَرَطَهُ مِائَةَ مَرَّةٍ شَرْطُ اللَّهِ أَحَقُّ وَأَوْثَقُ".

دعروه نه روايت دې فرمائی چه بريره رضی الله عنها عائشه رضی الله عنها ته راغله چه دبدل کتابت په سلسله کښې يې ورنه مدد غوښتلو اوهغې دخپل بدل کتابت نه څه نه وو اداکړي نوعائشې رضی الله عنها بريرې ته اووئيل ته لاړه شه اودخپلو مالکانونه تپوس اوکړه که چرې دهغوی خوښه وي چه ستا ټول بدل کتابت دې اداکړې شي او ولا دې زه حاصله کړم نوزه به ئې وکړم چنانچه بريره خپلوملکانوته لاړه اوداخبره ئې ورته اوکړه نوهغوی دولا ورکولونه انکار وکړو او وئې

[۱] طريق استدلال دا دې چه په دې آيت کريمه کښې او ما ملكت ايمانهن يعنی غلامان د پلارانو او خاوندانو په حکم کښې راوړلې شوې دی.

[۲]: صحيح البخاري/ المكاتب ۲ (۲۵۶۱)، الشروط ۱۱ (۲۷۲۷)، صحيح مسلم/ العتق ۲ (۱۵۰٤)، سنن الترمذي/ الوصايا ۷۱ (۲۱۲٤)، سنن النسائي/ البيوع ۸۳ (٤٦۵۹)، (تحفة الأشراف: ۱٦۵۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۸۱) (صحيح)

وئیل که چرې عائشه ماته دثواب په نیت باندې د الله درضاد پاره راکوي نو دیره ښه ده لیکن ولا به مونږ اخلو عائشې ددې خبرې ذکر نبی ﷺ ته وکړو نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل بریره واخله او آزاده ئې کړه ځکه چه دولا حق هم دهغې دې چه څوك یې آزاده کړي بیانبی ﷺ پاڅیدو اوونې فرمائیل په خلقو څه شوي دي چه هغوی داسې شرطونه لګوي کوم چه دالله تعالی په کتاب کښې نشته دې ، اوڅوك چه داسې شرط ولګوي کوم چه دالله تعالی په کتاب کښې نه وي نودهغه داشرط به درست نه وي، اګرکه دا شرط سل پیرې ولګوي ، دالله تعالی شرط زیات صحیح اور مضبوط دې۔

## د مکاتبت بریره رضي الله عنها روایات او د هغې تشریح او تطبیق :

په دې باب کښې مصنف رحمه الله دوه روایتونه ذکر فرمائیلې دی، اول ئې د بریره رضي الله عنها واقعه ذکر کړه، د دې نه پس ئې د جویریه رضي الله عنها واقعه ذکر کړه، په دواړو کښې هم داسې اوشو چه د مکاتبت معامله فسخ کولو سره هغه واخستلې شوه، بریره رضي الله عنها لره اخستونکې عائشه رضي الله عنها ده لکه چه په روایاتو کښې مشهوره ده، او جویریه رضي الله عنها لره اخستونکې خپله رسول الله ﷺ دې، د بریره رضي الله عنها په قصه کښې روایات مختلف دی هغه دا چه د هغوی بدل کتابت څومره متعین شوې وو په بعضو روایتونو کښې نهه اوقیه دی ﴿ علی تسع اواق ﴾ لکه چه په حدیث الباب کښې دی او په بعضو کښې ﴿ خمس اواق ﴾ راغلی دی او په حدیث الباب کښې دا هم دی ﴿ ولم تکن قضت من کتابتها شیئا ﴾ یعنی کله چه هغه د عائشې رضي الله عنها په خدمت کښې حاضره شوه د استعانة فی کتابتها دپاره نو تر هغه وخته پورې هغې هیڅ نه وو ادا کړي، او د بعضو روایاتو نه معلومیږي چه هغې څه حصه ادا کړې وه، د روایت الفاظ دا دی ﴿ فقال اهلها ان شئت اعطیت ما بقی ﴾ دا ټول روایات مختلفه په بخاری کښې دی. ځکه چه امام بخاری رحمه الله د بریره رضي الله عنها د قصې ډیرو ځایونو کښې ذکر فرمائیلې دې، د دې ټولو اختلافاتو تاویل کړې شوې دې کوم ئې چه په بذل کښې د فتح الباری نه نقل کړې دې.

بریره رضي الله عنها د بعض انصارو مملوکه وینځه وه [1] هغوی د خپلو موالی سره د مکاتبت معامله کړې وه هغه د عائشې رضي الله عنها په خدمت کښې حاضره شوه د پاره د امداد طلب کولو د مکاتبت په معامله کښې،عائشې رضي الله عنها هغې ته دا مشوره ورکړه چه د خپلو موالی نه تپوس اوکړه چه که هغوی دا خبره خوښوی چه زه د خپل طرف نه پوره بدل د کتابت ادا کړم او ته زما د طرف نه ازاده شې، او د قاعدې مطابق ستا ولاء زما دپاره شی نو زه داسې کولو ته تیاره یم، هغې د خپلې مالکانو نه معلومه کړه هغوی اووې چه که عائشه رضي الله عنها حسبة لله ستا د طرف نه بدل کتابت ادا کړي نو ادا دې کړي خو ولاء به ستا زمونږ دپاره وی. عائشې رضي الله عنها د دې خبرې ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ ابْتَاعِي فَأَعْتِقِي فَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ ﴾ چه ته بریره رضي الله عنها واخله او ازاده ئې کړه او ولاء به د قاعدې مطابق د ازادونکی

[1] قال الحافظ ٢٢٣/٥ وكانت بريرة لناس من الانصار كما وقع عند ابي نعيم، وقيل لناس من بني هلال قاله ابن عبدالبر ويمكن الجمع وكانت تخدم عائشة قبل ان تعتق كما سياتي في حديث الافك اهـ)

دپاره وي، او بيا د دې نه پس رسول اللهﷺ خطبه ورکړه چه په هغې کښې ئې اوفرمائيل ﴿ مَا بَالُ أُنَاسٍ يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللَّهِ الخ ﴾ چه په دې خلقو باندې څه چل شوې دې چه د کتاب الله خلاف شرطونه لګوی څوک چه داسې شرط اولګوی چه د الله پاک د کتاب خلاف وی نو هغه شرط معتبر نه دې اګر که سل شرطونه اولګوی، دلته په بعض روايتونو کښې داسې دی چه رسول اللهﷺ عائشېﷺ ته اوفرمائيل ﴿ واشترطی لهم الولاء ﴾ چه د هغوی د ولاء شرط قبول کړه، په دې باندې دا اشکال مشهور دې چه رسول اللهﷺ د دې شرط فاسد اجازت هغوی ته څنګه ورکړو؟ بيا د دې تاويل په مختلفو طريقو باندې کړې شوې دې، بعض شارحينو دا روايت ضعيف کړې دې چه په هغې کښې د شرط اجازت ذکر شوې دې، خو د دې جواب ترديد اوکړې شو چه د اشتراط والا روايت ثابت دې او د هغې راوی هشام ثقه او حافظ دې، يو توجيه دا کړې شوې ده چه په يو روايت کښې په ځائې د ﴿ اشترطی ﴾ يعني باب افعال ﴿ اشرطی ﴾ واقع شوې ده او د اشراط معنی اظهار ده ﴿ يعني اظهری لهم حکم الولاء ﴾... يعني رسول اللهﷺ عائشېﷺ ته اوفرمائيل چه د ولاء کوم حکم دې هغه هغوی ته بيان کړه، يو توجيه دا کړې شوې ده کما حکاه الطحاوی چه په ﴿ اشترطی لهم ﴾ کښې لام په معنی د علی دې يعني د هغوی خلاف کښې شرط اولګوه، او يو توجيه دا کړې شوې ده چه دا امر په طور د وعيد او توبيخ دې لکه فی قوله تعالی ﴿ اعملوا ما شئتم ﴾ حاصل د دې دا دې چه دا شرط په طور د قبول نه دې بلکه د رد کولو دپاره وو په طريقه د مبالغې چه د داسې مهمل شرط هيڅ اعتبار نشته، امام نوویؒ هم دا توجيه زياته خوښه کړې ده. (من البذل مختصرا)

[٣٩٣٠](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: جَاءَتْ بَرِيرَةُ لِتَسْتَعِينَ فِي كِتَابَتِهَا، فَقَالَتْ: إِنِّي كَاتَبْتُ أَهْلِي عَلَى تِسْعِ أَوَاقٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُوقِيَّةٌ، فَأَعِينِينِي، فَقَالَتْ: إِنْ أَحَبَّ أَهْلُكِ أَنْ أَعُدَّهَا عَدَّةً وَاحِدَةً وَأُعْتِقَكِ وَيَكُونَ وَلَاؤُكِ لِي فَعَلْتُ فَذَهَبَتْ إِلَى أَهْلِهَا وَسَاقَ الْحَدِيثَ نَحْوَ الزُّهْرِيِّ زَادَ فِي كَلَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِهِ مَا بَالُ رِجَالٍ يَقُولُ أَحَدُهُمْ: أَعْتِقْ يَا فُلَانُ وَالْوَلَاءُ لِي إِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ.

دام المومنين عائشةﷺ نه روايت دې فرمائې چه بريره په خپل کتابت کښې د مدد غوښتلو دپاره راغله او وئې وئيل چه ما دخپلو مسالکانو سره په نهه اوقيو سپينو زرو اداکولو باندې کتابت کړې دې نو په دې سلسله کښې زما مدد وکړه عائشهﷺ اوفرمائيل که چرې ستاد مالکانو خوښه وي نوزه به ټول بدل کتابت په يوځل باندې درکړم او تابه آزاده کړم او ستاولاء به وصول کړم نوبريره خپلو مالکانو ته لاړه اوباقی حديث دتيرشوي حديث په شان دې، البته په دې کښې ئې دومره اضافه کړې ده چه نبیﷺ دا هم اوفرمائيل: په خلقو څه شوي دي چه نوروته وائی چه آزاد ئې ته کړه او ولاء به زمونږ وي اوحالانکه ولا دهم هغه چاري چه څوک ئې آزادکړي

---

(1): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٢٢٣٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٢٩٦) (صحيح)

حديث عائشه رضي الله عنها الاول اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، والثاني اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري...

[٣٩٣١](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى أَبُو الْأَصْبَغِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "وَقَعَتْ جُوَيْرِيَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ الْمُصْطَلِقِ فِي سَهْمِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ أَوِ ابْنِ عَمٍّ لَهُ فَكَاتَبَتْ عَلَى نَفْسِهَا وَكَانَتِ امْرَأَةً مُلَاحَةً تَأْخُذُهَا الْعَيْنُ، قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: فَجَاءَتْ تَسْأَلُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كِتَابَتِهَا فَلَمَّا قَامَتْ عَلَى الْبَابِ، فَرَأَيْتُهَا كَرِهْتُ مَكَانَهَا، وَعَرَفْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيَرَى مِنْهَا مِثْلَ الَّذِي رَأَيْتُ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَا جُوَيْرِيَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ وَإِنَّمَا كَانَ مِنْ أَمْرِي مَا لَا يَخْفَى عَلَيْكَ وَإِنِّي وَقَعْتُ فِي سَهْمِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَإِنِّي كَاتَبْتُ عَلَى نَفْسِي، فَجِئْتُكَ أَسْأَلُكَ فِي كِتَابَتِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَهَلْ لَكِ إِلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ؟، قَالَتْ: وَمَا هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟، قَالَ: أُؤَدِّي عَنْكِ كِتَابَتَكِ وَأَتَزَوَّجُكِ، قَالَتْ: قَدْ فَعَلْتُ، قَالَتْ: فَتَسَامَعَ تَعْنِي النَّاسَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ تَزَوَّجَ جُوَيْرِيَةَ، فَأَرْسَلُوا مَا فِي أَيْدِيهِمْ مِنَ السَّبْيِ، فَأَعْتَقُوهُمْ وَقَالُوا: أَصْهَارُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْنَا امْرَأَةً كَانَتْ أَعْظَمَ بَرَكَةً عَلَى قَوْمِهَا مِنْهَا أُعْتِقَ فِي سَبَبِهَا مِائَةُ أَهْلِ بَيْتٍ مِنْ بَنِي الْمُصْطَلِقِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حُجَّةٌ فِي أَنَّ الْوَلِيَّ هُوَ يُزَوِّجُ نَفْسَهُ.

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی چه جويريه بنت حارث بن المصطلق (په جهاد كښې گرفتاره شوه) دثابت بن قيس بن شماس يا دخپل تره دځوي دغنيمت په حصه كښې راغله هغې دبدل كتابت معامله وكړه جويريه يوه ښكلي ځينځ و دهرچاپه هغې نظر وو عائشې اووئيل چه دا دبدل كتابت اداكولو دپاره دمدد غوښتلو دپاره دنبی ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه كله چه په دروازه كښې ودريده نوما ورته وكتل اوددې راتلل مې ښه ونه ګنګل زماداخيال رو هسې نه چه نبی ﷺ ئې ونه ويني او ورسره نكاح ونكړي ، ما دا خيال وكړو چه نبی ﷺ به ددې داحالت اويني كوم چه ما وليدل ، جويريه اووئيل اې دالله رسوله زه جويريه بنت حارث يم اوزماپه مخكښې كوم حال ور هغه ستاسو نه پټ نه دې اوزه دثابت بن قيس بن شماس په حصه كښې راغلې يم اودكتابت معامله مې كړې ده اودبدل كتابت په اداكولوكښې ستانه دمدد غوښتلو دپاره راغلې يم، نبی ﷺ ورته اوفرمائيل زه به تاته ددينه ډيره غوره خبره وكړم جويريه اووئيل هغه څه خبره ده؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائيل زه به ستا بدل كتابت ادا كړم اونكاح به درسره وكړم جويريه اووئيل ماته منظور ده ، عائشه وائي كله چه خلقو واوريدل چه نبی ﷺ دجويريه سره نكاح وكړه نوبه قبيله بني المصطلق كښې چه څومره ګرفتاركړې شوي خلق وو هغه ټول كې آزاد كړل ، په دې خيال باندې چه دا دنبی ﷺ سخرګنئ ده او مونږ په ښځو كښې دومره بركتي ښځه نه وه ليدلي دچاپه وجه چه دهغې قوم ته دومره فائده ورسيده څنګه چه جويريه وه چه دهغې په وجه باندې دبني المصطلق سل قيديان آزاد شول. امام ابوداؤد فرمائی ددې حديث نه داخبره ثابته شوه چه ولي پخپله خپله نكاح كولې شي.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ وَقَعَتْ جُوَيْرِيَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ الْمُصْطَلِقِ فِي سَهْمِ ثَابِتِ بْنِ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ أَوِ ابْنِ عَمٍّ لَهُ فَكَاتَبَتْ عَلَى نَفْسِهَا وَكَانَتِ امْرَأَةً مَلَاحَةً الخ ﴾

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٧/١، ٢٧٧/٦) (حسن)

د دې حدیث مضمون په کتاب الجهاد کښې د باب المکر فی الحرب نه مخکښې باب کښې تیر شوې دې.

**حضرت جویریه رضی الله عنها او د هغې د مکاتبت قصه :**

خلاصه دا چه جویریه رضی الله عنها په غزوه بنی المصطلق کوم ته چه غزوه مریسیع هم وائی په غنیمت کښې د یو صحابی ثابت بن قیس رضی الله عنه په حصه کښې راغلې وه، هغې د هغه صحابی سره د مکاتبت معامله اوکړه، وه ده ډیره ښکلې... دا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او خپل صورت حال ئې بیان کړو یعنی د کتابت معامله وغیره، او د بدل کتابت په باره کښې ئې سوال اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه تاته د دې نه غوره مشهور درکوم که تاته منظوره وی، هغې عرض اوکړو هغه څه مشوره ده یا رسول الله ﷺ ؛ رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغه دا چه ستا د کتابت بدل به زه ادا کړم او تا سره به نکاح اوکړم، هغې عرض اوکړو چه ما ته منظوره ده، پس هم دغه شان اوکړې شو. چه کله صحابه کرامو رضی الله عنهم ته معلومه شوه چه رسول الله ﷺ د جویریه رضی الله عنها سره نکاح اوکړه نو د کومو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره چه د قبیله بنو المصطلق قیدیان وو کوم چه هغوی ته په مال غنیمت کښې ملاؤ شوې وو هغوی هغه ټول آزاد کړل په دې وینا چه دا د رسول الله ﷺ د سخرګنئ خلق دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی چه مونږ د جویریه رضی الله عنها په شان بابرکته یو زنانه هم نه ده لیدلې د هغې په وجه باندې د بنو المصطلق تقریبا سل خاندانونه آزاد کړې شو.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا حُجَّةٌ فِي أَنَّ الْوَلِيَّ هُوَ يُزَوِّجُ نَفْسَهُ الخ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله په دې واقعه باندې استدلال کوی چه د زنانه ولی خپله د هغې سره نکاح کولې شی، یعنی څنګه ئې چه د بل سره کولې شی خپله ئې د ځان سره هم کولې شی که هغه ئې محرم نه وی، اوس دا چه رسول الله ﷺ د هغې ولی څنګه وو؟ نو یا خو په دې اعتبار سره چه رسول الله ﷺ هغه په اخستلو سره آزاده کړې وه لهذا هغوی ولی العتاقة شو، او یا په دې حیثیت سره چه ﴿السلطان ولی من لا ولی له ﴾ دا وضاحت خو شو د امام ابوداؤد رحمه الله د کلام، خو حنفیان به داسې وائی چه دا قصه دلیل دې د دې خبرې چه حره بالغه په خپله د ځان ولی ده په دې وجه هغه خپله نکاح پخپله کولې شی.

## بَابٌ فِي الْعِتْقِ عَلَى الشَّرْطِ

**په شرط لګولو سره د آزادولو بیان**

[۳۹۳۲][1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُمْهَانَ، عَنْ سَفِينَةَ، قَالَ: كُنْتُ مَمْلُوكًا لِأُمِّ سَلَمَةَ، فَقَالَتْ: "أُعْتِقُكَ وَأَشْتَرِطُ عَلَيْكَ أَنْ تَخْدُمَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عِشْتَ، فَقُلْتُ: وَإِنْ لَمْ تَشْتَرِطِي عَلَيَّ مَا فَارَقْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عِشْتُ، فَأَعْتَقَتْنِي وَاشْتَرَطَتْ عَلَيَّ".

د سفینه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه د ام سلمه غلام وم هغې راته اووئیل زه به دې ازاد کړم خو زما په تا باندې دا شرط دې چه د نبی علیه السلام خدمت به کوې ترڅو چه ژوندې یې ما ورته اووئیل که ته په ما شرط مقرر نکړې نو بیا هم زه د نبی علیه السلام نه پخپل ژوند کښې نه جدا کیږم

[1]: سنن ابن ماجه/العتق ٦ (٢٥٢٦)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٢١) (حسن)

نوهغې زه آزاد کړم او دا شرط ئې راباندې مقرر کړو.

﴿ عَنْ سَفِينَةَ قَالَ كُنْتُ مَمْلُوكًا لِأُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ أُعْتِقُكَ وَأَشْتَرِطُ عَلَيْكَ أَنْ تَخْدُمَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَا عِشْتَ الخ ﴾

## د سفینه رضی الله عنه صحابی تذکره:

سفینه رضی الله عنه چه د هغه په نوم کښې ډیر اقوال دی قیل مهران بن فروخ، وقیل نجران، وقیل رومان وقیل رباح وغیره ذلک.... هغه ته سفینه رضی الله عنه ولې وائی؟ د هغه خپله بیان دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو سفر کښې ؤو نو زمونږ په ملګرو کښې چه به څوک هم ستړې کیدلو نو هغه به خپل لاس سامان په ما باندې اچولو، چا تورې کیخودلې او چا دهالونه، تردې چه په ما باندې ډیر زیات سامانونه کیخودلې شو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ انت سفینة ﴾ (تهذیب الکمال)

د هغوی په باره کښې دا قصه مشهوره ده چه په یو سفر کښې یواځې پاتې شو او لاره ترې نه هم ورکه شوه هم په دې وخت کښې هغوی اولیدل چه یو زمرې هغه ته راروان دې نو دې اویریدو او هغه ته ئې اووې چه زه د رسول الله ﷺ غلام او خادم یم او لاره رانه ورکه شوې ده، په دې اوریدلو باندې د هغه زمری رویه د هغه سره بدله شوه او هغه سره ئې نرمی شروع کړه او لکئ خوزول ئې شروع کړل لکه چه د یو پیژندګلو څیز په لیدو باندې ئې خوزوی او بیا د هغه سره په حینړیدو باندې راغلو او لارې ته ئې راویستلو، د قصیده برده شعر دې!

ومن تکن برسول الله نصرته :: ان تلقه الاسد فی اجامهاتجم

وترجمه العارف الجامی فی الفارسیة.....

هر که او را از رسول نصرت امده :: شیر اگر بروے رسد از ترس آید بهم

ہو مدد جس کو رسول سید لولاک کی :: شیر بھی اگوطے جنگل میں گریائے نہ دم

په حدیث الباب کښې دی سیدنا سفینه رضی الله عنه فرمائی چه زه د ام سلمه رضی الله عنها غلام اوم نو هغې ماته اوفرمائیل چه زه تا په دې شرط باندې آزادوم چه ته ترڅو پورې ژوندې ئې د رسول الله ﷺ خدمت به کوې، هغوی فرمائی چه ما د دې خبرې جواب دا ورکړو چه که تاسو دا شرط نه هم لګوئ نو زه د رسول الله ﷺ نه نه جدا کیږم، بیا زه هغوی هم په دې شرط آزاد کړم.

په دې واقعه کښې یو فقهی مسئله هم ده هغه دا چه د اعتاق په وخت داسې قسم شرطونه لګول شرعا معتبر دی یا نه، د اکثر فقهاء کرامو په نزد صحیح نه دی: ﴿ لانه شرط لا یلاقی ملکا، ومنافع الحر لا یملکها غیره الا فی اجارة او ما فی معناها ﴾ یعنی دا شرط داسې دې چه د هغې تعلق د مملوک د خپل څیز سره نه دې، ځکه چه د خدمت وقوع به د عتق نه پس وی او د عتق نه پس د مولی هیڅ حق باقی نه پاتې کیږی (سوی الولاء) ځکه چه دحُر د منافع مالک خپله هغه حر دې د دې توجیه دا کړې شوې ده چه دا اصطلاحی شرط نه دې بلکه د دې نه مراد وعده ده یعنی د هغوی نه دا وعده واخستلې شوه، او د وعدې ایفاء لازم نه ده بلکه شرعا تبرع ده. (والحدیث اخرجه النسائی، وابن ماجه قاله المنذری)

# بَاب فِيمَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا لَهُ مِنْ مَمْلُوكٍ

## باب: څوک چه د غلام څه حصه آزاده کړي

## د باب اول او باب ثاني د دواړو تشريح او مذاهب ائمه:

او د دې نه روستو باب داسې دی ﴿من اعتق نصيبا من مملوک بينه وبين اخر﴾ لهذا رومبی باب د عبد غير مشترک سره متعلق دې او دويم د عبد مشترک سره، يعنی يو سړې د خپل غلام څه حصه آزاده کړی مثلا نصف، او پوره آزاد نه کړی، لکه چه په رومبی باب کښې ذکر شوې دی، يا عبد مشترک کښې خپله حصه آزاده کړی لکه چه د دويم باب مضمون دې. مطلب دا دې چه په دې دواړو صورتونو کښې به د دې غلام څه انجام وی، پوره به آزادېږی يا صرف نيمه حصه به ئې آزادېږی، او که پوره آزاد نه شی نو د بل شريک دپاره به په آزادونکی باندې ضمان واجب وی يا نه.

ځان پوهه کړئ چه دلته دوه څيزونه دی يو اعتاق او په هغې باندې مرتب کيدونکې څيز يعنی عتق، د امام صاحب او صاحبينو ﷭ په دې باندې اتفاق دې چه عتق متجزی نه دې، او غلام به په هر صورت کښې آزاد وی خو په اعتاق کښې اختلاف دې، د امام صاحب په نزد هغه متجزئ دې مطلقا (که هغه آزادونکې موسر وی او که معسر وی) او د صاحبينو په نزد اعتاق هم متجزئ نه دې ځنګه چه عتق متجزئ نه دې لذا، د صاحبينو په نزد نيم غلام آزادول يا د احد الشرکين خپلې حصې لره آزادول د پوره غلام آزادول دی، لهذا په دواړو صورتونو کښې به پوره غلام آزادېږی، او د امام صاحب په نزد به آزادېږی خو پوره په دواړو صورتونو کښې، خو نصف به د آزادونکی د طرف نه وی، او باقی نيم به د هغه د طرف نه نۀ ازادېږی بلکه خپله به آزاد وی بالسراية يعنی د معتق د اختيار نه بغير به نصف عتق په باقی کښې پخپله سرايت کوی.

د امام صاحب او د صاحبينو ترمينځه په دې کلی اختلاف باندې د پوهې نه پس د رومبی باب والا مسئلې متعلق د امام صاحب په مسلک باندې ځان پوهه کړئ، هغوی د اعتاق نصف نه پس فرمائی چه اوس دې معتق ته دوه اختياره دی يو اعتاق او بل استسعاء يعنی که هغه غواړی نو نصف آخر دې هم د خپل طرف نه آزاد کړی او يا دې د غلام نه نيم قيمت سعاية کړی، او د صاحبينو په نزد چونکه اعتاق نه متجزی کيږی په دې وجه اعتاق البعض اعتاق الکل دې ګويا هغه پخپله پوره غلام آزاد کړو اوبس قصه ختم شوه.

اوس د دويم باب متعلق ځان پوهه کړه چه احد الشريکين چا چه خپله حصه آزاده کړې وه هغه ته دې اوکتلې شی چه هغه موسر دې يا معسر که موسر وی نو د امام صاحب په نزد د شريک آخر دپاره درې اختياره دی، ضمان، اعتاق، استسعاء، يعنی شريک آخر که د معتق نه غواړی نو ضمان دې ترې نه واخلی او که غواړی نو خپله حصه دې ترې نه هم آزاده کړی. [1] او که غواړی د غلام نه دې سعايت اوکړی، او که آزادونکې شريک معسر او غريب دې نو په دې صورت کښې به شريک آخر ته صرف دوه اختياره وی، يو اعتاق او بل

[1] يعنی کوم اعتاق چه شوې دې د خپل طرف نه دې اوګڼړی

استسعاء، د ضمان اختيار به ورته حاصل نه وي د هغه د اعسار د وجې نه.
او صاحبين په دې مسئله کښې دا فرمائي چه آزادونکې که موسر دې نو د شريک آخر دپاره به ضمان د استحقاق وي او که معسر وي نو په دې صورت کښې د شريک آخر دپاره صرف حق دسعايت دې، يعنې په يوصورت کښې صرف ضمان او په يو صورت کښې صرف سعايت.
دا تفصيل خو شو د مذهب حنفي، او د باقي ائمه ثلاثه مسلک دا دې چه د هغوی په نزد اعتاق او عتق دواړه د اعسار په صورت کښې متجزئ دی او د يسار په هصورت کښې غير متجزئ، لهذا د ړومبی باب والامسئله کښې چه کومه رائې دصاحبينو ده هم هغه د ائمه ثلاثه ده يعنې دنصف په آزادولوسره به پوره غلام آزادشي. (لعدم الجواز التجزئ حينئذ عندهم)[1]
او د باب ثاني والا مسئلې کښې د ائمه ثلاث په نزد د يسار معتق په صورت کښې د شريک ثاني دپاره صرف يو اختيار دې يعنې ضمان او د اعسار په صورت کښې دا دې چه (عتق منه ما عتق) يعنې نيم به آزاديږي او نيم به غلام وي.
د دې تفصيل نه معلومه شوه [2] چه ائمه ثلاث د استسعاء قائل نه دی، او دا چه د هغوی په نزد باندې عتق هم متجزئ دې هم په دې وجه د هغوی په نزد د اعسار معتق په صورت کښې سعايت نشته بلکه عتق متجزئ به راشي. نيم غلام به آزاد وي او نيم غير آزاد.
او دا خبره هم مخې ته راغله چه باب اول يعنې عبد غير مشترک والا مسئله کښې د ائمه ثلاث او د صاحبينو خپل مينځ کښې اتفاق دې او د باب ثاني والا مسئله کښې د يسار معتق په صورت کښې ائمه ثلاث او صاحبين متفق دی او د اعسار والا صورت کښې مختلف. والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب

[۳۹۳۳](۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْمَعْنَى، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا "أَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ مِنْ غُلَامٍ فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: لَيْسَ لِلَّهِ شَرِيكٌ"، زَادَ ابْنُ كَثِيرٍ فِي حَدِيثِهِ: فَأَجَازَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِتْقَهُ.

ابو المليح دخپل پلار نه روايت کوي، دابو الوليد د پلار په روايت کښې دی چه يو سړي ديو غلام نه خپله يوه حصه آزاده کړه اوبيانبي ﷺ ددينه خبر شو نبي ﷺ اوفرمائيل دالله

---

[1] ځکه چه دا مسئله د يسار په صورت کښې داخله ده ځکه چه آزادونکې سړې دپوره غلام مالک دې په دې لحاظ سره هغه موسر شو.
[2] خلاصة المذاهب: د مذاهبو خلاصه دا ده چه که يو سړي د خپل غلام بعض حصه آزاده کړي نو د امام صاحب په نزد د هغه دپاره دوه اختياره باقي دی يا اعتاق او يا استسعاء او عند الخمسة يعنې د صاحبينو او د ائمه ثلاثه په نزد اعتاق البعض هغه اعتاق الکل دې، او که عبد مشترک وي او احد الشريکين خپله حصه آزاده کړي نو بل شريک ته به د امام صاحب په نزد د يسار معتق په صورت کښې درې اختيارات وي.... الضمان والاعتاق والاستسعاء، او د اعسار په صورت کښې به صرف دوه اختياره وي اعتاق او استسعاء او ضمان به ساقط وي، او د صاحبينو په نزد يسار د معتق په صورت کښې د شريک آخر دپاره صرف د ضمان او اعساء په صورت کښې صرف سعاية او د ائمه ثلاث په نزد د يسار په صورت کښې ضمان او د اعسار په صورت کښې هيڅ هم نشته بلکه (عتق منه ما عتق) نيم غلام به آزاد وي او نيم رقيق.
[3] سنن النسائي الكبرى العتق ۱۷ (۴۹۷۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷۴/۵، ۷۵) (صحيح)

تعالی سره څوك شریك نشته دې ابن کثیر پخپل روایت کښې دا اضافه کړې ده چه بیانبی ﷺ ددې غلام په آزادولو کښې درخصت حکم وکړو.

﴿عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَجُلاً أَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ مِنْ غُلاَمٍ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « لَيْسَ لِلَّهِ شَرِيكٌ ». زَادَ ابْنُ كَثِيرٍ فِي حَدِيثِهِ فَأَجَازَ ....الخ﴾

**شرح الحدیث :**

یعنی یو سړی د خپل غلام څه حصه آزاده کړه د کوم ذکر چه رسول اللهﷺ ته اوکړې شو هغوی اوفرمائیل چه د الله پاک هیڅوک شریک نشته لهذا هغه شرک نه خوښوی، او هغوی دا عتق په ټول کښې نافذ اوفرمائیلو، دا حدیث په ظاهر کښې د ائمه ثلاث او د صاحبینو موافق دې چه اعتاق البعض اعتاق الکل دې، د امام صاحبؒ د طرف نه دا توجیه کیدې شی چه مقصود ترې نه ترغیب دې چه پوره غلام د الله پاک د طرف نه آزادول پکار دی، چه د غیر الله شرکت په هغې کښې باقی نشی. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابُ مَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا مِنْ مَمْلُوكٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ آخَرَ

**باب د څوك چه په داسې غلام کښې خپله حصه آزاده کړی کوم چه دده او د بل په مینځ کښې شریك وی**

[۳۹۳٤](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنِي هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ مِنْ غُلَامٍ، فَأَجَازَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِتْقَهُ وَغَرَّمَهُ بَقِيَّةَ ثَمَنِهِ".

دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي څوك چه په مشترك غلام کښې خپله حصه آزاده کړي نونبی ﷺ ددې غلام آزادیدل جائز گرځولي دي او دغلام باقی پاتې قیمت ئې دده په ذمه باندې اچولې دې (چه نورو حصه دارانو ته به ئې ورکوي).

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلاً أَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ مِنْ غُلاَمٍ فَأَجَازَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عِتْقَهُ وَغَرَّمَهُ بَقِيَّةَ ثَمَنِهِ ﴾ دا د باب ثانی دویم حدیث دې د دې تعلق د عبد مشترک سره دې د مضمون حدیث خلاصه دا ده چه احد الشریکین په غلام کښې خپله حصه آزاده کړه، نو رسول اللهﷺ دا عتق په پوره غلام کښې نافذ کړو او آزادونکې ئې د نیم باقی ضامن کړو.

ښکاره خبره ده چه ضمان د یسار معتق په صورت کښې کیدې شی او په دې صورت کښې د صاحبینو او د ائمه ثلاث په نزد صرف وجوب ضمان دې کوم چه په حدیث کښې ذکر دې، او د امام صاحب په نزد په دې صورت کښې شریک آخر ته دوه اختیاره نور دی د ضمان نه علاوه، اعتاق او سعایت، کما تقدم..... د سعایت مسئله چه مختلف فیه ده احناف د هغې قائل دی او ائمه ثلاث منکر، د هغې وړاندې مستقل باب راروان دې، دا ضروری نه ده چه د یو حدیث نه دې د مسئلې پوره تفصیل معلوم شی، په نورو احادیثو کښې د ضمان سره د سعایت هم ذکر دې کوم چه احنافو اختیار کړې دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه بنحوه، قاله المنذری

(۱): صحيح البخاري/الشركة ٥ (٢٤٩٢)، ١٤ (٢٥٠٤)، والعتق ٥ (٢٥٢٧)، صحيح مسلم/العتق ١ (١٥٠٣)، سنن الترمذي/الأحكام ١٤ (١٣٤٦)، سنن ابن ماجه/العتق ٧ (٢٥٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٢١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٥٥، ٣٤٧، ٤٢٦، ٤٦٨، ٤٧٢، ٥٣١) (صحيح)

[۳۹۳۵]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ سُوَيْدٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ بِإِسْنَادِهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْتَقَ مَمْلُوكًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ آخَرَ، فَعَلَيْهِ خَلَاصُهُ"، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ سُوَيْدٍ.

د قتاده رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی کریم فرمائیلی دی ځوك چه داسې غلام ازاد کړي کوم چه دده دبل چاسره مشترك وي نوپه ده باندې دټول غلام آزادول لازم دي او دا د سوید د روایت الفاظ دي.

[۳۹۳٦]([2])حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ سُوَيْدٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ قَتَادَةَ بِإِسْنَادِهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا لَهُ فِي مَمْلُوكٍ عَتَقَ مِنْ مَالِهِ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ"، وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ الْمُثَنَّى النَّضْرَ بْنَ أَنَسٍ وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ سُوَيْدٍ.

دقتاده فنه روایت دي فرمائی چه نبی کریم فرمائیلی دی ځوك چه په یوغلام کښې خپله حصه آزاده کړي نوټول غلام ددہ دمال نه آزاد شو خوبه دي شرط چه آزادونکي مالدار وي وابن مثنی پخپل روایت کښې نضر بن انس نه دي ذکرکړې اودا دسوید د روایت الفاظ دي.

## بَابُ مَنْ ذَكَرَ السِّعَايَةَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ

### باب دچا په نزد چه آزادونکې غریب وی نوپه غلام به محنت کولې شی ددې د دلیل بیان

### د ترجمة الباب عرض او تشریح:

په اول باب کښې چه د ابوهریره رضی الله عنه کوم حدیث تیر شوې دې د هغې په هغه طریق کښې د سعایت ذکر نشته......... چونکه هم د دې حدیث په بعضو طرقو کښې د سعایة ذکر دې، او مسئله فی نفسه بین الائمة مختلف فیه ده هم د دې اهمیت د وجې نه مصنف رحمه الله مستقل ترجمه قائم کړه.

[۳۹۳۷]([3])حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ يَعْنِي الْعَطَّارَ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَعْتَقَ شَقِيصًا فِي مَمْلُوكِهِ، فَعَلَيْهِ أَنْ يُعْتِقَهُ كُلَّهُ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ وَإِلَّا اسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم فرمائیلی دی چاچه دیوغلام نه خپله حصه آزاده کړه کومه چه په مشترك غلام کښې وه نوپه ده باندې دپوره غلام آزادول لازم دي خوپه دې شرط چه مالدار وي خوکه چرې دده سره مال نه وي نوغلام به په مشقت کښې داچولونه بغیر مزدوري کوي (اوباقی پاتې حصه به آزادوي).

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قال نا أَبَانُ — قال نا قَتَادَةُ عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه الخ ﴾ ([4])د دې حدیث مضمون هم هغه دې کوم چه مخکښې تیر شو خو په

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۱) (صحيح)

[2]): انظر حديث رقم: (۳۹۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۱) (صحيح)

[3]): انظر حديث رقم: (۳۹۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۱) (صحيح)

[4]) د دې روایت الفاظ دا دی: مَنْ أَعْتَقَ شَقِيصًا فِي مَمْلُوكِهِ فَعَلَيْهِ أَنْ يُعْتِقَهُ كُلَّهُ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ وَإِلَّا اسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ...... لـه

اول طریق کښې صرف ضمان ذکر دې او په دې کښې دا دی چه که آزادونکې شریک مالدار وی نو د هغه نه به ضمان اخستلې شی او که معسر دې نو په دې صورت کښې دې د عبد نه سعایت اوکړې شی.

د دې نه مخکښې حدیث کښې د قتاده نه روایت کونکې همام وو او په دې طریق کښې د هغوی نه روایت کونکې ابان دې د ﴿غیر مشقوق علیه﴾ مطلب د ادې چه د عبد نه سعایت کولو والا صورت کښې دې په هغه باندې مشقت وانچولې شی بلکه په سهولت به ئې هغه د ګټلو نه پس ادا کړی.

[۳۹۳۸]()حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ ح وحَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا لَهُ أَوْ شَقِيصًا لَهُ فِي مَمْلُوكٍ، فَخَلَاصُهُ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ قُوِّمَ الْعَبْدُ قِيمَةَ عَدْلٍ ثُمَّ اسْتُسْعِيَ لِصَاحِبِهِ فِي قِيمَتِهِ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: فِي حَدِيثِهِمَا جَمِيعًا، فَاسْتُسْعِيَ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ وَهَذَا لَفْظُ عَلِيٍّ.

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی څوک چه په مشترک غلام کښې خپله حصه آزاده کړي نوددې کس په ذمه باندې دخپل مال نه دغلام آزادول ضروری دی خو په دې شرط چه مالدار وي که چرې آزادونک مالدار نه وي نوددې غلام به متوسط قیمت مقرر کړې شي اوبیابه دباقی شریکانو د حصو مطابق غلام محنت او مزدوري وکړي لیکن په ده باندې به زور نشي کولې. امام ابوداؤد په دواړو حدیثونو کښې "استسعي غیر مشوق علیه"، بیانوي اوداد علی دروایت الفاظ دي.

﴿فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ قُوِّمَ الْعَبْدُ قِيمَةَ عَدْلٍ﴾ یعنی که د معتق سره مال نه وی نو د عبد به په یو عادل سړی باندې قیمت لګولو سره د عبد نه سعایت اوکړې شی.

الحدیث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه قاله المنذري

[۳۹۳۹]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، وَابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ لَمْ يَذْكُرِ السِّعَايَةَ، وَرَوَاهُ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، وَمُوسَى بْنُ خَلَفٍ جَمِيعًا، عَنْ قَتَادَةَ، بِإِسْنَادِ يَزِيدَ بْنِ زُرَيْعٍ، وَمَعْنَاهُ وَذَكَرَا فِيهِ السِّعَايَةَ.

دسعید نه هم دتیرشوي روایت په شان روایت منقول دې ، امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت روح بن عباده دسعید بن ابی عروبه نه نقل کړې دې اوراوی دعایه نوم نه دې

[۲۶]...... د حدیث د ظاهری الفاظو تقاضه دا ده چه دا حدیث د غیرمشترک غلام باره کښې دی چه نبی علیه السلام فرمائي چه کوم سړی دخپل غلام بعضې حصه آزاده کړه نوهغه له پکاردی چه کل غلام آزاد کړی که په دې کښې ګنجائش وی او هغه مالدار وی (دا حکم په طور د ترغیب دی د تکثیر ثواب دپاره) او که ګنجائش نه وی نو دغلام نه دې د باقی حصې د خپل خان دپاره سعایه اوکړی.او دا هم ممکنه ده چه دا دې په عبد مشترک باندې محمول کړې شی لکه چه د دې نه روستو روایت کښې دی نو په دې صورت کښې ﴿فعلیه ان یعتقه کله﴾ مطلب به دا وی چه د باقی حصې به شریک آخر ته ضمان ورکولو سره د خپل طرف نه هغه آزاد کړی، حضرت په بذل کښې دا هم په دې باندې محمول کړې دې. فتامل)

(): انظر حدیث رقم: (۳۹۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۱) (صحیح)

(): انظر حدیث رقم: (۳۹۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۱۱) (صحیح)

ذکرکړې، جرير اوموسى بن خلف دقتاده رحمه الله نه ديزيد په سند سره نقل کړې دې او په دې کښې دسعايه ذکرهم شته.

## باب فيمن روى أنه لا يستسعي

### باب دچاپه نزد چه په هغه محنت کول نشته دهغوی د دليل بيان

**اختلاف دنسخو او د نسخه صحيحه تعيين:**

د دې ترجمة الباب په باره کښې نسخې مختلف دی خو څۀ چه زمونږ په نسخه کښې دی که هغه اختيار کړې شي نو ترجمه سابق او دا دواړه به يو شي، حال دا چه په ترجمه سابقه سره مقصود ذکر د سعايه دې او په دې ترجمې سره غرض د جمهورو د مسلک مطابق عدم ذکر د سعاية دې، پس په حديث الباب کښې سعايه نه دې ذکر شوې، لهذا په دې کښې دويمه نسخه کومه چه په حاشيه باندې ذکر شوې ده ﴿ باب فيمن روى انه لا يستسعى﴾ دا صحيح ده.

[۳۹٤۰] ([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي مَمْلُوكٍ أُقِيمَ عَلَيْهِ قِيمَةُ الْعَدْلِ، فَأَعْطَى شُرَكَاءَهُ حِصَصَهُمْ وَأُعْتِقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي، څوك چه په يوغلام کښې خپله حصه آزاده کړي نومتوسط انصافي قيمت به ورباندې مقررکړي شي اونورو شريکانوته به خپلې حصې ورکړې شي اوغلام به دده دطرف نه آزاد کړي شي اوکه چرې داسې نه وي نو څومره چه آزاد کړي شي نوهم دومره آزادکړي شو (يعنى باقى دغلامى په حالت کښې پاتې شو).

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِى مَمْلُوكٍ أُقِيمَ عَلَيْهِ قِيمَةَ الْعَدْلِ فَأَعْطَى شُرَكَاءَهُ حِصَصَهُمْ وَأُعْتِقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ وَإِلاَّ فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ » ﴾

د ړومبى باب حديث چه په هغې کښې ذکر د سعاية دې هغه د ابوهريره رضي الله عنه روايت وو او په دې باب کښې چه څومره هم روايات دی هغه ټول د ابن عمر رضي الله عنهما دی په ډيرو طرقو سره، مضمون د حديث دا دې.

کوم شريک چه په غلام کښې خپله حصه آزاده کړه نو د هغه غلام قيمت به لګولې شي او نورو شريکانو ته د هغوى حصه ورکول به د دې معتق په ذمه وى (يعنى په صورة اليسار کښې به ضمان واجب وى) ﴿ والا اى وان لم يعط ﴾ يعنى که هغه معتق شريکانو ته د هغوى حصه ورنکړې شى. ﴿ بان کان معسرا فقد اعتق منه ما اعتق ﴾ نو په دې صورت کښې به سعايه نه وى بلکه عتق به متجزئ وى بعض حصه به د غلام آزاده وى بعض نه، يعنى د باقى شريکانو په اندازه به غلام آزاد نه وى.

[1]: صحيح البخاري/الشركة ٥ (٢٤٩١)، ١٤ (٢٥٠٣)، العتق ٤ (٢٥٢٢)، صحيح مسلم/العتق ١ (١٥٠١)، الأيمان ١٢ (١٥٠١)، سنن النسائي/البيوع ١٠٤ (٤٧٠٣)، سنن ابن ماجه/العتق ٧ (٢٥٢٨)، (تحفة الأشراف: ٨٣٢٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العتق ١ (١)، مسند احمد (١/٥٦) (صحيح)

## د حديث الباب د احنافو د طرف نه جواب:

دا حديث د ائمه ثلاثه دليل دې او د تير شوي باب د حديث خلاف دې چه په هغې كښې دا وو چه د اعسار د معتق په صورت كښې به په عبد باندې سعايت كولې شي، د دې حديث جواب خپله د رواياتُ الباب د كتلو نه اندازه كيدلې شي چه د دې ثبوت ضعيف دې ځکه چه د دې لفظ په باره كښې د راويانو اختلاف دې بعضو هغه ذكر كړې دې او بعضو نه دې ذكر كړې، پس په وړاندې روايت كښې دی: ﴿وَكَانَ نَافِعٌ رُبَّمَا قَالَ « فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ ». وَرُبَّمَا لَمْ يَقُلْهُ﴾ او د هغې نه په روستو روايت كښې دی ﴿قَالَ أَيُّوبُ فَلاَ أَدْرِى هُوَ فِى الْحَدِيثِ عَنِ النَّبِىِّ –صلى الله عليه وسلم– أَوْ شَىْءٌ قَالَهُ نَافِعٌ الخ﴾

[۳۹۴۱](¹)حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: وَكَانَ نَافِعٌ رُبَّمَا، قَالَ: فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ وَرُبَّمَا لَمْ يَقُلْهُ.

د عبدالله بن عمر ﷺ نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی: دا روايت د تير شوي روايت په شان دي مګريدې كښې دا اضافه ده چه نافع به كله كله داسې وئيل «فقد عتق منه ما عتق» او كله كله به ئې دا كلمات نه وئيل.

[۳۹۴۲](²)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَيُّوبُ: فَلَا أَدْرِي هُوَ فِي الْحَدِيثِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ شَيْءٌ قَالَهُ نَافِعٌ وَإِلَّا عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ.

دعبدالله بن عمر ﷺ نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: ايوب وائي زه نه پوهيږم چه داجمله عتق منه ما عتق په دې حديث كښې مرفوع يعنی دنبی ﷺ الفاظ دي اوكه دنافع الفاظ دي.

روايتونه خو د ړومبی باب هم او دې هم د تخريج په لحاظ سره يو شان دی چه ټول په صحيحينو كښې موجود دی خو د دې باوجود د صحيحينو په رواياتو كښې كه تعارض بيا موندلې شي نو د ترجيح طريقه خو به هلته هم اختيارولې شی د دفع دتعارض دپاره، احنافو د استسعاء والا روايت ته ترجيح وركړې ده او جمهورو د عدم استسعار روايت ته.

امام بخاري ﷫ د استسعاء باب قائمولو سره هغه ثابت منلې دې پس په الابواب والتراجم كښې دی نقلا عن الحافظ: ﴿قوله تابعه حجاج بن حجاج كانه اشار بهذا الى الرد على من زعم ان الاستسعاء فى هذا الحديث غير محفوظ الى آخر ما ذكر﴾

[۳۹۴۳](³)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا مِنْ مَمْلُوكٍ لَهُ، فَعَلَيْهِ عِتْقُهُ كُلِّهِ إِنْ كَانَ لَهُ مَا يَبْلُغُ

¹): صحيح البخاري/ الشركة ٥ (٢٤٩١)، العتق ٤ (٢٥٢٤)، صحيح مسلم/ العتق ١ (١٥٠١)، سنن الترمذي/ الأحكام ١٤ (١٣٤٦)، سنن النسائي/ البيوع ١٠٤ (٤٧٠٣)، (تحفة الأشراف: ٧٥١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥/٢) (صحيح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٧٥١١) (صحيح الإسناد)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٠٨٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العتق ٤ (٢٥٢٣)، صحيح مسلم/الأيمان والنذور ١٢ (١٥٠١)، سنن الترمذي/الأحكام ١٤ (١٣٤٦)، سنن النسائي/البيوع ١٠٤ (٤٧٠٣) (صحيح)

ثَمَنَهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ عَتَقَ نَصِيبُهُ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی: څوك چه په يوغلام کښې خپله حصه آزاده کړي نو يده باندې دټول غلام آزادول ضروری دی خو هله چه دي دده قيمت ادا کولې شي نو که چرې مال ورسره نه وي نو بيا صرف دده خپله حصه آزاده شوه.

[۳۹۴۴] (١) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَى إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُوسَى.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: باقی روايت دموسی بن ابراهيم د روايت په شان دي.

[۳۹۴۵] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ، حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَى مَالِكٍ وَلَمْ يَذْكُرْ وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ انْتَهَى حَدِيثُهُ إِلَى وَأُعْتِقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ عَلَى مَعْنَاهُ.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: باقی روايت دمالك د روايت په شان دي ليکن په دې روايت کښې د «والا فقد عتق منه ما عتق» الفاظ نه دی ذکرشوي دده روايت پوره شو، اوغلام دده دطرف نه آزاد شو دمالك د روايت هم مطلب.

[۳۹۴٦] (٣) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَعْتَقَ شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ عَتَقَ مِنْهُ مَا بَقِيَ فِي مَالِهِ إِذَا كَانَ لَهُ مَا يَبْلُغُ ثَمَنَ الْعَبْدِ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: کله چه څوك په يوغلام کښې خپله حصه آزاده کړي نو باقی پاتې هم دده دمال نه آزادشو خو چه دده دمال نه دغلام قيمت ادا کيدې شي يعنی قيمت ورسره پوره کيږي.

[۳۹۴۷] (٤) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ اثْنَيْنِ، فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ فَإِنْ كَانَ مُوسِرًا يُقَوَّمُ عَلَيْهِ قِيمَةً لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ ثُمَّ يُعْتَقُ".

سالم دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی کله چه يوغلام ددوه کسانو په مينځ کښې مشترك وي اويو ددوی نه خپله حصه آزاده کړي نو که چرې آزادونکي مال داروي نوغلام به په متوسط قيمت باندې قيمت کړې شي نه ډيرکم اونه ډيرزيات اوبيا به دده دطرف نه آزاد کړی شي.

[1]: صحيح البخاري/العتق ٤ (٢٥٢٥ تعليقًا) صحيح مسلم/ العتق ١ (١٥٠١)، سنن النسائي/ الكبري (٤٩٥٨)، (تحفة الأشراف: ٨٥٢١) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الشركة ١٤ (٢٥٠٣)، (تحفة الأشراف: ٧٦١٧) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/العتق ١ (١٥٠١)، سنن الترمذي/الأحكام ١٤ (١٣٤٧)، سنن النسائي/الكبري (٤٩٤٤)، (تحفة الأشراف: ٦٩٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤/٢) (صحيح)

[4]: صحيح البخاري/العتق ٤ (٢٥٢١)، صحيح مسلم/العتق ١ (١٥٠١)، سنن النسائي/الكبري (١٥٤١)، (تحفة الأشراف: ٦٧٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١/٢) (صحيح)

[۳۹۴۸](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ الْعَنْبَرِيِّ، عَنِ ابْنِ التَّلِبِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا "أَعْتَقَ نَصِيبًا لَهُ مِنْ مَمْلُوكٍ، فَلَمْ يُضَمِّنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَحْمَدُ: إِنَّمَا هُوَ بِالتَّاءِ يَعْنِي التَّلِبَّ وَكَانَ شُعْبَةُ أَلْثَغَ لَمْ يُبَيِّنِ التَّاءَ مِنَ الثَّاءِ.

دتلب بن ثعلبة بن ربیعه نه روایت دي فرمائي چه یو کس دیوغلام نه خپله حصه ازاده کړه اودباقي قیمت ورنه نبی ﷺ ضمانت وانه خستو. امام احمد وئیلی دی ددې صحابي نوم تلب دې د(ت) نه، نه چه د(ث) نه امام احمد وائی چه شعبه ترتړې (چاړا) وو(ت) به ئې نشو وئیلې اود (ت) په ځائې به ئې (ث) وئیله.

﴿ عَنْ أَبِي بِشْرٍ الْعَنْبَرِيِّ عَنِ ابْنِ التَّلِبِّ عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَحْمَدُ إِنَّمَا هُوَ بِالتَّاءِ - يَعْنِي التَّلِبَّ - وَكَانَ شُعْبَةُ أَلْثَغَ لَمْ يُبَيِّنِ التَّاءَ مِنَ الثَّاءِ ﴾

په سند کښې چه کوم راوی راغلی دی ابن التلب د هغه په باره کښې امام احمد رحمه الله فرمائی چه دا نوم په ابن التلب تاء سره دې یعنی د دوه نقطو والا، او شعبه راوی د حدیث الثغ وو یعنی د تتې ژبې والا چه په تاء او ثاء کښې به ئې فرق نه شو کولې الثغ هم هغه سړی ته وائی چه بعض حروف نه شی ادا کولې، د امام احمد رحمه الله د تنبیه تقاضه دا ده چه په اصل سند کښې چه کوم پورته ذکر دې دا دې ابن الثلب په ثاء سره وی په ځائې د تاء، او په یو نسخه کښې دې هم ثاء (مثلثة) سره ، ګینې که په اصل سند کښې ابن التلب المثناة شی لکه چه زمونږ په نسخه کښې دی نو په دې صورت کښې تنبیه ته حاجت نه پاتې کیږی.

## بَاب فِيمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ

### باب: څوک چه د محرم مالک شی نوهغه آزادیږی

[۳۹۴۹](٢) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ مُوسَى فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، فِيمَا يَحْسِبُ حَمَّادٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ الْبُرْسَانِيُّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَعَاصِمٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذَلِكَ الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يُحَدِّثْ ذَلِكَ الْحَدِيثَ إِلَّا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَقَدْ شَكَّ فِيهِ.

دسمره نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی هرڅوک چه دیورشته دار محرم مالک جوړ شي نوهغه (ملکیت کښې راتلو سره) آزادیږي. ابوداؤد وائی: محمد بن بکر برسانی د حماد بن سلمه نه، حماد د قتاده او عاصم نه، هغوی دحسن نه، حسن د سمره نه، سمره د نبی کریم ﷺ نه ددې حدیث په شان روایت کړې دې. ابوداؤد وائی: او هم دا حدیث د حماد بن سلمه نه علاوه بل چا نه دې روایت کړې، اوهغوی ته په دې کښې شک دې.

### په مسئلة الباب کښې د ائمو مذاهب

قوله: ﴿عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم: « مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ الخ﴾

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٥٠) (ضعيف الإسناد)

(٢): سنن الترمذي/الأحكام ٢٨ (١٣٦٥)، سنن ابن ماجه/العتق ٥ (٢٥٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٥٣٤، ١٨٤٦٩، ١٨٥٤٦٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى (٤٨٩٨، ٤٨٩٩)، مسند احمد (١٥/٥، ١٨، ٢٠) (صحيح)

يعنی کوم سړي چه يو داسې غلام واخلی کوم چه د هغه رشته دار هم وی او محرم هم وی نو هغه په خپله آزادیږی ، دا د اسلام قانون دې، ګویا يو ذی رحم محرم د بل غلام نه شی کیدې، د احنافو او د حنابله مسلک هم دا دې، د امام شافعی رحمه الله په نزد دا حکم صرف د اصول او فروع سره متعلق دې ګویا د هغوی په نزد دا عام مخصوص منه البعض دې، هم دغه شان د امام مالک رحمه الله په نزد هم دا عام نه دې، د هغوی په نزد د دې مصداق ولد او والدین او اخوه دی.

دا حدیث د احنافو او دحنابله دلیل شو ، د شوافعو او دمالکیانو د دلیل دپاره دې مطولاتو ته رجوع اوکړې شی. [1] والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۳۹۵۰] [2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ".

دامیرالمومنین عمر فاروق رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه هرڅوک چه دیورشته دار محرم مالك جوړ شي نوهغه آزادیږي.

[۳۹۵۱] [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ".

دحسن نه روایت دې فرمائی چه: هرڅوك چه دیورشته دارمحرم مالك جوړشي نوهغه ازادیږي.

[۳۹۵۲] [4] حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَالْحَسَنِ مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَعِيدٌ أَحْفَظُ مِنْ حَمَّادٍ.

دجابربن زید اوحسن رضی الله عنهما نه دتیر شوي روایت په شان روایت منقول دې. امام ابوداؤد فرمائی سعید دحماد نه په حافظه کښې قوي دې.

## بَابٌ فِي عِتْقِ أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ

### د مالک په وفات باندې ام ولده آزادیږی

[۳۹۵۳] [5] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ خَطَّابِ بْنِ صَالِحٍ مَوْلَى الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ مَعْقِلٍ امْرَأَةٍ مِنْ خَارِجَةِ قَيْسِ عَيْلَانَ، قَالَتْ: "قَدِمَ بِي عَمِّي

---

[1] په دې مسئله کښې د امام بخاری رحمه الله رائې : امام بخاری رحمه الله دا مسئله داسې بیان کړې ده (باب اذا اسرخوا الرجل او عمه هل يفادي اذا كان شركاء قال الحافظ قيل انه اشار بهذه الترجمة الي تضعيف الحديث الوارد فيمن ملك ذا رحم فهو حر وهو حديث اخرجه اصحاب السنن واستنكره ابن المديني ورجح الترمذي ارساله، وقال البخاري لا يصح وجري الحاكم وابن حزم وابن القطان علي ظاهر الاسناد فصححوه، وقد اخذ بعمومه الحنفية والثوري والاوزاعي والليث وقال داؤد لا يعتق احد علي احد، وذهب الشافعي الي انه لا يعتق علي المرء الا اصوله وفروعه، لا لهذا الدليل بل لادلة اخري وهو مذهب مالك وزاد الاخوة حتي من الام، الي آخر ما بسط في هامش اللامع (من الابواب والتراجم ۳۷/٤)

[2]: تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٥، ١٨٤٦٩، ١٨٥٣٤) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٥٣٤، ١٨٤٦٩، ٤٥٨٥) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٨٥٣٤، ١٨٤٦٩، ٤٥٨٥) (صحيح)

[5]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٨٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٠/٦) (ضعيف الإسناد)

فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَبَاعَنِي مِنَ الْحُبَابِ بْنِ عَمْرٍو، أَخِي أَبِي الْيُسْرِ بْنِ عَمْرٍو، فَوَلَدْتُ لَهُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحُبَابِ، ثُمَّ هَلَكَ، فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: الْآنَ وَاللَّهِ تُبَاعِينَ فِي دَيْنِهِ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي امْرَأَةٌ مِنْ خَارِجَةِ قَيْسِ عَيْلَانَ قَدِمَ بِي عَمِّي الْمَدِينَةَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَبَاعَنِي مِنَ الْحُبَابِ بْنِ عَمْرٍو أَخِي أَبِي الْيُسْرِ بْنِ عَمْرٍو، فَوَلَدْتُ لَهُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحُبَابِ، فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: الْآنَ وَاللَّهِ تُبَاعِينَ فِي دَيْنِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ وَلِيُّ الْحُبَابِ؟ قِيلَ: أَخُوهُ أَبُو الْيُسْرِ بْنُ عَمْرٍو، فَبَعَثَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَعْتِقُوهَا، فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِرَقِيقٍ قَدِمَ عَلَيَّ فَأْتُونِي أُعَوِّضْكُمْ مِنْهَا، قَالَتْ: فَأَعْتَقُونِي وَقَدِمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَقِيقٌ، فَعَوَّضَهُمْ مِنِّي غُلَامًا".

خطاب بن صالح دخپلې مور سلامه بنت معقل دخارجه قیس بن عیلان قبیلې والا نه روایت کوی فرمائی چه دجاهلیت په زمانه کښې زماتره زه په حباب بن عمرو څوك چه دابوالیسر بن عمرو وړور ور باندې خرڅه کړه او زمادخیتې نه دحباب یوځوي عبدالرحمن پیداشو اوددینه پس حباب وفات شو دهغه ښځې اووئیل په الله مې دې قسم وي ته به دحباب دقرض په عوض کښې خرڅه کړې شې ، ماچه دا خبره واوریده نودنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم او عرض مې اوکړو اې دالله رسوله زه دخارجه قیس بن عیلان قبیلې یوه زنانه یم دجاهلیت په زمانه کښې زماتره زه مدینې ته راوستم اوهغه زه دابوالیسر بن عمرو په وروړد خارجة بن قیس عیلان قبیلې والا حباب بن عمرو باندې خرڅه کړم اوزمادخیتې نه دحباب یوځوي عبدالرحمن پیداشو ، اوس دحباب ښځه وائی چه ته به دحباب دقرض په بدل کښې خرڅیږې؟ نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو ایا دحباب څوك وارث شته؟ خلقو اووئیل هو ، دهغه یو وړور ابوالیسر بن عمرموجود دې نبی ﷺ هغه ته جواب اولیږلو چه ته سلامه آزاده کړه اوکله چه تا واوریدل چه ماته غلامان یا وینځې راغلې دي نوبیا ماته راشه بیابه زه تاته ددې مواوضه درکړم سلامه وائی هغوی چه دا خبره واوریده نوزه ئې آزاده کړم ، بیاچه کله نبی ﷺ ته غلامان او وینځې راغلې نوهغه زما په معاوضه کښې هغوی ته یوغلام ورکړو.

﴿ عَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ مَعْقِلٍ – امْرَأَةٍ مِنْ خَارِجَةِ قَيْسِ عَيْلَانَ – قَالَتْ قَدِمَ بِي عَمِّي فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَبَاعَنِي مِنَ الْحُبَابِ بْنِ عَمْرٍو .........وَاللَّهِ تُبَاعِينَ فِي دَيْنِهِ الخ ﴾

**مضمون الحدیث :**

سلامه بن معقل کومه چه د خارجه قیس عیلان قبیلې یو زنانه ده هغوی وائی چه زه زما تره په جاهلیت کښې راوستلم او د حباب بن عمرو په لاس باندې ئې خرڅ کړم (ممکنه ده چه د اهل جاهلیت دا هم عادت وو چه هغوی به ظلما داسې کول) هغه وړاندې وائی چه زما د خیټې نه د حباب یو ځوئې پیدا شو عبدالرحمن بن الحباب (اوس دا یعنی سلامه بنت معقل ام الولد شوه د حباب) د دې نه پس دا اوشوه چه حباب هلاک شو نو د هغه ښځې سلامه ته اووې چه والله اوس به ته د خپل مولی حباب په دین باندې خرڅولې شې. سلامه دا ټوله خبره رسول الله ﷺ ته عرض کړه. په دې باندې رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه د حباب ولی څوک دې؟ وې وئیل چه د هغه ورور ابوالیسر دې، رسول الله ﷺ هغه راطلب کړو او وې فرمائیل سلامه آزاده کړه، بیا چه کله ته واورې چه ماته غلامان راغلی دی بیت المال ته نو ماته راشه زه به د سلامه په عوض کښې تاته غلام درکړم، سلامه وائی چه د رسول الله ﷺ د فرمان نه پس هغوی زه آزاده کړم او بیا چه کله رسول الله ﷺ ته غلامان راغلل نو زما په

عوض کښې ئې هغوی ته یو غلام ورکړو. دا غلام وړکول په حقیقت کښې د ام ولد عوض نه وو بلکه د هغه خلقو د زړه ساتلو دپاره وه.

**په مسئلة الباب کښې اختلاف د علماء کرامو :**

د ام الولد بیع په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم نه ده جائز، په دې کښې د داؤد ظاهری رحمه الله او د بعض صحابه کرامو لکه علی رضی الله عنه اختلاف دې، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دا اختلاف د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم په شروع کښې وو روستو پرې د ټولو اتفاق اوشو په عدم جواز د بیع باندې، او د قیاس تقاضه هم دا ده چه ام الولد آزاد کیدل پکار دی ځکه چه امهات او دهغوی د اولاد دواړو حکم متفق وی په حریت (آزادوالی) او رق (غلام کیدو) کښې، او دلته د ام ولد چه کوم ځوئې دې د هغې د سید نه هغه بالاتفاق حر دې لهذا د هغې تقاضه دا ده چه د هغه مور هم حر کیدل پکار دی. (بذل)

[٣٩٥٤](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "بِعْنَا أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ، فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ نَهَانَا فَانْتَهَيْنَا.

دجابر بن عبد الله رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه مونږ به دنبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې او دابوبکر صدیق په دور خلافت کښې ام ولدې خرڅولې بیاچه کله عمرفاروق خلیفه شو نوهغه مونږ ددینه منع کړو او مونږ دام ولدې د خرڅولونه منع شو.

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ بِعْنَا أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ نَهَانَا فَانْتَهَيْنَا ﴾

جابر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې هم دغه شان د ابوبکر رضی الله عنه په زمانه کښې د ام ولد بیع کړې ده، بیا چه کله د عمر رضی الله عنه زمانه راغله نو هغوی د دې نه مونږ منع کړو پس مونږ ترې نه منع شو.

**(د حدیث توجیه)**

د دې حدیث په باره کښې دا توجیه کړې شوې ده چه دې ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې ډیر کم حاجت راغلې دې چه د هغې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته علم اونشو، او دا هم ممکن ده چه بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شروع په زمانه کښې دابیع کړې وی او بیا په آخری عمر کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې نه منع فرمائیلی وی چه د هغې علم صدیق اکبر رضی الله عنه ته نه دې شوې یو خو په دې وجه چه د هغوی د خلافت موده کمه وه او دویم په دې وجه چه د دین په امورو کښې مشغول وو، بیا د عمر رضی الله عنه د شروع په زمانه کښې هم خلقو کولو د کوم چه هغوی ته خبر نه وو، بیا چه هغوی ته د دې خبر اورسیدو نو هغوی ترې نه منع اوفرمائیله.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٨٣٥، ٢٤٧٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/العتق ٢ (٢٥١٧) (صحيح)

# بَابٌ فِي بَيْعِ الْمُدَبَّرِ

## د مدبر د خرڅولو بيان

[٣٩٥٥][1] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، وَإِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، "أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ غُلَامًا لَهُ عَنْ دُبُرٍ مِنْهُ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ، فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبِيعَ بِسَبْعِ مِائَةٍ أَوْ بِتِسْعِ مِائَةٍ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه يوسړي خپل يوغلام دخپل مرګ نه پس ازاد کړو اودهغه دپاره ددې غلام نه علاوه نور مال نه وو نونبی عليه السلام ددې غلام دخرڅولو حکم اوکړو نو په اوه سوه يا په نهه سوه باندې خرڅ شو.

﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ رَجُلاً أَعْتَقَ غُلَامًا لَهُ عَنْ دُبُرٍ مِنْهُ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ الخ﴾

### مضمون حديث:

د جابر رضي الله عنه نه روايت دي چه يو سړي (چه د هغه نوم ابومذكور وو) خپل غلام آزاد كړو د ځان نه روستو، (يعنى دا ئي اووې چه زما د مرګ نه پس ته آزاد ئي) او حال دا چه د دې مولى سره د دې غلام نه علاوه نور مال نه وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې غلام د خرڅولو حكم وركړو، پس دې په اووۀ سوه يا نهه سوه درهمو باندې خرڅ كړې شو، او د دې نه په روستو روايت كښ كوم چه مفصل دې دا زيادت دې ﴿فَدَعَا بِهِ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « مَنْ يَشْتَرِيهِ ». فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ النَّحَّامِ [2] بِثَمَانِمِائَةِ دِرْهَمٍ﴾..... يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم دا غلام په خپله خرڅ كړو كوم چه نعيم بن عبدالله بن النحام په اته سوه درهمه باندې واخستلو او هغه پيسې رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه سړى ته حواله كړې او وې فرمائيل: چه كله په تاسو كښ يو سړې غريب وى نو هغه لره د انفاق ابتداء د خپل نفس نه كول پكار دى او د هغې نه پس چه څه بچ شى هغه په خپل خاندان باندې، او كه نور څه بچ شى نو په نورو خپلوانو باندې او كه نور څه بچ شى نو بيا دې هغه يو خوا بل خوا چرته چه غواړى خرچ كړى.

[٣٩٥٦][3] حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، أَخْبَرَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بِهَذَا، زَادَ وَقَالَ: يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنْتَ أَحَقُّ بِثَمَنِهِ وَاللَّهُ أَغْنَى عَنْهُ.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه دتير شوي روايت په شان روايت منقول دي مګرپه دې كښې دا اضافه ده چه نبى عليه السلام اوفرمائيل ته ددې د غلام قيمت اخستلو زيات حقدارئي اوالله تعالى ددينه مستغني (بې پرواه) دې.

---

[1]: صحيح البخاري/البيوع ٥٩ (٢١٤١)، الاستقراض ١٦ (٢٤٠٣)، الخصومات ٣ (٢٤١٥)، العتق ٩ (٢٥٣٤)، كفارات الأيمان ٧ (٦٧١٦)، الإكراه ٤ (٦٩٤٧)، الأحكام ٣٢ (٧١٨٦)، سنن النسائي/الزكاة ٦٠ (٢٥٤٧)، سنن ابن ماجه/العتق ١ (٢٥١٢)، مسند احمد (٣٠٥/٣، ٣٦٨، ٣٦٩، ٣٧٠، ٣٧١، ٣٩٠)، سنن الدارمي/البيوع ٣٧ (٢٦١٥) (تحفة الأشراف: ٢٤١٦، ٢٤٤٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزكاة ١٣ (٩٩٧)، الأيمان ١٣ (٩٩٧)، سنن الترمذي/البيوع ١١ (١٢١٩) (صحيح)

[2] قيل: الصواب نعيم بن عبدالله النحام اذ النحام صفة لعبدالله لا لابيه)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٤٢٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى (٥٠٠١) (صحيح)

[۳۹۵۷](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ، يُقَالُ لَهُ: أَبُو مَذْكُورٍ أَعْتَقَ غُلَامًا لَهُ يُقَالُ لَهُ: يَعْقُوبُ، عَنْ دُبُرٍ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ، فَدَعَا بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَنْ يَشْتَرِيهِ فَاشْتَرَاهُ نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ النَّحَّامِ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ، فَدَفَعَهَا إِلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فَقِيرًا، فَلْيَبْدَأْ بِنَفْسِهِ فَإِنْ كَانَ فِيهَا فَضْلٌ فَعَلَى عِيَالِهِ فَإِنْ كَانَ فِيهَا فَضْلٌ فَعَلَى ذِي قَرَابَتِهِ، أَوْقَالَ: عَلَى ذِي رَحِمِهِ فَإِنْ كَانَ فَضْلًا فَهٰهُنَا وَهٰهُنَا".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائی چه په انصاروکښي یو کس چه ابومذکوربه ورته وئیلي شوهغه دیعقوب په نوم باندي خپل یوغلام آزاد کړواودغه کس ددي غلام نه علاوه نورڅه مال نه وونونبی علیه السلام داغلام را اوغوښتو او اوئي فرمائیل څوك به داغلام واخلي؟نوده لره نعیم بن عبدالله بن نحام په اته سوه درهمه وأخستواونبی علیه السلام دغه دراهم دغه أنصاری ته ورکړی او او فرمایل کله چه په تاسوکښي څه حتاجني وه نو ددي پیسوخرج کول دخپل ځان نه شروع کول پکاردی. بیاچه کوي دخپل ځان نه زیاتي شي هغه په خپل اهل وعیال باندي خرچ کول پکاردي اوکوي چي ددي نه هم سوا شي نوهغه په خپل خاندان باندي خرچ کړه دراري شك دي چه نبی علیه السلام ذي رحم اوفرمائیل اوکه نه اوکوي چه درشته دارونه باقي شي نوهغه داسي اوداسي خرچ کړه.

د دي حدیث نه معلومیږی چه د دي مدبر بیع د هغه مولی په حیات کښ شوي وه، او هم دا صحیح ده، او د ترمذی په روایت کښ چه په هغي کښ ددي اختلاف دي چه هغه سړي د مدبر جوړولو نه پس وفات شوي وو او دا بیع د مولی د مرګ نه روستو اوشوه وهم دي.

**الکلام علی الحدیث من حیث الفقه و ذکر مذاهب الائمه:**

د دي نه پس ځان پوهه کړئ چه د بیع مدبر مسئله مختلف فیه ده، د امام شافعی او امام احمد په نزد د هغه بیع مطلقا جائز ده، او د احنافو په نزد د مدبر مطلق بیع خو ناجائز ده او د مدبر مقید جائز ده او د امام مالك رحمه الله مذهب دا دي چه که د مدبر مولی د تدبیر نه مخکښ مدیون وی نو بیا د داسي مدبر بیع جائز ده، د مدبر مقید مطلب دا دي چه مولی خپل غلام ته داسي اوائی چه که زه په فلانئ بیماریئ کښ مړ شوم یا دومره موده کښ مړ شوم نو ته آزاد ئې، د داسي مدبر بیع زمونږ په نزد جائز ده، د احنافو په نزد د تدبیر مطلق حکم دا دي چه د هغي په وجه باندي غلام د مولی په حیات کښ صرف مستحق العتق کیږی په دي وجه د هغه بیع جائز نه ده او د مولی د مرګ نه پس د هغه د عتق نفاذ کولي شی، یعنی د هغي حقیقت موندلي شی، او په تدبیر مقید کښ د مولی په ژوند باندي هغه مستحق العتق نه وی ځکه چه نه وی معلومه چه هغه به په دي مرض کښ مړ شی یا نه، لهذا دا شرط د عدم او د وجود دواړو احتمال لری لهذا دا تعلیق (تدبیر) به فی الحال سبب نه وی د حریت، خو که مولی هم په دي مرض کښ وفات شو د کوم چه قید لګولي شو نو اوس چونکه د سبب حریت تحقق اوشو په دي وجه به هغه مدبر آزاد شی، خو د ثلث مال نه به

(۱): صحیح مسلم/ الزکاة ۱۳ (۹۹۷)، سنن النسائي/ الزکاة ۶۰ (۵۴۷)، (تحفة الأشراف: ۲۶۶۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۰۱،۳۶۹) (صحیح)

ازادیږی ځنګه چه په وصیت کښ وی او که مولی د دې مرض نه علاوه په بل څه مرض کښ وفات شو نو په دې صورت کښ به حریت نه موندلې کیږی د انتفاء د شرط د وجې نه، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د تدبیر د وجې نه که هغه مقید وی او که مطلق عبد ته حق د حریت نه حاصلیږی هم په دې وجه د هغوی په نزد د هغه بیع جائز ده، د احنافو دلیل د ابن عمر رضی الله عنهما دا حدیث مرفوع دې: ﴿المدبر لا یباع ولا یوهب وهو حر من ثلث المال اخرجه الدارقطنی﴾ نور هم د ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه دا حدیث روایت کړې شوې دې چه د هغې په سندونو باندې دار قطنی کلام هم کړې دې، وروی عن عمر وعثمان وزید بن ثابت وعبدالله بن مسعود وعبدالله بن عباس وعبدالله بن عمر رضی الله عنهم مثل مذهب الحنفیة وهو قول جماعة من التابعین مثل شریح ومسروق وسعید بن المسیب وجماعة ذکرو اسماءهم صاحب البدائع، حتی قال ابوحنیفة لولا قول هولاء الاجلة لقلت بجوازبیع المدبر لما دل علیه من النظر کذا فی البدائع (ملخصا من البذل) ددې نه پس په بذل کښ د علامه زیلعی نه د دې حدیث دوه جوابونه نقل کړې شوې دی یو دا چه مونږ دا په مقید مدبر باندې محمول کوو او د هغه بیع زمونږ په نزد هم جائز ده او دویم جواب دا چه په دې حدیث کښ د بیع نه مراد بیع الرقبة نه ده بلکه بیع الخدمت ده یعنی دې غلام لره د خدمت دپاره په اجاره باندې ورکول لکه چه د دارقطنی په یو روایت کښ ددې تصریح هم ده چه د هغې په آخر کښ دی ﴿قال ابوجعفر شهدت الحدیث من جابر انما اذن فی بیع خدمته﴾ الی آخر ما فی البذل.... والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه مختصرا ومطولا، قاله المنذری...

## بَابٌ فِيمَنْ أَعْتَقَ عَبِيدًا لَهُ لَمْ يَبْلُغْهُمُ الثُّلُثُ

### که چرې څوک خپل غلامان آزاد کړي او دغه غلامان د دریمې حصې د مال نه زیات وی نو څه حکم دې؟

[۳۹۵۸](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، "أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ أَعْبُدٍ عِنْدَ مَوْتِهِ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ، فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: قَوْلًا شَدِيدًا ثُمَّ دَعَاهُمْ، فَجَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ، فَأَقْرَعَ بَيْنَهُمْ، فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً".

دعمران بن حصین نه روایت دې فرمائی چه یو سړي د مرګ په وخت کښې شپږ غلامان ازاد کړل او ددوینه علاوه دده نور مال نه وو نبی علیه السلام ته ددې خبر ورسیدو، نبی علیه السلام ورته سختې خبرې وکړې او بیا دا غلامان را وغوښتل او ددوی ئې درې تقسیمه کړل او ددوی په مینځ کښې ئې قرع اندازې وکړه نو دوه ئې ددوینه آزاد کړل او باقي څلورئې د غلامۍ په حال پریخودل.

﴿عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ أَعْبُدٍ عِنْدَ مَوْتِهِ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ الخ﴾

سیدنا عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی چه یو سړی په خپل مرض الموت کښ شپږ غلامان آزاد کړی کوم چه د هغه کل مال وو، د هغې نه علاوه هغه سره هیڅ نه وو، چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا مسئله راغله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه سړی په باره کښ ډیر سخت وعید

(1): صحيح مسلم/الحدود ١٢ (١٦٦٨)، سنن الترمذي/الأحكام ٢٧ (١٣٦٤)، سنن النسائي/الجنائز ٦٥ (١٩٦٠)، سنن ابن ماجه/الأحكام ٢٠ (٢٣٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٦/٤، ٤٣١، ٤٣٨، ٤٤٠) (صحيح)

اوفرمائیلو ‹وعید کوم چه په وړاندې روایت کښې ذکر دې وهو قوله ﷺ لو شهدته قبل ان یدفن لم یدفن فی مقابر المسلمین..... رسول الله ﷺ دا ټول غلامان راطلب کړل او هغوی ئې دوه دوه کولو سره درې ځایه کړل، د دې نه پس ئې قرعه اندازی اوکړه چه په هغې کښې د دوه کسانو نوم راوتلو او باقی څلور غلامان ئې اوساتل، ځکه چه په مرض الموت کښې انسان د خپل مال په صرف ثلث کښې تصرف کولې شي.

### په حدیث الباب کښې د فقهاء کرامو رائې:

هم د دې قائل دی ائمه ثلاث چه په داسې صورت کښې دې هم داسې اوکړې شی، او د احنافو په نزد به په دې شپږو کښې د هر غلام یو ثلث آزاد وی د مالک د طرف نه او دوه ثلث به د غلام په قیمت کښې سعایة ساتلې شی د هر غلام نه، د احنافو په نزد څنګه چه مشهور ده قرعه حجت ملزمه نه ده، د دې حجت کیدل منسوخ شوې دی، بنسخ القمار، او جمهور کوم چه د قرعه د حجیت قائل دی د هغوی عمل هم په دې حدیث باندې دې.

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[۳۹۵۹](1) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ الْمُخْتَارِ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ وَلَمْ يَقُلْ، فَقَالَ لَهُ: قَوْلًا شَدِيدًا أَوَمَعْنَاهُ وَلَمْ يَقُلْ، فَقَالَ لَهُ: قَوْلًا شَدِيدًا.

خالد دابو قلابه نه دایوب د روایت په شان روایت دسند او معنی په لحاظ سره کړې دې او په دې روایت کښې داالفاظ چه فقال له قولا شدیدا،، سختې خبرې ئې ورته اوکړې، نشته.

[۳۹۶۰](2) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ الطَّحَّانُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي زَيْدٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ بِمَعْنَاهُ، وَقَالَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ شَهِدْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُدْفَنَ لَمْ يُدْفَنْ فِي مَقَابِرِ الْمُسْلِمِينَ.

دابوزیده نه روایت دې فرمائی چه په انصاروکښې یو کس خپل شپږ غلامان ازاد کړل اوبیا ئې همدا حدیث بیان کړو ‹تیرشوې حدیث› نونبی ﷺ اوفرمائیل که چرې زه دده جنازې ته د دفن کولونه مخکښې حاضرشوې وې نودې به دمسلمانانو په مقبره کښې نه وو دفن شوې.

[۳۹۶۱](3) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَتِيقٍ، وَأَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، "أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ أَعْبُدٍ عِنْدَ مَوْتِهِ، وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ، فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَقْرَعَ بَيْنَهُمْ، فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً".

دعمران بن حصین نه روایت دې فرمائی چه یوکس دخپل مرګ په وخت کښې خپل شپږ غلامان آزاد کړل اودده دپاره ددوینه علاوه نور مال نه وو، پس نبی ﷺ ته ددې خبرې خبر ورسیدو نونبی ﷺ به دوی کښې قرع اندازې وکړه اودوه ئې ددوینه آزاد کړل اوباقی څلورئې دغلامی په حال کښې پریخودل

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۸۰) (صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۹۵) (صحيح)
(3): انظر حديث رقم: (۳۹۵۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۳۹) (صحيح)

# بَابٌ فِيمَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ

## باب: څوک چه داسې غلام آزاد کړي چه هغه دمال مالک وي

[٣٩٦٢] (1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ، وَاللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُ الْعَبْدِ لَهُ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَهُ السَّيِّدُ".

دعبدالله بن عمرونه روايت دي فرمائي چه رسول كريم فرمائيلي دي څوک چه مالدار غلام آزاد کړي نو دمال حقدار مالک دي مرداچه مالک شرط مقرر کړې وي.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُ الْعَبْدِ لَهُ إِلاَّ أَنْ يَشْتَرِطَهُ السَّيِّدُ » ﴾

يعنى كوم سړى چه خپل غلام آزاد کړو په داسې حال کښې چه د دې غلام سره څه مال وو نو دا مال به د هم هغه عبد وي، مګر دا چه مولى د اعتاق په وخت شرط او لګوي.

### په مسئلة الباب کښې د ائمه کرامو رائې:

د امام مالک رحمه الله مسلک هم دا دې، او د جمهورو په نزد به مطلقا د سيد دپاره وي، يعنى بغير د شرط نه....... جمهور د دې حديث دا جواب ورکوي چه د رسول الله ﷺ دا فرمان په طريقه د استحباب دې يعنى غوره دې چه هغه سره ئې پريږدي، او دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه دا حديث داسې محفوظ نه دې بلکه اصل حديث د بيع سره متعلق دې چه د هغې الفاظ دا دى كما تقدم فى كتاب البيوع: وكذا هو فى الصحيحين ﴿من باع عبدا وله مال فما له للبائع الا ان يشترط المبتاع ﴾ وهذا الجواب اختاره الحافظ ابن القيم رحمه الله وبسط الكلام فيه، واما الحديث بلفظ من اعتق عبدا وله مال فلم يذكره هكذا الا المصنف والنسائى كما قال ابن القيم رحمه الله.

# بَابٌ فِي عِتْقِ وَلَدِ الزِّنَا

## دغلام دآزادولو دثواب بيان

[٣٩٦٣] (2) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَلَدُ الزِّنَا شَرُّ الثَّلَاثَةِ"، وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: لَأَنْ أُمَتِّعَ بِسَوْطٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ وَلَدَ زِنْيَةٍ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى دزنانه پيداشو ماشوم په درې واړوکښې ډيربد دې ، ابوهريره رضي الله عنه اووئيل كه چرې ماته دالله په لاره کښې يوه کوړه راکړې شي نوهغه ددينه بهتره ده چه دزنا نه پيداشوې ماشوم آزاد کړم.

﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « وَلَدُ الزِّنَا شَرُّ الثَّلاَثَةِ ». وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ لأَنْ أُمَتِّعَ بِسَوْطٍ فِى سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أُعْتِقَ وَلَدَ زِنْيَةٍ ﴾

1): سنن ابن ماجه /العتق ٨ (٢٥٢٩)، (تحفة الأشراف: ٧٦٠٤) (صحيح)

2): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١١/٢) (صحيح)

## شرح الحدیث :

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو د ولد الزنا په باره کښې چه هغه په درې واړو کښې د ټولو نه بدتر دې، د درې واړو نه مراد زاني زانيه او دريم خپله ولد الزنا دې خو د ولد الزنا خو په زنا کښې هيڅ دخل نشته په دې وجه دا به وئيلې شي چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد چه هغه د ټولو نه بدتر دې په اعتبار د اصل او نسب سره چه دې غير ثابت النسب دې او هغه دواړه اګر که عاصي او نافرمانه دي خو دي خو ثابت النسب، او دا به وئيلې شي چه د رسول الله ﷺ دا فرمان د يو مخصوص ولد الزنا په باره کښې دې نه مطلقا، پس په مستدرک کښې يو روايت دې چه عائشې رضي الله عنها ته دا خبره اورسيده چه ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه دا حديث نقل کوي چه ﴿ ولد الزنا شر الثلاثة ﴾ نو په دې باندې ام المومنين رضي الله عنها اوفرمائيل چه يو سړې کوم چه د منافقانو نه وو او رسول الله ﷺ ته به ئې تکليف ورکولو، رسول الله ﷺ د صحابه کرامو مخکښې د هغه شکايت اوفرمائيلو نو په دې باندې چا عرض اوکړو: صرف هم دا نه بلکه هغه ولد الزنا هم دې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ هو شر الثلاثة ﴾ بيا عائشې رضي الله عنها په خپل تائيد کښې دا آيت تلاوت اوفرمائيلو. والله تعالى يقول ﴿ ولا تزر وازرة وزر اخرى ﴾ يعنى په ولد الزنا باندې چه د شر الثلاثة کوم حکم رسول الله ﷺ لګولې دې هغه د ولد الزنا کيدو د وجې نه نه دې بلکه د هغه د نفاق او دايذاء درسول ﷺ د وجې نه دې. او يو جواب د دې دا دې چه په دې روايت کښې تصحيف واقع شوې دې اصل لفظ د حديث دا نه دې بلکه داسې دې ﴿ هو شر الثلاثة ﴾ يعنى د يو زاني په باره کښې ئې داسې اوفرمائيل چه هغه داسې دې، عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي د ولد الزنا په باره کښې : ﴿ هو خير الثلاثة ﴾ (خطابي) ځکه چه د زنا په معصيت کښې د هغه هيڅ دخل نشته. او يو توجيه د حضرت ګنګوهي په تقرير کښې ده چه ممکنه ده د ولد الزنا نه مرا دهغه سړې وی د چا نه چه په کثرت سره زنا کيږي نو داسې اوګرځيدو لکه ولد للزنا، حضرت چه کومه توجيه فرمائيلې ده هغه د امام طحاوي رحمه الله نه نقل ده لکه چه په حاشيه د بذل کښې دی : ﴿ قال الطحاوی : ولد الزنا الملازم للزنا كما يقال ابن السبيل للملازم لها وولد الليل الذى لا يهاب السرقة (په المعجم الكبير للطبراني ۲۸۵/۱۰ کښې مې دا روايت د نظر نه تير شو عن ابن عباس ولد الزنا شر الثلاثة اذا عمل بعمل ابويه... يعنى ولد الزنا شر الثلاثة هغه وخت کښې دې چه کله هغه هم هغه حرکت کوی کوم چه د هغه مور پلار کړې وو، په دې صورت کښې به په حديث باندې هيڅ اشکال نه وی ۱۲منه)

او هم په دې حديث کښې وراندې دی، سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه والله دا خبره چه زه يو سور لره کوم چه جهاد له روان وی هغه ته کوړه ورکولو سره فائده ورکړم دا ماته زياته غوره ده چه زه يو داسې غلام آزاد کړم چه هغه ولد الزنا وی. د دې نه معلومه شوه چه د ولد الزنا د اعتاق ثواب ډير کم دې. په مصنف د عبدالرزاق ۱۸/۹ کښې په دې باره کښې مختلف رواياتونه ذکر دی د عمر رضي الله عنه يو اثر خو هم په دې معنى دې : ولفظه : ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه قال : لان احمل على نعلين فى سبيل الله احب الى من ان اعتق ولد الزنا..... خو د عمر رضي الله عنه نه يو اثر په دې

کښې دا روایت دې چه ﴿ انه قال فی اولاد الزناء... اعتقوهم واحسنوا الیهم ﴾ او هم دغه شان د عائشې رضي الله عنها نه چا د اولاد الزنا د اعتاق په باره کښې سوال اوکړو فقالت اعتقوهم واحسنوا الیهم.....د ولد زنیه مقابل ته ولد رشده وائی. والحدیث اخرجه النسائی.

## بَابٌ فِي ثَوَابِ الْعِتْقِ

### بابـ دغلام آزادولو ثواب

[٣٩٦٤]([1]) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ضَمْرَةُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي عَبْلَةَ، عَنِ الْغَرِيفِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، قَالَ: أَتَيْنَا وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ، فَقُلْنَا لَهُ: حَدِّثْنَا حَدِيثًا لَيْسَ فِيهِ زِيَادَةٌ وَلَا نُقْصَانٌ، فَغَضِبَ، وَقَالَ: إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَقْرَأُ وَمُصْحَفُهُ مُعَلَّقٌ فِي بَيْتِهِ فَيَزِيدُ وَيَنْقُصُ، قُلْنَا: إِنَّمَا أَرَدْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَاحِبٍ لَنَا أَوْجَبَ يَعْنِي النَّارَ بِالْقَتْلِ، فَقَالَ: "أَعْتِقُوا عَنْهُ يُعْتِقِ اللَّهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ".

دعریف بن دیلمی رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه مونږ واثله بن الاسقع ته ورغلو چه مونږ ته حدیث بیان کړې داسې حدیث چه څه کمې اوزیاتې په کښې نه وې واثله چه دا واوریدل نوپه غصه شو او وئې وئیل په تاسو کښې هریو قران لولئ او په کور کښې مو قران موجود دې اوبیاپه کښې کمول اوزیاتول کوې (یعنی په غلطئ سره، مطلب دا دې چه کمې زیاتی کیدل په نقل د روایت کښې په غلطئ سره ممکن دي اودا څه جرم نه دې) نومونږ اووئیل مونږ ستاسو د یوداسې حدیث داوریدلو اراده کړیوه کوم چه تادنبی علیه السلام نه اوریدلې وې نو واثله مونږ ته اووئیل مونږ دخپل یوملګري په باره کښې دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوچاچه پخپل ځان باندې پخپله جهنم لازې کړې وو دقتل کولو په وجه ، نبی علیه السلام اوفرمائیل دده دطرف نه غلام آزاد کړئ الله تعالی به ددې غلام دهر بند په بدل کښې دده یو یو اندام دجهنم داور نه آزاد کړي.

﴿ أَتَيْنَا وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ فَقُلْنَا لَهُ حَدِّثْنَا حَدِيثًا لَيْسَ فِيهِ زِيَادَةٌ وَلَا نُقْصَانٌ فَغَضِبَ الخ ﴾

غریف بن الدیلمی فرمائی چه مونږ یو ځل واثله بن الاسقع رضي الله عنه ته راغلو او مونږ هغه ته درخواست اوکړو چه مونږ ته یو داسې حدیث واوروه بالکل صحیح چه هغې کښې زیادت او کمې نه وی، نو هغوی په دې خبره باندې غصه شو او وې فرمائیل چه ستاسو خو خپله دا حال دې چه قرآن لولئ هغه ستاسو مخې ته پروت دې بیا هم تاسو په هغې کښې کمې زیادت کوې، یعنی یو آیت درنه وړاندې روستو شی یا هیر شی، مونږ د هغوی د غصې د یخولو دپاره اووې چه زمونږ مقصد دا دې چه هغه حدیث داسې وی کوم چه تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه براه راست اوریدلې وی نو په دې باندې هغوی حدیث واورولو چه یو ځل مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو د خپل یو ملګری په حق کښې چا چه ناحق قتل کولو سره د ځان دپاره جهنم واجب کړې وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه د هغه د طرف نه یو غلام آزاد کړئ چه د هغې په بدل کښې به الله پاک د قاتل هر اندام د دې ازاد کړې شوې غلام د هر اندام په بدل کښې د جهنم نه آزاد کړی.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٧٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٩٠، ٤/١٠٧) (ضعيف)

حضرت په بذل کښې په دې باندې ليکلې دی چه دلته به دا منو چه د رسول اللهﷺ دا ارشاد په کوم کښې چه د اعتاق فضيلت ذکر دې دا د موجب قتل د ادا نه پس وه (يعنی د ديت وغيره د ادا کولو نه پس) ګينې ښکاره خبره ده چه صرف په غلام ازادولو سره د مقتول د ولی حق څنګه ادا کيدلې شی او يا به دا حديث محمول کولې شی په دې باندې چه هغه سړی خودکشی کړې وه د هغه په حق کښې رسول اللهﷺ دا حديث اوفرمائيلو.

**حدود زاجرات دی نه کفارات :**

او بيا وړاندې فرمائی چه د دې نه دا هم معلومه شوه چه اقامت حد د تکفير جنايت دپاره کافی نه دې، ګينې د اعتاق رقبه څه حاجت وو اهـ.... مسئله مشهوره ده چه حدود کفارات دی يا صرف زاجرات د احنافو په نزد زاجرات دی، وهذ الحديث يوئدهم... والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## بَاب أَيِّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ

### بابـ کوم قسم غلام آزادول بهتر دی؟

[٣٩٦٥] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ الْيَعْمَرِيِّ، عَنْ أَبِي نَجِيحٍ السُّلَمِيِّ، قَالَ: "حَاصَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَصْرِ الطَّائِفِ، قَالَ مُعَاذٌ: سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ بِقَصْرِ الطَّائِفِ بِحِصْنِ الطَّائِفِ كُلَّ ذَلِكَ، فَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ بَلَغَ بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ فَلَهُ دَرَجَةٌ"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ. وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "أَيُّمَا رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَعْتَقَ رَجُلًا مُسْلِمًا فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ جَاعِلٌ وِقَاءَ كُلِّ عَظْمٍ مِنْ عِظَامِهِ عَظْمًا مِنْ عِظَامِ مُحَرَّرِهِ مِنَ النَّارِ، وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ أَعْتَقَتِ امْرَأَةً مُسْلِمَةً فَإِنَّ اللَّهَ جَاعِلٌ وِقَاءَ كُلِّ عَظْمٍ مِنْ عِظَامِهَا عَظْمًا مِنْ عِظَامِ مُحَرَّرِهَا مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

دابونجيح السلمی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام په ملګرتيا کښې دطائف دقلعې محاصره وکړه اوکه داسې ئې ووئيل چه دطائف محل مومحاصره کړو، معاذ رضی الله عنه وائی ما دقلعه طائف په ځائې باندې دخپل پلار نه قصر طائف اوريدلې دې اومادنبی علیه السلام نه اوريدلي وو چه فرمائيل ئې چاچه دالله په لاره کښې يو غشې اوويشو نوده ته يوه درجه حاصله شوه اوحديث ئې تر آخره بيان کړو اومدنبی علیه السلام نه داهم اوريدلی دی چه فرمائيل ئې څوک چه يو مسلمان غلام آزاد کړې نوالله تعالی، ددغه غلام دهر بند په بدل کښې دده هرهډوکې ددوزخ داور نه آزادوی ، اوکومه زنانه چه بله مسلمانه زنانه آزاده کړې نوالله تعالی ددغې ښځې د هر هډوکی په بدل کښې د آزادونکې ښځې هر هډوکې دقيامت په ورځ به دجهنم د اُورنه محفوظ کړي.

﴿ حَاصَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– بِقَصْرِ الطَّائِفِ – قَالَ مُعَاذٌ سَمِعْتُ أَبِى يَقُولُ بِقَصْرِ الطَّائِفِ بِحِصْنِ الطَّائِفِ كُلُّ ذَلِكَ ﴾

ابو نجيح سلمی رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول اللهﷺ سره د قصر طائف محاصره

(١): سنن الترمذي/فضائل الجهاد ١١ (١٦٣٨)، سنن النسائي/الجهاد ٢٦ (٣١٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٦٨)، وقد أخرجه: مسند أحمد (١١٣/٤، ٣٨٤، ٣٨٦) (صحيح)

اوکړه. «د دې نه پس معاذ د حديث راوي وائي چه ما د خپل پلار هشام نه دواړه الفاظ اوريدلې دى ﴿ بقصر الطائف ﴾ هم او ﴿ بحصن الطائف ﴾ هم يعنى كله يو او كله بل..... او نجيح فرمائى چه د دې محاصرې په وخت مونږ د رسول اللهﷺ نه دوه احاديث واوريدل يو دا چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل : چه كوم سړې په جهاد كښې يو غشې هم اوچلوى د هغه دپاره به په جنت كښې يو درجه وى. وساق الحديث...... د مصنف رحمه الله دا مقوله په دې خبره باندې دليل دې چه د دې نه پس په حديث كښې نور هم څه وو كوم چه هغوى اختصارا حذف كړل، دا محذوف حضرت په بذل كښې د نسائى په حوالې سره ليكلې دى : ﴿ فقال له عبدالرحمن بن النحام ما الدرجة يا رسول اللهﷺ؟ قال انها ليست بعتبة امک... ما بين الدرجتين مائة عام ﴾ او دويم حديث چه كوم دې هغه د اعتاق رقبه د فضيلت په باره كښې دې چه د هغې مضمون هم هغه دې كوم چه پورته ذكر شو.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٣٩٦٦](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنِي سُلَيْمُ بْنُ عَامِرٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ السِّمْطِ، أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ: حَدِّثْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مُؤْمِنَةً كَانَتْ فِدَاءَهُ مِنَ النَّارِ".

د شرحبيل بن السمط رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه ما عمرو بن عبسه ته اووئيل مونږ ته داسې حديث بيان كړه كوم چه تادنبى عليه السلام نه اوريدلې وي هغه اووئيل مادنبى عليه السلام نه آوريدلى دى چه فرمائيل ئې چاچه يومسلمان خت آزاد كړو نودابه دده دپاره دجهنم نه دازاديدو سبب جوړ شي.

[٣٩٦٧](2) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ السِّمْطِ، أَنَّهُ قَالَ: لِكَعْبِ بْنِ مُرَّةَ أَوْ مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ: حَدِّثْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ مَعْنَى مُعَاذٍ إِلَى قَوْلِهِ: "وَأَيُّمَا امْرِئٍ أَعْتَقَ مُسْلِمًا، وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ أَعْتَقَتِ امْرَأَةً مُسْلِمَةً، زَادَ وَأَيُّمَا رَجُلٍ أَعْتَقَ امْرَأَتَيْنِ مُسْلِمَتَيْنِ، إِلَّا كَانَتَا فِكَاكَهُ مِنَ النَّارِ، يُجْزِءُ مَكَانَ كُلِّ عَظْمَيْنِ مِنْهُمَا عَظْمٌ مِنْ عِظَامِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَالِمٌ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ شُرَحْبِيلَ، مَاتَ شُرَحْبِيلُ بِصِفِّينَ.

دشرحبيل بن السمط رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه ما كعب بن مره يا مره بن كعب ته اووئيل مونږ ته داسې حديث بيان كړه كوم چه تادنبى عليه السلام نه اوريدلې وي نو هغه دمعاذ دحديث په شان حديث بيان كړو تردې چه دائې اووئيل چه نبى عليه السلام فرمائيلي دي: څوک نارينه چه د يو مسلمان نارينه خت آزاد كړي ياكومه زنانه بله مسلمانه زنانه آزاده كړي نودقيامت په ورځ به ددې هريوهډوكي دهغې هر يو هډوكې دجهنم داور نه بچ كونكې وي، ليكن په دې حديث كښې دا اضافه ده چه كوم نارينه دوه مسلماناني زنانه آزادي كړي نوهغوى به ده لره ددوزخ نه آزاد كړي اوددې دوه زنانوو دهر دوو دوو هډوكوپه بدل كښې به دازادونكي

(1): سنن الترمذي/فضائل الجهاد ٩ (١٦٣٤)، سنن النسائي/الجهاد ٢٦ (٣١٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٢/٤، ٣٨٦) (صحيح)

(2): سنن ابن ماجه/الأحكام (٢٥٢٢)، (تحفة الأشراف: ١١١٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٤/٤، ٢٣٥، ٣٢١) (صحيح)

یو یو هډوکي آزاد کړې شي.

﴿فَذَكَرَ مَعْنَى مُعَاذٍ إِلَى قَوْلِهِ « وَأَيُّمَا امْرِئٍ أَعْتَقَ مُسْلِمًا وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ أَعْتَقَتِ امْرَأَةً مُسْلِمَةً ». زَادَ « وَأَيُّمَا رَجُلٍ أَعْتَقَ امْرَأَتَيْنِ مُسْلِمَتَيْنِ إِلاَّ كَانَتَا فِكَاكَهُ مِنَ النَّارِ ﴾

یعنی کوم سړي چه یو مسلمان غلام آزاد کړی، او هم دغه شان چه کومه زنانه یو مسلمانه وینځه ازاده کړی.... او د دې نه پس دی چه کوم سړې دوه مسلمانانې وینځې آزادې کړی، یعنی د دې ټولو جزاء د آزادونکي د دوزخ نه خلاصیدل دی.

**اعتاق امه افضل دې یا اعتاق عبد؟:**

د دې مجموعه د حدیث نه معلومه شوه چه د جهنم نه د خلاصیدو دپاره د یو سړی یو غلام آزادول، او د یو زنانه یو وینځه آزادول کافی دی، او کوم سړې چه دوه وینځې آزادې کړی د هغه حکم هم دا دې، د دې نه معلومه شوه چه اعتاق امتین قائم مقام د اعتاق عبد واحد دې، لهذا غلام لره د آزادولو فضیلت د وینځې د آزادولو نه دوچند دې، او بعض علماء کرام دې طرف ته تلې دی چه د وینځې آزادول زیات افضل دی په نسبت د غلام آزادولو، او د هغې دلیل هغوی دا بیان کړې دې چه د وینځې حریت مستلزم وی د هغې نه دپیدا کیدونکی اولاد حریت ته که واده ئې د حر سره شوې وی او که د عبد سره، او د سړی حر کیدل په هر حال کښې د اولاد حریت لره مستلزم نه دی بلکه صرف په یو صورت کښې یعنی په کوم صورت کښې چه د هغه په نکاح کښې حره وی، خو صرف دومره خبره د دې صریح حدیث د معارضې دپاره کافی نه ده، (وایضا عتق الانثی ربما افضی فی الغالب الی ضیاعها لعدم قدرتها علی التکسب بخلاف الذکر.... تحفة الاحوذی جلد ٥ الایمان والنذور) والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي فَضْلِ الْعِتْقِ فِي الصِّحَّةِ

### د صحت په حالت کښې د غلام یا د وینځې د آزادولو د فضیلت بیان

[٣٩٦٨](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي حَبِيبَةَ الطَّائِيِّ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَثَلُ الَّذِي يَعْتِقُ عِنْدَ الْمَوْتِ كَمَثَلِ الَّذِي يُهْدِي إِذَا شَبِعَ".

د ابو الدرداء رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی څوک چه د مرګ په وخت کښې غلام یا وینځه آزادوی دده مثال داسې دې لکه څوک چه د مړیدو نه پس بل چا ته خوراک هدیه کوي.

﴿ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَثَلُ الَّذِي يُعْتِقُ عِنْدَ الْمَوْتِ كَمَثَلِ الَّذِي يُهْدِي إِذَا شَبِعَ » ﴾

هم دغه شان په بذل کښې د نسائی روایت نقل کړې شوې دې : ﴿ مثل الذی یهدی ویتصدق عند موته مثل الذی یهدی بعد ما شبع ﴾ یعنی د مرګ په وخت غلام آزادول یا مال

(1): سنن الترمذي/الوصايا ٧ (٢١٢٣)، سنن النسائي/الوصايا ١ (٣٦٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٧/٥، ٤٤٧/٦) (ضعيف)

صدقه کول هم داسې دی لکه چه یو سړې د خپلې خیټې مړولو نه پس خوراک صدقه کړی، زیات ثواب او فضیلت په هغه صورت کښې دې چه خپل حاجت لره موخر کولو سره بل ته ترجیح ورکړې شی، او خپل حاجت وی د صحت په زمانه کښې. لکه چه په یو بل روایت کښې دی کوم چه په کتاب الزکوة کښې تیر شوې دې، ﴿ان تنفق وانت صحیح شحیح تخشی الفقر.... قال تعالى ويوثرون على انفسهم ولو كان بهم خصاصة ﴾ والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی: حسن صحیح، قاله المنذری. <<<آخر کتاب العتاق>>>

# كتاب الحروف والقراءات

## د حروفو او د قرآت د احکامو بیان

**(د ما قبل سره ربط او مناسبت):**

د دې کتاب د ماقبل سره څه مناسبت دې، طالبانو ته د وینا خبره ده په طور د لطیفې، چه د دې نه مخکښې کتاب العتق تیر شوې دې او د شروع کیدونکی کتاب تعلق د قرآن کریم سره دې، نو څنګه چه په عتق کښې خلاصیدل وی د غلامئ نه هم دغه شان د قرآن کریم په قرأت کښې خلاصیدل وی د اور نه، یا داسې اووایه چه عتق خو د متمماتو د طب نه دې، لهذا اوس مناسبت، په طب او په دې کښې کتل دی، هغه دا چه په طب کښې شفاء ده د بدنونو او په قرآن کریم کښې شفاء ده د قلوب.

## بابٌ

### په کتاب الحروف کښې د مصنف رحمه الله لطیف طرز استدلال:

د مصنف رحمه الله غرض په دې کتاب سره په کومو الفاظو او آیاتونو د قرآن کریم کښې چه اختلاف نقل دې هغه بیانول دی، مصنف رحمه الله په عنوان کښې د قراءتونو سره حروف هم ذکر کړې دی، ممکنه ده چه په دې کښې اشاره وی هغه حدیث مشهور طرف ته ﴿ انزل القرآن على سبعة احرف ﴾ د دې حدیث شرح د کتاب الصلوة په آخر کښې تیره شوې ده. د دې نه پس دا پیژندل پکار دی چه مصنف په دې کتاب کښې د زور نظر نه کار اخستلې دې، پس اصل مقصد خو د مصنف رحمه الله اختلاف قرأت لره بیانول دی خو چرته ئې قرآنی آیتونه ذکر کړې دی او په هغې کښې ئې صرف یو قرأت ذکر کړې دی، د یو قراءت ذکر دلالت کوی په دې خبره چه په دې کښې نور هم قراءتونه دی چه د هغې معلومات په قرائنو یا نورو روایاتو سره کیږی، او چرته ئې داسې هم کړې دی چه لفظ قرآن ئې ذکر کړې هم نه دې صرف روایت ئې ذکر کړې دې خو په هغه روایت کښې یو لفظ داسې وی کوم چه په قرآن کریم کښې هم راغلې وی او په هغې کښې اختلاف د قراءت دې. لکه چه د دې کتاب د روایاتو لوستلو نه به معلومه شی، فلله تعالى در المصنف رحمه الله........ هم دا مضمون حضرت په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه نقل فرمائیلې دې وکتب مولانا محمد یحی المرحوم : ثم لا یذهب علیک ان غرض المصنف في هذا الباب ايراد ما ثبت بالرواية في لفظة معينة وكان فيها اختلاف فكل ما اورده ههنا على وجه يكون فيه وجه آخر غير ما ذكره اهـ.

[۳۹۶۹]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى سورة البقرة آية ۱۲۵".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبی کريم ﷺ به تلاوت په دې طريقه کولو: «واتخذوا من مقام إبراهيم مصلى» يعنی واتخذوا په صيغي دامرسره.

﴿ عَنْ جَابِرٍ رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَرَأَ (وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى) ﴾ په ﴿ اتخذوا ﴾ کښې دوه قراءتونه دي يو په کسرې د خاء سره په صيغه د امر، او هم دا د اکثر قرأت دي او په دې کښې د نافع او د ابن عامر قراءت ﴿ واتخذوا ﴾ دې د خاء په فتحې سره. يعنی د ماضی صيغه (بذل)

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، وقال الترمذي: حسن صحيح، قاله المنذري

[۳۹۷۰]()حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَقَرَأَ فَرَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ فَلَمَّا أَصْبَحَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَرْحَمُ اللَّهُ فُلَانًا كَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ أَذْكَرَنِيهَا اللَّيْلَةَ كُنْتُ قَدْ أَسْقَطْتُهَا".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه يوکس دمونځ دپاره دشپې پاڅيدواوپه اوچت اوازې د قران کريم تلاوت شروع کړوکله چه سحرشونونبی عليه السلام اوفرمائيل الله تعالی دې په دې کس باندې رحم وکړي ډيرداسې آياتونه ئې ماته رايادکړل کوم چه زما نه پاتې شوي وو.

**قوله:**﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ رَجُلاً قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يقرأ فَرَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ فَلَمَّا أَصْبَحَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم« يَرْحَمُ اللَّهُ فُلاَنًا كَائِنْ مِنْ آيَةٍ أَذْكَرَنِيهَا اللَّيْلَةَ كُنْتُ قَدْ أَسْقَطْتُهَا »﴾ په اکثر نسخو کښې دلته داسې دی ﴿ كائن من آية ﴾...... او په يو نسخه کښې ﴿ کای﴾ دې دا حديث په كتاب الصلوة کښې تير شوې دې، او هلته د دې خبرې حواله هم مونږ ورکړې ده، او هلته مونږ دا تشريح هم کړې ده چه په كتاب الحروف والقراءة کښې دا حديث ولې راځی چه د هغې خلاصه دا ده چه مصنف رحمه الله دې حديث لره راوړلو سره دا بيانول غواړی چه په دې حديث کښې لفظ د كائن ذکر شوې دې او دا لفظ په قرآن کريم کښې هم يو ځائې کښې راغلې دې فی قوله تعالی ﴿ وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ ﴾ نو مصنف رحمه الله فرمائي چه په دې لفظ کښې اختلاف د قراءت دې د ﴿ كائن من نبی ﴾ او د ﴿ كای من نبی ﴾ چونکه دا لفظ په حديث کښې راغلې وو په دې وجه مصنف رحمه الله په کوم ځائې کښې چه په قرآن کريم کښې دا لفظ راغلې دې په هغې کښې د اختلاف قراءت طرف ته اشاره کړې ده.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، وقد تقدم في كتاب الصلوة، قاله المنذري

[1]: سنن الترمذي/ الحج ۳۳ (۸۵٦)، سنن النسائي/ الحج ۱٦۳ (۲۹٦٤)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۵٦ (۱۰۰۸)، انظر حديث رقم: (۱۹۰۵)، (تحفة الأشراف: ۲۵۹۵) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (۱۳۳۱)، (تحفة الأشراف: ۱٦۸۷۷) (صحيح)

[۳۹۷۱](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا خُصَيْفٌ، حَدَّثَنَا مِقْسَمٌ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: "وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ سورة آل عمران آية ۱۶۱ فِي قَطِيفَةٍ حَمْرَاءَ، فُقِدَتْ يَوْمَ بَدْرٍ، فَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ: لَعَلَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ سورة آل عمران آية ۱۶۱ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَغُلَّ مَفْتُوحَةُ الْيَاءِ.

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه دا ایت کریمه: «وما كان لنبي أن يغل» دیوسورخادر په باره کښې نازل شوې دې کوم چه دغزوه بدر په ورځ ورک شوې وو، دا څادر چه کله ورک شو) نوخلقوووئیل کیدې شي چه داڅادر نبی ﷺ اخستلې وي نوددوی په جواب کښې الله تعالی دا ایت کریمه نازل کړو.

**قوله:** ﴿قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ (وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ) فِي قَطِيفَةٍ حَمْرَاءَ فُقِدَتْ يَوْمَ بَدْرٍ الخ﴾ دلته مقصود بالذكر لفظ ﴿ يغل ﴾ دې په دې کښې دويم قراءت ﴿ يُغَل ﴾ د مجهول په صيغې سره دې اى يوجد غالا..... والحديث اخرجه الترمذى، قاله المنذرى

[۳۹۷۲](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبَخَلِ وَالْهَرَمِ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: اې پروردګاره زه پناه غواړم.

پتاباندې دکنجوسئ اودبوداوالي نه پناه غوارم.

﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَالْهَرَمِ..... قال ابوداود: والبَخَل بفتح الباء والخاء ﴾

د بخل لفظ په قرآن کریم کښې ډیر کرته راغلې دې، ﴿ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ﴾ (سورة النساء) ﴿وَيَأْمُرُونَ بِالْبُخْلِ ﴾(سورة الحديد) نو اشاره کول دی اختلاف د قراءت ته په دې ټولو ځایونو کښې. ﴿ بخل ﴾ بفتح الباء والخاء او ﴿ بخل ﴾ په ضمې او سكون سره. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى بطوله، قاله المنذرى.

[۳۹۷۳](۳) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ، عَنْ أَبِيهِ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ، قَالَ: كُنْتُ وَافِدَ بَنِي الْمُنْتَفِقِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، فَقَالَ: يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحْسِبَنَّ وَلَمْ يَقُلْ لَا تَحْسَبَنَّ".

دلقيط بن صبرة رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه دبني المنتفق دطرف نه نبی کریم ﷺ ته په وفد کښې لاړم، اوحدیث ئې بیان کړوچه چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: «لا تحسبن». دسین په زیر سره اولا تخت په زبردسین سره ئې ئې ونه وئیل.

﴿عَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ قَالَ كُنْتُ وَافِدَ بَنِي الْمُنْتَفِقِ – فَقَالَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– – « لاَ تَحْسِبَنَّ ». وَلَمْ يَقُلْ لاَ تَحْسَبَنَّ ﴾

دا حدیث په ابواب الوضوء کښې په باب الانتثار کښې تیر شوې دې، مصنف رحمه الله دا وئیل

(۱): سنن الترمذي/تفسير سورة آل عمران ۱۷ (۳۰۰۹)، (تحفة الأشراف: ۶۴۸۷) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۳/۳، ۱۱۷)، انظر حديث رقم: (۱۵۴۰) (صحيح)

(۳): انظر حديث رقم: (۱۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۲) (صحيح)

غواړي چه دا لفظ ﴿ لا تحسبن ﴾ په قرآن كريم كښې هم راغلي دې ﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ﴾ په دې كښې اختلاف د قراءت بيانول غواړي چه د سين په كسرې او فتحې دواړو باندې منقول دې. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٣٩٧٤]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَحِقَ الْمُسْلِمُونَ رَجُلًا فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَقَتَلُوهُ وَأَخَذُوا تِلْكَ الْغُنَيْمَةَ فَنَزَلَتْ: وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا سورة النساء آية ٩٤ تِلْكَ الْغُنَيْمَةَ".

دعبدالله ﷺ نه روايت دې فرمائي چه مسلمانان ديو كس خواته اورسيدل ثوك چه دخپلو چيلو ګډوسره وو دغه كس اووئيل السلام عليكم ليكن مسلمانانوهغه قتل كړو اودده چيل ئې بوتلي نوپه دې باره كښې دا ايت كريمه نازل شو«ولا تقولوا لمن ألقى إليكم السلام لست مؤمنا تبتغون عرض الحياة الدنيا» اوبيا ئې : تلك القيمة الفاظ اووئيل يعنى دالله تعالى سره ډير مال موجود دې.

﴿ فَنَزَلَتْ ﴿وَلاَ تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلاَمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ﴾ په دې كښې دوه قراءتونه دي يو ﴿السلام ﴾ او بل ﴿ السلم ﴾ نافع او ابن عمرو او حمزه دې لره السلم لوستلي دې بغير د الف نه او نورو قاريانو په ﴿ السلام ﴾ سره لوستلي دې، او يو قراءت په دې كښې د سلم او بل د سلم هم منقل دې. (بذل)

[٣٩٧٥]([2])حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ وَهُوَ أَشْبَعُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ: غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ سورة النساء آية ٩٥ وَلَمْ يَقُلْ سَعِيدٌ كَانَ يَقْرَأُ".

د زيد بن ثابت ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبى كريم ﷺ دايت : «غير أولي الضرر» دراپه پيش سره ، تلاوت كولو اوددينه مخكښې دايت كريمه داحصه : «لا يستوي القاعدون من المؤمنين» پورې نازل شوې وو ، خو چه كله داحكم خلقوته ګران شونوغير اولي الضرر په زبردغيرسره نازل شو.

﴿ كَانَ يَقْرَأُ ﴿غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ ﴾ په دې كښې لفظ د غير كښې د راء ضمه او فتحه دواړه لوستلې شوې دی.

[٣٩٧٦]([3])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "قَرَأَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالْعَيْنُ بِالْعَيْنِ".

---

[1]): صحيح البخاري/تفسير سورة النساء ١٧ (٤٥٩١)، صحيح مسلم/التفسير (٣٠٢٥)، (تحفة الأشراف: ٥٩٤٠)، وقد اخرجه: سنن الترمذي/تفسير القرآن النساء ٥ (٣٠٣٠) (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٠٩) (حسن صحيح)

[3]): سنن الترمذي/القراءات ١ (٢٩٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٥/٣) (ضعيف)

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی کريم ﷺ به «والعين بالعين» لوستلو يعنی العين په ضمي دنون سره.

﴿ وَالْعَيْنُ بِالْعَيْنِ ﴾ دي آيت کريمه ته اشاره ده ﴿ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ ﴾ ﴿العين﴾ منصوب او مرفوع دواړو طريقو سره لوستلي شوي دي. والحديث اخرجه الترمذي، قاله المنذري.

[۳۹۷۷](1) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي عَلِيِّ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنُ بِالْعَيْنِ﴾".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی کريم و به دا ايت کريمه «وكتبنا عليهم فيها أن النفس بالنفس والعين بالعين» لوستودوون ، په ضمي سره.

[۳۹۷۸](2) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ مَرْزُوقٍ، عَنْ عَطِيَّةَ بْنِ سَعْدٍ الْعَوْفِيِّ، قَالَ: "قَرَأْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ: ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ ضَعْفٍ﴾ سورة الروم آية ٥٤، فَقَالَ: ﴿مِنْ ضُعْفٍ﴾. قَرَأْتُهَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا قَرَأْتَهَا عَلَيَّ، فَأَخَذَ عَلَيَّ كَمَا أَخَذْتُ عَلَيْكَ".

دعطيه بن سعد عوفی رحمه الله نه روايت دي فرمائی چه ما آيت کريمه: «الله الذي خلقكم من ضعف» دعبدالله بن عمر په وړاندي د يوض، ، په زبر سره ولوستو ، اوهغه من ضعف دض په پيش سره ولوستو اوماهم دنبی ﷺ په وړاندي داسي لوستلي وو لکه څنګه چه تازما په وړاندي ولوستو اونبی ﷺ هم زما مواخذه کړيوه لکه څنګه چه ما ستا مواخذه وکړله.

﴿قَرَأْتُ عند عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ (اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ ضَعْفٍ) فَقَالَ (مِنْ ضُعْفٍ)﴾

عطيه عوفی فرمائی چه ما يو ورځ د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مخکښ دا آيت کريمه اولوستلو د ﴿ ضَعف ﴾ په فتحي سره نو هغوی د دي اصلاح اوکړه په ﴿ ضُعف ﴾ سره، او وي فرمائيل چه ما هم دا آيت کريمه د رسول الله ﷺ مخکښ هم دغه شان لوستلي وو نو رسول الله ﷺ زما اصلاح اوکړه څنګه چه ما ستا اوکړه. د دي نور تفصيل دي په بذل کښ اوکتلي شي.

[۳۹۷۹](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ عَقِيلٍ، عَنْ هَارُونَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "﴿مِنْ ضُعْفٍ﴾".

دابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ دا ايت کريمه (من ضعف) په ضمي سره ولوستو.

[۳۹۸۰](4) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَسْلَمَ الْمِنْقَرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، قَالَ: قَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ: "﴿بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَلِكَ فَلْتَفْرَحُوا﴾". قَالَ أَبُو دَاوُد: بِالتَّاءِ.

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٧٢) (ضعيف)

(2): سنن الترمذي/القراءات سورة الروم ٤ (٢٩٣٦)، (تحفة الأشراف: ٧٣٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٨/٢) (حسن)

(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢١١) (حسن)

(4): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٣/٥) (حسن صحيح)

دعبدالرحمن بن ابزى ﷺ نه روايت دي فرمائى چه اوي بن كعب نه به دا ايت كريمه : «بفضل الله وبرحمته فبذلك فلتفرحوا» داسې لوستو، امام ابوداؤد وائى چه په تاء سره.

**قوله:** ﴿ قَرَأَ ﴿بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَلِكَ فَلْتَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِمَّا تَجْمَعُونَ﴾ ﴾ دلته په دواړو لفظونو كښې اختلاف د قراءت دې. ﴿ فليفرحوا ﴾ قراءة متواتره دي په ياء سره او فلتفرحوا قراءت غير متواتره دي مشهوره يا شاذه، هم دغه شان ﴿ تجمعون ﴾ كښې دواړه قراءتونه دى، د ابن عامرپه قراءت كښې ﴿ تجمعون ﴾ په تاء سره او باقى قراءة ﴿ مما يجمعون ﴾ په ياء سره. (بذل)

[٣٩٨١](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنِ الْأَجْلَحِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيٍّ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: ﴿بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَلِكَ فَلْتَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِمَّا تَجْمَعُونَ﴾".

عبدالرحمن بن ابزي دخپل پلار او د اوبي بن كعب ﷺ نه روايت كوى فرمائى چه نبى كريم و ته دا ايت كريمه : «بفضل الله وبرحمته فبذلك فلتفرحوا» داسې لوستلو.

[٣٩٨٢](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ: "أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ: ﴿إِنَّهُ عَمِلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾".

داسماء بنت يزيد ﷺ نه روايت دي فرمائى چه دنبى كريم نه مې اوريدلى دى چه دا ايت كريمه : «إنه عمل غير صالح» په دې طريقې سره ولوستو.

﴿ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقْرَأُ ﴿إِنَّهُ عَمِلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾ ﴾

يعنى په سورة هود كښې ﴿ يَا نُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ﴾ يعنى ﴿ عَمِلَ ﴾ په صيغه د ماضى او ﴿ غَيْرَ صالح ﴾ منصوب بناء بر مفعوليت، او دويم قرأءت په دې كښې د ﴿ عَمَلٌ ﴾ رفع لام مع التنوين. او د غير راء مرفوع په اول صورت كښې د ﴿ انه ﴾ ضمير به د ابن طرف ته راجع وى، او په دويم صورت كښې به د سوال طرف ته راجع وى چه ستا دپاره د خپل بچى د نجات سوال كول عمل غير صالح دې.

په بذل كښې ليكلې دى د آول قرآءت په بآره كښې : ﴿ وهذه قراءة الكسائى وهى قراءة النبى ﷺ روى عن عائشة اسماء بنت يزيد وام سلمة ﷺ، وقرأ الباقون بفتح الميم ﴾ دويم قراءت د باقى قاريانو دې.. والحديث اخرجه الترمذى، قاله المنذرى.....

[٣٩٨٣](٣) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ الْمُخْتَارِ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، قَالَ: "سَأَلْتُ أُمَّ سَلَمَةَ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ﴾ سورة هود آية ٤٦ فَقَالَتْ: قَرَأَهَا: ﴿إِنَّهُ عَمِلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ هَارُونُ النَّحْوِيُّ، وَمُوسَى بْنُ خَلَفٍ، عَنْ ثَابِتٍ، كَمَا قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٧) (حسن صحيح)

(٢): سنن الترمذي/القراء ات سورة هود ٢ (٢٩٣١)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٤، ٣٢٢، ٤٥٤، ٤٥٩، ٤٦٠) (صحيح)

(٣): سنن الترمذي/القراء ات سورة هود ٢ (٢٩٣٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٦٨) (صحيح)

دشهر بن حوشب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دام سلمه رضي الله عنها نه مې تپوس اوکړو چه نبي عليه السلام به دا ايت کريمه: «إنه عمل غير صالح» څنګه لوستلو؟ نوهغې اووئيل داسې به ئې لوستو «إنه عمل غير صالح» ، امام ابو داود فرمائي دا روايت هارون نحوي دموسى بن خلف نه اوهغه دثابت نه دعبدالعزيز د روايت په شان نقل کړې دې.

﴿عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ قَالَ سَأَلْتُ أُمَّ سَلَمَةَ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقْرَأُ هَذِهِ الآيَةَ (إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ) فَقَالَتْ قَرَأَهَا (إِنَّهُ عَمِلَ غَيْرَ صَالِحٍ)﴾

دا دويم روايت د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت کړې شوې دې او رومبې د اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وو، او د دواړو نه روايت کونکې شهر بن حوشب دې، خو په اول طريق کښې روايت حماد عن ثابت عن شهر دې، او په دويم کښې عبدالعزيز عن ثابت دې.

## د قال ابوداؤد تشريح :

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ هَارُونُ النَّحْوِيُّ وَمُوسَى بْنُ خَلَفٍ عَنْ ثَابِتٍ كَمَا قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ﴾ مصنف رحمه الله فرمائي چه اکثرو راويانو داسې روايت کړې دې څنګه چه عبدالعزيز يعنى ﴿سالت ام سلمة الخ﴾ د دواړو روايتونو په سياق کښې هم فرق دې او د راويه حديث صحابيه په نوم کښې هم فرق دې. يو ځائې کښې اسماء بنت يزيد دې او په بل ځائې کښې د هغې په ځائې ام سلمه رضي الله عنها دې...... امام ترمذی رحمه الله هم په دواړو سياقو سره حديث نقل کړې دې، د هغوی د کلام نه هم دا معلوميږي چه اکثر راويانو دا حديث په لفظ د ام سلمه رضي الله عنها ذکر کړې دې پس هغه فرمائي ﴿قد رواه غير واحد عن ثابت البناني نحو هذا (يعنى عن شهر بن حوشب عن ام سلمة) وقد وروى هذا الحديث أيضا عن شهر بن حوشب عن أسماء بنت يزيد﴾ بيا د دې نه روستو امام ترمذى د خپل استاد عبد بن حميد نه نقل کړې دى چه دا اسماء بنت يزيد أم سلمه انصاريه ده او دا چه دواړه احاديث زما په نزد يو دى. يو روايت کښې نوم ذکر شوې دې د دې نه مراد ام المومنين نه ده بلکه ام سلمه انصاريه مراد ده د چا نوم چه اسماء بنت يزيد دې. په يو کښې ئې نوم ذکر دې او په بل کښې ئې کنيت. خو دا رائې د امام ترمذی رحمه الله د استاد عبد بن حميد ده امام ترمذی رحمه الله په دې کښې خپله هيڅ رائې نه ده ظاهر کړې خو د امام ابوداؤد رحمه الله د کلام نه معلوميږي چه دا د راويانو اختلاف دې او ترجيح هغوی ام سلمه رضي الله عنها ته ورکړې ده د راويانو د کثرت د وجې نه، او حضرت هم په بذل المجهود کښې د ام سلمه د نوم سره ام المومنين ليکلې دې ګويا د ماتن او شارح د دواړو په رائې کښې دا دواړه نومونه بيل بيل دی، والله تعالى اعلم

[٣٩٨٤](1) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ حَمْزَةَ الزَّيَّاتِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا بَدَأَ بِنَفْسِهِ، وَقَالَ: "رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى مُوسَى لَوْ صَبَرَ لَرَأَى مِنْ صَاحِبِهِ الْعَجَبَ، وَلَكِنَّهُ قَالَ: إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي قَدْ

(1): سنن الترمذي/القراءات سورة الكهف ٣ (٢٩٣٣)، الدعوات ٩ (٣٣٨٥)، (تحفة الأشراف: ٤١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ٤٤ (١٢٢)، أحاديث الأنبياء ٢٧ (٣٤٠٠)، تفسير القرآن ٢ (٤٧٢٥)، صحيح مسلم/الفضائل ٤٦ (٢٣٨٠) (صحيح) دون قوله: "ولكنه قال..."

بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي سورة الكهف آية ٧٦، طَوَّلَهَا حَمْزَةُ".

سعید بن جبیر او عبدالله ابن عباس او ابی بن کعب ﷺ نه روایت دې فرمائی کله چه به نبی ﷺ دعا غوښتله نو اول به ئې دځان دپاره دعاوغوښتله داسې به ئې فرمائیل په مونږ دې دالله رحمت وي اوپه موسی دې دالله رحمت وي که چرې هغه دصبرنه کار اخستې وې نوهغه ډیرې ناشناخبرې لیدلې وې لیکن هغه داسې اووئیل: «إن سألتك عن شيء بعدها فلا تصاحبني قد بلغت من لدني» په دې ایت کریمه کښې حمزه من لدني په تشدید سره وائي.

﴿عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا دَعَا بَدَأَ ...الخ ﴾

ابی بن کعب ﷺ فرمائی چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو (که د بل دپاره په دعاء کول مقصود وؤ) نو د خپلې دعاء ابتداء به ئې د ځان نه کوله (لکه چه د وړاندې حدیث نه معلومیږی هغه دا چه) رسول الله ﷺ اوفرمائیل په مونږ او موسی ﷺ باندې دې د الله پاک رحمت وی که موسی ﷺ صبر کړې وې ،یعنی که د خضر ﷺ نه ئې بار بار تپوسونه نه کول نو معلومه نه ده چه څه عجیبه عجیبه خبرې به مخې ته راغلې وې.

﴿ وَلَكِنَّهُ قَالَ (إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلاَ تُصَاحِبْنِي قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي) ». ..الخ﴾

﴿ طول ﴾ د دې تعلق د لدنی سره دې او ﴿ طول ﴾ په معنی د شدد وثقل... لکه چه روستو روایت کښې راځی، او هم دغه شان د ترمذی په روایت کښې دې هم په دې حدیث کښې ﴿ انه قراء قد بلغت من لدنی عذرا ﴾ مثقلة او په دې کښې په دویم قراءت کښې ﴿ من لدنی ﴾ دې د نون په تخفیف سره ، حضرت په بذل المجهود کښې د دې شرح داسې کړې ده او دا احقر عرض کوی چه ﴿ فلا تصاحبنی ﴾ کښې قراءت د ﴿ فلا تَصحَبنی ﴾ هم دې، پس په بذل کښې دی قال ابن رسلان قراء عیسی ویعقوب فلا تصحبنی.... مضارع "صحب" پس کیدې شی چه د ﴿ طولها حمزة ﴾ نه هم دا مراد وی بلکه وئیلې کیدې شی چه هم دا زیاته ظاهره ده ځکه چه که د دې تعلق د ﴿ لدنی ﴾ سره وې نو بیا آیت کریمه لره د شاته نه ذکر کولو ته څۀ حاجت وو، خو د دې نه روستو چه کوم روایت راروان دې چه د هغې الفاظ دا دې ﴿ انه قراءها قد بلغت من لدنی ﴾ وثقلها..... ددې تعلق د لدنی سره هم دې ځکه چه د تثقیل معنی تشدید راځی، او د تطویل زیاته مناسب معنی د الف زیادت دې کوم چه په ﴿ فلا تصاحبنی ﴾ کښې موندلې شی......

فتامل........ والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[۳۹۸۵] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أُمَيَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْجَارِيَةِ الْعَبْدِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ قَرَأَهَا قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي سورة الكهف آية ٧٦، وَثَقَّلَهَا".

دعبدالله بن عباس او اوبي بن کعب ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ د من لدني تلاوت وکړو اور ن ، ئې په تشدید سره ولوستو.

**تنبیه** : د ترمذی په روایت کښې ﴿ قد بلغت من لدنی عذرا ﴾ مثقلة د لاندې بین السطور

(¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٢) (ضعيف)

ليکلې دى ﴿ يعنى بضم ذال خوانده، واين به نسبت سکون مثقل است اهـ ﴾ ګويا د مثقله تعلق، د ﴿ عذرا ﴾ سره دې خو دا په دې باندې موقوف دې چه په ﴿ عذرا ﴾ کښې يو قرأت په ضم د ذال سره هم وى.... ﴿ عذرا ﴾.....

[۳۹۸۶] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْعُودٍ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ، حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ أَوْسٍ، عَنْ مِصْدَعٍ أَبِي يَحْيَى، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: "أَقْرَأَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ كَمَا أَقْرَأَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ سورة الكهف آية ۸۶ مُخَفَّفَةً".

مصدع ابويحي وائى دابن عباس نه مې اوريدلى دى چه فرمائيل ئې اوبي بن کعب زما په وړاندې ددې آيت کريمه : «في عين حمئة» داسې تلاوت وکړو لکه څرنګه چه نبى ﷺ مونږ ته کړې دې دشد نه بغير.

﴿ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ أَقْرَأَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ كَمَا أَقْرَأَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- (فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ) مُخَفَّفَةً ﴾ او د څو احاديثو نه پس د ابوذر رضی الله عنه په حديث کښې راځى هغه فرمائى چه يو ځل چه کله نمر پريوتلو نو رسول الله ﷺ زما نه تپوس اوکړو ﴿هل تدرى اين تغرب هذه قلت الله ورسوله اعلم قال : فانها تغرب فى عين حامية ﴾ د دې نه معلومه شوه چه په دې لفظ کښې دوه قراءتونه دى، حاميه په معنى د حارة..... او ﴿حمئة ﴾ په معنى د ﴿ الطين الاسود ﴾ توره ختېه او خاوره......والحديث أخرجه الترمذى قاله المنذرى وحديث ابى ذر أخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى اتم منه، قاله المنذرى.

[۳۹۸۷] (²) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو النَّمَرِيَّ، أَخْبَرَنَا هَارُونُ، أَخْبَرَنِي أَبَانُ بْنُ تَغْلِبَ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الرَّجُلَ مِنْ أَهْلِ عِلِّيِّينَ لَيُشْرِفُ عَلَى أَهْلِ الْجَنَّةِ فَتُضِيءُ الْجَنَّةُ لِوَجْهِهِ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ، قَالَ: وَهَكَذَا جَاءَ الْحَدِيثُ دُرِّيٌّ مَرْفُوعَةَ الدَّالِ لَا تُهْمَزُ، وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ لَمِنْهُمْ وَأَنْعَمَا".

د ابوسعيد خدرى رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ اوفرمائيل، البته دمقام علين په خلقوکښې به يوکس جنت والاته ورښکاره شي اودده دمخ درنړاپه وجه به جنت داسې روښانه شي لکه يوه پر قيدونکي ملغلره ، راوى والي په دې حديث کښې لفظ د دري، د دال په ضې سره دې په زير و زبر سره نه دې ، ابوبکر اوعمر رضی الله عنهما به هم ددغه کسانونه وي بلکه ددوينه به بهتروي.

﴿ إِنَّ الرَّجُلَ مِنْ أَهْلِ عِلِّيِّينَ لَيُشْرِفُ عَلَى أَهْلِ الْجَنَّةِ فَتُضِيءُ الْجَنَّةُ بِوَجْهِهِ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ ». قَالَ وَهَكَذَا جَاءَ الْحَدِيثُ « وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ لَمِنْهُمْ وَأَنْعَمَا ﴾

مضمون حديث دا دې چه کوم جنتيان په عليين کښې وى يعنى د جنت په پورته درجه کښې نو چه کله به په هغوى کښې څوک د جنت لاندې درجې اوګورى نو په دې باندې به د پورته

¹): سنن الترمذي/القراءات سورة الكهف ۳ (۲۹۳٤)، (تحفة الأشراف: ٤۳) (ضعيف)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٩٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/المناقب ١٤ (۳٦٥٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (٩٦)، مسند احمد (٣/٥٠، ٦١) (ضعيف)

جنتیانو د مخونو په رنړا سره لاندې جنتونه روښانه شي، او د هغه پورته جنتیانو مخونه به لاندې جنتیانو ته داسې معلومیږي لکه څنګه چه پړقیدونکي ستوري دي، او بیا د دې نه روستو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا دواړه ابوبکر او عمر رضي الله عنهما به د هم دغه جنتیانو نه وي یعنی په پورته خلقو کښې، او د دې نه هم پورته.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې لفظ ﴿ درى ﴾ په ضم د دال سره دې بغير د همزه، اوپه دويم قراءت کښې چه هغې طرف ته مصنف اشاره کول غواړي، هغه ﴿دِرى﴾ په کسرې د دال او همزه سره چه کم ماخوذ دې، د﴿ ذَرء ﴾ چه د هغې معنی د دفع کولو ده، او په اول صورت کښې به دا نسبت وی ﴿ در ﴾ طرف ته چه د هغې معنی ملغلره ده.

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه، وقال الترمذی حسن، وليس فی حديثهما تقييد الكلمة، قاله المنذري.

[٣٩٨٨]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ الْحَكَمِ النَّخَعِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو سَبْرَةَ النَّخَعِيُّ، عَنْ فَرْوَةَ بْنِ مُسَيْكٍ الْغُطَيْفِيِّ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَخْبِرْنَا عَنْ سَبَإٍ مَا هُوَ أَرْضٌ أَمِ امْرَأَةٌ؟ فَقَالَ: "لَيْسَ بِأَرْضٍ وَلَا امْرَأَةٍ وَلَكِنَّهُ رَجُلٌ وَلَدَ عَشَرَةً مِنَ الْعَرَبِ فَتَيَامَنَ سِتَّةٌ وَتَشَاءَمَ أَرْبَعَةٌ"، قَالَ: عُثْمَانُ الْغَطَفَانِيُّ مَكَانَ الْغُطَيْفِيِّ، وَقَالَ: حَدَّثَنَا: الْحَسَنُ بْنُ الْحَكَمِ النَّخَعِيُّ.

د فروه بن مسیک الغطیفی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او پوره حدیث ئې بیان کړو چه په خلقو کښې یوکس ووئیل اې دالله رسوله خبر راکړه موږ ته دسبا په باره کښې چه داڅه شي دې ایا دا کومه زمکه ده اوکه ښځه ده؟ نبی ﷺ اوفرمائیل سبا نه دزمې نوم دې اونه دښځې نوم دې بلکه دا دیوداسې عرب سړې نوم دې دچاچه لس ځامن وو په دوی کښې شپږو په یمن کښې اوسیدل اختیارکړل او څلورو په شام کښې بیاپه مزه مزه ددوی په اولاد کښې اضافه وشوه اودسبانه یوقوم جوړ شو، دعثمان په روایت کښې دغطیفي په ځائې باندې غطفاني ذکرشوې دې او دائې هم اووئیل چه دا حدیث موږ ته حصین بن حکم نقعي بیان کړې دې.

**قوله:**﴿فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنَا عَنْ سَبَإٍ مَا هُوَ أَرْضٌ أَمِ امْرَأَةٌ الخ ﴾

یو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ د سبا په باره کښې موږ ته خبر راکړئ چه هغه څه دی د یو ځائې نوم دې او که د زنانه؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : نه د زمکې نوم دې او نه د زنانه، بلکه دا یو عرب سړې وو د چا چه لس ځامن شوې وو چه په هغې کښې شپږ یمن ته لاړل او هلته آباد شو او څلور شام ته لاړل، مصنف رحمه الله دا روایت مختصرا ذکر کړې دې او اختصار طرف ته ئې اشاره په خپل قول ﴿ فذكر الحديث﴾ سره کړې ده، روایت مفصله په ترمذی کښې دې چه د هغې په آخر کښې دی : ﴿ وانزل فی سبا ما انزل ﴾ او د سبا په باره کښې په سورة سبا کښې دا آیت کریمه ذکر شوې دې : ﴿ لقد كان لسباء فی

() سنن الترمذي/تفسير القرآن سورة سبأ ١ (٣٢٢٢)، (تحفة الأشراف: ١١٠٢٣) (حسن صحيح)

مسكنهم اية ﴾ په لفظ سبا كښې قراءت مختلف دى، ﴿ لسباء ﴾ په (تنوين همزې سره) او ﴿لسباء ﴾ (بغير د تنوين نه) او لسباء (په سكون د همزه سره)

والحديث اخرجه الترمذي، وقال غريب، قاله المنذري.

[٣٩٨٩](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَبُو مَعْمَرٍ الْهُذَلِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ إِسْمَاعِيلُ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، رِوَايَةً فَذَكَرَ حَدِيثَ الْوَحْيِ قَالَ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى: "حَتَّى إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ سورة سبا آية ٢٣".

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه هغه دوحي حديث بيان كړو او وئي فرمائيل دا هغه خبره ده كوم چه دالله تعالى په دې قول: «حتى إذا فزع عن قلوبهم» كښې ذكرشوي ده يعني هغوى په راوغين سره ولوستل ليكن اكثرو قاريانو زاو غين لوستلې دې او مشهور قرءت هم داسې دې.

**قوله:**﴿قَالَ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى (حَتَّى إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ ﴾

يعنى تفزيع د باب تفعيل نه د ماضى مجهول صيغه، بل قراءت په دې كښې ﴿ فزع ﴾ دې په تخفيف سره د مجرد نه، والحديث اخرجه البخاري والترمذي وابن ماجه بتمامه، قاله المنذري.

[٣٩٩٠](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّازِيُّ، سَمِعْتُ أَبَا جَعْفَرٍ يَذْكُرُ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلَى قَدْ جَاءَتْكِ آيَاتِي فَكَذَّبْتِ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتِ وَكُنْتِ مِنَ الْكَافِرِينَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مُرْسَلٌ الرَّبِيعُ لَمْ يُدْرِكْ أُمَّ سَلَمَةَ.

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائى چه نبى كريم ﷺ به دا ايت كريمه: «بلى قد جاءتك آياتي فكذبت بها واستكبرت وكنت من الكافرين» داسې لوستلو، امام ابوداؤد فرمائى داحديث مرسل دې څكه چه دربيعه اوريدل دام سلمه نه ثابت نه دي.

**قوله:**﴿بَلَى قَدْ جَاءَتْكِ آيَاتِي فَكَذَّبْتِ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتِ وَكُنْتِ مِنَ الْكَافِرِينَ ﴾

په څلورو وارو ځايونو كښې د مونث په صيغه سره نفس ته خطاب كولو سره چه مونث سماعى دې او په دې كښې دويم قراءت هم هغه دې كوم چه زمونږ او ستاسو قراءت دې يعنى د مخاطب مذكر په صيغه سره.

[٣٩٩٢](3) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ ابْنُ حَنْبَلٍ: لَمْ أَفْهَمْهُ جَيِّدًا، عَنْ صَفْوَانَ، قَالَ ابْنُ عَبْدَةَ ابْنُ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقْرَأُ: وَنَادَوْا يَا مَالِكُ سورة الزخرف آية ٧٧"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي بِلَا تَرْخِيمٍ.

صفوان بن يعلى دخپل پلار نه روايت كوى فرمائى چه مادنبى عليه السلام نه اوريدلى دى چه په ممبرئې فرمائيل: «ونادوا يا مالك» امام ابوداؤد وائى دترخيم نه بغيره.

1): صحيح البخاري/تفسير سورة الحجر ١ (٤٧٠١)، التوحيد ٣٢ (٧٤٨١)، سنن الترمذي/التفسير ٣٥ (٣٢٢٣)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٤٩) (صحيح)

2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٠) (ضعيف الإسناد)

3): صحيح البخاري/بدء الخلق ٧ (٣٢٣٠)، وتفسير القرآن ١ (٣٢٦٦)، صحيح مسلم/الجمعة ١٣ (٨٧١)، سنن الترمذي/الجمعة ١٣ (٥٠٨)، (تحفة الأشراف: ١١٨٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٢٣) (صحيح)

﴿ سَمِعْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– عَلَى الْمِنْبَرِ يَقْرَأُ (وَنَادَوْا يَا مَالِكُ) ﴾
د دې نه پس داسې دی ﴿ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ قَالَ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ ﴾ په سورة زخرف كښې
په يا مالک كښې دوه قراتونه نور دی، يو په ترخيم سره يعنې يا مال....... په ضم د لام سره
او يا مال په كسرې د لام سره.....
د آيت كريمه مفهوم دا دې چه جهنميان به ټول يو ځائې شي او د جهنم داروغه ته به
درخواست اوكړي چه الله پاک ته زمونږ سفارش اوكړه چه هغه دې مونږ ته مرګ راكړي نو د
هغه ځائې نه به ورته جواب ملاؤ شي چه ﴿ انكم ماكثون ﴾ چه تاسو به هم دلته اوسيږئ، د
ترمذي په روايت كښې دی چه دا جواب به هغوی ته د زر كالو د انتظار نه پس ملاويږي...
اعاذنا الله منها، والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري

[٣٩٩٣]([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ".

دعبدالله بن يزيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم ماته دا ايت كريمه «إني أنا الرزاق ذو القوة المتين» داسې ولوستو.
**قوله:**﴿إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴾
دا قراءت غير متواتر دې، او قراءت متواتره ﴿ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴾ والحديث
اخرجه الترمذي والنسائي، وقال الترمذي، حسن صحيح، قاله المنذري.

[٣٩٩٤]([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَؤُهَا: فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ سورة القمر آية ١٥ يَعْنِي: مُثَقَّلًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَضْمُومَةَ الْمِيمِ مَفْتُوحَةَ الدَّالِ مَكْسُورَةَ الْكَافِ.

دعبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم ماته دا ايت كريمه: «فهل من مدكر»
داسې ولوستو، امام ابوداؤد فرمائی په ضمې دميم سره او په فتح د دال اوكسرې دكاف سره.
﴿أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– كَانَ يَقْرَؤُهَا (فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ) ﴾ او دويم قراءت په دې كښې
(مذكر) دې په ذال معجمه سره، او مدكر په اصل كښې مذتكر وو اول تاء په دال سره بدله
كړې شوه ﴿ لتقارب مخرجيهما ﴾ بيا ذال لره په دال سره بدلولو سره ادغام اوكړې شو. والحديث
اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٣٩٩٥]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الذِّمَارِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ: أَيَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ".

---

[1]): سنن الترمذي/القراء ات سورة الذاريات ٨ (٢٩٤٠)، (تحفة الأشراف: ٩٣٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٩٤، ٣٩٧، ٤١٨) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ٣ (٣٣٤١)، وتفسير القرآن ٢ (٤٨٧٤)، صحيح مسلم/المسافرين ٥٠ (٨٢٣)، سنن الترمذي/القراء ات سورة القمر ٥ (٢٩٣٧)، (تحفة الأشراف: ٩١٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٩٥، ٤٠٦، ٤١٣، ٤٣١، ٤٣٧، ٤٦١) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٠٢٦) (ضعيف الإسناد)

دجابر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي كريم ﷺ به دا آيت كريمه: «يحسب أن ماله أخلده» داسي لوستو.

﴿سَمِعْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– يَقْرَأهَا (فَرُوحٌ وَرَيْحَانٌ)﴾ دا قراءت غير متواتره دي يعنى په ضمي د راء سره او قراءت متواتره په فتحي سره دي، ﴿فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ﴾

﴿رَأَيْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– يَقْرَأُ (أَيَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ)﴾ په دي كښ نسخي مختلف دي په بعضو كښ هم دغه شان دى په همزي د استفهام سره، او په بعضو كښ ﴿يحسب﴾ بغير د همزي نه، او هم دا نسخه صحيح ده، ځكه چه په دي آيت كريمه كښ ﴿ايحسب﴾ په همزي سره د چا قراءة هم نه دي بلكه په دي كښ اختلاف د قراءت صرف په كسره د سين او د فتح دسين دي.

[۳۹۹۶](۱)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ "عَمَّنْ أَقْرَأَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَيَوْمَئِذٍ لَا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ أَحَدٌ ۲۵ وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُ أَحَدٌ ۲۶ سورة الفجر آية ۲۵-۲۶"، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَعْضُهُمْ أَدْخَلَ بَيْنَ خَالِدٍ وَأَبِي قِلَابَةَ رَجُلًا.

د ابوقلابه نه روايت دي فرمائي چه ما دا ايت كريمه: «فيومئذ لا يعذب عذابه أحد * ولا يوثق وثاقه أحد» په دي طريقي سره دداسي كس نه اوريدلى دى چاچه درسول الله ﷺ نه اوريدلي دي. امام ابوداؤد وائى چه بعض محدثينو دخالد اودابوقلابه په مينځ كښي يوبل راوى هم داخل كړي دي.

﴿فَيَوْمَئِذٍ لاَ يُعَذِّبُ عَذَابَهُ أَحَدٌ وَلاَ يُوثِقُ وَثَاقَهُ أَحَدٌ﴾ يعنى دواړه ځايه فعل مجهول، او په دويم قراءت كښ په دي كښ ﴿لا يعذب﴾ او ﴿لا يوثق﴾ په صيغه د معروف سره دي.

[۳۹۹۷](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، قَالَ: "أَنْبَأَنِي مَنْ أَقْرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ مَنْ أَقْرَأَهُ مَنْ أَقْرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَيَوْمَئِذٍ لَا يُعَذَّبُ سورة الفجر آية ۲۵"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَرَأَ عَاصِمٌ، وَالْأَعْمَشُ، وَطَلْحَةُ بْنُ مُصَرِّفٍ، وَأَبُو جَعْفَرٍ يَزِيدُ بْنُ الْقَعْقَاعِ، وَشَيْبَةُ بْنُ نَصَّاحٍ، وَنَافِعُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَثِيرٍ الدَّارِيُّ، وَأَبُو عَمْرِو بْنُ الْعَلَاءِ، وَحَمْزَةُ الزَّيَّاتُ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجُ، وَقَتَادَةُ، وَالْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ، وَمُجَاهِدٌ، وَحُمَيْدٌ الْأَعْرَجُ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ لَا يُعَذِّبُ وَلَا يُوثِقُ إِلَّا الْحَدِيثَ الْمَرْفُوعَ فَإِنَّهُ يُعَذَّبُ بِالْفَتْحِ.

د ابوقلابه نه روايت دي فرمائي چه ماته دا ايت كريمه: (فيومئذ لا يعذب) يوداسي كس اورولي دي چاته چه رسول الله ﷺ اورولي وو چه: (فَيَوْمَئِذٍ لا يُعَذَّبُ) (په مجهول صيغي سره) دي، ابوداؤد وائى: عاصم، اعمش، طلحة بن مصرف، أبوجعفر يزيد بن القعقاع، شيبة بن نصاح، نافع بن عبد الرحمن، عبد الله بن كثير الداري، أبو عمرو بن العلاء، حمزة الزيات، عبد الرحمن الاعرج، قتادة، حسن بصري، مجاهد، حميد أعرج، عبدالله بن عباس، عبد الرحمن بن أبي بكر (لَا يُعَذِّبُ وَلَا يُوثِقُ) (معروف صيغي سره) وئيلي دي، خو په

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷۱/۵) (ضعيف الإسناد)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۰۸) (ضعيف الإسناد)

مرفوع روایت کښې (يُعَذِّبُ) (د ذال فتحې سره) دې.

[٣٩٩٨](١)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي عُبَيْدَةَ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَعْدٍ الطَّائِيِّ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "حَدَّثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثًا ذَكَرَ فِيهِ جِبْرِيلَ وَمِيكَالَ، فَقَالَ جِبْرَائِلَ، وَمِيكَائِلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ خَلَفٌ: مُنْذُ أَرْبَعِينَ سَنَةً لَمْ أَرْفَعِ الْقَلَمَ عَنْ كِتَابَةِ الْحُرُوفِ مَا أَعْيَانِي شَيْءٌ مَا أَعْيَانِي جِبْرَائِلُ، وَمِيكَائِلُ.

دابوسعید خدری (رض) روایت دې فرمائی چه رسول الله یوداسې حدیث بیان کړو چه دجبرائل اومیکائل علیهما السلام ذکر ئې په کښې اوکړو نبی ﷺ اوفرمائیل جبرائل او میکائل.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَدِيثًا ذَكَرَ فِيهِ « جِبْرَايِلَ وَمِيكَالَ ». فَقَرَأَ (جِبْرَائِيلَ وَمِيكَائِيلَ)﴾: په دې دواړو لفظونو يعنی جبرائيل او ميکائيل د ابوداؤد په نسخو کښې ډير اختلاف دې، په بذل کښې د ابن رسلان نه نقل کړې دی چه ماته هيڅ نقل په دې باره کښې نه دې ملاؤ شوې چه د رسول اللهﷺ تلفظ په دې دواړو کښې څه وو او اهل عرب په دې دواړو لفظونو کښې ډير تصرف او تغير کړې دې د خپل عادت مطابق لکه چه په اسماء عجميه کښې تغير کړې دې، تردې چه په دې دواړو لفظونو کښې دیارلس لغتونه دی، خو په دې اصل چونکه لغت د قريش دې څکه چه رسول اللهﷺ قريشی دې نو د دې تقاضه دا ده چه دا لفظ جبريل وی بکسر الجيم بروزن قنديل، ﴿ فانها لغة الحجاز وهی قراءة ابن عامر وابی عمرو ونافع وحفص، وقال حسان رضي الله عنه.... ﴾

وجبريل رسول الله فينا وروح القدس ليس له الكفاء

او د ميکائيل په باره کښې هغوی ليکی چه هغه ميکال دې بالقصر سره د حذف د همزې نه په وزن د مفعال اهـ (بذل) د ابوداؤد په بعض نسخو کښې دی چه خلف وائی چه د څلويښتو کالو نه زه په کتابت د حروفو کښې مشغول يم، چرته د يو لفظ کتابت هم زه نه يم عاجز کړې څومره چه زه جبرائيل او ميکائيل عاجز کړم.

په دې ديارلسو لغتونو کښې خو دولس په حرف لام سره دی او ديارلسم لغت د لام په ځائې په نون سره دې، جبراين......

[٣٩٩٩](٢)حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَازِمٍ، قَالَ: ذُكِرَ كَيْفَ قِرَاءَةُ جِبْرَائِلَ، وَمِيكَائِلَ عِنْدَ الْأَعْمَشِ، فَحَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ سَعْدٍ الطَّائِيِّ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاحِبَ الصُّورِ، فَقَالَ: عَنْ يَمِينِهِ جِبْرَائِلُ وَعَنْ يَسَارِهِ مِيكَائِلُ".

دمحمدبن حازم رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه داعمش په وړاندې ددې خبرې ذکروشو چه دجبريل اوميکائيل (عليهما السلام) قرءت څنگه دې؟ نوموړی ته اعمش دسعيد الطائي نه اوهغه دعطيه عوفي نه اوهغه دابوسعيد خدری نه حديث بيان کړو چه نبی ﷺ دهغه فرښتې ذکر وکړو دکومې سره چه شپيلۍ ورسره ده او ولاړه ده نبی ﷺ اوفرمائيل دهغې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩/٣) (ضعيف الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٠٥) (ضعيف)

[٤٠٠٠] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ مَعْمَرٌ: وَرُبَّمَا ذَكَرَ ابْنَ الْمُسَيِّبِ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ يَقْرَءُونَ: مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ سورة الفاتحة آية "وَأَوَّلُ مَنْ قَرَأَهَا: مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ. مَرْوَانُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ وَالزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ.

سعید بن مسیب فرمائی چه رسول کریم ﷺ او ابوبکرصدیق ، عمرفاروق او عثمان رضی الله عنهم به «مالک یوم الدین» تلاوت کولو اومروان د ټولونه مخکښې «مالک یوم الدین» لوستلی وو امام ابوداؤد فرمائی زهري په واسطه دانس په واسطه دسالم دهغه دپلار نه نقل کړې دي ، اوداحدیث مرسل ګنړل زیات مناسب دي.

**قوله:** ﴿ كَانَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ يَقْرَءُونَ (مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ) وَأَوَّلُ مَنْ قَرَأَهَا (مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ) مَرْوَانُ ﴾

يعنی دې ټولو حضراتو خو ﴿ مالک یوم الدین ﴾ په الف سره لوستلو او د ټولو نه اول چه کوم سړی لفظ ﴿ ملک ﴾ بغير د الف نه لوستلي دي هغه مروان دي.

په دې باندې بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه نقل کړې دی چه د دې نه د مطلق قراءت نفی نه ده مراد ، قراءت خو دا قديم دي او متواتر دي، دلته مراد دا دې چه د جماعت په مانځه کښې دغه شان د ټولو نه اول مروان لوستل کړې دی.

والحديث اخرجه الترمذي تعليقا، قاله المنذري

[٤٠٠١] (٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى الْأُمَوِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ: "أَنَّهَا ذَكَرَتْ أَوْ كَلِمَةً غَيْرَهَا قِرَاءَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ. يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ آيَةً آيَةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ: الْقِرَاءَةُ الْقَدِيمَةُ: مَالِكِ يَوْمِ

دام سلمه رضی الله عنها نه روایت دي فرمائی چه نبی کریم به سورة فاتحه داسې لوستله : «بسم الله الرحمن الرحيم *الحمدلله رب العالمين*الرحمن الرحيم*ملك يوم الدين» څلورم ایت تر آخره پورې (يعنی نبی علیه السلام به هريو ايت جدا جدا تلاوت کولو اويو به ئې دبل سره نه يوځائې کولو).

﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّهَا ذَكَرَتْ – – قِرَاءَةَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– (بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ) يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ آيَةً آيَةً ﴾

د ام سلمه رضی الله عنها د دې روایت نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ به د سورة الفاتحه د هر آيت په وخت وقف فرمائيلو.

دا روایت په جامع ترمذی کښې په دوه طرقو سره روایت کړې شوې دي ﴿ ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ ﴾ او دويم طريق داسې دي ﴿ ليث بن سعد عن ابن ابی مليكة عن يعلى بن مملک عن ام سلمة ﴾ امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿ وحديث الليث اصح ﴾... په دواړو

(١): تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)
(٢): سنن الترمذي/القراء ات سورة الفاتحة ١ (٢٩٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٨١٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٠٢، ٣٢٣) (صحيح)

روایتونو کښې فرق دا دې چه د رسول الله ﷺ د قراءت تشریح په هر آیت باندې د وقف کولو سره نشته، او د ابن جریج په روایت د هغې کیفیت ذکر دې، د ابن جریج روایت منقطع او د لیث روایت متصل دې لهذا هم دې ته به ترجیح ورکولې شی، د دې نور تفصیل په الدر المنضود د دویم جلد په آخر کښې تیر شوې دې هغې ته دې رجوع اوکړې شی.

[٤٠٠٢]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَعُبَيْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: كُنْتُ رَدِيفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى حِمَارٍ وَالشَّمْسُ عِنْدَ غُرُوبِهَا، فَقَالَ: "هَلْ تَدْرِي أَيْنَ تَغْرُبُ هَذِهِ؟ قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: فَإِنَّهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَامِيَةٍ".

دابوذر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه په یو خر باندې په نبی ﷺ پسې شاته سور وم په دې وخت کښې دماښام نمر پریوتو اونبی ﷺ اوفرمائیل ایا تاته معلومه ده چه دانمر چرته پنا کیږي؟ ما عرض اوکړو الله اودهغه رسول ښه پوهیږي نبی ﷺ اوفرمائیل : «فإنها تغرب في عين حامية» دحمئة په ځائې باندې ئې حامية ولوستلو.

[٤٠٠٣]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ عَطَاءٍ، أَنَّ مَوْلًى لِابْنِ الْأَسْقَعِ رَجُلَ صِدْقٍ أَخْبَرَهُ، عَنِ ابْنِ الْأَسْقَعِ أَنَّهُ سَمِعَهُ، يَقُولُ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَهُمْ فِي صُفَّةِ الْمُهَاجِرِينَ فَسَأَلَهُ إِنْسَانٌ أَيُّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ أَعْظَمُ؟ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ".

دواثلة بن اسقع نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم و دمهاجرینو صفه ته تشریف راوړو او یو کس ورنه تپوس اوکړو چه اې دالله رسوله په قران کریم کښې کوم یو ایت ډیر لوی دې (یعنی دمرتبې اوداثر په اعتبارسره) نبی ﷺ اوفر مائیل : « («الله لا إله إلا هو الحی القیوم لا تأخذه سنة ولا نوم») » (نه الا هو باندې ئې وقف ونکړو).

﴿ اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ ﴾ دا حدیث مصنف رحمه الله په دې وجه راوړلې دې چه په القیوم کښې قراءتونه مختلف دی، پس په بذل کښې دی ﴿ وفيه قراءتان غير متواترتين وهي القيام والقيم قال البيضاوى وقرئ القيوم القيام والقيم اهـ ﴾

[٤٠٠٤]([3]) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ الْمِنْقَرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ "أَنَّهُ قَرَأَ: هَيْتَ لَكَ سورة يوسف آية ٢٣، فَقَالَ شَقِيقٌ: إِنَّا نَقْرَؤُهَا: هِئْتُ لَكَ يَعْنِي، فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: أَقْرَؤُهَا كَمَا عُلِّمْتُ أَحَبُّ إِلَيَّ".

دابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه هغه په سورة یوسف هیت لک ولوستلو شفیق اووئیل چه مونږ خوبه هیئت لک لوستل ابن مسعود به او فرمائیل ما چه څنګه زده کړې دې

---

[1]: صحيح البخاري/بدء الخلق ٤ (٣١٩٩)، وتفسير القرآن ٣٦ (٤٨٠٣)، والتوحيد ٢٢ (٧٤٢٤)، صحيح مسلم/الإيمان ٧٢ (١٥٩)، سنن الترمذي/الفتن ٢٢ (٢١٨٦)، تفسير القرآن سورة يس ٣٧ (٣٢٢٧)، (تحفة الأشراف: ١١٩٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٥/٥، ١٥٢، ١٥٨، ع ١٦٥، ١٧٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٥٦) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/تفسير القرآن ٤ (٤٦٩٢)، (تحفة الأشراف: ٩٢٦٥) (صحيح)

هم هغسي مې خوښ دي۔

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ قَرَأَ (هَيْتَ لَكَ) فَقَالَ شَقِيقٌ إِنَّا نَقْرَؤُهَا (هِئْتُ لَكَ) يَعْنِي فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ أَقْرَؤُهَا كَمَا عُلِّمْتُ أَحَبُّ إِلَيَّ ﴾

په بعض نسخو کښې هم دغه شان ده د لفظ يعني په زيادت سره، په ظاهر کښې دا لفظ زائد او بې محل دې، که دا صحيح اومنلې شي نو بيا به دا وئيلې شي چه راوی سره بعينه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه الفاظ محفوظ نه وو په دې وجه هغوی دا لفظ زياتي کړو،

دا لفظ ﴿ هيت ﴾ په سورة يوسف کښې دې، ﴿ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ الاية ﴾ په دې کښې پنځه قراتونه معروف دی، ﴿ هيتَ، هَيتُ، هِيْتَ ﴾ دا درې واړه په يا بعد الهاء سره دی. او ﴿هِئْتُ، هِئتَ ﴾ بالهمزة بعد الهاء، په بذل کښې ئې د غيث النفع في القراءات السبع نه نقل کړې دی:

﴿ وللعرب فيها لغات اجودها فتح الهاء والتاء وهی قراءة العامة وقال الطبری : وهی قراءة النبی ﷺ﴾

او دا د اسماء افعال نه دې لکه ﴿ رويد ﴾ او ﴿ صه ﴾ د دې معنی د ﴿ هلم ﴾ راځئ (بذل) او د حضرت شيخ په الابواب والتراجم ٥/٦٧ کښې دی : وقد بسط القسطلانی الكلام فی قرات لفظ هيت فذكر تسع قراءات اربعة منها شاذة وخمسة معروفة، وقال صاحب الجمل بعد ذكر اختلاف القراءات فی هذا اللفظ : فالقراءات السبعية سبعة وهذه كلها لغات فی هذه الكلمة وهی فی كلها اسم فعل بمعنی هلم ای اقبل وتعال اهـ والحديث اخرجه البخاری بنحوه، قاله المنذری.

[٤٠٠٥] (١) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، قَالَ: قِيلَ لِعَبْدِ اللَّهِ: "إِنَّ أُنَاسًا يَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ: وَقَالَتْ هِيتَ لَكَ، فَقَالَ: إِنِّي أَقْرَأُ كَمَا عُلِّمْتُ أَحَبُّ إِلَيَّ: وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ سورة يوسف آية ٢٣".

دشقيق نه روايت دې فرمائی چه خلقو عبدالله بن مسعود ته اووئيل چه بعضې خلق (وقالت هيت لک) وائی، هغه اووئيل زه ئې داسې لولم څنګه چه ماته زده کړې شوې دې او زما همدا خوښ دې۔

[٤٠٠٦] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: لِبَنِي إِسْرَائِيلَ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ تُغْفَرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ".

دابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم اوفرمائيل چه الله تعالی بنی اسرائيلوته فرمائيلی دی : «ادخلوا الباب سجدا وقولوا حطة تغفر لكم خطاياكم» يعنی نبی عليه السلام دنغفربه ځائې باندې تغفر ولوستل.

﴿قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لِبَنِى إِسْرَائِيلَ (ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ تُغْفَرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ) » ﴾ په دې لفظ کښې درې قراءتونه دی، ﴿ تُغفر، يُغفر، نَغفِر ﴾ (بذل) والاولى قراءة ابن عامر والثانية قراءة نافع، والثالثة للباقين. (بذل)

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٢٦٥) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٨٠) (حسن صحيح)

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي من حديث همام بن منبه عن ابي هريرة رضي الله عنه، قاله المنذري.

[٤٠٠٧](1) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ.

هشام په خپل سند سره ددې روايت په شان روايت بيان کړې دې.

[٤٠٠٨](2) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ: أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: "نَزَلَ الْوَحْيُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَ عَلَيْنَا: سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَعْنِي مُخَفَّفَةً حَتَّى أَتَى عَلَى هَذِهِ الآيَاتِ.

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه په نبی کریم ﷺ باندې وحي نازله شوه او مونږ ته ئې واوروله: «سورة أنزلناها وفرضناها» يعنی په فرضنا کښې په تخفيف دن سره امام ابوداؤد فرمائي چه نبی ﷺ دالفظ په تخفيف دراء سره تردې چه دې ايتونوته ورسيدو.

**قوله:** ﴿عن عَائِشَةَ – رضى الله عنها – قَالَتْ نَزَلَ الْوَحْيُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَقَرَأَ عَلَيْنَا (سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا). قَالَ أَبُو دَاوُدَ يَعْنِي مُخَفَّفَةً﴾

يعنی په ﴿ فرضنا ﴾ کښې د راء په تخفيف سره، او د دې مقابله کښې تشديد د راء دې، په بذل کښې دی: ﴿ قراء ابن كثير وابو عمرو "وفرضناها" بتشديد الراء والباقون بتخفيفها ﴾ اه

**د قراءت سبعه امامان او د هغوی د مشهورو راويانو مختصر تعارف:**

په ذهن کښې راغلل چه اوس په آخير مقام کښې د مناسبت د وجې نه د قراءت سبعه مشهوره متواتره د ائمه نومونه ذکر کړې شی، علماء قراءت په دې امامانو کښې دوه راويان هم ذکر کړې دی:

۱: **امام نافع المدنی:** دا نافع بن عبدالرحمن ليثی دې د هغې راوی عيسی بن مينا مدنی دې چه د هغه لقب قالون دې، او دويم راوی ابوسعيد عثمان بن سعيد مصری قرشی دې، د چا لقب چه ورش دې.

۲: **امام ابن کثير مکی:** د هغوی نوم ابومعبد عبدالله بن کثير کنانی فارسی الاصل چه پيدائش ئې په مکه مکرمه کښې شوې دې، د هغوی يو راوی ابوالحسن احمد بن محمد مخزومی ولاء مکی دې او دويم راوی ئې ابو عمر محمد بن عبدالرحمن مخزومی مکی دې چه د هغوی لقب قنبل دې.

۳: **ابوعمرو بصری:** د دوی يو راوی ابو عمر حفص بن عمرازدی دوری ضرير دې او دويم راوی ابوشعيب صالح بن زياد رقی دې.

۴: امام ابن عامر شامی عبدالله بن عامر يحصبی امام جامع دمشق دې، د دوی يو راوی ابوالوليد هشام بن عمار خطيب جامع دمشق، او دويم راوی ئې ابو عمرو عبدالله بن احمد فهری قرشی جامع دمشق دې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٠ ٤١) (حسن صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٧٨) (صحيح الإسناد)

۵: امام عاصم کوفی ابوبکر عاصم بن ابوالنجود اسدی ولاء کوفی د هغوی یو راوی ابوبکر شعبه ابن عیاش حناط او دویم راوی ابو حفص بن سلیمان دې، د حفص په باره کښې لیکلې دی چه اګر چه قراءت سبعه بلکه عشره متواتره دی او د سبعه خلاف خو کله چا یو حرف هم نه دې وئیلې بلکه د حرمین او بصره قراءتونه خالص د قرشي کیدو د وجې نه یو خاص امتیاز هم دې خو دا د الله ورکړې قبولیت دې چه د سوونو کلونو نه په مکاتب اومدارس کښې صرف دحفص روایت لوستلې شی،اود زمکې په سر باندې په زرو حافظانو کښې تقریبا یوکم زروکسانو ته صرف هم دا روایت یاد دې او داسې به کیدې شی چه یوهم نه وی چا چه دا روایت نه وی لوستلې، ذلک فضل الله یوتیه من یشاء......

۶: امام حمزة کوفی ابوعماره حمزة بن حبیب الزیات د هغوی یو راوی ابو محمد حلف ابن هشام او دویم راوی ابو عیسی خلاد بن خالد صیرفی کوفی دې،

۷: امام ابوالحسن علی بن حمزة الکسائی نحوی کوفی دا د امام محمد بن الحسن الشیبانی د ترور خوئې وو. د هغوی یو راوی ابوالحارث لیث بن خالد نحوی او دویم راوی ابو عمر حفص ابن عمر دې خوک چه د ابوعمرو بصری هم راوی دې. (مأخوذ از شرح سبعه قراءات مولفه قاری محی الاسلام پانی پتی)

# كِتَابُ الْحَمَّامِ

## د غسل خانې د احکامو بیان

**د دې کتاب مناسبت د ماقبل سره :**

دا کتاب مقدمه او تمهید دې د راروان کتاب اللباس دپاره ځکه چه جامه او کپړې صفا او پاک انسان بدلوی د حمام د دخول او غسل نه پس، لهذا په کتاب اللباس او کتاب الحروف کښې مناسبت کتل دی، پس هغه ظاهر دې ځکه چه حروف او الفاظ د معانی دپاره په منزله د لباس دی، فلما فرغ المصنف من احد قسمی اللباس شرع فی الاخر....

## بَابُ الدُّخُولِ فِي الْحَمَّامِ

### غسل خانې ته د داخلیدو بیان

[۴۰۰۹] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ أَبِي عُذْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ دُخُولِ الْحَمَّامَاتِ ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ أَنْ يَدْخُلُوهَا فِي الْمَيَازِرِ".

دعائشه ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ حمامونوته دتلونه منع فرمائلې وه او بیا ئې صرف سړوته په داسې حال کښې اجازت ورکړو چه لنګونه به ئې وهلې وي.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ دُخُولِ الْحَمَّامَاتِ ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ أَنْ يَدْخُلُوهَا فِى الْمَيَازِرِ ﴾

(۱): سنن الترمذي/الأدب ۴۳ (۲۸۰۲)، سنن ابن ماجه/الأدب ۳۸ (۳۷۴۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۹۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۳۲، ۱۳۹، ۱۷۹) (ضعيف)

دا روایت مختصر دې د دې نه روستو روایت مفصل دې، روایتونه دواړه د عائشې ﷺ نه روایت دی، په روایت مفصله کښې دی : ﴿ دَخَلَ نِسْوَةٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ عَلَى عَائِشَةَ – رضي الله عنها – فَقَالَتْ مِمَّنْ أَنْتُنَّ قُلْنَ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ. قَالَتْ لَعَلَّكُنَّ مِنَ الْكُورَةِ الَّتِي تَدْخُلُ نِسَاؤُهَا الْحَمَّامَاتِ قُلْنَ نَعَمْ الخ ﴾

[۴۰۱۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ جَمِيعًا، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، قَالَ: دَخَلَ نِسْوَةٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَقَالَتْ: مِمَّنْ أَنْتُنَّ؟ قُلْنَ: مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، قَالَتْ: لَعَلَّكُنَّ مِنَ الْكُورَةِ الَّتِي تَدْخُلُ نِسَاؤُهَا الْحَمَّامَاتِ؟ قُلْنَ: نَعَمْ، قَالَتْ: أَمَا إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَا مِنِ امْرَأَةٍ تَخْلَعُ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِهَا إِلَّا هَتَكَتْ مَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثُ جَرِيرٍ وَهُوَ أَتَمُّ، وَلَمْ يَذْكُرْ جَرِيرٌ أَبَا الْمَلِيحِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابو الملیح نه روایت دې فرمائی چه دشام اوسیدونکې یوڅو زنانه ام المومنین عائشې ﷺ ته راغلې هغې ورته ووئیل تاسوڅوک یئ؟ دوی ورته ووئیل چه دشام دعلاقې والایو، عائشې ﷺ ورته ووئیل کیدې شي چه تاسو دهغه خلقونه یئ چه زنانه ئې دغسل کولو دپاره حمامونوته ځي دوی ووئیل هوام المومنین ورته ووئیل چه ماد نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې. هره یوه زنانه چه دخپل کور نه علاوه په بل ځائې کښې جامې اوکاږي نوهغې هغه پرده آوشلوله کومه چه ددې او د الله تعالی په مینځ کښې ده. امام ابوداؤد فرمائی چه دا دجریر حدیث دې اوجریر په دې کښې دابو الملیح ذکرنه دې کړې اوداسې ئې فرمائیلي دي چه رسول الله فرمائیلي دي.

## مضمون الحدیث :

یعنی یو ځل د شام څه زنانه د عائشې صدیقې ﷺ په خدمت کښې حاضرې شوې نو هغوی ترې نه تپوس اوکړو چه تاسو د کوم ځائې ئې؟ هغوی اووې مونږ اهل شام یو. عائشې ﷺ اوفرمائیل چه کیدې شی تاسو د شام د هغه علاقې یئ چرته چه زنانه په حماماتو کښې داخلیږي، یعنی د غسل دپاره. هغوی اووې او جی..... په دې باندې عائشې ﷺ اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی چه نه ده یو زنانه چه د خپل کور نه علاوه بل ځائې خپلې جامې اوباسی مګر دا چه هغه ستر او پرده شلوی کومه الله پاک د هغې او خپل مینځ کښې قائم فرمائیلې ده یعنی د انسان او ګناهونو ترمینځه چه الله پاک کومه پرده او بندیز جوړ کړې دې هغې لره هغه ماتوی یعنی د حکم خلاف ورزی کوی.

د باب د اول روایت مضمون دا دې چه په شروع کښې رسول الله ﷺ د دخول حمام نه مطلقا منع فرمائیلې وه د دې نه پس ئې صرف د رجال دپاره د پردې او لنګ سره د داخلیدو اجازت اوفرمائیلو.

[1]: وحديث محمد بن قدامة قد تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٠٤، ١٦٠٩٠)، وقد أخرجه: حديث محمد بن مثني: سنن الترمذي/الأدب ٤٣ (٢٨٠٣)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٨ (٣٧٥٠)، مسند احمد (٦/٤١، ١٩٩)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢٣ (٢٦٩٣) (صحيح)

معلومه شوه چه د سړو په حق کښې نهي منسوخ ده خو د زنانو په حق کښې باقي ده په بعض لويو ښهرونو کښې د حماماتو انتظام وي چه د هغې په عربو کښې دستور نه وو هم په دې وجه وړاندې حديث د ابن عمر رضي الله عنهما کښې راځي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي وو :

﴿إِنَّهَا سَتُفْتَحُ لَكُمْ أَرْضُ الْعَجَمِ وَسَتَجِدُونَ فِيهَا بُيُوتًا يُقَالُ لَهَا الْحَمَّامَاتُ فَلاَ يَدْخُلَنَّهَا الرِّجَالُ إِلاَّ بِالأُزُرِ وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ إِلاَّ مَرِيضَةً أَوْ نُفَسَاءَ ﴾ يعنې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه مسلمانان به د عجمو زمکه فتح کړي او هلته به داسې کورونه او حمامات بيا مومي په هغې کښې دې سړي بغير د لنګ نه بالکل داخل نه شي، او زنانه هلته د تلو نه منع کړئ مګر دا چه هغه مريضه وي يا د حيض او نفاس والا وي.

د دې حماماتو د دخول نه په دې وجه منع اوفرمائيلې شوه چه هلته د عورت ښکاره کيدل او بې پردګي وي، او د سړو او ښځو اختلاط وي. حديثا عائشة رضي الله عنها اخرجهما الترمذي وابن ماجه، وحديث عبدالله بن عمر اخرجه ابن ماجه قاله المنذري.

[٤٠١١](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّهَا سَتُفْتَحُ لَكُمْ أَرْضُ الْعَجَمِ وَسَتَجِدُونَ فِيهَا بُيُوتًا يُقَالُ لَهَا الْحَمَّامَاتُ فَلَا يَدْخُلَنَّهَا الرِّجَالُ إِلَّا بِالْأُزُرِ وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ إِلَّا مَرِيضَةً أَوْ نُفَسَاءَ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: نزدې ده چه تاسو به د عجمو علاقې فتح کړئ او هلته به تاسو د حمامونو په نوم باندې آبادۍ ووينئ خبردار سړي دې ورته بغير د لنګ نه نه داخليږي او خپلې زنانه هلته د تلو نه منع کړي مګر چه کومه زنانه په نفاس کښې وي يا مريضه وي.

## باب النَّهْيِ عَنِ التَّعَرِّي(٢)

### د بربنډ لامبلو د مما نعت بيان

[٤٠١٢](٣)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ الْعَرْزَمِيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ يَعْلَى: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ بِلَا إِزَارٍ، فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ حَيِيٌّ سِتِّيرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالسَّتْرَ، فَإِذَا اغْتَسَلَ أَحَدُكُمْ، فَلْيَسْتَتِرْ".

د يعلى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي کريم ﷺ يو داسې کس اوليدو چه بغير جانګې ئې غسل کولونو په دې وخت کښې منبرته وختلو د الله تعالى حمد او ثناء ئې بيان کړه او بيائې اوفرمائيل يقينا الله تعالى ډير ژوندي او پرده پوش دې ستر او حياء خوښوي. کله چه په تاسو کښې يو کس غسل کوي نو ځان ته دې پرده وکړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ يَعْلَى أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رَأَى رَجُلاً يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ

(١): سنن ابن ماجه/الأدب ٣٨ (٣٧٤٨)، (تحفة الأشراف: ٨٨٧٧) (ضعيف)

(٢) په دې تعرى سره مقصود بالذات هغه تعرى ده کومه چه عند الغسل وي هم په دې وجه مصنف دا باب په کتاب الحمام کښې راوړي دې په ځائې د کتاب اللباس. والله تعالى اعلم.

(٣): سنن النسائي/الغسل والتيمم ٧ (٤٠٤)، (تحفة الأشراف: ١١٨٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٢٤) (صحيح)

فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ – « إِنَّ اللَّهَ حَيِيٌّ سِتِّيرٌ » دا لفظ حي په يوې ياء سره نه دې هغه خو د حياة نه اخستلې شوې دې او دا په دوه ياء ګانو سره د حياء نه ماخوذ دې په وزن د فعيل، زمونږ په نسخه کښې هم دغه شان دې ﴿ يغتسل بالبراز ﴾ او په بعض کښې دی ﴿ يغتسل بالبراز بلا ازار ﴾ او په بعض کښې ﴿ يغتسل بالازار ﴾ دې.

**شرح الحديث وفقهه :**

رسول اللهﷺ يو سړې اوليدو چه په ښکاره ځائې کښې ئې بغير د ازار او پردې نه غسل کولو، رسول اللهﷺ هغه ته مخامخ خو څه او نه فرمائيل چه د رسول اللهﷺ عادت مبارک مخامخ د رټلو نه وو بلکه د عام تقرير او بيان په انداز کښې به رسول اللهﷺ خبردارې کولو، پس دلته هم رسول اللهﷺ هم دغه شان اوکړل چه منبر ته ئې تشريف يوړو او د خطبې نه پس ئې په دې باندې تنبيه اوفرمائيله او وې فرمائيل چه بيشکه الله پاک حياء کونکې دې او د بل نه هم حياء او پرده خوښوی، پس کوم سړې چه په تاسو کښې غسل کوی نو هغه لره پرده اختيارول پکار دی.

په بذل المجهود کښې ليکلې دی چه که غسل د خلقو مخکښې کوی نو بيا خو ستر واجب دې او که ځانله وی نو بيا هغه وخت مستحب دې، (١) ونقل عياض جواز الاغتسال عريانا في الخلوة عند جماهير العلماء لحديث البخاری ان موسى اغتسل عريانا وان ايوب كان يغتسل عريانا اه.... په زمانه د جاهليت کښې پرده بالکل وه نه پس د عورت ښکاره کولو سره د استنجاء ذکر په کتاب الطهارة کښې تير شوې دې، ﴿ لا يخرج الرجلان يضربان الغائط كاشفين عن عورتهما الحديث ﴾ والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذری...

[٤٠١٣](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي خَلَفٍ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الْأَوَّلُ أَتَمُّ.

صفوان بن يعلى دخپل پلارنه اوهغه دنبیﷺ نه دا روايت بيان کړې دې. امام ابوداؤد فرمائی چه اولنې ايت ډيرکامل دې.

[٤٠١٤](٣) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ زُرْعَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جَرْهَدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ جَرْهَدٌ هَذَا مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ، قَالَ: جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَنَا وَفَخِذِي مُنْكَشِفَةٌ، فَقَالَ: "أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ".

(١) د راتلونکی باب په آخری حديث کښې راځی ﴿ قلت يا رسول اللهﷺ اذا كان احدنا خاليا؟ قال الله احق ان يستحي من الناس، په دې باندې د شيخ په حاشيه کښې دی چه شامی د خلوت په حالت کښې هم ستر واجب کړې دې يعنی بغير د حاجت نه بربنډ کيدل جائز نه دی، او په شرح اقناع کښې د استحباب تصريح کړې ده خو امام نووی رحمه الله فرمائی چه الاصح الوجوب.....)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٨٤٠) (حسن)

(٣): صحيح البخاري/ الصلاة ١٢ (٣٧١ تعليقًا)، سنن الترمذي/الاستئذان ٤٠ (٢٧٩٥)، (تحفة الأشراف: ٣٢٠٦)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الاستئذان ٢٢ (٢٦٩٢) (صحيح)

عبد الرحمن بن جرهد د خپل پلار نه روایت نقل کوي او جرهد رضي الله عنه داصحاب صفه والادي فرمائی چه یوځل نبی علیه السلام زمونږ سره کیناستو او زما پتون بربنډوو، راته ئې اوفرمائیل ایاتاته معلومه نه ده چه ورون عورت وي؟

﴿جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عِنْدَنَا وَفَخِذِى مُنْكَشِفَةٌ فَقَالَ « أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ؟ ﴾

د ائمه اربعه مذهب هم دا دې د هغوی په نزد فخذ په عورت کښې داخل دې په دې کښې د اهل ظواهر اختلاف دې د هغوی په نزد د عورت مصداق صرف سوأتین دی یعنی قبل او دبر، دا مسئله یعنی حد العورة کښې اختلاف العلماء په دویم جلد ﴿باب جماع اثواب ما یصلی فیه﴾ کښې تیر شوې دې، هلته دا هم تیر شوې دی چه د امام مالک رحمه الله یو قول دې چه فخذین په عورت کښې داخل نه دی.

د جرهد د دې حدیث په باره کښې امام ترمذی رحمه الله فرمائی: حدیث حسن ما اری اسناده بمتصل... او د دې په سند کښې اختلاف او اضطراب هم دې کوم چه په بذل کښې ذکر دې، او په صحیح بخاری کښې دی امام بخاری رحمه الله فرمائی: حدیث انس اسند وحدیث جرهد احوط... د حدیث انس رضي الله عنه نه مراد دا دې: ﴿حسر النبی صلی الله علیه وسلم عن فخذه﴾ ابن رسلان فرمائی: ﴿و معنی قوله ((اسند))ای احسن اسنادا ومعنی قوله ((احوط)) اقرب الی التقوی والجواب عن حدیث انس انه محمول علی انه انکشف فخذه بغیر اختیاره وعلمه وقصده وانما انکشف من اسراع الدابة ونحوه فلا یستلزم ذلک ان لا تکون الفخذ عورة﴾ (من البذل)

[٤٠١٥](1) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أُخْبِرْتُ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَكْشِفْ فَخِذَكَ وَلَا تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ فِيهِ نَكَارَةٌ.

د علی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی خپل ورون مه بربنډه وه اونه به دژوندي اونه به دمړي ورون ته ګوري، امام ابوداؤد فرمائی چه په دې روایت کښې نکارت دې.

﴿عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تَكْشِفْ فَخِذَكَ وَلاَ تَنْظُرْ إِلَى فَخِذِ حَيٍّ وَلاَ مَيِّتٍ ». قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا الْحَدِيثُ فِيهِ نَكَارَةٌ ﴾

د نکارة په ظاهر کښې وجه دا ده چه په دې سند کښې د حبیب او عاصم ترمینځه انقطاع ده، د هغوی د هغوی نه سماع نه ده ثابت اګر چه رجال د اسناد ثقه دی، په بذل کښې د ابن رسلان نه دا جواب نقل کړې دې: ﴿وقد زال الانقطاع بواسطة الحسن بن ذکوان کما قال ابوحاتم. او عمرو بن خالد کما ذکره البزار، وقد اخرج لهما البخاری فی الصحیح، ولم یبق فیه نکارة ولا قدح اهـ﴾ والحدیث اخرجه ابن ماجه قاله المنذری...

(1): انظر حدیث رقم:(٣١٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٠١٣٣) (ضعیف جدا)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّعَرِّي

## د بربند تلو بیان

دلته د تعری نه مراد بې پرده کیدل دی کوم چه بالارادة وی لکه چه د حدیث الباب نه معلومیږی چه د هغې مضمون دا دې:

[٤٠١٦]( ) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأُمَوِيُّ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، قَالَ: حَمَلْتُ حَجَرًا ثَقِيلًا، فَبَيْنَا أَمْشِي، فَسَقَطَ عَنِّي ثَوْبِي فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُذْ عَلَيْكَ ثَوْبَكَ وَلَا تَمْشُوا عُرَاةً".

دمسور بن مخرمه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما یوځل یوه لوه ګټه وړله نوزما لنګ کولا وشو نبی علیه السلام راته اوفرمائیل جامې دې راپورته کړه اوبربند مه ګرځئ.

مسور بن مخرمه رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل ما یو درونډ کانړې اوړلو اتفاقا زما لنګ پرانستلې شو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه خپله جامه برابره کړه: ﴿ خُذْ عَلَيْكَ ثَوْبَكَ وَلاَ تَمْشُوا عُرَاةً ﴾

والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذري

[٤٠١٧]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى نَحْوَهُ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَوْرَاتُنَا مَا نَأْتِي مِنْهَا وَمَا نَذَرُ؟ قَالَ: احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذَا كَانَ الْقَوْمُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ، قَالَ: إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ لَا يَرَيَنَّهَا أَحَدٌ فَلَا يَرَيَنَّهَا، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِذَا كَانَ أَحَدُنَا خَالِيًا، قَالَ: اللَّهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ مِنَ النَّاسِ".

بهز بن حکیم دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه ما عرض وکړواي دالله رسوله مونږ خپل عورتونه دچانه پټ وساتو اودچانه ئې دپټولو کوشش وتکړوانبی علیه السلام اوفرمائیل خپل عورتونه به پټوئ مګردخپلو ښځونه اودخپلو وینځونه ، مابیاعرض وکړو اې دالله رسوله کله چه خلق مخلوط وي نوبیاڅه حکم دي نبی علیه السلام اوفرمائیل چه ترڅومره حده پورې ممکن وي دسترپوشی اهتمام کوه دې وائی چه مابیاعرض وکړو چه اې دالله رسوله کله چه یوکس یواځې وي نوبیاڅه حکم دي نبی علیه السلام اوفرمائیل چه دخلقو په نسبت الله تعالی زیات حقداردي چه حیاء ورنه وکړې شي.

**قوله:** ﴿ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ عَوْرَاتُنَا [3] مَا نَأْتِي مِنْهَا وَمَا نَذَرُ

[1]: صحيح مسلم /الحيض ١٩ (٣٤١)، (تحفة الأشراف: ١١٢٦٦) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/ الطهارة قبيل حديث (٢٧٨ تعليقًا)، سنن الترمذي /الأدب ٣٩ (٢٧٩٤)، سنن ابن ماجه /النكاح ٢٨ (١٩٢٠)، (تحفة الأشراف: ١١٣٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣، ٤) (حسن)

[3]: ښځوته د راتګ نه مراد دی ښځوسره دښځو معامله کول وهو الستر، دحدیث شرح داده چه سائل د حضورپاک (ص) نه تپوس اوکړو چه د بدن کومې حصې ته عرفا اوشرعا عورت (ستر) وائی دکوم ښکاره کیدل چه حیاء اوشرم ګنړلې کیږی آیا دهغې څه حصه داسې هم ده چه دهغې ستر نه کول جائز وی؟ په دې باندې حضور پاک (ص) اوفرمائیل نا ، بلکه دخپل پوره عورت ستر کوه د هرچا نه، سوا د خپلې ښځې او مملوکه وینځې نه، معلومه شوه چه دبدن څومره حصه په عورت کښې داخله ده دهغې هیڅ حصه د عورت دحکم نه یعنې د ستر نه مستثنی نه ده بلکه دټول ستر کول ضروری دی، سوا دهغې دوه کسانو نه دکومې استثنی چه په حدیث کښې مذکورده (یعنی ښځه او وینځه) د زیاتی غور نه پس دحدیث شریف دا تشریح اوکړې شوه لله الحمد والمنة.

قَالَ « اخْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلاَّ مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ » عورات جمع د عورت ده، د بدن هغه حصه چه د هغې پټول ضروري دي كوم ته چه زمونږ په ژبه كښې ستر وائي نو هغه صحابي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه آيا ټول ستر لره پټول ضروري دي يا كه بعض پريخودلې هم شو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل د ټولو نه خپل پوره ستر پټوئ سوا د خپلې ښځې نه او د وينځې نه...

[٤٠١٨] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى عُرْيَةِ الرَّجُلِ وَلَا الْمَرْأَةُ إِلَى عُرْيَةِ الْمَرْأَةِ، وَلَا يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ وَلَا تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي ثَوْبٍ".

د ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي يو نارينه به دبل نارينه عورت ته نه ګوري اونه به يوه ښځه دبې ښځې عورت ته ګوري او په يوه جامه بستره كښې به يو نارينه دبل نارينه سره نه يوځائې كيږي اونه به يوه ښځه دبلې ښځې سره په يوه بستره كښې يوځائې كيږي.

**قوله:** ﴿ لاَ يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى عُرْيَةِ [٢] الرَّجُلِ وَلاَ الْمَرْأَةُ إِلَى عُرْيَةِ الْمَرْأَةِ ﴾

## شرح الحديث:

چه يو سړې دې د بل سړي ښكاره ستر نه ګوري او هم دغه شان زنانه هم ﴿ لا يفضي الرجل الى الرجل فى ثوب الخ ﴾ په اول جمله كښې د نظر حكم ذكر وو او په دې كښې د مس يعنى په يو جامه كښې دې دوه سړي بربنډ يو ځائې نه سملي چه د بدن سره بدن مس كيږي، او هم دغه شان دې دوه زنانه يو جامه اغوستلو سره داسې نه سملي، ځكه چه هر كله ستر ته كتل جائز نه دى نو د هغې مس په طريق اولى ناجائز دى او دا مس البدن بالبدن.... اګركه د بدن د هغه حصې سره وي كومه چه په ستر كښې داخله ده نو مكروه تحريمي دې، او كه په هغه حصه كښې وي كوم چه غير ستر دې نو هغه مكروه تنزيهى دې، د عدم خوف د فتنې په صورت كښې ګيني په دواړو كښې مكروه تحريمي دې. (بذل) د ابواب المساجد په آخير كښې ﴿ مروا اولادكم بالصلوة اذا بلغوا سبعا ﴾ كښې تير شوې دى ﴿ وفرقوا بينهم فى المضاجع ﴾ د دې شرح دې هم اوكتلې شي د مقام په مناسبت سره.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٤٠١٩] (٣) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ ح حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الطُّفَاوَةِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُفْضِيَنَّ رَجُلٌ إِلَى رَجُلٍ وَلَا امْرَأَةٌ إِلَى امْرَأَةٍ إِلَّا وَلَدًا، أَوْ وَالِدًا، قَالَ: وَذَكَرَ الثَّالِثَةَ، فَنَسِيتُهَا".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: يو نارينه به ديل نارينه

[1]: صحيح مسلم/الحيض ١٧ (٣٣٨)، النكاح ٢١ (١٤٣٧)، سنن الترمذي/الأدب ٣٨ (٢٧٩٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣٧ (٦٦١)، (تحفة الأشراف: ٤١١٥) (صحيح)

[2]: عرية.. په دې كښې درې لغتونه دى (عُريه، عرية، عريه) (بذل عن النووي) د بدن بربنډه حصه.

[3]: انظر حديث رقم (٢١٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٨٦) (ضعيف)

سره اونه به يوه ښځه دبلې ښځې سره څملې مګرپلار او بچې. راوی وائی چه دريم ئې هم ذکر کړوخوزمانه هيرشوې دې.

﴿عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يُفْضِيَنَّ رَجُلٌ إِلَى رَجُلٍ وَلاَ امْرَأَةٌ إِلَى امْرَأَةٍ إِلاَّ وَلَدًا أَوْ وَالِدٌ ». قَالَ وَذَكَرَ الثَّالِثَةَ فَنَسِيتُهَا ﴾ د پورته حديث شرح اوګورئ... او په بعض نسخو کښې د دې نه مخکښې دی. (آخر كتاب الحمام)

........................

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب اللباس

## دلباس داحکامو بيان

## باب مَا يَقُولُ إِذَا لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا.

### د نوی جامو داغوستلو په وخت د دعا غوښتلو بيان

[٤٠٢٠]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ إِمَّا قَمِيصًا أَوْ عِمَامَةً ثُمَّ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ كَسَوْتَنِيهِ أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِهِ وَخَيْرِ مَا صُنِعَ لَهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ"، قَالَ أَبُو نَضْرَةَ: فَكَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسَ أَحَدُهُمْ ثَوْبًا جَدِيدًا، قِيلَ لَهُ: تُبْلِي وَيُخْلِفُ اللَّهُ تَعَالَى.

دابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی کله چه به نبی عليه السلام نوې جامې واغوستلې نو د جامو نوم به ئې واخستو چه قميص ياغمامه اوبيابه ئې دا دعا وئيله : «اللَّهُمَّ لك الحمد أنت كسوتنيه أسألك من خيره وخير ما صنع له وأعوذ بك من شره وشر ما صنع له» ، ابونصره وائی دنبی عليه السلام په صحابه کرامو کښې چه به چا کله نوې جامې واغوستې نوخلقوبه ورته داسې وئيل الله دې وکړې چه ته دا جامې زړې کړې او بل لباس اغوستل درته نصيب شي.

﴿ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ إِمَّا قَمِيصًا أَوْ عِمَامَةً ثُمَّ يَقُولُ « اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ كَسَوْتَنِيهِ أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِهِ وَخَيْرِ مَا صُنِعَ لَهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ ». قَالَ أَبُو نَضْرَةَ وَكَانَ أَصْحَابُ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا لَبِسَ أَحَدُهُمْ ثَوْبًا جَدِيدًا قِيلَ لَهُ تُبْلِى وَيُخْلِفُ اللَّهُ تَعَالَى ﴾

يعنی کله چه به رسول الله صلى الله عليه وسلم نوې جامه واغوستله نو قميص يا عمامه هر څه چه وی د هغې نوم اخستلو سره به ئې دا دعاء فرمائيله. او ابونضره فرمائی چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم خپل مينځ کښې معمول وو چه کله به په هغوی کښې چا نوې کپړه واغوستله نو هغه ته به دا دعاکيدلې شوه، ﴿ تبلى ويخلف الله تعالى ﴾ الله دې اوکړی چه ته دا کپړه دې اغوستلو اغوستلو سره زړه کړی او بيا دې الله پاک د هغې په عوض کښې دويمه ورکړی.

اخرجه الترمذی والنسائی المسند منه، قاله المنذری

[1]): سنن الترمذي/اللباس ٢٩ (١٧٦٧)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٣١٠)، (تحفة الأشراف: ٤٣٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٠، ٥٠) (صحيح)

[٤٠٢١](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ.

یونس دجریرنه په دې طریقې سره ددې روایت په شان روایت بیان کړې دې.

[٤٠٢٢](٢)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دِينَارٍ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ أَبَا سَعِيدٍ، وَحَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، قَالَ: عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَالثَّقَفِيُّ سَمَاعُهُمَا وَاحِدٌ.

محمدبن دینار دجریري نه پخپل سندسره دمذکوره روایت په شان روایت بیان کړې دې.
امام ابوداؤد فرمائی عبدالوهاب ثقفي په دې روایت کښې دابو سعید ذکر نه دې کړې او ابوحماد دا روایت دجریري نه دابو العلاء په واسطه سره دنبی ﷺ نه نقل کړې دې.

[٤٠٢٣](٣)حَدَّثَنَا نُصَيْرُ بْنُ الْفَرَجِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي مَرْحُومٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَكَلَ طَعَامًا ثُمَّ قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَنِي هَذَا الطَّعَامَ، وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ، قَالَ: وَمَنْ لَبِسَ ثَوْبًا، فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا الثَّوْبَ وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ".

سهل بن معاذ دخپل پلار معاذ بن انس رضی الله عنه نه روایت کوي فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلي دي: څوک چه دخوراک کولونه پس دا دعا : «الحمد لله الذي أطعمني هذا الطعام ورزقنيه من غير حول مني ولا قوة» اووائی نودده مخکني او روستني ګناهونه به معاف شي اوچاچه دجامو اغوستو په وخت کښې دا دعا : «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا الثَّوْبَ وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ» اووائی نودده مخکني اوزوستني ګناهونه به معاف کړې شي.

﴿عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « مَنْ أَكَلَ طَعَامًا ثُمَّ قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَطْعَمَنِى هَذَا الطَّعَامَ وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّى وَلاَ قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ وَمَنْ لَبِسَ ثَوْبًا فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى كَسَانِى هَذَا الثَّوْبَ وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّى وَلاَ قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ ﴾

دا دوه دعاګانې کومې چه ذکر شوې چه په هغې کښې یو د خوراک نه پس ده او دویمه د جامو د اغوستلو په وخت، د دې دواړو په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړې دا دعا اولولی د هغه به وړاندې روستو ټول ګناهونه معاف شی، دا خبره خو مشهوره چه په دې قسم روایاتو کښې د ګناهونو نه مراد صغائر دی، دلته به هم دا وئیلې شی، دویمه خبره په بذل کښې دا لیکلې ده چه دا روایت په ترمذی او ابن ماجه کښې هم شته خو هلته د ﴿ وما تاخر ﴾ لفظ نشته چه د هغې مطلب دا شو چه د تیرو ګناهونو د معاف کیدو وعده ده خو د مستقبل د ګناهونو نشته، او دویمه خبره ئې دا لیکلې ده چه که اومنلې شی د ﴿وما تاخر ﴾ زیادت نو بیا د دې څه مطلب دې په دې کښې یو قول خو دا دې چه هغه ګناه به سره د وقوع

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٣٢٦) (صحيح)
(٢): انظر حديث رقم: (٤٠٢٠)، (تحفة الأشراف: ٤٣٢٦) (صحيح)
(٣): سنن الترمذي/الدعوات ٥٦ (٣٤٥٨)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ١٦ (٣٢٨٥)، (تحفة الأشراف: ١١٢٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٩/٣)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٥ (٢٧٣٢) (حسن) دون زيادة: «وما تأخر» في الموضعين

نه معاف کولې شي، دويم مطلب ئې دا دې چه هغه به د بيا دپاره د ګناهونو نه محفوظ شي چه د بيا دپاره به د هغه نه د ګناه وقوع نه کيږي، دا دواړه احتماله شارحينو د اهل بدر په باره کښې هلته ليکلې دی کوم چه په حديث کښې راغلې دی ﴿ اعملوا ما شئتم فقد غفرت لکم﴾.... لهذا دلته هم دا دواړه احتماله کيدې شي. (بذل بتوضيح)

**په حديث کښې ثواب عظيم :**

په دې حديث کښې چه د کومو ګناهونو نه د دومره زبردست معافئ بشارت دې هغه په يو مختصر عمل سره د الله پاک په امت محمديه باندې ډيره زياته مهرباني معلوميږي، په دې کښې به د رسول الله ﷺ شان محبوبيت لره دخل وی، چه د هغې امت لره قدرداني کول پکار دی او د هغې نه فائده اوچتول پکار دی. والله تعالى الموفق.

......

## باب فِيمَا يُدْعَى لِمَنْ لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا

### د نوی لباس اغوستونکی دپاره د دعا غوښتلو بيان

**(ما قبل سره ربط او مناسبت)**

په اول باب کښې هغه دعاګانې ذکر شوې وې کومې چه خپله کپړې اغوستونکی لره وئيل پکار دی، او په دې باب کښې هغه دعا کومه چه بل ته اوئيلې شي چه کله هغه نوې جامې واچوی چه د هغې ذکر په تير شوی باب کښې راغلو. ﴿تبلى ويخلف الله تعالى﴾

[٤٠٢٤](1) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ الْجَرَّاحِ الْأَذَنِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِكِسْوَةٍ فِيهَا خَمِيصَةٌ صَغِيرَةٌ، فَقَالَ: "مَنْ تَرَوْنَ أَحَقَّ بِهَذِهِ؟ فَسَكَتَ الْقَوْمُ، فَقَالَ: ائْتُونِي بِأُمِّ خَالِدٍ فَأُتِيَ بِهَا، فَأَلْبَسَهَا إِيَّاهَا، ثُمَّ قَالَ: أَبْلِي وَأَخْلِقِي مَرَّتَيْنِ وَجَعَلَ يَنْظُرُ إِلَى عَلَمٍ فِي الْخَمِيصَةِ أَحْمَرَ أَوْ أَصْفَرَ وَيَقُولُ: سَنَاهْ سَنَاهْ يَا أُمَّ خَالِدٍ وَسَنَاهْ فِي كَلَامِ الْحَبَشَةِ الْحَسَنُ".

دام خالد بن سعيد بن العاص نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم له ته يو څوقسمه کپړې راوړل شوې او په هغې کښې يو وړوکې څادرهم وو نبی ﷺ صحابه کراموته اوفرمائيل تاسو دې زيات مستحق څوک ګنړئ؟ خلقو چه دا واوريده نوخاموش شول نبی ﷺ اوفرمائيل ام خالد ماته راولئ چنانچه هغه نبی ﷺ ته راوستلې شونبی ﷺ دغه څادر ام خالد ته واغوستو او بيا ئې دوه پيرې اوفرمائيل دا څادر دې په تازوړ کړې شې ، نبی ﷺ به دڅادر سرو او زيړو ګلونوته کتل اوسناه سنا ، ئې وئيل په حبشې ژبه کښې سناء بهترين ته وئيلې شي (ددې مطلب دادې چه دا څادر درسره ډير ښکلی ښکاري).

**مضمون الحديث**

او د حديث الباب مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ ته يو ځل د چرته نه ډير کپړې راغلې چه په هغې کښې يو لوپټه هم وه رسول الله ﷺ د هغې په ليدلو باندې اوفرمائيل چه د دې زياته

(1): صحيح البخاري/الجهاد ١٨٨ (٣٠٧١)، المناقب ٣٧ (٣٨٧٤)، اللباس ٢٢ (٥٨٢٣)، الأدب ١٧ (٥٩٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٥/٦) (صحيح)

مستحقه څوک ده؟ بیا رسول اللهﷺ خپله اوفرمائیل چه ام خالد رضي الله عنها راوغواړئ، پس هغه راوستلې شوه او رسول اللهﷺ هغې ته ورکړه او دا دعاء ئې ورته ورکړه ﴿ ابلی واخلقی ﴾ دا رسول اللهﷺ دوه کرته اوکړه، په دې لوپټه کښې څه ګلونه او نقش ونګار هم وو سور او زیړ رنګ، نو رسول اللهﷺ هغې ته کتلو سره هغه ماشومې ته اوروُلو سره اوفرمائیل ﴿ سناه سناه یا ام خالد ﴾ [1] یعنی اوګوره اې ام خالد دا ګلونه څنګه ښکلې دی، وړاندې راوی وائی چه د سناه معنی په لغت حبشه کښې د ﴿ حسن ﴾ ده.

## د رسول اللهﷺ د بعض عجمی الفاظو تکلم کول :

د دې حدیث نه د رسول اللهﷺ تکلم بلسان العجم فی بعض الاوقات ثابت شو، امام بخاری رحمه الله خو په دې موضوع باندې په کتاب الجهاد کښې مستقل باب قائم کړې دې ﴿باب من تکلم بالفارسیة والرطانة ﴾ بیا ئې د احادیث الباب نه دا قسم درې الفاظ ثابت کړې دی یو لفظ ﴿ سور ﴾ او دویم لفظ ﴿ سنه سنه ﴾ او دریم لفظ ﴿ کخ کخ ﴾ او حضرت شیخ په الابواب والتراجم ۱۲۶/۲ کښې د دې سلسلې بعض نور الفاظ هم نقل فرمائیلی دی لکه چه په ابن ماجه کښې دی چه رسول اللهﷺ یو ځل ابوهریره رضي الله عنه ته فرمائیلې وو ﴿ اشکمت درد ﴾ چه په هغې باندې هغوی اوفرمائیل ﴿ نعم ﴾ او د ابن ماجه په حاشیه باندې دی چه صاحب قاموس ﴿باب تکلم النبیﷺ بالفارسیة ﴾ (په کتاب سفر السعادة) کښې لیکلې دی چه ﴿العنب دو دو والتمر یک ﴾ او هم دغه شان ﴿ یا سلمان شکمت درد ﴾ دا ثابت نه دې، حضرت شیخ فرمائی چه بعض فارسی الفاظ د ابواللیث سمرقندی په بستان العارفین کښې هم ذکرکړې شوې دی، او په مقاصد حسنه کښې دی ﴿ العنب دو دو والتمر یک ﴾ په باره کښې دا دی چه دا حدیث مشهوربین الاعاجم دې ﴿ولا اصل له ﴾ والحدیث اخرجه البخاری، قاله المنذری

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقَمِيصِ

## د قمیص بیان

[٤٠٢٥] [2] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ الْحَنَفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَمِيصُ".

دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائی چه په ټولو لباسونو کښې قمیص دنبیﷺ ډیر خوښ وو.

﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْقَمِيصُ ﴾ چه د رسول اللهﷺ په جامو کښې د ټولو نه زیات قمیص خوښ وو.

## د قمیص د زیات خوښیدلو وجه

د زیات خوښیدو وجه ئې دا لیکلې ده چه په دې کښې د اندامونو او بدن ستر زیات دې په

[1] ) په دې کښې څلور لغتونه دی : سنه سنه سنه، سناه سناه، سناه سناه، سنا سنا (بذل)

[2] ): سنن الترمذي/اللباس ٢٨ (١٧٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٨١٦٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ٨ (٣٥٧٥)، مسند احمد (٦/٣٠٦، ٣١٧، ٣١٨، ٣٢١) (صحيح)

نسبت د هغې د مقابل یعنی ازار او رداء، او بل په دې وجه باندې هم چه د دې په اغوستلو کښې سهولت او آرام زیات دې ځکه چه د ازار د ترلو ضرورت پیښیږی او په څادر کښې د امساک یعنی هغه سنبهالول غواړی په خلاف د قمیص او په دې وجه باندې هم چه هغه د مالوچو نه جوړ وی پس په قاموس کښې دی ﴿ ولا یکون الا من القطن واما الصوف فلا ﴾ په خلاف د څادر چه هغه اونی او سوتی هر قسم وی (تحفه)

والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[۴۰۲۶]()حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الْمُؤْمِنِ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "لَمْ يَكُنْ ثَوْبٌ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَمِيصٍ".

دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي چه نبی علیه السلام ته په لباسونو کښې د قمیص نه بل څیز محبوب نه وو.

[۴۰۲۷] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ، قَالَتْ: "كَانَتْ يَدُ كُمِّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الرُّصْغِ".

د اسماء بنت یزید رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام نستونړې د مړوندونو پورې وو.

﴿عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ كَانَتْ يَدُ كُمِّ قَمِيصِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– إِلَى الرُّصْغِ﴾

### لستونړې د کوم ځائې پورې کیدل پکار دی:

یعنی د رسول الله ﷺ لستونړی د لیچې پورې وو، او د ترمذی د روایت الفاظ دا دې: ﴿کان کم ید رسول الله ﷺ﴾ دا زیات واضح دې په نسبت د ابوداؤد د الفاظو ﴿ید کم قمیص﴾ په دې کښې د ید اضافت د کم طرف ته تاویل ته محتاج دې په داسې طور چه اوئیلې شی چه اضافت بیانیه دې، او سیوطی رحمه الله په مرقاة الصعود کښې فرمائی چه په دې حدیث کښې د هغه بیان دې کوم چه به رسول الله ﷺ په سفر کښې اغوستلو او کوم قمیص چه به رسول الله ﷺ په حضر کښې اغوستلو د هغې لستونړی د ګوتو پورې وو لکه د بیهقی په روایت کښې دی کوم چه په شعب الایمان کښې دې او حضرت په بذل کښې د هغې د نقل کولو نه پس دا فرمائیلې دی چه ممکنه ده چه داسې اوئیلې شی چه دا حدیث الباب په اولویت باندې حمل دې او حدیث د بیهقی په جواز باندې، خو وړاندې د شامی د هغې خلاف رائې او په عون المعبود کښې د علامه جزری نه نقل کړې شوې دی چه د دې نه معلومه شوه چه سنت دا دې چه د قمیص لستونړی د رسغ نه متجاوز نه وی او غیر قمیص یعنی جبه وغیره د هغې په باره کښې علماء کرام دا فرمائی: ﴿ السنة فیه ان لا یتجاوز روؤس الاصابع ﴾ د دې نه پس صاحب تحفه په دې روایات مختلف کښې مختلفه وجوه ذکر کړې دی، وفی هامش البذل: وبسط اختلاف الروایات فی ذلک القاری فی شرح عون الشمائل وذکر الشامی ۲۴۷/۵ فی کتاب اللباس سنیة الکمین الی الاصابع فتامل. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[1]): انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۱۸۱۶۹) (صحیح)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْأَقْبِيَةِ

## د قبې بيان

اقبيه جمع ده د قبا په دې کښې دوه لغته دي قباء (بالمد) او قبا (بالقصر) يعنې چوغه.

[۴۰۲۸] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الْمَعْنَى، أَنَّ اللَّيْثَ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّهُ قَالَ: "قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْبِيَةً وَلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ شَيْئًا، فَقَالَ مَخْرَمَةُ: يَا بُنَيَّ، انْطَلِقْ بِنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ، قَالَ: ادْخُلْ فَادْعُهُ لِي، قَالَ: فَدَعَوْتُهُ فَخَرَجَ إِلَيْهِ وَعَلَيْهِ قِبَاءٌ مِنْهَا، فَقَالَ: خَبَأْتُ هَذَا لَكَ، قَالَ: فَنَظَرَ إِلَيْهِ زَادَ ابْنُ مَوْهَبٍ مَخْرَمَةُ ثُمَّ اتَّفَقَا، قَالَ: رَضِيَ مَخْرَمَةُ"، قَالَ قُتَيْبَةُ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ لَمْ يُسَمِّهِ.

د مسور بن مخرمه رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ په خلقو باندې قباګانې تقسيم کړې او مخرمه ته يو څه ورنکړل مخرمه نه ماته اووئيل اې زما چيه زما سره نبی عليه السلام ته لاړ شه زه ورسره لاړم هغه چه هلته ورسيدو ماته ئې اووئيل چه ته دننه ورشه او زما نوم ورته واخله اونبی عليه السلام راته بهر راوباسه مسور وائی مانبی عليه السلام ته خبر ورکړو اوهغه په همدې قباګانو کښې يوه قبا اغوستلې وه او بهر ته ئې تشريف راوړو، نبی عليه السلام اوفرمائيل ما داقبه ستادپاره ساتلې وه مسور وائی چه هغه ،با ته وکتل ، ابن موهب دا اضافه کړې ده چه مخرمه قبا ته وکتل په باقی روايت کښې دواړه متفق دي چه مخرمه نبی عليه السلام ته وکتل نبی عليه السلام اوفرمائيل مخرمه خوشحاله شو.

**قوله:** ﴿ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّهُ قَالَ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَقْبِيَةً وَلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ شَيْئًا الخ ﴾ سيدنا مسور بن مخرمه رضی الله عنه فرمائی چه يوه ورځ رسول الله ﷺ چغې تقسيمولې چه په هغې کښې زما والد صاحب مخرمه پاتې شو هغوی ته ملاؤ نه شوه، نو هغوی ماته اوفرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ خدمت ته بوځه (په بذل کښې ليکلې وو چه هغه نابينا شوې وو) (²) مسور فرمائی چه زه هغوی سره لاړم دروازې ته رسيدو سره هغوی ماته اووې (ځکه چه دې کم عمره وو) چه ته دننه لاړ شه او رسول الله ﷺ راطلب کړه، مسور فرمائی چه ما رسول الله ﷺ د دننه نه راوغوښتلو نو هغوی د ځان سره يو قبه راوړه او بهر ئې تشريف راوړلو، او زما والد صاحب رضی الله عنه ته ئې اوفرمائيل: ﴿ خبات هذا لک ﴾ چه ما دا ستا دپاره پټه کړې وه. مخرمه رضی الله عنه چه کله هغه په خپل لاس کښې اونيوله نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿رضی مخرمه ﴾ چه خوشحاله شوې که نه؟ ممکنه ده چه دا استفهام وی او دا هم احتمال دې چه خبر وی، يا دا قول د مخرمه رضی الله عنه دې يعنی هغوی اوفرمائيل چه اوس خو زه خوشحاله

¹): صحيح البخاري/الهبة ١٩ (٢٥٩٩)، الشهادات ١١ (٢١٢٧)، الخمس ١١ (٣١٢٧)، اللباس ١٢ (٥٨٠٠)، ٤٢ (٥٨٦٢)، الأدب ٨٢ (٦١٣٢)، صحيح مسلم/الزكاة ٤٤ (١٠٥٨)، سنن الترمذي/الأدب ٥٣ (٢٨١٨)، سنن النسائي/الزينة ٤٥ (٥٣٢٦)، (تحفة الأشراف: ١١٢٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٨/٤) (صحيح)

²) دا بل شارح نه دی ليکلی په ظاهر کښې دا حضرت د (يا بني انطلق بنا) نه مستنبط کړې دی چه مونږ بوزه. خو د هغوی په ترجمه کښې دا ملاويږی چه وعمي في اخر عمره او د هغوی آخری عمر ډير روستو دې ځکه چه هغوی په ۵۴ هجرئ کښې وفات شوې دی)

شوم.

دا روایت په بخاری کښې لږ په تفصیل سره دې او په مختلفو الفاظو باندې په ډیرو ځایونو کښې په ابواب الخمس کښې داسې دې:

﴿ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم أُهْدِيَتْ لَهُ أَقْبِيَةٌ مِنْ دِيبَاجٍ مُزَرَّرَةٌ بِالذَّهَبِ فَقَسَمَهَا فِي نَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ ﴾

او بیا وړاندې هم هغه دی کوم چه دلته د ابوداؤد په روایت کښې دی، او ددې په آخر کښې دی ﴿ وكان في خلقه شدة ﴾ راوی چه کومه آخری خبره د هغوی په باره کښې کړې، یعنی د طبیعت تیزی، دا اشاره ده هم هغه طرف ته چه د هغوی د خپل حق او حصې د وصول کولو دپاره عجلت او تیزی کول او د خپل ماشوم بچی سره د رسول الله ﷺ کور ته تلل، یعنی د هغوی مقصد دا وو هم دغه شان په اسد الغابة کښې د هغوی په ترجمه کښې لیکلې شوې دی: ﴿ وكان في لسانه فظاظة وكان النبي ﷺ يتقي لسانه ﴾ د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه مسور بن مخرمه رضی الله عنهما صحابی ابن الصحابی دې او مسور په صغار صحابه کرامو کښې دې لکه محمود بن الربیع، سائب بن یزید وغیرهم. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

## بَابٌ فِي لُبْسِ الشُّهْرَةِ

### د شهرت حاصلولو دپاره د لباس اغوستلو بیان

[٤٠٢٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ عِيسَى، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي زُرْعَةَ، عَنِ الْمُهَاجِرِ الشَّامِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ فِي حَدِيثِ شَرِيكٍ يَرْفَعُهُ، قَالَ: "مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ أَلْبَسَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَوْبًا مِثْلَهُ" زَادَ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ "ثُمَّ تُلَهَّبُ فِيهِ النَّارُ".

دعبدالله ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چاچه دشهرت (نوم) دپاره لباس واغوستو نوالله تعالی به دې کس ته داسې لباس ورواغوندي ، ابن عوانه دا اضافه کړې ده چه په دې لباس کښې به اورلمبې وهی.

﴿ مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ أَلْبَسَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَوْبًا مِثْلَهُ، ثُمَّ تُلَهَّبُ فِيهِ النَّارُ ﴾

یعنی کوم سړې چه د شهرت دپاره جامه واغوندی یا خو عمده په طور د تفاخر یا ډیره ساده د زهد داظهار دپاره، نو الله پاک به د قیامت په ورځ هغه ته هم دغه شان جامې اغوندوی، اوبیابه په دغه جامه کښې اوراولګولې شی. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٤٠٣٠] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، قَالَ: ثَوْبَ مَذَلَّةٍ.

د ابوعوانه په حدیث کښې دی چه الله تعالی به دې کس ته دقیامت په ورځ باندې دذلت او درسوائي او دشرم لباس ورواغوندي.

(١): سنن ابن ماجه/اللباس ٢٤ (٣٦٠٦)، (تحفة الأشراف: ٧٤٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٩٢، ١٣٩) (حسن)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٧٤٦٤) (حسن)

[۴۰۳۱]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي مُنِيبٍ الْجُرَشِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائي چه نبی ﷺ فرمائیلي دی چاچه دیوقوم سره مشابهت اختیارکړو نوداکس ددوینه شو.

﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ »﴾

یعنی کوم سړي چه د کومو خلقو مشابهت اختیاروی په جامې وغیره امورو کښې که هغه خلق چه دې ئې مشابهت اختیاروی د فساقو او کفارو نه وی، یا په صلحاء او ابرار کښې وی، پس د هغه سړی شمیر به هم په هغوی کښې وی په اعتبار د اثم او خیر دواړو..... یعنی د الله پاک په نزد.

د دې نه معلومه شوه چه د صلحاء په جامه اختیارولو کښې هم فائده او خیر دې په دې شرط چه د اتباع نیت وی، شهرت او خلقو لره په دهوکه کښې ساتل مقصود نه وی، لکه، چه وائې چه د موسی علیه السلام مقابلې ته جادوګران راغلل هغوی د موسی علیه السلام په شان جامه کښې راغلل کومه چه د موسی علیه السلام وه، نو هم د دې مشابهت په وجه باندې الله پاک هغوی ته هدایت اوکړو.(۲)

## د جامې په اختیارولو کښې ضابطه:

جامه ځنګه اغوستل پکار دی د دې قاعده مونږ د بعض استاذانو رحمهم الله نه داسې اوریدلې ده چه د کومې جامې مدح یا مذمت چه په حدیث شریف کښې منصوص دې په دې کښې به خو د هغې اعتبار کولې شی د هغې نه علاوه دا ده چه د کومې زمانې د صلحاء کوم لباس وی هغه اختیارول پکار دی.

## بَابٌ فِي لُبْسِ الصُّوفِ وَالشَّعْرِ

### باب: د وړئ اود ویښتو د لباس بیان

صوف یعنی مالوچ او د ګډو وغیره وړئ، او شعر د چیلو وغیره ویښتهٔ.

[۴۰۳۲]() حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، وَحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ مِرْطٌ مُرَحَّلٌ مِنْ شَعَرٍ أَسْوَدَ"، وَقَالَ حُسَيْنٌ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا.

عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائي کله چه به نبی ﷺ بهرتللو نودوړئ نه جوړ یوتور ښکلې څادر به ئې اغوستلې وو ، حسین وئیلی دی مونږ ته زکریا حدیث بیان کړې دې ابراهیم بن

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۵۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۵۰، ۹۲) (حسن صحيح)

(۲) د دوی په باره کښې یو بله نکته هم لیکلې شي هغه دا چه هغه ساحران چونکه په خپل فن کښې ماهران وو هغوی پوهه شو چه دا موسی علیه السلام چه څه کړی دا د سحر د قبیل نه نهٔ دی ځکه چه په دې کښې قلب د ماهیت شوې وو او د ساحر په سحر سره قلب ماهیت نه راځی بلکه صرف ظاهری صورت بدلیږی، والله يهدي من يشاء الي صراط مستقيم.

(۳): صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۹ (۲۰۸۱)، سنن الترمذي/الأدب ٤٩ (۲۸۱۳)، (تحفة الأشراف: ۹۷۵۳، ۱۷۸۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۵/٤، ۱٦۲/٦) (صحيح)

علاء زبیدي نه هغه وائی موږ ته عیاش دعقیل بن مدرک نه او هغه دلقمان بن عامر نه او هغه د عتبه بن عبدنه فرمائی چه مادنبی ﷺ نه داغوستودپاره جامې وغوښتې نوماته ئې دکتان دوه جوړې راکړې ماچه به ورته وکتل نو ماته به دخپلو ملګروپه جاموکښې ښې ښکاره شوي.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعَلَيْهِ مِرْطٌ الخ﴾

عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه یوه ورځ رسول الله ﷺ د کور نه اووتلو په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ په داسې څادر کښې وو چه په هغې کښې د رحال ابل تصویران وو او هغه څادر د څلورو تورو ویښتو نه جوړ وو، یعنې تور کمبل.

او په دې کښې هیڅ اشکال نشته ځکه چه دا تصویران د غیر ذی روح ؤو، په دې حدیث کښې د رسول الله ﷺ د تور کمبل اغوستلو ثبوت ملاؤ شو، هسې خو د رسول الله ﷺ نه نور رنګونو جامې اغوستل هم ثابت دی لکه چه وړاندې په روایت کښې راغی، د تور کمبل هیڅ تخصیص نشته، خو په عوامو کښې د دې لفظ شهرت دې د حضور ﷺ په باره کښې، "توری کمبلي والا" پس کیدې شی چه د دې نور څه خاص سبب وی او په څه خاص وخت کښې رسول الله ﷺ په تور کمبل کښې وی، په سوچ کولو سره زما دا ذهن هغه واقعې طرف ته لاړو کوم چه د آیت مباهله په تفسیر کښې مفسرینو لیکلې ده:

﴿ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا وَأَنْفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ سورة ال عمران (٦١) ﴾

## د رسول الله ﷺ د مباهلې په ارادې باندې د یو پادری تاثر:

د ترمذی په روایت کښې دی چه کله دا آیت کریمه نازل شو ﴿ دعا رسول الله ﷺ علیا وفاطمة وحسنا وحسینا فقال اللهم هولاء اهلی ﴾ په دې آیت کریمه باندې د نجران د نصاراو سره رسول الله ﷺ د مباهلې اراده فرمائیلې وه او رسول الله ﷺ د خپل کور نه اوتلو په داسې حال کښې چه په هغوی باندې توره کمبل وه ﴿ وعلیه ﷺ مرط من شعر اسود ﴾ او په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ سیدنا حسین رضي الله عنه په خپل غیږ کښې نیولې وو او د حسن رضي الله عنه لاس ئې نیولې وو او په هغوی پسې سیده فاطمه رضي الله عنها او د هغوی نه شاته سیدنا علی رضي الله عنه، د نجران یو پادری چه کله دا منظر اولیدو نو هغه خپلو خلقو ته خطاب اوکړو ﴿انی لاری وجوها لو دعت الله ان یزیل جبلا من مکانه لازاله بها، فلا تباهلوا فتهلکوا ولا تبقی علی وجه الارض نصرانی الی یوم القیامة ﴾ یعنې زه داسې نورانی مخونه وینم چه که هغوی الله پاک نه اوغواړی چه یو غر د خپل ځائې نه بل ځائې ته کړی نو الله پاک به ئې ضرور لرې کړی، لهذا تاسو دې نبی ﷺ سره مباهله مه کوئ ګینې هلاک به شئ او د زمکې په سر باندې به د قیامت د ورځې پورې هیڅ نصرانی باقی پاتې نه شی، پس د دې نه پس هغه خلقو راتې د مباهلې پاتې نه شوه، دا مفصل واقعه ده تر وړاندې پورې، نو په دې خاص موقع کښې رسول الله ﷺ په توره کمبل کښې وو. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی، قاله المنذری.

()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْعَلَاءِ الزُّبَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَقِيلِ بْنِ مُدْرِكٍ، عَنْ لُقْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ، قَالَ: «اسْتَكْسَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَسَانِي خَيْشَتَيْنِ» فَلَقَدْ رَأَيْتُنِي وَأَنَا أَكْسَى أَصْحَابِي"

عتبه بن عبید سلمی رضی الله عنه وائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اغوستلو دپاره کپړې اوغوښتلې، نو هغوی ﷺ ماته د کتان دوه کپړې راواغوستولې، نو خپل ځان به مې خپله او د خپلو دوستانو په مقابله کښې د ښه لباس والا محسوسولو.

**قوله:**﴿ قَالَ اسْتَكْسَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَكَسَانِي خَيْشَتَيْنِ فَلَقَدْ رَأَيْتُنِي وَأَنَا أَكْسَى أَصْحَابِي ﴾ سیدنا عتبه بن عبد سلمی رضی الله عنه فرمائی چه ما یو ځل د رسول الله ﷺ نه د اغوستلو دپاره جامه طلب کړه نو رسول الله ﷺ ماته د معمولی کتان دوه جامې راکړې، نو د هغې د اغوستلو نه پس به ما ځآن ته په خپلو ملګرو کښې کتل چه زما جامه د هغوی ټولو نه ښه وه. ځکه چه نورو سره داسې هم نه وې، د دې نه د هغه زمانې غریبی او د احتیاج حالت طرف ته اشاره ده.

[۴۰۳۳]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، قَالَ: قَالَ لِي أَبِي: "يَا بُنَيَّ لَوْ رَأَيْتَنَا وَنَحْنُ مَعَ نَبِيِّنَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ أَصَابَتْنَا السَّمَاءُ حَسِبْتَ أَنَّ رِيحَنَا رِيحُ الضَّأْنِ".

د ابوبرده نه روایت دې فرمائی چه ماته زما پلار اووئیل اې بچیه که چرې تا مونږ دنبی علیه السلام سره لیدلې دې د باران په وخت کښې نو تا به داګمان کړې وو چه زمونږ نه دچیلو اوګډو بیوې راروان دې.

﴿ حَسِبْتَ أَنَّ رِيحَنَا رِيحُ الضَّأْنِ ﴾ سیدنا ابوبرده رضی الله عنه فرمائی چه ماته زما پلار ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمائیل چه اې زما بچیه چه که تا مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې لیدلې وې چه کله به زمونږ جامې په باران باندې لوندې شوې (نو هغه وخت چه به زمونږ د جامو نه کوم بوئی راتلو) نو هغه به مو د ګډې بوئی ګڼړلو.

د ګډې وړئ خو ډیره عمده کیدې شی که هغې لره د نن صبا په مشینانو باندې تیاره کړې شی، پس پشمینه کوم چه خاص قسم وړئ وی دهغې ځادرپه خوڅو زره راځی، خو په هغه زمانه کښې به وړئ ډیره بیکاره او د معمولی درجې وه، خلقو به خپله په کورونو کښې دهغې وینځلو سره دهغې نه جامه جوړوله. والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

............

(): صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۹ (۲۰۸۱)، سنن الترمذي/الأدب ۴۹ (۲۸۱۳)، (تحفة الأشراف: ۹۷۵۳، ۱۷۸۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۵/۴، ۱۶۲/۶) (صحيح)

(): سنن الترمذي/صفة القيامة ۳۸ (۲۴۷۹)، سنن ابن ماجه/اللباس ۴ (۳۵۶۲)، (تحفة الأشراف: ۹۱۲۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۷/۴، ۴۱۹) (صحيح)

# بَابٌ فِي لُبْسِ الْمُرْتَفِعِ

## باب د قیمتي جامو اغوستلو بیان

[٤٠٣٤] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا عُمَارَةُ بْنُ زَاذَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ "أَنَّ مَلِكَ ذِي يَزَنَ أَهْدَى إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةً أَخَذَهَا بِثَلَاثَةٍ وَثَلَاثِينَ بَعِيرًا أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ نَاقَةً، فَقَبِلَهَا".

دانس رضی الله عنه نه روایت ده فرمائی چه دذي یزن بادشاه نبی علیه السلام ته په تحفه کښې یوه جوړه جامې راولیږلې کوې چه هغه په درې دیرش اوښانو اغستلې وې اوهغه قبولې کړې.

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ مَلِكَ ذِي يَزَنَ أَهْدَى إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حُلَّةً الخ﴾

### د رسول الله صلی الله علیه وسلم د غیر مسلمو هدیه قبلول :

د سیدنا انس رضی الله عنه نه روایت دې چه د قبیله حمیر بادشاه چه د هغه نوم ذی یزن وو هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یو جوړه هدیة راولیږله کومه چه هغه د درې دیرشو اوښانو یا اوښو په بدل کښې په بیع اخستلې وه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه قبوله کړه. او د دې نه په روستو روایت کښې دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هم یوه جوړه د شلو نه په زیاتو اوښو باندې په بیع اخستلو سره ذی یزن ته هدیه اولیږله.

د کتاب الخراج په آخر کښې یو باب تیر شوې دې، باب في الامام يقبل هدايا المشركين چه د هغې په آخر کښې یوحدیث دا تیرشوې دې ﴿ نهيت عن زبد المشركين ﴾ هلته په الدر المنضود کښې دا روایت او د دې په شان د نورو روایتونو حواله تیره شوې ده. فارجع لو شئت.

[٤٠٣٥] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرَى حُلَّةً بِبِضْعَةٍ وَعِشْرِينَ قَلُوصًا، فَأَهْدَاهَا إِلَى ذِي يَزَنَ".

د عبدالله بن حارث نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دکپړې یوه جوړه دشلونه په زیاتو اوښانو باندې واغستله اوبیا ئې د ذي یزن بادشاه ته په تحفه کښې ولیږله (ددې دپاره چه دهغه دتحفې بدله اداشي) نبی علیه السلام به تحفې قبلولې اودهغې بدله به ئې ضرور ورکوله.

# بَابُ لِبَاسِ الْغَلِيظِ

## د سخت او قیمتي لباس د استعمال بیان

[٤٠٣٦] (٣) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ الْمَعْنَى، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا إِزَارًا غَلِيظًا مِمَّا يُصْنَعُ بِالْيَمَنِ وَكِسَاءً مِنَ الَّتِي يُسَمُّونَهَا الْمُلَبَّدَةَ، فَأَقْسَمَتْ بِاللَّهِ "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبِضَ فِي هَذَيْنِ الثَّوْبَيْنِ".

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢١/٣)، سنن الدارمي/السير ٥٣ (٢٥٣٦) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٤٣٤) (ضعيف)

(٣): صحيح البخاري/فرض الخمس ٥ (٣١٠٨)، اللباس ١٩ (٥٨١٨)، صحيح مسلم/اللباس ٦ (٢٠٨٠)، سنن الترمذي/اللباس ١٠ (١٧٣٣)، سنن ابن ماجه/اللباس ١ (٣٥٥١)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢/٦، ١٣١) (صحيح)

د ابوبرده نه روایت دي فرمائي چه دام المومنين عائشه رضي الله عنها په خدمت کښې حاضر شوم نوهغې مونږ ته يولند اوښودو دډبلي کپړي کوم چه ديمن جوړ وو اويوکمبل چه ملبده به ورته وئيلې شوه اوعائشې قسم وکړو چه دنبي عليه السلام وفات په همدي دوه جامو کښې شوې دي.

﴿عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ – رضى الله عنها – فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا إِزَارًا غَلِيظًا مِمَّا يُصْنَعُ بِالْيَمَنِ وَكِسَاءً مِنَ الَّتِي يُسَمُّونَهَا الْمُلَبَّدَةَ الخ﴾

سيدنا ابو برده رضي الله عنه فرمائي چه يوکرت زه عائشې رضي الله عنها کره لاړم (نو ممکنه ده چه هغوی د رسول الله صلى الله عليه وسلم د جامې د ليدو خواهش کړې وی) نو هغوی زمونږ د ښودلو دپاره يو پيړ شان لنګ کوم قسم چه په يمن کښې جوړولې شی هغه ئې راويستلو او يو څادر کوم ته چه خلق ملبده وائی او بيا هغې قسم خوړلو سره اوفرمائيل چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم وفات په دې دوه کپړو کښې شوې وو.

د ملبده يو تفسير په مرقعه سره کړې شوې دې او دويم تفسير په غليظه سره کړې شوې دې. يعنی د پيړې جامې معمولی شان لنګ وو يا کيدې شی هم په دې وجه وی چه په هغې کښې پيوندونه او جوړونه لګيدلې وو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي وابن ماجه، قاله المنذري

[٤٠٣٧] (1) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو ثَوْرٍ الْكَلْبِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ بْنِ الْقَاسِمِ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو زُمَيْلٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا خَرَجَتِ الْحَرُورِيَّةُ أَتَيْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: ائْتِ هَؤُلَاءِ الْقَوْمَ، فَلَبِسْتُ أَحْسَنَ مَا يَكُونُ مِنْ حُلَلِ الْيَمَنِ، قَالَ أَبُو زُمَيْلٍ وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَجُلًا جَمِيلًا جَهِيرًا، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَأَتَيْتُهُمْ، فَقَالُوا: مَرْحَبًا بِكَ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، مَا هَذِهِ الْحُلَّةُ؟ قَالَ: مَا تَعِيبُونَ عَلَيَّ لَقَدْ "رَأَيْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ مَا يَكُونُ مِنَ الْحُلَلِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: اسْمُ أَبِي زُمَيْلٍ سِمَاكُ بْنُ الْوَلِيدِ الْحَنَفِيُّ.

د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي کله چه حروريانو دعلی و مقابله وکړه نوزه علی ته ورغلم هغه راته اووئيل ته دې قوم ته ورشه ، ما ديمن جوړ شوې اعلی لباس واغوستو اردوی ته ورغلم، دحديث راوی ابو زميل وئيلی دی چه ابن عباس ف يوښکلې سړې وو ابن عباس وائی کله چه زه خارجيانوته ورغلم نوهغوی راته پخير راغلې روئيل دادې څنګه لباس اغوستلې دې؟ ابن عباس اووئيل تاسو ماته دڅه پيغور راکوئ يقينامانبی عليه السلام دعمده لباس په اغوستلو باندې ليدلې وو.

﴿حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا خَرَجَتِ الْحَرُورِيَّةُ أَتَيْتُ عَلِيًّا – رضى الله عنه الخ ﴾

سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه کله خوارجو په علی رضي الله عنه باندې خروج يعنی د هغوی نه بغاوت او په هغوی باندې حمله اوکړه نو زه سيدنا علی رضي الله عنه ته لاړم نو هغوی ماته اوفرمائيل چه ته هغه خلقو ته لاړ شه يعنی د هغوی د پوهولو او د هغوی د شکونو او شبهاتو د لرې کولو دپاره. هغوی فرمائی چه ما د دې تيارئ دپاره بهترينه جوړه واچوله د يمن په جوړو کښې، راوی وائی يعنی د هغوی شاګرد چه ابن عباس رضي الله عنهما ډير زيات ښکلې او ډير د حسن مالک وو، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه کله زه هغوی ته لاړم نو هغوی ماته هرکلې

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٧٦) (حسن الإسناد)

او مرحبا اووې او ورسره ئې دا هم اشکال اوکړو ﴿ ما هذه الحلة؟ ﴾ یعنی داسې قیمتی جامه دې ولې اغوستلې ده؟ مطلب ئې دا وو چه د سنت خلاف کار دې کړې دې، هغوی اوفرمائیل چه په ما باندې څه عیب لګوئ بیشکه ما د رسول الله ﷺ په بدن مبارک باندې بهترینې جوړې لیدلې دی.

**د رسول الله ﷺ جامه ښه او بیکاره دواړه ثابت دی:**

د رسول الله ﷺ نه هر قسمه جامه اغوستل ثابت دی، ښه نه ښه هم او بیکاره هم، اوس یا خو دې داسې اوئیلې شی چه غوره لباس د جواز د بیان دپاره وو د هدیه کونکی د تطییب خاطر دپاره، یا د میلمنو او وفودو د راتلو په موقع باندې، لکه چه په کتاب الصلوة باب اللبس للجمعة کښې روایت تیر شوې دې چه یو ځل کله چه عمر رضی الله عنه حله سیراء په خرڅیدو باندې اولیده نو هغوی عرض اوکړو ﴿ یا رسول الله ﷺ لو اشتریت هذه فلبستها یوم الجمعة وللوفد اذا قدموا علیک الحدیث ﴾ په یو روایت کښې دی چه هغوی اوفرمائیل ﴿ ابتع هذه تجمل بها للعید وللوفود ﴾او یا دا چه د عدم اهتمام د وجې نه، یعنی نه ئې د ښه اهتمام کولو او نه د بیکاره، چه څنګه به ورته ملاویدله هغه به ئې استعمالوله.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْخَزِّ

**باب د ریښمود کپړو استعمالولو بیان**

د خز په تفسیر کښې لږ اختلاف دې، یو قول دا دې چه خز هغه کپړه ده کومه چه د ریښم او وړئ نه جوړه وی، یعنی خالص ریښم نه وی، ابریشم خو اصل ریښم دی، خالص دهغې نه وی، او ابن العربی وائی چه خز هغه کپړه ده چه د هغې سدی یا لحمه کښې یو حریر وی او دویم غیر حریر، او د بعضو د کلام نه معلومیږی چه د دې اطلاق په خالص حریر باندې هم کیږی، او یو قول د دې لفظ د اصل په باره کښې دې چه خز... خزر بروزن عمر نه اخستلې شوې دې نر سویه ته وائی (ذکر الارنب) او خز د هغې وړئ ته، وهو فی غایة اللین مثل الابریسم، د دې ټولو خلاصه درې اقوال شو.

۱: چه د حریر او غیر حریر نه جوړه کوې شوې وی.

۲: خالص حریر، ۳: وبر الارنب نه جوړه کړې شوې وی.

د دې نه پس پیژندل پکار دی چه د خز په باره کښې روایات د احادیثو هم مختلف دی، د بعضو نه د دې جواز معلومیږی لکه چه د دې باب په حدیث اول کښې دی، او د بعضو نه حرمت لکه هم د دې باب د حدیث ثانی نه معلومیږی.

[۴۰۳۸] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْأَنْمَاطِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الرَّازِيُّ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، أَخْبَرَنِي أَبِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ سَعْدٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَجُلًا بِبُخَارَى عَلَى بَغْلَةٍ بَيْضَاءَ عَلَيْهِ عِمَامَةُ خَزٍّ سَوْدَاءُ، فَقَالَ: كَسَانِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" هَذَا لَفْظُ عُثْمَانَ وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِهِ.

[۱]: سنن الترمذي/تفسير القرآن سورة الحاقة ٦٧ (٣٣٢١)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٨) (ضعيف الإسناد)

دسعد ﷺ نه روایت دې فرمائی چه ماپه بخارا کښې یوداسې کس اولیدو چه په سپین قچرباندې سور وو اوتور ریښمې پټکې بې پسروو هغه اووئیل دا پټکې ماته نبی ﷺ دپسرکولودپاره راکړې دې۔

د باب د اول حدیث مضمون دا دې: سعد بن عثمان ﷺ فرمائی ﴿ رَأَيْتُ رَجُلاً بِبُخَارى عَلَى بَغْلَةٍ بَيْضَاءَ عَلَيْهِ عِمَامَةُ خَزٍّ سَوْدَاءُ الخ ﴾ چه ما په بخارا کښې یو سړې اولیدو چه په سپینه خچره باندې سور وو او چه د هغه په سر باندې د تور خز پټکې وو، هغه سړی اووې چه دا پټکې ما ته رسول الله ﷺ راکړې دې.

[۴۰۳۹] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَطِيَّةُ بْنُ قَيْسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ غَنْمٍ الأَشْعَرِيَّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو عَامِرٍ أَوْ أَبُو مَالِكٍ وَاللَّهِ يَمِينٌ أُخْرَى مَا كَذَّبَنِي أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْخَزَّ وَالْحَرِيرَ، وَذَكَرَ كَلَامًا، قَالَ: يُمْسَخُ مِنْهُمْ آخَرُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَعِشْرُونَ نَفْسًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ أَكْثَرُ لَبِسُوا الْخَزَّ مِنْهُمْ أَنَسٌ، وَالْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ.

دعبدالرحمن بن غنم ﷺ نه روایت دې فرمائی چه ماته ابوعامر یاابومالک اووئیل په الله مې دې قسم وي پیادویم قسم چه هغه ماته.دروغ نه وو وئیلي چه هغه دنبی ﷺ نه اوریدلي وو چه فرمائیل ئې زما په امت کښې به داسې خلق پیداشي څوک چه به خز (داسې کپړه چه ریښم اوتار دواړه په کښې مکس استعمال شوي وي) آوریښم به حلال ګڼړي وبیا ئې بل څه شی هم بیان کړو اوددینه پس ئې وفرمائیل په دوی کښې به بعضې خلق شادوګان شي وبعضې خلق به دقیامته پورې خنزیران شي. ابوداؤد وائي چه دشلونه زیاتوصحابه کرامو دخز استعمال کړي دي چه په هغوی انس اوبراء بن عازب ﷺ هم شامل دي.

دویم حدیث د ابو عامر ﷺ دې چه په هغې کښې دی: ﴿ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْخَزَّ وَالْحَرِيرَ ». (۲) وَذَكَرَ كَلاَمًا قَالَ « يُمْسَخُ مِنْهُمْ آخَرُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ » ﴾ چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زما په امت کښې به څه خلق داسې وی چه خز او حریر به حلال ګڼړی (یعنی عملا یا عملا واعتقادا) د هغوی په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په هغوی کښې به د بعضو صورتونه مسخ کړې شي، د قردة او خنازیر په شکل کښې همیشه دپاره.

د دې دویم حدیث په سند کښې یو لفظ راغلې دې ﴿ حدثنی ابوعامر او ابو مالک والله یمین اخری ما کذبنی ﴾ داسې هلته وئیلې شی چرته چه مبالغه فی القسم مقصود وی ففی الحاشیة: ای یمین بلغت فی اقصی درجات التوثق اه...... د دې په ترجمه داسې څان پوهه کړئ: زه مکرر قسم خورم.

(۱): تفرد به أبو داود، خ تعليقًا/الأشربة ٦ (٥٥٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٢١٦١) (صحيح)

(۲) صحیح هم دا ده چه دا لفظ په خاء معجمه او زا معجمه سره دې لکه چه په ترجمة الباب کښې دی، او بعضو دا په حاء مهمله او راء مهمله سره ضبط کړې دې یعنی حر واصله حرح وهو الفرج ،یرید انه یکثر فیهم الزنا (بذل)

**په دې امت کښې د مسخ ثبوت :**

د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چه په دې امت کښې به په آخر کښې مسخ واقع کيږي، په دې باندې کلام مونږ سره په مبادرت على الامام والا حديث کښې تير شوې دې ﴿ ان يحول الله صورته صورة حمار ﴾ د لاندې.

په دې دواړو احاديثو کښې اختلاف ظاهر دې چه د يو نه د لبس خز جواز او د دويم نه د هغې حرمت ثابتيږي، د ابوداؤد په بعض نسخو کښې دی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَعِشْرُونَ نَفْسًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَوْ أَكْثَرُ لَبِسُوا الْخَزَّ مِنْهُمْ أَنَسٌ وَالْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رضي الله عنهم ﴾

**د لباس خز په باره کښې په متعارض روايتونو کښې تطبيق :**

د دې نه پس تاسو خان پوهه کړئ چه د منع او د جواز په دې دوه مختلفو احاديثو کښې تطبيق مختلف طور سره کړې شوې دې.

۱: د منع تعلق د حرير مصمت يعنی خالص حرير سره دې او د جواز والا روايت په غير مصمت يعنی مخلوط باندې حمل دې ځکه چه د خز اطلاق لکه څنګه چه مخکښې تير شو په دواړو باندې کيږي.

۲: نهی محمول ده په هغه کپړه باندې چه د هغې لحمه حرير او سدی غير حريری وی، او جواز د دې په عکس باندې يعنی د کوم سدی چه حرير وی او لحمه غير حرير وی.

۳: که مراد د خز نه ابريشم او حرير دې نو بيا خو هغه حرام دې او که د دې نه مراد وبرالارنب وی نو بيا جائز دې. (متلقطاً من المذل)

په کپړه کښې دوه قسمه تارونه وی يو قسم اوږدۀ کوم ته چه سدی يعنی تانا وائی او دويم قسم لحمه کوم چه عرضا وی يعنی بانا.. وهو الاصل وعليه مدار الحرمة....... پس د يو باب نه پس راځی باب الرخصة فی العلم وخيط الحرير..... چه په هغې کښې دا راروان دې

﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الثَّوْبِ الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ فَأَمَّا الْعَلَمُ مِنَ الْحَرِيرِ وَسَدَى الثَّوْبِ فَلاَ بَأْسَ بِهِ ﴾ والحديث الاول اخرجه الترمذی والنسائی، والثانی اخرجه البخاری تعليقاً، قاله المنذری.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ

## باب د ريښمو د استعمال بيان

**د لبس حرير مختلف اسباب او صورتونه او د هغې حکم :**

د احنافو مسلک په دې کښې دا دې چه د سرو دپاره حرير خالص حرام دې. او هم دغه شان هغه چه د هغې لحمه يعنی بانا حرير وی او تانا غير حرير هغه هم حرام دې، خو که د دې برعکس وی نو هغه جائز دې او د شوافعو مذهب لکه چه د هغوی د کتاب په متن ابی شجاع کښې ذکر کړې شوې دې: ﴿ واذا کان بعض الثوب ابريسما وبعضه قطنا او کتانا جاز لبسه ما لم يکن الابريسم غالبا اهـ ﴾ (وفی الابواب والتراجم ۷۶/۶ وهذا التفصيل ای التفريق بين السدی

والللحمة عندنا الحنفية... واما الجمهور فالعبرة عندهم للغلبة، قال الموفق : فاما المنسوج من الحرير وغيره كثوب منسوج من قطن وابريسم او قطن وكتان فالحكم للاغلب منها لان الاول مستهلک فيه : واما اذا استويا ففي تحريمه واباحته وجهان وهذا مذهب الشافعي اهـ مختصرا......دويمه مسئله دا ده ﴿لبس الحرير لاجل الحرب﴾ پس د صاحبينو په نزد په جنګ کښې حرير خالص جائز دي، د امام صاحب رحمه الله په نزد خالص جائز نه دي، خو مخلوط جائز دي يعنی د کوم تانا يا بانا چه حرير وی او دويم غير حرير.

يو مسئله دلته بله ده يعنی لبس الحرير لعذر.... د څه عذر مثلا د خارښ د وجې نه د هغې باب وړاندې مستقل راروان دي. يو مسئله دلته بله ده يعنی اغوستل د ريښم د سرو دپاره چه په بذل المجهود کښې په باب الحرير للنساء د لاندې ذکر دي او په الدر المنضود جلد ثاني باب اذا کانوا ثلاثة کيف يقومون کښې د حديث انس ﴿فقمت الى حصير لناقد اسود من طول لبث﴾ په شرح کښې تير شوې دي.

[۴۰۴۰]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَأَى حُلَّةً سِيَرَاءَ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ تُبَاعُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوِ اشْتَرَيْتَ هَذِهِ فَلَبِسْتَهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلِلْوَفْدِ إِذَا قَدِمُوا عَلَيْكَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا يَلْبَسُ هَذِهِ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ، ثُمَّ جَاءَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا حُلَلٌ، فَأَعْطَى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ مِنْهَا حُلَّةً، فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَسَوْتَنِيهَا وَقَدْ قُلْتَ فِي حُلَّةِ عُطَارِدٍ مَا قُلْتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَمْ أَكْسُكَهَا لِتَلْبَسَهَا، فَكَسَاهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَخًا لَهُ مُشْرِكًا بِمَكَّةَ".

عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه اميرالمومنين عمر فاروق رضي الله عنه د جومات په دروازه کښې يو کس وليدو چه ريښمي لباس ئې خرخولو هغه نبی عليه السلام ته اوفرمائيل کاش چه دا تا اغستلې وې اودجمعې اودوندونو دراتلو په ورځ دي اغوستلې نبی عليه السلام چه دا واوريدل نو وئې فرمائيل دا لباس به هغه څوک اغوندي دچا چه په خرت کښې هيڅ حصه نه وي بيا دا قسم يوڅوجوړې نبی عليه السلام ته راغلې نبی عليه السلام ددينه يوه جوړه عمر ته ورکړه عمرة عرض اوکړو اې دالله رسوله ته ماته دا لباس راکوې اوحال دادې چه مخکښې تا د عطارد نوې کس په باره کښې وئيلي وو چه دا به هغه کس اغوندي دچاچه به په آخرت کښې څه حصه نه وي نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل دا جوړه ماتاته داغوستلو دپاره نه ده درکړې نو عمر رضي الله عنه دا جوړه خپل يو مشرک ورور (عثمان بن حکم) ته ورکړه، کوم چه په مکه کښې وو.

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَأَى حُلَّةً سِيَرَاءَ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ تُبَاعُ الخ﴾

دا حديث او په دې باندې کلام په کتاب الصلوة باب اللبس اللجمعة کښې تير شوې دې، فارجع اليه لو شئت.

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری

[1]: انظر حديث رقم: (۱۰۷۶)، (تحفة الأشراف: ۸۳۳۵) (صحيح)

[۴۰۴۱]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، وَعَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: حُلَّةُ إِسْتَبْرَقٍ، وَقَالَ: فِيهِ ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَيْهِ بِجُبَّةِ دِيبَاجٍ، وَقَالَ: تَبِيعُهَا وَتُصِيبُ بِهَا حَاجَتَكَ.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه همدا حديث منقول دي او په دې روايت كښې داسې ذكر شوي دي چه داجوړه داستبرق والا وه استبرق دي ته وائي چه ريښم په كښې استعمال شوي وي بيانبى عليه السلام عمرته دريښمو جبه وليږله نبى عليه السلام ورته وفرمائيل دا خرڅه كړه اوخپل ضرورت ورباندې پوره كړه.

[۴۰۴۲]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، قَالَ: كَتَبَ عُمَرُ إِلَى عُتْبَةَ بْنِ فَرْقَدٍ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْحَرِيرِ إِلَّا مَا كَانَ هَكَذَا وَهَكَذَا أُصْبُعَيْنِ وَثَلَاثَةً وَأَرْبَعَةً".

د ابوعثمان نهدى رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه اميرالمومنين عمر رضي الله عنه عتبه بن فرقد ته وليكل چه نبى كريم دريښمو داغوستلونه منع فرمائيلې ده ليكن دومره او دومره يعنى ددوه يادرې يا څلورو ګوتو په برابر.

﴿عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ قَالَ كَتَبَ عُمَرُ إِلَى عُتْبَةَ بْنِ فَرْقَدٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنِ الْحَرِيرِ إِلاَّ مَا كَانَ هَكَذَا وَهَكَذَا أُصْبُعَيْنِ وَثَلاَثَةً وَأَرْبَعَةً﴾

په دې حديث كښې د سرو دپاره په اندازه د څلورو ګوتو د ريښمو د استعمال جواز معلوميږي، د دې څلورو ګوتو نه مراد دا دې چه سنجاف ([3]) يعنى د كپړې په طرفونو كښې لكه ګريوان او كف او شاته او مخكښې د لمنو په سرونو باندې لګول ئې جائز دى. پس په بخارى كښې دى د دې حديث نه پس ﴿ فيما علمنا انه يعنى الاعلام ﴾ او د باب الرخصة فى العلم وخيط الحرير وړاندې مستقل باب راروان دې په دې كښې د احنافو او د شوافعو مذهب هم دا دې چه د څلورو ګوتو په مقدار جائز دې لكه چه د ابوداؤد په روايت كښې تصريح ده، خو په دې كښې اشكال دا دې چه د صحيحين د روايت الفاظ خو دا دى: ﴿ نَهَى عَنِ الْحَرِيرِ إِلاَّ هَكَذَا وَأَشَارَ بِإِصْبَعَيْهِ اللَّتَيْنِ تَلِيَانِ الإِبْهَامَ ﴾ او په بل روايت كښې دى ﴿ باصبعيه المسبحة والوسطى ﴾ چه د هغې نه په ظاهر مقدار د جواز صرف د دوه ګوتو معلوميږي، ولم يتعرض له فى البذل، فتامل ([4])والحديث اخرجه البخارى ومسلم والنسائى وابن ماجه بنحوه، قاله المنذرى.

[1]): انظر حديث رقم: (۱۰۷۷)، (تحفة الأشراف: ۶۸۹۵) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/اللباس ۲۵ (۵۸۲۸)، صحيح مسلم/اللباس ۲ (۲۰۶۹)، سنن النسائي/الزينة ۳۸ (۵۳۱۴)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۲۱ (۳۵۹۳) (تحفة الأشراف: ۱۰۵۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۵، ۳۶، ۴۳) (صحيح)

[3]) سنجاف بالفتح فارسئ كښې سنجاف بكسر الاول هغه ريشه كومه چه د كپړو غاړې ته ئې د ډول دپاره لګوى نور اللغات)

[4]) او داسې وئيل هم ممكن دى: ريشه د كپړو دواړو طرفونو ته وى دكتاب په روايت كښې مجموع طرفين ذكر دې او د صحيحين په روايت كښې يو طرف مراد دې، فليتئل ۱۲)

[٤٠٤٣]([1])حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عَوْنٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "أُهْدِيَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةٌ سِيَرَاءُ، فَأَرْسَلَ بِهَا إِلَيَّ، فَلَبِسْتُهَا فَأَتَيْتُهُ فَرَأَيْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ، وَقَالَ: إِنِّي لَمْ أُرْسِلْ بِهَا إِلَيْكَ لِتَلْبَسَهَا، وَأَمَرَنِي فَأَطَرْتُهَا بَيْنَ نِسَائِي".

دعلی رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چه یوکس نبی کریم ﷺ ته یوه ریښمي وجوړه په هدیه کښې راولیږله ، نبی علیه السلام هغه ماته راولیږله ، ما واغوستله اودنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم مادغصي اثار دهغه په مخ باندې اولیدل او ماته ئې اوفرمائیل دا خوماتاته د اغوستلو دپاره نه وه درلیږلې،ماته یسي حکم وکړو اوما پخپلو ښځو باندې تقسیم کړه .

# باب مَنْ كَرِهَهُ

## باب: څوک چه د ریښمو استعمال بد ګڼړی دهغوی دلیل

په دې باب سره د مصنف رحمه الله غرض په ظاهر کښې دا دې چه د تیر باب د احادیثو نه د سړو په حق کښې د درې ګوتو په مقدار د حریر جواز ثابتیږی د دې په مقابله کښې مصنف رحمه الله په دې باب کښې بعض داسې روایتونه راوړی چه د هغې نه د څلورو ګوتو په مقدار جواز هم نه معلومیږی، خو دا نهی به په کراهت تنزیهی باندې محمول کولې شی

[٤٠٤٤]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ، وَعَنْ لُبْسِ الْمُعَصْفَرِ، وَعَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ، وَعَنِ الْقِرَاءَةِ فِي الرُّكُوعِ".

دعلی بن ابی طالب کرم الله وجهه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دقسي (یوقسم ریښمي کپړه) داغوستلونه منع فرمائیل ده او په زعفرانو باندې درنګ کړې شوي کپړې نه او د سرو زرو دګوتې داغوستلونه اوپه رکوع کښې د قران کریم دلوستلونه منع فرمائیلې ده.

﴿ عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَعَنْ لُبْسِ الْمُعَصْفَرِ وَعَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ وَعَنِ الْقِرَاءَةِ فِى الرُّكُوعِ ﴾

### شرح الحدیث :

دلته مقصود بالذکر د مصنف رحمه الله جزء اول دې، ﴿ قسی ﴾ منسوب دې قس ته کوم چه په مصر کښې د یو ځائې نوم دې، په دې کپړه کښې حریر ګډ وی، او یو قول په دې کښې دا دې چه قص په اصل کښې قز وو زا په سین سره بدله کړې شوه، او قز وائی ریښمو ته، لبس معصفر کښې اختلاف دې د احنافو او حنابله په نزد مکروه دې، د امام شافعی رحمه الله په نزد مباح دې (الا البیهقی فانه رجح الکراهة) او د امام مالک رحمه الله نه د معصفر مقدم کراهت نقل دي

[1]: صحيح مسلم/اللباس ٢ (٢٠٧١)، سنن النسائي/الزينة ٣٠ (٥٣٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٢٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ٣٠ (٥٨٤٠)، مسند احمد (١/٩٠، ١٣٩، ١٥٣) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ٤١ (٤٨٠)، اللباس ٤ (٢٠٧٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٨٠ (٢٦٤) واللباس ٥ (١٧٢٥)، ١٣ (١٧٣٧)، سنن النسائي/التطبيق ٧ (١٠٤١)، والزينة ٤٣ (٥١٨٠)، الزينة من المجتبى ٢٣ (٥٢٦٩، ٥٢٧٠)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢١ (٣٦٠٢)، ٤٠ (٣٦٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٠١٧٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٦ (٢٨)، مسند احمد (١/٨٠، ٨١، ٩٢، ١٠٤، ١٠٥، ١١٤، ١١٩، ١٢١، ١٢٣، ١٢٦، ١٢٧، ١٣٢، ١٣٣، ١٣٤، ١٣٧، ١٣٨، ١٤٦) (صحيح)

يعنى سخت، او د تختم ذهب نهى د ائمه اربعه ترمينځه متفق عليه ده په دې کښې د بعض سلفو اختلاف دې.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه مطولا ومختصرا، قاله المنذري.

[٤٠٤٥] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ يَعْنِي الْمَرْوَزِيَّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا قَالَ: "عَنِ الْقِرَاءَةِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ".

د علی بن ابی طالب کرم الله وجهه نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلى دى باقى روايت دتير شوى روايت په شان دې مګرپه دې روايت کښې دا اضافه ده چه نبی علیه السلام منع فرمائيلې ده دقرءت کولونه په رکوع اوپه سجده کښې.

[٤٠٤٦] (²) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بِهَذَا زَادَ وَلَا أَقُولُ نَهَاكُمْ.

د ابراهيم بن عبدالله نه هم همدا روايت منقول دې مګر په دې کښې دا اضافه ده چه زه دا نه وايم چه تاسوئې منع کړي يئ.

[٤٠٤٧] (³) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ مَلِكَ الرُّومِ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتُقَةً مِنْ سُنْدُسٍ، فَلَبِسَهَا فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى يَدَيْهِ تَذَبْذَبَانِ ثُمَّ بَعَثَ بِهَا إِلَى جَعْفَرٍ، فَلَبِسَهَا ثُمَّ جَاءَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَمْ أُعْطِكَهَا لِتَلْبَسَهَا"، قَالَ: فَمَا أَصْنَعُ بِهَا؟ قَالَ: أَرْسِلْ بِهَا إِلَى أَخِيكَ النَّجَاشِيِّ".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دروم بادشاه يوه قيمتي د ريښمو چوغه نبی علیه السلام ته په تحفه کښې راليګلې وه نبی علیه السلام واغوستله انس رضی الله عنه وائی ګوياکښې دنبی علیه السلام لاسونه اوس هم زه وينم چه خوزيدل اوهغه چوغه ئې جعفربن ابی. طالب ته ولیږله جعفر واغوستله اودنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضرشو نبی علیه السلام ورته اوفرمائيل داخوماتاته داغوستلو دپاره نه وه درکړي هغه ووئيل بيا په دې باندې څه وکړم انبی علیه السلام ورته اوفرمائيل خپل ورور دحبشو بادشاه نجاشي ته ئې وليږه.

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ مَلِكَ الرُّومِ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مُسْتُقَةً مِنْ سُنْدُسٍ فَلَبِسَهَا الخ﴾

د روم بادشاه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې يو پوستين چه د هغې کف وغيره د حرير وو، په طور د هديه راوليږلو. سندس وائی باريک حرير ته. د ﴿ من سندس ﴾ مطلب دې ﴿ ای مكففة من سندس ﴾ ګيني پوستين خو د حرير نه وی، راوی وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا پوستين واغوستلو، ګويا چه زه د هغې لستونړو لره وينم په حرکت کولو باندې، د پوسيتن لستونړی لږ شان اوږده وی، بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم يو ځل هغې لره اغوستلو سره جعفر رضی الله عنه ته

(¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠١٧٩) (صحيح)

(²): انظر حديث رقم: (٤٠٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٠١٧٩) (حسن صحيح)

(³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١١/٣، ٢٢٩، ٢٥١) (ضعيف الإسناد)

اولیږلو هغوی خپله دا واغوستلو او اغوستلو سره چه کله د رسول اللهﷺ مجلس ته حاضر شو نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل دا ما تاسو له دې دپاره نه وو درکړې چه خپله ئې واغوندئ، بیا د رسول اللهﷺ په فرمان باندې هغوی دا نجاشی شاه حبشه ؓ ته اولیږلو د دې نه معلومه شوه چه د دې اغوستل ناجائز نه وو بلکه په دې وجه چه هغه شاهانه لباس وو د زهد خلاف.

[٤٠٤٨]([1])حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ: أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا أَرْكَبُ الْأُرْجُوَانَ، وَلَا أَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ، وَلَا أَلْبَسُ الْقَمِيصَ الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ، قَالَ: وَأَوْمَأَ الْحَسَنُ إِلَى جَيْبِ قَمِيصِهِ، قَالَ: وَقَالَ: أَلَا وَطِيبُ الرِّجَالِ رِيحٌ لَا لَوْنَ لَهُ أَلَا وَطِيبُ النِّسَاءِ لَوْنٌ لَا رِيحَ لَهُ". قَالَ سَعِيدٌ: أُرَاهُ، قَالَ: إِنَّمَا حَمَلُوا قَوْلَهُ فِي طِيبِ النِّسَاءِ عَلَى أَنَّهَا إِذَا خَرَجَتْ فَأَمَّا إِذَا كَانَتْ عِنْدَ زَوْجِهَا فَلْتَطَيَّبْ بِمَا شَاءَتْ.

دعمران بن حصین ؓ نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی زه په ارغواني رنګ ذن باندې نه سوریږم اونه په زعفرانو رنګ شوې لباس اغوندم اونه داسې لباس اغوندم چه ریښم پکښې لګیدلې وي ، راوی وائی چه حسن دقمیص ګریبان ته اشاره وکړله راوی وائی چه نبی علیه السلام مزید اوفرمائیل دسړودپاره خوشبوداده دکوې چه رنګ نه وي صرف خوشبووي اود زنانو خوشبو رنګینه وي خوبوې پکښې نه وي (چه دفساد باعث جوړیږي) سعیدبن عروبه وئیلی دی چه داحکم په هغه وخت کښې دی کله چه زنانه بهر را اوځي خو که چرې په خپل کورکښې دخپل خاوندسره وي نوبیا هرقسم خوشبو استعمالولې شي هیڅ باک پکښې نشته.

﴿لاَ أَرْكَبُ الأُرْجُوَانَ وَلاَ أَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ وَلاَ أَلْبَسُ الْقَمِيصَ الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ﴾

ارجوان یو ګلداره اونه هم وی او سور رنګ ته هم وائی دغه شان په سره کپړه باندې هم د دې اطلاق کیږی، دلته د دې نه مراد المثیرة الحمراء دې، د کوم ذکر چه په روایاتو کښ په کثرت سره راځی، یعنی سره ګدئ کومه چه په زین دپاسه خورولې شی (سور زین پوش) رسول اللهﷺ فرمائی چه زه په دې باندې نه سوریږم، یا خو د سور رنګ د وجې نه، او یا په دې وجه چه هغه اکثر ریښمی وی، او د قمیص مکفف بالحریر نه اغوستل دا تنزها وو ګینې هغه خو جائز دې په دې شرط چه د څلورو ګوتو نه زیات نه وی، د باقی حدیث مطلب ښکاره دې.

[٤٠٤٩]([2])حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، أَخْبَرَنَا الْمُفَضَّلُ يَعْنِي ابْنَ فَضَالَةَ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيِّ، عَنْ أَبِي الْحُصَيْنِ يَعْنِي الْهَيْثَمَ بْنَ شَفِيٍّ، قَالَ: خَرَجْتُ أَنَا وَصَاحِبٌ لِي يُكْنَى أَبَا عَامِرٍ رَجُلٌ مِنَ الْمَعَافِرِ لِنُصَلِّيَ بِإِيلِيَاءَ وَكَانَ قَاصُّهُمْ رَجُلٌ مِنَ الْأَزْدِ، يُقَالُ لَهُ: أَبُو رَيْحَانَةَ مِنَ الصَّحَابَةِ، قَالَ أَبُو الْحُصَيْنِ: فَسَبَقَنِي صَاحِبِي إِلَى الْمَسْجِدِ ثُمَّ رَدِفْتُهُ، فَجَلَسْتُ إِلَى جَنْبِهِ فَسَأَلَنِي هَلْ أَدْرَكْتَ قَصَصَ أَبِي رَيْحَانَةَ؟ قُلْتُ: لَا، قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَشْرٍ: عَنِ الْوَشْرِ وَالْوَشْمِ وَالنَّتْفِ، وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨٠٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ٣٦ (٢٧٨٩)، مسند احمد (٤٤٢/٤) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الزينة ٢٠ (٥٠٩٤)، ٢٧ (٥١١٣، ٥١١٤، ٥١١٥)، سنن ابن ماجه/ اللباس ٤٧ (٣٦٥٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٤/٤، ١٣٥)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢٠ (٢٦٩٠) (ضعيف)

الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ، وَعَنْ مُكَامَعَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ بِغَيْرِ شِعَارٍ، وَأَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي أَسْفَلِ ثِيَابِهِ حَرِيرًا مِثْلَ الأَعَاجِمِ أَوْ يَجْعَلَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ حَرِيرًا مِثْلَ الأَعَاجِمِ، وَعَنِ النُّهْبَى وَرُكُوبِ النُّمُورِ وَلُبُوسِ الْخَاتَمِ إِلَّا لِذِي سُلْطَانٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ ذِكْرُ الْخَاتَمِ.

دابو الحصين هيثم بن شفى رحمه الله نه روايت دې فرماي چه زه او زما او ملګرې دمعافر قبيلې والا چه ابوعامر به ورته وئيلې شو په بيت المقدس كښې دمونځ كولو دپاره روان شو او په دغه وخت كښې ددوى خطيب دايز قبيل والا ابوريحانه صحابي وز، ابوالحصين وائى زما ملګرې زمانه جومات ته په داخليدو كښې مخكښې شو اوزه ورپسې وم اودهغه يوارخ ته كيناستم زمانه ئې تپوس اوكړو ايا دابو ريحانه تقرير دې واوريدو؟ ما اووئيل نه هغه اووئيل ما ورنه واوريدل چه وئيل ئې نبى كريم ﷺ دلسو څيزونو نه منع فرمائيلې ده (۱) دغاښونو دنري كولونه (۲) دخال لګولونه (۳) دزيب اوزينت دپاره دسر يادګيري وېښته ويستل (۴) اوبر بند څملاستل ددوه سړو بغير د پردې نه (۵) اوبربند څملاستل ددوه ښځو بغيرد پردې نه (۱) اوددې نه ئې هم منع فرمائيلې ده چه دعجميانو په شان د خپلوجامو لاندې ريښم مه لګوئ (۷، ۸) دلوټ مار اوتالان كولوئي نه ئې منع فرمائيلې ده (۹) او ددرندګانو په څرمن باندې ئې دسورلې كولونه منع فرمائيلې ده (۱۰) اردبادشاه نه علاوه ئې دبل چادپاره دګوتې اچولونه منع فرمائيلې ده.

﴿عَنْ أَبِي الْحُصَيْنِ - يَعْنِي الْهَيْثَمَ بْنَ شَفِيٍّ - قَالَ خَرَجْتُ أَنَا وَصَاحِبٌ لِي يُكْنَى أَبَا عَامِرٍ الخ﴾

**شرح الحديث :**

ابوالحصين فرمائى چه يو ځل زه او زما يو ملګرې چه دهغه كنيت ابوعامر دې د كور نه اوتلو چه بيت المقدس ته تلو سره مونځ اوكړو او د هغه ځائې قاص يعنى واعظ او مقرر د قبيله ازد يو سړې وو چه د هغه كنيت ابوريحانه وو كوم چه په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې وو، ابو حصين وائى چه بيت المقدس ته رسيدو كښ زما ملګرې زما نه مخكښې شو او دوى په څه وجه باندې شاته پاتې شو تر دې وخته پورې د هغوى بيان ختم شوې وو) بيا زه اورسيدم او د خپل ملګرى سره خوا كښې كيناستم، زما ملګرى زما نه تپوس اوكړو چه تاسو د ابوريحانه وعظ اوريدلې وو؟ ما اووې نه، هغه اووې ما دهغه نه د رسول الله ﷺ حديث اوريدلې دې ﴿نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ عَشْرٍ عَنِ الْوَشْرِ وَالْوَشْمِ وَالنَّتْفِ وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ وَعَنْ مُكَامَعَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ بِغَيْرِ شِعَارٍ وَأَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي أَسْفَلِ ثِيَابِهِ حَرِيرًا مِثْلَ الأَعَاجِمِ أَوْ يَجْعَلَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ حَرِيرًا مِثْلَ الأَعَاجِمِ وَعَنِ النُّهْبَى وَرُكُوبِ النُّمُورِ وَلُبُوسِ الْخَاتَمِ إِلاَّ لِذِي سُلْطَانٍ﴾

يعنى رسول الله ﷺ د لسو څيزونو نه منع اوفرمائيله:

۱: وشر نه يعنى د ترقيق الاسنان نه .غاښونه په څه آله باندې نرى كول، كوم چه د بعضو زنانو عادت وى چه د لوئې عمر د كيدو نه پس د خپلو غاښونو طرفونه نرى كوى چه هغوى كم عمره ښكاره شى، باريک كونكې ته واشره، او د كومې چه باريک كولې شى هغې ته موشوه وائى.

۲: او دوشم نه چه هغې ته خالونه هم وائی، د بدن په يو حصه کښې په يو نرئ ستن وغيره باندې نخښې او ګلونه وغيره جوړولو سره په هغې کښې نيل يا سرمه ډکولې شی،
۳: د نتف نه يعنی سپين ويښته ويستل د سر يا ګيرې نه،
۴: او د دې نه چه يو سړې د بل سړی سره بغير د پرتوګ يا لنګ نه سملی، او که دواړه په خپلو خپلو جامو کښې مستور وی او بيا يو مشترک څادر اغوستلو سره سملی نو د هغې جواز شته که د فتنې ويره نه وی،
۵: او هم دغه شان ئې د زنانو په باره کښې هم اوفرمائيل،
۶: او دا چه يو سړې د عجميانو په شان د جامو نه لاندې څه ريښمی جامه واچوی لکه بنين وغيره،
۷: يا دا چه په خپله اوږه باندې د ريښمو رومال اچولو سره روان وی،
۸: او د بل د مال به غير د اجازت اخستلو نه،
۹: او د پړانګ وغيره په څرمن باندې د سوريدو نه يعنی ركوب جلود النمور، يعنی د شير يا پړانګ وغيره څرمن په کته باندې اچولو سره په هغې باندې سوريدل لانه من زی الجبابرة، دا د متکبرينو عادت دې،
۱۰: او د ګوتمې اچولو نه د عام سړی دپاره مګر عهده دار ته اجازت دې، لکه مفتی يا قاضئ چاته چه د مهر لګولو ضرورت راځی.

په جلود نمور باندې د سوريدو د ممانعت مختلف اسباب کيدې شی يا خو زينت او خيلاء، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د منع وجه دا هم کيدې شی چه د هغوی په نزد د دې ځناورو ويښته ناپاک دی او په دباغت سره هم نه پاکيږی. بخلاف الحنفية فان عندهم شعر الميتة وعظمها طاهر.

د لبس خاتم ابواب وړاندې مستقل راروان دی. والحديث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۰۵۰]()حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "نُهِيَ عَنْ مَيَاثِرِ الْأُرْجُوَانِ".

دعلی رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام منع فرمائيل ده زين ته دسور پوخ اغوستلو نه خوله چه په دې کښې ريښم لګيدلې وي

﴿عَنْ عَلِيٍّ – رضی الله عنه – أَنَّهُ قَالَ نَهَى عَنْ مَيَاثِرِ الْأُرْجُوَانِ﴾ مياثرة د مثيره جمع او ارجوان سور رنګ دې ته په اردو کښې ارګوانی رنګ وائی يعنی په کته باندې خوره کړې شوې سره ګدئ، او منع يا خو د اسراف د وجې نه ده يا د حرير د وجې نه، او رنګ هم په دې کښې داخل دې چه هغه سور وی، پس په وړاندې روايت کښې دی ﴿المفيرة الحمراء﴾...

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۱/۱) (صحيح)

[٤٠٥١]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ هُبَيْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "نَهَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ، وَعَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ، وَالْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ".

دعلی څه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ زه دسرو زرو دګوتې او دقسي داغوستلو اودسور رنګ زین نه منع کړې یم.

[٤٠٥٢]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي خَمِيصَةٍ لَهَا أَعْلَامٌ، فَنَظَرَ إِلَى أَعْلَامِهَا فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ: "اذْهَبُوا بِخَمِيصَتِي هَذِهِ إِلَى أَبِي جَهْمٍ فَإِنَّهَا أَلْهَتْنِي آنِفًا فِي صَلَاتِي وَأْتُونِي بِأَنْبِجَانِيَّتِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو جَهْمِ بْنُ حُذَيْفَةَ مِنْ بَنِي عَدِيِّ بْنِ كَعْبِ بْنِ غَانِمٍ.

دعائشه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ په یونقش دار څادرکښې مونځ وکړو اونبی ﷺ ورته کتل بیا ئې دسلام ګرځولونه پس اوفرمائیل دا څادر ابوجهم ته ورکړئ زما خیال دمونځ په حالت کښې ددې څادر نقش اونګار طرف ته وراګرځي او زما دپاره یوڅاده څادر پکاردې په کوم کښې چه نقش اونګار نه وي، امام ابوداؤد فرمائی چه ابوجهم بن حذیفه د بنو عدي بن کعب دقبیلې نه دې.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ – رضى الله عنها – أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– صَلَّى فِي خَمِيصَةٍ لَهَا أَعْلَامٌ فَنَظَرَ إِلَى أَعْلَامِهَا الخ ﴾ دا حدیث په کتاب الصلوة کښې په باب النظر فی الصلوة کښې تیر شوې دې. والحديث اخرجه البخاري ومسلم، والنسائي، وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٠٥٣]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ وَالْأَوَّلُ أَشْبَعُ.

**ترجمه:** دعائشه رضي الله عنها نه دتیرشوي روایت په شان روایت منقول دې لیکن اولنې روایت زیات کامل دې.

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي الْعَلَمِ وَخَيْطِ الْحَرِيرِ

### باب: دهغه کپړې داستعمال جواز چه په هغې کښې ریښم کنډلې شوې وي

[٤٠٥٤]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَبُو عُمَرَ مَوْلَى أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي السُّوقِ اشْتَرَى ثَوْبًا شَامِيًّا فَرَأَى فِيهِ خَيْطًا أَحْمَرَ، فَرَدَّهُ فَأَتَيْتُ أَسْمَاءَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهَا، فَقَالَتْ "يَا جَارِيَةُ نَاوِلِينِي جُبَّةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْرَجَتْ جُبَّةً طَيَالِسَةً مَكْفُوفَةَ الْجَيْبِ وَالْكُمَّيْنِ وَالْفَرْجَيْنِ بِالدِّيبَاجِ".

[1]): سنن الترمذي/ الأدب ٤٥ (٢٨٠٨)، سنن النسائي/ الزينة ٤٣ (٥١٦٨)، سنن ابن ماجه/ اللباس ٤٦ (٣٦٥٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٣/١، ١٠٤، ١٢٧، ١٣٢، ١٣٣، ١٣٧) (صحيح)

[2]): انظر حديث رقم: (٩١٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٤٠٣) (صحيح)

[3]): انظر حديث رقم: (٩١٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٤٣٤) (صحيح)

[4]): صحيح مسلم/اللباس ٢ (٢٠٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٢١)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ١٨ (٣٥٩٤)، مسند احمد (٣٤٨/٦، ٣٥٣، ٣٥٤، ٣٥٥) (صحيح)

دابوعمر (داسماء بنت ابی بکر آزاد کړي شوي غلام) نه روایت دې فرمائی چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما مې په بازار کښې اولیدو چه یوه شامي جوړه ئې واخستله اویو سور تارئي پکښې اولیدونو واپس ئې کړه، راوی وائی چه زه اسماء ته ورغلم اودواقعې ذکر ئې ورته وکړونوهغې یوې جینئ ته اواز وکړوچه دنبی علیه السلام جبه راته راوړه نوهغې یوه داسې طیالسي جبه راوړله چه په نستونړو او ګریبان اودهغې مخامخ اوشاته در یخمو کار شوي وو.

﴿ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي السُّوقِ اشْتَرَى ثَوْبًا شَامِيًّا فَرَأَى فِيهِ خَيْطًا أَحْمَرَ فَرَدَّهُ الخ ﴾

شرح الحدیث:

یعنی یو ځل ابن عمر رضی الله عنهما د بازار نه یو شامی کپړه واخستله چه کله ئې په هغې کښې سرۀ تارونه اولیدل یعنی د ریښم نو هغه ئې واپس کړه، ابوعمر وائی (راوی د حدیث کوم چه د اسماء رضی الله عنها مولی وو) چه زه اسماء رضی الله عنها ته لاړم او هغې ته مې د دې خبرې ذکر اوکړو نو هغوی یوې وینځې ته اووې چه دننه چه کومه د رسول الله ﷺ جبه پرته ده هغه راوړه. ﴿فَأَخْرَجَتْ جُبَّةَ طَيَالِسَةٍ مَكْفُوفَةَ الْجَيْبِ وَالْكُمَّيْنِ وَالْفَرْجَيْنِ بِالدِّيبَاجِ ﴾ نو هغې یو داسې د ورئ جبه راوړله چه د هغې په لستونړو او ګریوان کښې روستو مخکښ دواړو سرونو ته د ریښمو ریشه وه.

﴿ طیالسة ﴾ جمع د طیلسان ده الکساء الغلیظ، پیړ د ورئ څادر ﴿ جیب ﴾ یعنی ګریوان ﴿ فرجین ﴾ تثنیه ده د فرج چه د هغې ترجمه مونږ چاک کړې ده، کومه چه په بعض جبو کښې لړه لړه وړاندې او روستو د لاندې طرف ته وی، یعنی بعض جبې خو هغه وی کومې چه د وړاندې نه تولې پرانستلې وی او بعض داسې وی چه د وړاندې نه تولې پرانستلې نه وی بلکه څه حصه ئې د لاندې نه پرانستلې وی بعض مغربی جبې هم دغه شان وی، او دیباج وائی پیړ قسم ریښم ته، یعنی هغه کوم ته چه کمخواب وائی. د دې حدیث نه معلومه شوه چه که په جامه کښې ریښمی تار یا د هغې په غاړو باندې ریښم لګیدلې وی نو هغه دسړو دپاره جائز دې کما فی ترجمة الباب.

ممکنه ده چه ابن عمر رضی الله عنهما ته دا مسئله معلومه نه وه........ هم په دې وجه اسماء رضی الله عنها هغه ته د ښودلو دپاره دا جبه راوغوښتله.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه نحوه مختصرا، قاله المنذری.

[٤٠٥٥] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا خُصَيْفٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الثَّوْبِ الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ فَأَمَّا الْعَلَمُ مِنَ الْحَرِيرِ وَسَدَى الثَّوْبِ، فَلَا بَأْسَ بِهِ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده ددا سې جامونه چه صرف دریخمونه جوړې کړې شوې وې مګر په کومه جامه باندې چه صرف ګلونه دریخمو جوړوې یا وودې شوې وې په ریخمو په دې کښې څه حرج نشته.

﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الثَّوْبِ الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ فَأَمَّا الْعَلَمُ مِنَ الْحَرِيرِ وَسَدَى الثَّوْبِ فَلاَ بَأْسَ بِهِ ﴾

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٠٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٣/١، ٣٢١) (صحيح) دون قوله: "فأما العلم"

دا حديث او د دې شرح په باب ما جاء فى الخز كښې تيره شوې ده دا حديث د احنافو د مسلک موافق دې.

## بَابٌ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ لِعُذْرٍ

### باب: د عذر په وجه د ريښمو د جامو استعمالولو بيان

[٤٠٥٦] ([1]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَلِلزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فِي قُمُصِ الْحَرِيرِ فِي السَّفَرِ مِنْ حِكَّةٍ كَانَتْ بِهِمَا".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ اجازت ورکړې وو عبدالرحمن بن عوف اوزبير بن عوام ته دريخمد قميصونو اغوستلو په سفرکښې دهغه خارښ په وجه باندې کوم چه په دوى دواړو باندې لګيدلې وو.

﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ وَلِلزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فِي قُمُصِ الْحَرِيرِ فِي السَّفَرِ مِنْ حِكَّةٍ كَانَتْ بِهِمَا ﴾

**شرح الحديث وفقهه:**

د سړو دپاره لبس حرير د څه عذر د وجې نه لکه خارښ يا سپګې وغيره د کيدو د وجې نه، ځکه چه په ريښم کښې سپګې نه پيدا کيږى دا مسئله مختلف فيه ده، يجوز عند الشافعى صرح به النووى وهو اصح روايتى احمد ويكره عند مالک وعن الحنفية روايتان.

مضمون: حديث دا دې چه رسول الله ﷺ عبدالرحمن بن عوف او زبير بن العوام رضي الله عنهما ته په يو سفر کښې د ريښم د قميص اجازت ورکړو د خارښ د وجې نه کوم چه په دې دواړو حضراتو باندې لګيدلې وو. دا حديث په صحيحين کښې م دې په هغې کښې يو ځائې کښې خو داسې دى ﴿ لحكة كانت بهما ﴾...... او په يو روايت کښې په ځائې د ﴿حكة﴾ قمل دې ﴿ انهما شكوا الى النبى ﷺ يعنى القمل ﴾ په دې باندې فتح البارى کښې ليکلې دى. جمع الداؤدى باحتمال ان يكون احدى العلتين باحدى الرجلين.... يعنى کيدې شى چه په دې دواړو کښې د يو عذر حكه وى او د بل عذر قمل، په دې باندې حافظ رحمه الله فرمائى: قلت ويمكن الجمع بان الحكة حصلت من القمل فنسبت العلة تارة الى السبب وتارة الى سبب السبب.... فتح البارى ۱۱۹/۶ اهـ امام بخارى رحمه الله دا حديث دوه ځايه ذکر فرمائيلې دې په کتاب الجهاد کښې چرته چه ئې ورله ترجمه قائم کړې ده. باب الحرير فى الحرب...... او بل په کتاب اللباس کښې هلته ئې ترجمه قائم کړې ده. باب ما يرخص للرجال من الحرير للحكة..... په مسئلة الباب کښې اختلاف د ائمه او د هغې تفاصيل په الابواب والتراجم کښې ذکر دى که څوک غواړى هغې ته د رجوع اوکړى.

---

[1]: صحيح البخاري/الجهاد ۹۱ (۲۹۱۹)، واللباس ۲۹ (۵۸۳۹)، صحيح مسلم/اللباس ۳ (۲۰۷۶)، سنن النسائي/الزينة من المجتمع ۳۸ (۵۳۱۲)، سنن ابن ماجه/اللباس ۱۷ (۳۵۹۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۹)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ۲ (۱۷۲۲)، مسند احمد (۱۲۷/۳، ۱۸۰، ۲۱۵، ۲۵۵، ۲۷۳) (صحيح)

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، وذكر السفر عند مسلم وحده، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْحَرِيرِ لِلنِّسَاءِ

### باب: ښځو دپاره د ريښمو د جامو د استعمالولو بيان

[۴۰۵۷] (¹)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي أَفْلَحَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زُرَيْرٍ يَعْنِي الْغَافِقِيَّ أَنَّهُ سَمِعَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: "إِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ حَرِيرًا فَجَعَلَهُ فِي يَمِينِهِ، وَأَخَذَ ذَهَبًا، فَجَعَلَهُ فِي شِمَالِهِ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ هَذَيْنِ حَرَامٌ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي".

دعبدالله بن زرير الغافقى رحمه الله نه روايت دې فرمائى چه دعلى بن ابى طالب د نه مې آوريدلى دى چه فرمائيل ئې نبى كريم ﷺ يوه ريښمي جامه پخپل ښئ لاس اونيوله او په خپل چپ لاس ئې سره زر اونيول اووئې فرمائيل دا دوه څيزونه زما دامت په نارينوو باندې حرام دي.

امام بخاري رحمه الله هم دا ترجمه قائم كړې ده خو په دې كښې يو مرفوع حديث هم داسې نه دې ذكر كړې چه په دې مسئله كښې د نساء متعلق وى نفيا يا اثباتا، په دې باندې حافظ فرمائى ﴿ كانه لم يثبت عنده الحديثان المشهور ان فى تخصيص النهى بالرجال صريحا، فاكتفى بما يدل على ذلك ﴾ بيا د دې نه پس حافظ يو حديث د على رضي الله عنه كوم چه دلته په آبوداؤد كښې ذكر دې او دويم حديث د ابوموسى اشعرى رضي الله عنه كوم چه په الابواب والتراجم كښې ذكر دې. ﴿ قلت ولفظه عند الترمذى : عن ابى موسى الاشعرى ان رسول الله ﷺ قال حرم لباس الحرير والذهب على ذكورامتي واحل لاناثهم ثم قال الترمذى:وفى الباب عن عمر وعلى رضي الله عنهما، الى آخر ما ذكر﴾ د جمهور علماء او ائمه اربعه مسلك هم دا دې كومه چه د دې احاديثو نه ثابتيږى. خو په دې كښې د بعض صحابه كرامو رضي الله عنهم لكه عبدالله بن عمر او د عبدالله بن زبير رضي الله عنه نقل دې. نه پس حافظ فرمائى ﴿باب الحرير للنساء لعله افرده بالذكر لوجود الخلاف فيه فى السلف كما تقدمت الاشارة فى باب لبس الحرير اهـ من الابواب والتراجم ﴾ د ابن عمر او د ابن زبير رضي الله عنهما د دوى دواړو روايت د عدم جواز په نسائى كښې ذكر دې په كوم باندې چه هغوى باب قائم كړې دې. التشديد فى لبس الحرير الخ.... او حديث دا دې ﴿ حدثنا خليفة قال سمعت عبد الله بن الزبير قال لا تلبسوا نساءكم الحرير فإني سمعت عمر بن الخطاب يقول قال رسول الله صلى الله عليه و سلم : من لبسه في الدنيا لم يلبسه في الآخرة ﴾ او دويم روايت د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې چه د عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه د لبس حرير په باره كښې تپوس اوشو نو هغوى اوفرمائيل چه د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوكړئ، راوى وائى (عمران بن حطان راوى دې) چه ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوكړو نو هغوى اوفرمائيل چه د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه تپوس اوكړه، بيا ما د ابن عمر رضي الله عنهما نه تپوس اوكړو نو هغوى اوفرمائيل ﴿ فقال حدثني ابو حفص أن رسول الله صلى الله عليه و سلم

---

¹: سنن النسائي/الزينة ۴۰ (۵۱۴۷)، سنن ابن ماجه/اللباس ۱۹ (۳۵۹۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۹۶، ۱۱۵) (صحيح)

قال من لبس الحرير في الدنيا فلا خلاق له في الآخرة ﴾ د دې جواب دا دې چه دا د دې حضراتو خپل اجتهاد او استنباط دې د جمهورو استدلال د احاديث مرفوعه نه دې، كيدې شي چه هغوى ته دا حديث نه وى رسيدلې. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٤٠٥٨](¹) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ الْحِمْصِيَّانِ، قَالَا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنِ الزُّبَيْدِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ "أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّهُ رَأَى عَلَى أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُرْدًا سِيَرَاءَ"، قَالَ: وَالسِّيَرَاءُ الْمُضَلَّعُ بِالْقَزِّ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ما دنبى كريم لور ام كلثوم رضي الله عنها په داسې حال كښې اوليدله چه يوداسې ځادرئې اغوستلې وو چه دريښمو ګلان پرې جوړ شوي وو، راوى وائى السيراء دريښمو كرخوته وئيلې شي.

﴿ بُرْدًا سِيَرَاءَ، قَالَ وَالسِّيَرَاءُ الْمُضَلَّعُ بِالْقَزِّ ﴾ سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ په لور ام كلثوم رضي الله عنها باندې يو ځادر اوليدو چه په هغې كښې د حرير پلنې پلنې ګيندې وې.

مضلع د ضلع نه دې يعنى پختئ..... يعنى د پختو شان پلنې پلنې ګيندې، د قز تحقيق مخكښې تير شوې دې ولفظ البخارى : برد حرير سيراء....... والحديث اخرجه البخارى والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٠٥٩](²) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ يَعْنِي الزُّبَيْرِيَّ، حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كُنَّا نَنْزِعُهُ عَنِ الْغِلْمَانِ وَنَتْرُكُهُ عَلَى الْجَوَارِي، قَالَ: مِسْعَرٌ فَسَأَلْتُ عَمْرَو بْنَ دِينَارٍ عَنْهُ فَلَمْ يَعْرِفْهُ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ به دهلكانودغاړې نه د ريښمو جامې ويستلې اودجينكوپه غاړه به مو پريخودلې، معمر وائى چه مادعمرو بن دينار نه ددې حديث په باره كښې تپوس اوكړو نوهغه ددې دپيژندلونه انكار وكړو.

﴿ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نَنْزِعُهُ عَنِ الْغِلْمَانِ وَنَتْرُكُهُ عَلَى الْجَوَارِي ﴾

سيدنا جابر رضي الله عنه فرمائي (كه د يو ماشوم په بدن باندې به مونږ د ريښم جامه اوليده) نو هغه به مو تړې نه ويستله او كه په وينځو باندې به مو ليدله نو هغه به مو پريخودله.

معلومه شوه چه ماشوم ته ريښم اغوستل د ولى دپاره جائز نه دى، د احنافو مذهب هم دا دې او د امام شافعى رحمه الله نه په دې كښې دوه روايتونه دى يو د عدم جواز، او دويم د جواز الى سبع سنين...... رومبې روايت اختيار كړې دې شيخ ابواسحاق شيرازى، او علامه رافعى دويم روايت ته ترجيح وركړې ده. (بذل)

﴿ قَالَ مِسْعَرٌ فَسَأَلْتُ عَمْرَو بْنَ دِينَارٍ عَنْهُ فَلَمْ يَعْرِفْهُ ﴾ يعنى دا حديث مسعر ته د عمر بن دينار نه په واسطه د عبدالملك رارسيدلې وو، مسعر وائى چه روستو زمانه كښې چه كله ما د

¹): صحيح البخاري/اللباس ٣٠ (٥٨٤٢ تعليقًا)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٣٠ (٥٢٩٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ١٩(٣٥٩٨) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٥٦١) (صحيح)

عمرو بن دينار نه پخپله تپوس اوکړو نو هغوی د دې روايت نه لا علمي ښکاره کړه، قال المنذری، فلعله نسيه وقال ابن رسلان وهذا غير قادح فی الرواية لان الراوی ثقة فلا يسقط روايته اهـ.

## بَابٌ فِي لُبْسِ الْحِبَرَةِ

### باب: د حبره (نقش ونګار والا يمنی) جامو د اغوستلو بيان

[۴۰۶۰] (۱) حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ الْأَزْدِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: قُلْنَا لِأَنَسٍ يَعْنِي ابْنَ مَالِكٍ "أَيُّ اللِّبَاسِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ أَعْجَبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: الْحِبَرَةُ".

دقتاده رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه انس بن مالک نه ته مې اووئيل چه دنبی کريم ﷺ کوم يولباس ډير خوښ وو يا کوم يولباس به ورسره ښه ښکاريدو؟ انس نه اوفرمائيل يمني څادر.

﴿ قال الحبرة ﴾ د انس رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو چه د رسول الله ﷺ کوم لباس زيات خوښ وو؟ نو هغوی اوفرمائيل: حبره....

### شرح الحديث:

حبره يعنی برد يمانی يمنی څادر کوم چه د کتان يا د قطن وی، سميت حبرة لانها محبرة ای مزينة والتحبير التزيين والتحسين (بذل) او په تحفة الاحوذی ۵/۴۰۶ کښ دی چه حبره د برود يمن يو قسم دې چه په هغې کښ سرې کرښې وی، او کله شنې يا اسمانی رنګ، دا د عربو په نزد اشرف الثياب دې ځکه چه دا د تار نه جوړولې شی. او يا په دې وجه چه د شين رنګ وی کوم چه د اهل جنت جامه ده. پس په يو روايت کښ دی: ﴿ كان احب الالوان اليه الخضرة، على ما رواه الطبرانی فی الاوسط وابن السنی وابونعيم فی الطب، والتحبير التحسين ﴾ او بعضو وجه د محبت دا ليکلې ده چه په دې کښ سادګی ده زيات زينت نشته، او دا هم چه داسې کپړه زر خيرنيږی نه. آهـ قال العارف الجامی رحمه الله:

برون اور سر از برديمانی که روئے تست صبح زندګانی

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

## بَابٌ فِي الْبَيَاضِ

### باب: د سپين لباس د فضيلت بيان

[۴۰۶۱] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ، فَإِنَّهَا خَيْرُ ثِيَابِكُمْ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ، وَإِنَّ خَيْرَ أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ يَجْلُو الْبَصَرَ وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ".

دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی سپين لباس اغونديئ ځکه چه دا ستاسو په لاسونو کښې غوره لباس دې او خپل مړونه هم په دې کښې

---

(۱): صحيح البخاري/اللباس ۱۸ (۵۸۱۲)، صحيح مسلم/اللباس ۵ (۲۰۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ٤٥ (۱۷۸۷)، الشمائل ۸ (۶۰)، مسند احمد (۳/۱۳٤، ۱۸٤، ۲۵۱، ۲۹۱) (صحيح)

(۲): انظر حديث رقم (۳۸۷۸)، (تحفة الأشراف: ۵۵۳٤) (صحيح)

کښن ورکوئ اوستا سود پاره غوره رانجه اثمد دي ځکه چه دا نظر تیزوي اود وروزو ویښته رازرغونوي.

**قوله:** ﴿ الْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ فَإِنَّهَا خَيْرُ ثِيَابِكُمْ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ ﴾

د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث مرفوع دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: سپینې جامې اغوندئ چه هغه بهترینې جامې دی، او په دې کښې خپل مړی کفن کوئ. وړاندې په حدیث کښې د کحل اثمد ذکر دې د کوم روایت چه مخکښې ذکر شوې دې.

والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه مختصرا، قاله المنذری

## بَابٌ فِي غَسْلِ الثَّوْبِ وَفِي الْخُلْقَانِ

### ابه د زړو جامو وینځلو او صفا ساتلو بیان

خلقان جمع ده د خَلَق لکه ذکر او ذکران، زړه کپړه.

د باب په رومبی حدیث کښې دی جابر رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل مونږ ته رسول الله ﷺ تشریف راوړلو نو د هغوی نظر په یو داسې سړی باندې پریوتلو چه د هغه ویښته ګډوډ وو. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ أَمَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ شَعْرَهُ ﴾ چه د هغه سره داسې څیز نه وو چه په هغې باندې د خپلو ویښتو اصلاح اوکړی یعنی ترجیل، تدهین وغیره. هغوی فرمائی چه دغه شان رسول الله ﷺ یو بل سړې اولیدو چه د هغه جامې خیرنې وې. ﴿ وعلیه ثیاب وسخة ﴾ نو هغه ته هم رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه آیا دې سړی سره داسې څه نشته دې خپلې جامې وینځی او صفا ئې کړی؟

[٤٠٦٢]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ نَحْوَهُ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى رَجُلًا شَعِثًا قَدْ تَفَرَّقَ شَعْرُهُ، فَقَالَ: "أَمَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ شَعْرَهُ، وَرَأَى رَجُلًا آخَرَ وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ وَسِخَةٌ، فَقَالَ: أَمَا كَانَ هَذَا يَجِدُ مَاءً يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام مونږ ته تشریف راوړو اوبه خیرن حالت کښې ئې یوببرسري سړې ولیدو چه دسر ویښته ئې ګډ وډ شوي اوخواره وو نبی علیه السلام اوفرمائیل ایادده سره داسې څه نشته چه خپل سر په هغې باندې صفاکړي بیانبی علیه السلام دخیرنو جامو ولایوکس اولیدو وبې فرمائیل ایادده سره اوبه نشته چه خپلې جامې پرې پالي کړي

په دې حدیث کښې د بدن او د جامو وغیره پاکولو ته ترغیب دې چه انسان لره صفا ستهره اوسیدل پکار دی، عمده او قیمتی جامه خو بیل څیز دې هغه خو د سادګئ خلاف ده، خو نظافت امر مطلوب دې، او باقی د مطلوب کیدو مطلب دا هم نه دې چه د انسان په بدن باندې بالکل جامې خیرنیږی هم نه او بس هم د هغې د صفایئ په اهتمام کښې مصروف وی، اعتدال په هر څیز کښې ضروری دې.

(): سنن النسائي /الزينة من المجتبى ٦ (٥٢٣٨)، (تحفة الأشراف: ٣٠١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٧/٣) (صحيح)

## د عمر بن عبدالعزیز یو حکایت د زهد په باره کښې :

یو روایت رایاد شو کوم چه په ترمذی کښې دې ﴿باب ما جاء في صفة اواني الحوض﴾ چه د هغې مضمون داسې دې چه یو ځل عمر بن عبدالعزیز رحمه الله ابوسلام حبشي د حوض کوثر په باره کښې د حدیث اوریدلو دپاره راوغوښتلو چه هغوی اوریدلې وو چه هغه د حوض کوثر په باره کښې یو حدیث بیانوی، هغوی په پوښتنه کولو باندې هغه حدیث واورولو چه په هغې کښې د حوض کوثر بیان دې او د هغې په آخر کښې دی ﴿أول الناس ورودا عليه فقراء المهاجرين الشعث رؤسا الدنس ثيابا الذين لا ينكحون المتنعمات ولا تفتح لهم أبواب السدد قال عمر لكني نكحت المتنعمات وفتح لي السدد ونكحت فاطمة بنت عبد الملك لا جرم أني لا أغسل رأسي حتى يشعث ولا أغسل ثوب الذي يلي جسدي حتى يتسخ﴾ چه د هغې ترجمه دا ده چه د ټولو نه اول به په دې حوض باندې د قیامت په ورځ باندې راتلونکی فقراء مهاجرین وی کوم چه په دنیا کښې ګډوډو ویښتو والا وو، او د خیرنو جامو والا، چه دنیازبینو زنانو سره ئې ودونه نه کول او نه د هغوی دنیوی حیثیت داسې وو چه د هغوی دپاره دروازه پرانستلې شي. عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په دې حدیث اوریدلو سره خپله جائزه واخستله او وې فرمائیل چه زما حال خو داسې نه دې، ما خو د نیازبینې سره واده کړې دې، او زما دپاره دروازې هم پرانستلې شی او د خلیفه عبدالملک لور فاطمه سره ما نکاح کړې ده، اوس زه عهد کوم چه خپل سر به نه وینځم تر څو چه هغه خیرن نه شي، او د خپل بدن جامې به نه وینځم تر څو چه هغه خیرنې شوې نه وی. د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله حالات او سیرت د مطالعې قابل دی، قدیم علماء کرامو د هغوی په سیرت باندې تصنیفات کړې دی چه د هغې اردو ترجمې هم شائع شوې دی، د هغوی په شروع کښې چه کله هغوی د مدینې طیبې ګورنر وو ډیره امیرانه او شاهانه ژوند وو، خپله د هغوی ذاتی ګټه ډیره زیاته وه په کتاب الخراج کښې د هغې ذکر تیر شوې دې، خو د خلافت نه پس د هغوی په حالاتو کښې ډیر په تیزئ سره انقلاب راغلو چه د هغې اندازه د دې مذکوره روایت نه هم کیدلې شي.

هسې په لباس کښې زمونږ د اکابرینو نور الله مرقدهم ذوق مختلف وو. حضرت ګنګوهی به ډیر زیات صفا او لطیف جامه اغوستله. دغه شان د هغوی نه پس د هغوی خلیفه حضرت سهارنپوری او هم دغه شان مولانا تهانوی چه د هغې تفصیل د هغوی د ژوند د حالاتو نه معلومیږی، او د قاسم العلوم مولانا محمد قاسم نانوتوی کښې ډیره زیاته سادګی وه او هم دغه شان حال زمونږ د شیخ د والد مولانا محمد یحیی صاحب کاندهلوی هم وو.

والحديث أخرجه النسائي، قاله المنذري

[٤٠٦٣] (¹)حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَوْبٍ دُونٍ، فَقَالَ: أَلَكَ مَالٌ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: مِنْ أَيِّ الْمَالِ؟ قَالَ: قَدْ آتَانِي اللَّهُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ وَالْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ، قَالَ: فَإِذَا آتَاكَ اللَّهُ مَالًا، فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللَّهِ عَلَيْكَ وَكَرَامَتِهِ".

(¹): سنن النسائي/الزينة ٥٢ (٥٢٢٥)، الزينة من المجتبى ٢٨ (٥٢٩٦)، (تحفة الأشراف: ١١٢٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧٣/٣، ١٣٧/٤) (صحيح الإسناد)

ابو الاحوص دخپل پلارنه روایت کوي فرمائي چه دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او په دغه وخت کښې زما جامې خیرنې وې نبي عليه السلام اوفرمائیل ایا مال درسره شته؟ ماعرض اوکړوهو، بیا ئې اوفرمائیل ستا سره څه قسم مال موجود دې؟ ماعرض اوکړو چه الله تعالی ماته چیلن اسونه وینځې اوغلامان هرڅه راکړي دي ، نبي عليه السلام اوفرمائیل کله چه تاته الله تعالی داڅیزونه درکړي دي نویکارده چه دالله تعالی دنعمت اثر ستا په جسم باندې ښکاره شي.

﴿عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فِي ثَوْبٍ دُونٍ فَقَالَ « أَلَكَ مَالٌ » الخ ﴾ یو صحابي مالک بن نضله رضي الله عنه فرمائي چه یوه ورځ زه په زړو جامو کښ د رسول الله ﷺ په خدمت کښ حاضر شوم نو هغوی زما نه تپوس اوکړو چه آیا تاسره څه مال وغیره شته؟ ما عرض اوکړو چه الله پاک ماته هر قسم مال راکړې دې اوښان، چیلۍ، اسونه او غلامان. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هر کله الله پاک تاته مال درکړې دې ﴿فَإِذَا آتَاكَ اللَّهُ مَالاً فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللَّهِ عَلَيْكَ وَكَرَامَتِهِ ﴾ نو پکار ده چه د الله پاک د نعمت او کرامت په تاسو باندې اثر ښکاره شي، معلومه شوه چه مالدار انسان لره د تحدیث بالنعمت په طوردحیثیت مطابق ښه جامه اغوستل پکاردی. والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

## باب في المَصْبُوغِ بِالصُّفْرَةِ

### باب: په زیړ رنګ باندې د رنګ شوو جامو د استعمال بیان

او په بعض نسخو کښ ﴿ فی المصبوغ بالصفرة ﴾ دې او کیدل هم پکار دی لکه چه په حدیث الباب کښ دی. مصنف رحمه الله دلته څلور ابواب قائم کړې دی اول په لباس اصفر باندې، دویم په لباس اخضر باندې، او دریم په لباس احمر باندې، او څلورم په لباس اسود باندې. او د دې څلورو واړو د رسول الله ﷺ نه ثبوت دې، خو د احمر په باره کښ په روایاتو کښ اختلاف دې، په دې کښ بعض روایتونه د ثبوت دی او بعض د منع، په دې وجه مصنف رحمه الله هم په دې باندې دوه بابونه تړلي دی.

[٤٠٦٤] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ زَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ أَسْلَمَ: أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَصْبُغُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ حَتَّى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ مِنَ الصُّفْرَةِ، فَقِيلَ لَهُ: لِمَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ؟ فَقَالَ: "إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْهَا، وَقَدْ كَانَ يَصْبُغُ ثِيَابَهُ كُلَّهَا حَتَّى عِمَامَتَهُ".

دزید بن اسلم رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه عبدالله ابن عمر رضي الله عنه به خپله ږیره په زیړ رنګ باندې رنګه کوله تردې چه ټولې جامې به ئې زیړې شوې یوځل ورنه چاتپوس اوکړو چه په زیړ رنګ باندې ږیره ولې رنګ کوې؟ نوهغه په جواب کښې اووئیل مانبي عليه السلام لیدلې وو چه زیړ رنګ ئې استعمال کړې وو اودنبي عليه السلام به ددینه زیات بل څیز خوښ نه وو او یقینانبي عليه السلام به خپلې ټولې جامې په دې رنګ باندې رنګ کولې تردې چه خپل پټکې به ئې هم په دې رنګ رنګ کړو.

(١): صحیح البخاري/اللباس ٣٧ (٥٨٥٢)، صحیح مسلم/الحج ٥ (١١٨٧)، سنن النسائي/الزینة ١٧ (٥٠٨٨)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٤ (٣٦٢٦)، (تحفة الأشراف: ٦٧٢٨) (صحیح الإسناد)

**قوله:** ﴿ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَصْبُغُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ حَتَّى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ مِنَ الصُّفْرَةِ فَقِيلَ لَهُ لِمَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ فَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَصْبُغُ بِهَا وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْهَا وَقَدْ كَانَ يَصْبُغُ بِهَا ثِيَابَهُ كُلَّهَا حَتَّى عِمَامَتَهُ ﴾

يعني ابن عمر رضي الله عنهما به په خپله ګيره کښې خضاب اصفر کولو، تر دې چه د هغوی کپړې به هم په دې باندې اولړلې شوې، چه کله د هغوی نه دې باره کښې تپوس اوکړې شو نو وې فرمائيل چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم لره خپلو جامو ته دې رنګ ورکولو باندې ليدلی دې، او د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا رنګ ډير زيات خوښ وو. او رسول الله صلى الله عليه وسلم به هم په دې رنګ کښې خپلې کپړې رنګ کولې تر دې چه عمامه هم.

کوم رنګ چه خالص اصفر وی لکه د شرشم ګلونه هغې ته زمونږ خلق د سپرلی رنګ وائی او کوم رنګ چه سرخئ ته مائل وی هغې ته ګيرو وائی چه هغې ته په عربئ کښې معراء وائی وړاندې په حديث کښې راځی، او کومه کپړه چه په دې رنګ کښې رنګ شوې وی هغې ته ګيروا او که مونث وی نو ګيروی، دا صوفيانه او مردانه رنګ دې او خالص اصفر هغه زنانه رنګ دې دا دلته نه دې مراد، د بذل نه معلوميږی چه که ګيروا لباس د غيرو شعار نه وی نو بيا د هغې استعمال جائز دې خاص طور د پتګی په باره کښې حضرت دا ليکلې دی. په هندوستان کښې بعض مذهبی هندوان ساده ګان قسم داسې وی چه د هغوی ټوله جامه د اول نه آخره پورې ټوله ګيروا وی. د حضرت اشاره هم دې طرف ته ده.

په متن کښې چه راځی : ﴿ وقد كان يصبغ ثيابه كلها ﴾ حضرت په بذل کښې د کان ضمير رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته منلې دې، او د دې نه پس ئې ليکلې دی ﴿ وقال القاری فی المرقاة : وقد كان ای ابن عمر فارجع الضمير الى ابن عمر، وهذا ايضا محتمل ﴾ هم دغه شان د ﴿ رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم يصبغ بها ﴾ په باره کښې منذری فرمائی چه بعض علماء کرامو دا فرمائيلې دی چه د دې نه مراد خضاب لحيه بالصفرة دې، او بعض نورو وئيلې دی چه د دې نه مراد صفرة ثياب دې، اصفر لباس اغوستل (بذل)

والحديث أخرجه النسائي، قاله المنذری.

## باب فِي الْخُضْرَةِ

### باب د شين رنګ د جامو بيان

[٤٠٦٥] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ إِيَادٍ، حَدَّثَنَا إِيَادٌ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ، قَالَ: انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي نَحْوَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَرَأَيْتُ عَلَيْهِ بُرْدَيْنِ أَخْضَرَيْنِ".

دابورمثه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زه د خپل پلار سره د نبی عليه السلام طرف ته روان وم نو ما په نبی عليه السلام باندې دوه شنه څادرونه اونيدل.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي رِمْثَةَ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي الخ ﴾

[۱]: سنن الترمذي/الأدب ٤٨ (٢٨١٣)، سنن النسائي/العيدين ١٥ (١٥٧٣)، الزينة من المجتبى ٤٢ (٥٣٢١)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢٦، ٢٢٧، ٢٢٨) (صحيح)

ابورمثه رضي الله عنه (۱) فرمائي چه زه د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو په هغوی باندې مې دوه شنې څادرې اولیدې، په ظاهر کښې ترې نه څادر او ازار مراد دې، قال ابن رسلان وهو من لباس اهل الجنة ومن انفع الالوان للابصار........ د سترګو په حق کښې ډیر مفید دی. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

## باب في الحُمْرَةِ

### باب: د سور رنګ د جامو بیان

### په لبس احمر کښې مذاهب ائمه:

د ائمه ثلاثه په نزد د سړی دپاره لباس احمر بغیر د کراهت نه جائز دې او د احنافو اقوال په دې کښې مختلف دی د بعضو د کلام نه معلومیږی چه مکروه تحریمي او د بعضو بلکه د اکثرو د کلام نه مکروه تنزیهي وغیره وغیره...... تردې چه یو قول پکښې د استحباب هم دې په شامي کښې د دې پوره تفصیل دې. د علامه شامي میلان زیات نه زیات د کراهت طرف ته معلومیږی، او د سید الطائفه حضرت اقدس ګنګوهي د تقریر الکوکب الدری عبارت داسې دې: ﴿والمذهب في البس الحمرة والصفرة ان المزعفر والمعصفر ممنوع عنه الرجال مطلقا والحمرة والصفرة غير ذلک، فالفتوى على جوازهما مطلقا لكن التقوى غير ذلک والله تعالى اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب﴾ یعني د سړو په حق کښې مزعفر او معصفر خو مطلقا ناجائز دی او حمرة او صفرة بیل څیز دی. د هغې په باره کښې فتوی د جواز ده اګر چه د تقوی خلاف ده اهـ... د دې حاصل هم دا شو چه احمر او اصفر دواړه د سړو په حق کښې خلاف اولی دی د لون اصفر په باره کښې څه تفصیل په باب المصبوغ کښې تیر شوې دې.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه مصنف رحمه الله د حمرة په باره کښې دوه بابونه قائم کړې دی په اول باب کښې ئې د منع او تشدید ذکر دې په ډیرو روایتونو کښې، او د دې نه پس ئې ﴿باب الرخصة﴾ کښې د جواز روایتونه راوړې دی، خو د منع په اکثرو روایتونو باندې محدثینو کلام کړې دې، کما يظهر بالرجوع الى الشروح....

[٤٠٦٦](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ الْغَازِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "هَبَطْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثَنِيَّةٍ، فَالْتَفَتَ إِلَيَّ وَعَلَيَّ رَيْطَةٌ مُضَرَّجَةٌ بِالْعُصْفُرِ، فَقَالَ: مَا هَذِهِ الرَّيْطَةُ عَلَيْكَ؟ فَعَرَفْتُ مَا كَرِهَ فَأَتَيْتُ أَهْلِي وَهُمْ يَسْجُرُونَ تَنُّورًا لَهُمْ، فَقَذَفْتُهَا فِيهِ ثُمَّ أَتَيْتُهُ مِنَ الْغَدِ، فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللَّهِ مَا فَعَلَتِ الرَّيْطَةُ؟ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: أَلَا كَسَوْتَهَا بَعْضَ أَهْلِكَ فَإِنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ لِلنِّسَاءِ".

عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه دده د نیکه نه روایت کوی فرمائي چه مونږ د نبی ﷺ سره دیوې ډیرئ نه لاندې راکوز شونبی ﷺ ما ته اوکتل او ما په دې وخت کښې یو څادر اغوستلی وو کوم ته چه زیړ رنګ ورکړې شوې رونبی ﷺ اوفرمائیل دا څه رنګه څادر دې اغوستلی دې؟ ما ته دنبی ﷺ د خبرو نه معلومه شوه چه دا څادر ئې خوښ نه شو زه چه کور

(۱) د ابو رمثه او دهغوی د پلار په نوم کښې اختلاف دې فقیل رفاعة بن يثربي وقيل حبيب بن وهب)

(۲): سنن ابن ماجه/اللباس ۲۱ (۳۶۰۳)، (تحفة الأشراف: ۸۸۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۴، ۱۹۶) (حسن)

ته راغلم نوزمونږ په کورکښې تنور لي وهلي ماهغه ځادر. تنور ته ور وغورځوو بیابله ورځ دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو زمانه ئې تپوس اوکړو چه اې عبدالله هغه ځادردې څه کړو؟ ما ورته واقعه بیان کړه نبی ﷺ اوفرمائیل دخپل خاندان بوکس ته به دې ورکړې وو ځکه چه دزنانوو دا رنګ خوښ وي اوبد ورسره نه ښکاري.

﴿ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ الخ ﴾

## شرح الحديث :

سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما فرمائی چه یو ځل مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو غریزه لاره کښې کوز شو ﴿ فَالْتَفَتَ إِلَيَّ وَعَلَيَّ رَيْطَةٌ مُضَرَّجَةٌ بِالْعُصْفُرِ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ چه زما طرف ته التفات اوفرمائیلو نو په ما ئې یو داسې ځادر اولیدو کوم چه د عصفر په لړ شان رنګ کښې رنګ کړې شوې وو نو هغوی اظهار د کراهت اوفرمائیلو، زه کور ته راغلم هلته تنور بل وو ما په هغې کښې اوسیزلو بیا چه کله زه د هغوی په مجلس کښې بله ورځ حاضر شوم نو هغوی زما نه د هغه ځادر په باره کښې تپوس اوکړو، ما چه څه کړي وو هغه مې عرض کړل، نو هغوی اوفرمائیل چه په زنانو کښې دې په چا ته ولې وانغوستلو. په دې کښې څه بدي وه؟

د دې حدیث تعلق د مطلق احمر سره نه دې بلکه د معصفر سره دې چه د جمهورو په نزد هم ممنوع دې، صرف د امام شافعی رحمه الله په نزد مباح دی، او امام مالک رحمه الله د مفدم او د غیر مفدم تفریق کړې دې اول مکروه او دویم غیر مکروه، حال دا چه دا غیر مفدم وو.

[۴۰۶۷] (۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: قَالَ هِشَامٌ يَعْنِي ابْنَ الْغَازِ الْمُضَرَّجَةُ "الَّتِي لَيْسَتْ بِمُشَبَّعَةٍ وَلَا الْمُوَرَّدَةُ".

ولید دهشام بن الغاز رضی الله عنه نه روایت کوی چه مضرجه معنی داده چه نه بالکل شوخ سور اونه ګلابي بلکه درمیانه.

**قوله:** ﴿ قَالَ هِشَامُ بْنُ الْغَازِ – الْمُضَرَّجَةُ الَّتِي لَيْسَتْ بِمُشَبَّعَةٍ وَلاَ الْمُوَرَّدَةُ ﴾ (۲)

هشام راوي د ﴿ مضرجة ﴾ تفسیر بیانوی چه کوم نه زیات شوخ وی او نه زیات پیکه، مشبعة یعنی شوخ او تیز رنګ او مورده یعنی حمزه خفیفه په مثل د الورد یعنی ګلابی د دواړو نفی کولې شی چه نه داسې وی او نه داسې بلکه د دواړو ترمینځه ته مضرجة وئیلې شی.

والحديث اخرجه ابن ماجه. قاله المنذري.

دا حدیث مصنف رحمه الله په مختلفو طرقو سره ذکر کړې دې او الفاظ هم د ټولو روایتونو خپل مینځ کښې مختلف دی لهذا دې روایت لره په استدلال کښې پیش کول ګران دی.

[۴۰۶۸] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ شُفْعَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: رَآنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ اللُّؤْلُؤِيُّ: أُرَاهُ وَعَلَيَّ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸۱۱) (صحيح)

(۲): الظاهر انه مشبعة من الاشباع وبعضهم ضبطه من التفعيل، وليس بظاهر)

(۳): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۴۰۶۶)، (تحفة الأشراف: ۸۸۲٤) (ضعيف)

ثَوْبٌ مَصْبُوغٌ بِعُصْفُرٍ مُوَرَّدٍ، فَقَالَ: مَا هٰذَا؟ فَانْطَلَقْتُ، فَأَحْرَقْتُهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا صَنَعْتَ بِثَوْبِكَ؟ فَقُلْتُ: أَحْرَقْتُهُ، قَالَ: أَفَلَا كَسَوْتَهُ بَعْضَ أَهْلِكَ؟"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ثَوْرٌ، عَنْ خَالِدٍ، فَقَالَ: مُوَرَّدٌ، وَطَاوُسٌ، قَالَ: مُعَصْفَرٌ.

دعبدالله بن عمرو بن العاص نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ولیدلم ، ابوعي لؤلؤئي وئیلی دی په داسې حال کښې چه ماګلابي جامې اغوستلي وي ماته ئې اووئیل داڅه دي نوزه لاړم اوهغه مې وسوزولي نبی علیه السلام راته اووئیل دهغه جاموسره دې څه وکړل ماوره اوئیل وي سوزولي نبی علیه السلام راته اووئیل خپلې ښځې ته دې ولې نه ورکولي؟ امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت ثور په واسطې دخالد مورد اوطاوس لفظ دمعصفر نقل کړیدې.

[۴۰۶۹](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُزَابَةَ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ، فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ته یوکس راغې او دوه سرې جامې ئې اغوستلي وي نبی علیه السلام ته ئې سلام اوکړو نبی علیه السلام ورته دسلام جواب ورنکړو.

﴿عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- رَجُلٌ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عليه النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-﴾

دا حدیث سندا ضعیف دې، د ابویحیی د القتات په باره کښ حافظ منذری رحمه الله فرمائی ﴿لا يحتج بحديثه﴾ والحديث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

[۴۰۷۰](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ يَعْنِي ابْنَ كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي حَارِثَةَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَرَأَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَوَاحِلِنَا وَعَلَى إِبِلِنَا أَكْسِيَةً فِيهَا خُيُوطُ عِهْنٍ حُمْرٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا أَرَى هٰذِهِ الْحُمْرَةَ قَدْ عَلَتْكُمْ؟ فَقُمْنَا سِرَاعًا لِقَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى نَفَرَ بَعْضُ إِبِلِنَا، فَأَخَذْنَا الْأَكْسِيَةَ فَنَزَعْنَاهَا عَنْهَا".

د رافع بن خدیج نه روایت دې فرمائی چه مونږ په یوسفرکښې دنبی علیه السلام سره اووو نونبی علیه السلام زمونږه داوښانو دزینونو پوخونوته وکتل چه دسور رنګ کرخي په کښې وي نبی علیه السلام اوفرمائیل ایا زه نه وینم چه په تاسوباندې سوروالې غالب شوې دې مونږ درسول الله دفرمان په وجه په جلتی پاڅیدو تردې چه زمونږه ذتیزئ په وجه باندې بعضې اوښان وتریدل او وتښتیدل اوبیامونږه دخپلو اوښانونه دا کپړې لرې کړې.

﴿عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي سَفَرٍ الخ﴾

سیدنا رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائی چه مونږ یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په سفر کښ اوتلو نو هغوی زمونږ په کجاوو او اوښانو باندې داسې څادرې اولیدې چه په هغې کښ سرۀ تارونه وو، نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چه زه ګورم چه دا سرخی په تاسو باندې غالبه

(١): سنن الترمذي/الأدب ٤٥ (٢٨٠٧)، (تحفة الأشراف: ٨٩١٨) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٥٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٣/٣) (ضعيف الإسناد)

کیږی، مونږ په دې اوریدو سره فورا خپلو اوښانو ته منډه کړې چه د هغې په وجه باندې زمونږ اوښان اویریدل او مونږ د هغې نه هغه څادرې راکوزې کړې.

[۴۰۷۱]() حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ ابْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ: وَقَرَأْتُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ يَعْنِي ابْنَ زُرْعَةَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ حُرَيْثِ بْنِ الأَبَحِّ السَّلِيحِيِّ: أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي أَسَدٍ، قَالَتْ: "كُنْتُ يَوْمًا عِنْدَ زَيْنَبَ امْرَأَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَصْبُغُ ثِيَابًا لَهَا بِمَغْرَةٍ، فَبَيْنَا نَحْنُ كَذَلِكَ إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَأَى الْمَغْرَةَ رَجَعَ فَلَمَّا رَأَتْ ذَلِكَ زَيْنَبُ عَلِمَتْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَرِهَ مَا فَعَلَتْ فَأَخَذَتْ، فَغَسَلَتْ ثِيَابَهَا وَوَارَتْ كُلَّ حُمْرَةٍ ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَعَ فَاطَّلَعَ فَلَمَّا لَمْ يَرَ شَيْئًا دَخَلَ".

دحریث بن ابح نه روایت دې فرمائی چه دقبیله بنی اسد یوې زنانه وئیلی دی چه یوه ورځ زه دنبی علیه السلام دبي بي زینب رضی الله عنها سره ناسته وم اومونږه دهغې جاموله سور رنګ ورکولو مونږ په دې حال کښې وو چه نبی علیه السلام راسرګند شونبی علیه السلام چه سور رنګ اولیدو نو واپس شو کله چه زینب رضی الله عنها دا منظر اولیدو نوپوهه شوه چه دا رنګ نبی علیه السلام بد وګڼړلو چنانچه هغه پاڅیدله اوخپل جامې ئې ووینځلې تردې چه سور والې هې ختم کړو ددینه پس نبی علیه السلام راغې نبی علیه السلام په غور سره وکتل لیکن څه ورته معلوم نه شول نوکورته ئې تشریف راوړو.

﴿ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي أَسَدٍ قَالَتْ كُنْتُ يَوْمًا عِنْدَ زَيْنَبَ امْرَأَةِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– وَنَحْنُ نَصْبُغُ ثِيَابًا لَهَا بِمَغْرَةٍ الخ ﴾

یوه زنانه د قبیله بنو اسد وائی چه زه یوه ورځ د ام المومنین زینب رضی الله عنها سره اوم، او مونږ د هغوی کپړې رنګ کولې په مغرا سره یعنی په ګیرو (سرې خاورې سره) چه ناڅاپه رسول الله صلی الله علیه وسلم راغلو، چه کله مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم په رنګ کولو اولیدو نو دننه داخل نه شو بلکه واپس شو، چه کله زینب رضی الله عنها دا صورت حال اولیدو نو هغه ټولې جامې ئې په اوبو کښې وینځلې چه په هغې سره ترې نه ټول رنګ لاړو بیا لږ ساعت پس رسول الله صلی الله علیه وسلم راغلو نو سر ئې راښکاره کړو چه دا رنګ ئې او نه لیدو نو راداخل شو.

**په حدیث باندې اشکال او د هغې توجیه:**

د زنانو دپاره سرې جامې بالاتفاق جائز دی او د دې حدیث نه په ظاهر کښې د هغې کراهت معلومیږی، نو د دې په باره کښې د حضرت ګنګوهی په تقریر کښې دی چه دا د زینب رضی الله عنها خپله استنباط وو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم واپس کیدل د دې وجې نه وو کیدې شی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم واپس کیدل د بل څه وجې نه وو، او د کور خلقو دا اوګڼړله چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم واپس کیدل د دې رنګ د وجې وو ابن رسلان د دې حدیث یو بله توجیه کړې ده او حافظ منذری رحمه الله د دې په سند باندې کلام کړې دې (بذل)

حضرت د حدیث توجیه دا فرمائیله ده او هم دا راجحه معلومیږی، او په حدیث کښې د دې مثال هم شته، پس وړاندې ﴿ باب تطويل الجمة ﴾ کښې راځی وائل بن حجر رضی الله عنه فرمائی چه زه یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم په داسې حال کښې چه زما ویښته اوږده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۶۹) (ضعيف الإسناد)

وو نو رسول اللهﷺ زما په ليدو باندې اوفرمائيل : ﴿ ذباب.. ذباب ﴾ يعنى رسول اللهﷺ د كراهت اظهار اوفرمائيلو، زه واپس شوم او ويښته مې پرې كړل، په بله ورځ چه زه كله د رسول اللهﷺ مجلس كښې حاضر شوم نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه ته نه وې مراد، يعنى پوهه نه شوې ما هغه الفاظ ستا په باره كښې نه وو وئيلې، باقى دا زيات غوره دى، يعنى زيات اوږدۀ ويښته پرې كولو سره وارۀ كول.

په دې باندې حضرت په بذل كښې ليكلي دى : ﴿ وفي الحديث دليل على ان بعض الصحابة (في بعض الاحيان) قد يغلط في فهم رسول اللهﷺ اهـ ﴾

## باب في الرخصة في ذلك

### باب د سور رنګ جامو د اجازت بيان

[٤٠٧٢]([1]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ شَعْرٌ يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ وَرَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ لَمْ أَرَ شَيْئًا قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهُ".

دبراء بن عازب ﷺ نه روايت دې فرمائى چه دنبى ﷺ ويښته مبارک به دغوږونو دنرموبورې وو اومايوه سره جوړه دنبى ﷺ په غاړه وليدله اوما چرته هيڅوک داسې ښكلې او ښائسته نه وو ليدلې.

﴿ وَرَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ لَمْ أَرَ شَيْئًا قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهُ ﴾ سيدنا براء ﷺ فرمائى چه د رسول اللهﷺ ويښته به د غوږونو د غاړو پورې رسيدل، او ما اوليدو رسول اللهﷺ په سره جوړه كښې، او كله هم ما يو څيز د رسول اللهﷺ نه ښكلې نه دې ليدلې.

دا حديث په لبس احمر كښې د جمهورو دليل دې او د احنافو په نزد په بيان د جواز باندې محمول دې، او يو توجيه دا كړې شوې ده چه د حلة حمراء نه مراد دا نه ده چه د هغې خالص سور رنګ وو بلكه دا چه په هغې باندې سرې كرښې وې كما تقدم في تفسير الحبرة.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي بمعناه، قاله المنذري

[٤٠٧٣]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى يَخْطُبُ عَلَى بَغْلَةٍ وَعَلَيْهِ بُرْدٌ أَحْمَرُ وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَمَامَهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ".

هلال بن عامر دخپل پلارنه روايت كوى فرمائى چه نبى ﷺ مې په منى كښې دخطې وركولو په حال كښې په يوه قچر باندې ليدلې وو اوسور رنګ څادر ئې اغوستلې ووعلى دنبى ﷺ مخامخ اودريدو اوخلقوته به ئې اواز رسولو.

﴿رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- بِمِنًى يَخْطُبُ الخ ﴾ يعنى رسول اللهﷺ په يو خچره باندې سور خطبه وركوله او په رسول اللهﷺ باندې سور څادر وو او على ﷺ د

[1]: صحيح البخاري/المناقب ٢٣ (٣٥٥١)، اللباس ٣٥ (٥٨٤٨)، ٦٨ (٥٩٠١)، صحيح مسلم/الفضائل ٢٥ (٢٣٣٧)، سنن الترمذي/اللباس ٤ (١٧٢٤)، الأدب ٤٧ (٢٨١١)، المناقب ٨ (٣٦٣٥)، الشمائل ١ (٦٢)، ٣ (٦٤)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٥ (٥٢٣٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٦٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ٢٠ (٣٥٩٩)، مسند احمد (٤/٢٨١، ٢٩٥)، وأعاد المؤلف بعضه في الترجل (٤٢٨٤) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٠٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٧٧) (صحيح)

هغوی مخې ته ولاړ وو او د هغوی ترجماني ئې کوله، يعنی په اوچت آواز باندې ئې د رسول الله ﷺ خبره نورو ته رسوله.

## بَابٌ فِي السَّوَادِ

### باب د تور رنګ د جامو استعمال لو بيان

[٤٠٧٤](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "صَنَعْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُرْدَةً سَوْدَاءَ فَلَبِسَهَا فَلَمَّا عَرِقَ فِيهَا وَجَدَ رِيحَ الصُّوفِ، فَقَذَفَهَا، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ، قَالَ: وَكَانَ تُعْجِبُهُ الرِّيحُ الطَّيِّبَةُ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام دپاره مې يوتور څادر جوړ کړو اونبی عليه السلام واغوستو بيا چه کله په دې څادر کښې په نبی عليه السلام خوله راغله او دوړئ بوي ئې محسوس کړونونبی عليه السلام دا څادر يوطرف ته اوغورزوو ، راوی وائی چه دنبی عليه السلام خوشبو ډيره خوښه وه.

يعنی توره جامه، د عائشې صديقې رضي الله عنها نه روايت دې چه ما د رسول الله ﷺ دپاره څادر په تور رنګ کښې رنګ کړو کوم چه هغوی واغوستلو، پس چه کله په رسول الله ﷺ باندې په هغې کښې خوله راغله نو په هغوی باندې د وړئ بوئی راغلو نو رسول الله ﷺ هغه ويستلو. راوی وائی چه د رسول الله ﷺ خوشبوئی خوښه وه.

په بذل کښې ليکلې دی چه ددې حديث نه د تور لباس جواز ثابت شو کوم چه متفق عليه دې، د رسول الله ﷺ نه د تور څادر او تور پټکی دواړو استعمال ثابت دې. والحديث اخرجه النسائي مرسلا، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْهُدْبِ

### باب د کپړو د غاړې د استعمال بيان

(د لفظ هدب تلفظ)

دا لفظ (الهدب) په يو ضمه او ضمتينو دواړو طريقو سره لوستلې شی، قاعده ده چه هر ذو ضمتين لفظ کښې ثانی لره تخفيفا ساکن لوستل جائز دی، د هدبه ترجمه په جالر سره کولې شی، د څادر يا رومال په غاړو باندې چه کوم تارونه شان وی، په اصل کښې هغه صرف تانا وی بغير د بانا نه او کله په هغې کښې غوټې هم لګولې شی.

[٤٠٧٥](٢)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدَةَ أَبِي خِدَاشٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ جَابِرٍ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْتَبٍ بِشَمْلَةٍ وَقَدْ وَقَعَ هُدْبُهَا عَلَى قَدَمَيْهِ".

دجابر بن سليم رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم او هغه د يو څادرنه احتباء کړې وه او دهغه څادريوه کناره ده په خپو باندې پرته وه.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٦٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٢/٦، ١٤٤، ٢١٩، ٢٤٩) (صحيح)
(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢١٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٣/٥) (ضعيف)

د جابر رضي الله عنه نه روايت دي چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت كښ حاضر شوم په داسې حال كښ چه رسول الله ﷺ په يو څادر كښ راټول شوې ناست وو، او د هغوى د څادر ځالر د هغوى په قدمونو باندې پراته وو. ﴿ حبوه ﴾ تړلو سره كيناستل دا كله كله خو په رومال يا كپړې سره وى او كله د دواړو لاسونو نه حلقه جوړولو سره.

## بَابٌ فِي الْعَمَائِمِ

### باب د عمامې (پټكى) تړلو بيان

[٤٠٧٦]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ مَكَّةَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه دفتح مكې په كال باندې نبى عليه السلام منې ته داخل شوا و تور پټكې ئې تړلې وو.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ مَكَّةَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ ﴾ په حديث الباب كښ دى چه كله رسول الله ﷺ مكې مكرمې ته د فتح دپاره داخليدو نو هغه وخت د رسول الله ﷺ په سر مبارک باندې تور پټكې وو.

### (يو تعارض او دهغې تطبيق)

﴿ ودخل عام الفتح مكة وعليه عمامة سوداء ﴾ په دې باندې اشكال دا دې چه په بل روايت كښ راځى ﴿ انه دخل مكة وعلى راسه المغفر ﴾ د دې جواب دا وركړې شوې دې چه په دواړو كښ هيڅ تعارض نشته، كيدې شى چه رسول الله ﷺ عمامه تړلې وى په مغفر باندې دپاسه يا د هغې نه لاندې، بله دا چه په دې باندې ملا على قارى رحمه الله ليكى چه په دې حديث سره بعض علماء كرامو د تور لباس په جواز باندې استدلال كړې دې اګر چه بياض افضل دې ﴿لحديث ان خير ثيابكم البيض الى آخر ما ذكر ﴾ او هم دغه شان خبره علامه باجورى ليكلې ده چه په دغه ورځ باندې د رسول الله ﷺ تور پټكې اختيارولو كښ په ابيض باندې كوم چه ممدوح دې ډير مصلحتونه دى يو دا چه په دې كښ اشاره ده د رسول الله ﷺ سودة يعنى سيادت ته او د اسلام او اهل اسلام اوچتوالى ته او دې طرف ته چه په دين محمدى ﷺ كښ به هيڅ قسم تغير او تبديل نه وى ځكه چه تور رنګ د تغير او تبديل نه ډير بعيد وى.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٠٧٧]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ مُسَاوِرٍ الْوَرَّاقِ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ قَدْ أَرْخَى طَرَفَهَا بَيْنَ كَتِفَيْهِ".

[1]: سنن الترمذي/اللباس ١١ (١٧٣٥)، سنن النسائي/الحج ١٠٧ (٢٨٧٢)، الزينة ٥٥ (٥٣٤٦، ٥٣٤٧)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٢٢ (٢٨٢٢)، اللباس ١٤ (٣٥٨٥)، (تحفة الأشراف: ٢٦٨٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ٨٤ (١٣٥٨)، مسند احمد (٣٦٣/٣، ٣٨٧) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الحج ٨٤ (١٣٥٩)، سنن الترمذي/الشمائل ١٦ (١٠٨)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٥٦ (٥٣٤٨)، سنن ابن ماجه/الجهاد ٢٢ (٢٨٢١)، اللباس ١٥ (٣٥٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٧١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٧/٤)، سنن الدارمي/المناسك ٨٨ (١٩٨٢) (صحيح)

عمرو بن حريث دخپل پلارنه روايت كوي فرمائي چه نبي ﷺ مي په منبرباندي ليدلي ووچه توربتي ئي ترلي ووچه دهغه شمله ئي داوږوپه مينځ رازوړنده كړي وه.

[٤٠٧٨]⁽¹⁾ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو الْحَسَنِ الْعَسْقَلَانِيُّ، عَنْ أَبِي جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ رُكَانَةَ صَارَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَصَرَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رُكَانَةُ: وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "فَرْقُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلَانِسِ".

محمد بن علي بن ركانه دخپل پلارنه روايت كوي فرمائي چه ركانه دنبي ﷺ سره كشتي زغلوله نو نبي ﷺ ده لره شاته پريخودو ، ركانه وئيلي دي چه ما دنبي ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئي زمونږ اودمشركانو په مينځ كښې فرق په خولو باندې په پټكوسره دې.

**قوله:** ﴿أَنَّ رُكَانَةَ صَارَعَ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– فَصَرَعَهُ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ رُكَانَةُ وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « فَرْقُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلاَنِسِ ﴾

## رسول الله ﷺ سره د مصارعة ركانة واقعه :

د دې حديث راوى ركانة بن عبد يزيد بن هاشم بن المطلب بن عبد مناف دې. په دې حديث كښې د هغوى دمصارعت ذكر دې د رسول الله ﷺ سره، او هم دا سلسله د نسب د هغه ركانه هم دې د كوم ذكر چه په كتاب الطلاق كښې راغلې دې چه هغوى خپلې ښځې ته درې طلاقه يا طلاقه بته وركړې وو، په تهذيب الكمال للمزى كښې تصريح ده چه دا دواړه قصې يو سړى ته منسوب دى او دا هم هغه ركانة دې.

په دې حديث كښې دا دى چه ركانه كوم چه مشهور پهلوان وو هغه د رسول الله ﷺ سره كشتي اوكړه خو رسول الله ﷺ هغه راګزار كړو. په مراسيل ابوداؤد كښې دى چه يو ځل د هغه د راګزارولو نه پس هغه دوباره كشتي اوكړه او بيا په دريم ځل هم، درې واړه كرته رسول الله ﷺ هغه را اوپرځولو. او هر ځل ئې ترې نه يوه يوه بيزه واخستله د كومې چه وعده شوې وه، د دې واقعې نه پس هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چه اې محمد ﷺ د دې نه مخكښې كله هم يو سړى زما شا د زمكې سره نه ده لګولې او اوس هم څوک داسې نشته چه ما را اوپرځوى يعنى تاسو سره بل څه طاقت معلوميږى. او د دې نه پس هغه اسلام قبول كړو او رسول الله ﷺ د هغه دپاره دعا اوفرمائيله، او په بعض روايتونو كښې دى چه هغه اووئيل تاته ستا رب دې وخت كښې عزت دركړې دې او زه خپل رب لات او عزى ذليل كړم او هغه زما په دې وخت كښې په كار رانغلل ﴿ ربک الذى اعزک وخذلنى اللات والعزى﴾ او په يو روايت كښې دى چه كله رسول الله ﷺ د هغه درې واړه بيزې واخستلې نو هغه په پښيمانتيا سره اووې چه اوس به زه د دې بيزو په باره كښې د خپل كور خلقو ته څه وايم؟ د يوې بيزې په باره كښې خو به اووايم چه ليوانو ماته كړه او د يو په باره كښې هغه بل څه بهانه جوړه كړه (چه غالبا هغه ګوده شوه) او وې وئيل چه د دريمې په باره كښې به څه جواب وركوم، په دې اوريدلو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل مونږ په تاباندې دوه

(¹): سنن الترمذي/اللباس ٤٢ (١٧٨٤)، (تحفة الأشراف: ٣٦١٤) (ضعيف)

مصیبتونه نه جمع کوو چه تا دې راپرځوو هم او تانه دې تاوان هم واخلو. او بیا رسول الله ﷺ هغه بیزې هغه ته واپس کړې.
د دې حدیث الباب په آخر کښې دا دی رکانه رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه زمونږ او د مشرکینو ترمینځه فرق د عمائم علی القلانس دې، په ټوپو باندې پټکی، یعنی مسلمانان په ټوپو دپاسه پټکی تړی په خلاف د مشرکینو چه هغوی بغیر د ټوپۍ په سرولو نه پټکی تړی. (بذل) ملا علی قاری په مرقاة کښې دا مطلب طیبی او ابن الملک وغیره شارحینو ته منسوب کړې دې، او بعض شارحینو د دې مطلب دا بیان کړې دې چه مشرکان صرف په ټوپۍ باندې اکتفاء کوی او مسلمانان په ټوپۍ دپاسه عمامه هم تړی. (عون المعبود)

## د رسول الله ﷺ نه د ټوپۍ او پټکی دواړو د معمول ثبوت:

بله دا چه په عون المعبود کښې د حافظ ابن القیم رحمه الله نه دا هم نقل کړې شوې دی چه د رسول الله ﷺ نه په درې واړو طریقو سره ثابت دې صرف ټوپۍ، صرف پټکې، او په ټوپۍ دپاسه عمامه، ﴿ وفی الجامع الصغیر بروایة الطبرانی عن ابن عباس رضی الله عنهما قال کان یلبس قلنسوة بیضاء اه ﴾ ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ به سپینه ټوپۍ په سروله، امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس کښې د ﴿ باب العمائم ﴾ ترجمه قائم کړې ده، خو د لبس عمامه هیڅ روایت ئې نه دې ذکر کړې بلکه د کتاب الحج روایت: ﴿ لا یلبس المحرم القمیص ولا العمامة ﴾ الحدیث باندې ئې اکتفاء کړې ده...... حافظ فرمائی: د امام بخاری رحمه الله په نزد چونکه د هغوی د شرط مطابق د عمامه په باره کښې حدیث نه وو په دې وجه ئې داسې اوکړل، بیا د دې نه پس حافظ د مسلم روایت ذکر کړو کوم چه د عمرو بن حریث نه مروی دې ﴿ قال کَأَنِّی أَنْظُرُ إِلَی رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- عَلَی الْمِنْبَرِ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ قَدْ أَرْخَى طَرَفَيْهَا بَيْنَ كَتِفَيْهِ ﴾ کذا فی الابواب والتراجم...... او په هغې کښې دا هم دی چه علامه سخاوی په مقاصد حسنه کښې د فضیلت د عمامه په باره کښې ډیر روایتونه ذکر کړی دی، مثلا ﴿ العمائم تیجان العرب ﴾ او هم دغه شان ﴿ علیکم بالعمائم فانها سیما الملائکة فارخوها خلف ظهورکم ﴾ وغیره او په دې کښې دا هم دی چه ﴿ صلاة بعمامة تعدل بخمس وعشرین ﴾ او هم دغه شان ﴿ رکعتان بعمامة افضل من سبعین رکعة بغیرها ﴾ دا احادیث ثابت نه دی.. الی اخرما فی الابواب والتراجم.

## د عمامه د ثبوت او د هغې د رنګونو په باره کښې د علماء کرامو مستقل تالیفات:

د عمامه په موضوع باندې په متاخرینو علماء کرامو کښې د یو لوئې جید عالم محمد جعفر الکتانی المتوفی ۱۳۴۵ هجری مستقل تالیف دې ﴿ الدعامة لمعرفة احکام سنة العمامة ﴾ کوم چه د عمامه سره متعلق په ټولو فروعو او جزئیاتو او صفاتو باندې مشتمل دې، هغوی د دې خپل کتاب په شروع کښې چه کومو مصنفینو په دې موضوع باندې مستقل کتابونه لیکلې دی د هغوی نومونه ئې هم لیکلې دی، په محدثانه انداز کښې هغوی دا کتاب لیکلې

دي چه د مطالعې قابل دي (¹) په دې کتاب کښ هغوی په الوان د عمامه باندې هم ډېر نقول جمع کړې دی او دا چه څنګه رنګ پټکې وهل د رسول الله ﷺ نه ثابت دی او هغوی د هر رنګ متعلق بیل بیل فصلونه قائم کړي دی. (والحدیث اخرجه الترمذی قاله المنذری)

> [۴۰۷۹] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُثْمَانَ الْغَطَفَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ خَرَّبُوذَ، حَدَّثَنِي شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ، يَقُولُ: "عَمَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَدَلَهَا بَيْنَ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي".

دعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام زما په سرباندې پټې تړلې وونونبی علیه السلام دپټې شمله زمامخامخ اوشاته دواړه طرفونوته زوړنده کړه یعنی دواړه طرفونوته.

**قوله:** ﴿سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ يَقُولُ عَمَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَسَدَلَهَا بَيْنَ يَدَىَّ وَمِنْ خَلْفِى﴾

## په پټکی کښ د شملې بحث:

سیدنا عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ زما په سر باندې پټکې اوتړلو نو د هغې یو اړخ ئې زما مخې ته او یو شاته زوړند کړو ګویا د هغې دوه شملې وې یو په سینه باندې او یو په ملا باندې (بذل) او په عون المعبود کښ لیکلې دی چه دا حدیث ضعیف دي پس اولی دا ده چه د پټکی سر چه هغې ته علامه عذبه او ذٔبابه هم وائی صرف یو بین الکتفین کیدل پکار دی لکه چه د عمرو بن حریث په روایت کښ دی یعنی د

---

(¹) د عمامه بیضاء په باره کښ ئې دا لیکلې دی چه اوسه پورې ماته په یو حدیث کښ هم د دې تصریح نه ده ملاؤ شوې خو د شارحینو د کلام نه او د رسول الله ﷺ د عادت شریفه یعنی بیاض لره په غیر بیاض باندې د ترجیح ورکولو نه ظاهرا هم دا معلومیږی چه په غالب احوالو کښ رسول الله ﷺ هم دا عمامه استعمال کړې ده او غالبا د عدم تصریح د بیاض هم دا مقصد هم دې چه هغه د رسول الله ﷺ معمول اکثری وو ولې هغه ذکر کړې شی څکه چه اهتمام د هغه څیز د ذکر کولې شی چه په هغې کښ څه مذمت وی او خلاف عادت وی په خلاف د هغه څیز کوم چه معمول اکثری او د عادت مطابق وی، عام طور سره د هغې ذکر کولو ته حاجت نه راځی لان ذلك من باب الاخبار بما هو معلوم (عیان راچه بیان) په دې کتاب کښ په عمامه سوداء باندې او د هغې په روایاتو باندې مستقل فصل دې هم دغه شان یو فصل په عمامه حرقانیه باندې قائم کړې دې لکه چه د نسائی په یو روایت کښ دی د عمرو بن حریث رضی الله عنه په روایت چه ﴿رایت علي النبي ﷺ عمامة حرقانية﴾ او په یو روایت کښ دی ﴿عمامة سوداء حرقانية﴾ او په یو فصل کښ ئې عمائم فطریه ذکر کړې دی لکه چه په ابوداؤد کښ تیر شوی د سیدنا انس رضی الله عنه په حدیث کښ ﴿رایت رسول الله ﷺ يتوضاء وعليه عمامته قطرية الحديث﴾ او یو مستقل فصل ئې د عمائم صفر په باره کښ قائم کړې دې چه په هغې کښ ئې د ابن عمر رضی الله عنهما هغه روایت ذکر دې چه په هغې کښ دا تیر شو ﴿كان يصبغ بالصفرة ثيابه كلها حتي عمامته﴾ او یو فصل د عمامه خضراء په باره کښ قائمولو سره په طور د سوال او جواب دا لیکلې دې چه د رسول الله ﷺ نه د عمامه حضراء اچول ثابت نه دی بلکه دا د بعض اشرافو او د اتمې صدئ د بادشاهانو ایجاد دې هغوی د ساداتو دپاره تجویز کړې وو په سادات او غیر سادات کښ د امتیاز دپاره، بله دا چه د جنګ حنین په باره کښ د ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چه په دغه ورځ باندې د ملائکو خاص لباس شنه پټکی وو)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۷۳۱) (ضعيف)

صحیح مسلم روایت کوم چه پورته ذکرشو. هم دغه شان په جامع ترمذی کښې د ابن عمر ﷺ نه روایت دې ﴿ کان النبی ﷺ اذا اعتم سدل عمامته بین کتفیه ﴾ او د ابن عمر ﷺ شاګرد نافع فرمائی چه ابن عمر ﷺ به هم داسې کول، او امام نووی ﷫ په شرح مهذب کښې فرمائی چه د عمامه استعمال په شملې او غیر شملې دواړو سره جائز دې او د منع روایت د ترک شمله ثابت نه دې.

او په خصائل کښې د شملې په باره کښې دا دی چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک په دې کښې مختلف وو د شملې پریخودلو معمول ئې اکثر وو تر دې چه بعض علماء کرامو تردې اولیکل چه بغیر د شملې پریخودلو نه ثابت نه دې، خو د محققینو رائې دا ده چه کله کله به ئې بغیر د شملې نه هم پټکې وهلو، او په شمله پریخودلو کښې هم مختلف معمول پاتې کیدو لکه ښی طرف ته او کله ګس طرف ته، کله شاته کله د دواړو اوږو ترمینځه، کله به ئې د عمامه دواړه سرونه د شمله په طریقه باندې پریخودل، علامه مناوی لیکلې دی چه ثابت اکثر چه ټول صورتونه دی خو په دې کښې افضل او زیات صحیح د دواړو اوږو ترمینځه شاته طرف ته دې.

**د رسول الله ﷺ د پټکی اوږدوالې څومره وو؟ :**

د رسول الله ﷺ د پټکی د پیمائش په باره کښې حضرت شیخ په خصائل نبوی ﷺ کښې لیکی چه د رسول الله ﷺ د پټکی مقدار په مشهور روایتونو کښې نشته د طبرانی په یو روایت کښې اووۀ ذراع راغلې دې، بیجوری د ابن حجر نه د دې حدیث بې اصله کیدل نقل کړې دی، علامه جزری فرمائی چه ما د سیرت کتابونه خاص طور سره اولټول خو د رسول الله ﷺ د پټکی مقدار ماته ملاؤ نه شو، خو د امام نووی ﷫ نه دا نقل کولې شی چه د رسول الله ﷺ دوه پټکی وو یو وړوکې د شپږو لاسونو، د مناوی د قول مطابق، او د اووۀ لاسونو. د ملا علی قاری ﷫ د قول مطابق یو بله لویه عمامه د دولسو لاسونو، صاحب مدخل د رسول الله ﷺ د عمامې مقدار صرف اووۀ لاسونه لیکلې دې، او دویم ئې نه دې بیان کړې، د پټکی تړل سنت مستمره دې د رسول الله ﷺ نه د پټکی تړلو حکم هم نقل کړې شوې دې پس ارشاد دې: عمامه تړئ دې سره به په حلم کښې زیات شئ... الی آخره.... او په الابواب والتراجم کښې دی نقلا عن الحافظ وعن ابی الملیح بن اسامة عن ابیه رفعه : اعتموا تزدادوا حلما.... اخرجه الطبرانی والترمذی فی العلل المفرد وضعفه البخاری وقد صححه الحاکم فلم یصب. الی آخر ما ذکر.

## بَابٌ فِي لِبْسَةِ الصَّمَّاءِ

### باب په جامو کښې د ځان انغښتلو بیان

[۴۰۸۰] () حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لِبْسَتَيْنِ أَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ مُفْضِيًا بِفَرْجِهِ إِلَى السَّمَاءِ وَيَلْبَسَ ثَوْبَهُ وَأَحَدُ جَانِبَيْهِ خَارِجٌ وَيُلْقِي ثَوْبَهُ عَلَى عَاتِقِهِ".

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۹/۲، ۳۸۰، ۳۹۱) (صحیح الإسناد)

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام ددوه لباسونوداستعمالولونه منع فرمائیلي ده یوداچه سړې احتبا وکړي اوشرمګاه دارسمانه پورې یعنی په مکمل طور کولاو اوبي پردي وي بله هغه لباس دي چه سړې په یوه جامه باندې خپل ټول بدن پټ کړي مګر یوجانب آزاد پریږدی اوبیاددې جامې بل طرف په خپل څټ باندې راواړوي (ددې دپاره چه په داسې کولوسره شرمګاه ښه کولاو یږي).

[۴۰۸۱] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّمَّاءِ، وَعَنِ الِاحْتِبَاءِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دصماء او احتباکولونه په یوه جامه کښې. صماء دیته وئیلي چه دټول بدن نه یوه جامه راتاوکړي او لاسونه هم پکښې ګیرکړي داځکه منع دي چه په دې کښې دغورځید وختره ده. اواحتبادیته وائی چه زنګنونه دملاسره وتړي او په کوناټوباندې ناست وي. داصورت هم دسترپوشئ سره منافي دي په دې وجه باندې داهم ممنوع دي.

**قوله**: ﴿ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– عَنْ لِبْسَتَيْنِ الخ ﴾

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوه قسمو اغوستلو نه منع فرمائیلې ده یو دا چه سړې احتباء اوکړی داسې چه د هغه شرمګاه د مخې طرف پرانستلې وی. او دا به هغه وخت وی چه بغیر د ازار نه صرف یو څادر کښې احتباء اوکړی، پس په دویم روایت کښې دی ﴿عن الاحتباء فی ثوب واحد ﴾ او بله دا چه خپل څادر داسې واغوندی چه یو طرف ئې ښکاره شی، یعنی د کوم طرف نه چه جامه اوچتولو سره په اوږه باندې اچوی، هم دا مضمون په بل حدیث کښې هم راروان دې او فرق د ترتیب دې، په اول حدیث کښې د احتباء ذکر مقدم دې او د ﴿ القاء علی عاتقه ﴾ کوم ته چه صماء وائی موخر دې، او په بل حدیث کښې ترتیب د دې برعکس دې خو د الصماء یو تفسیر خو هم دا دې کوم چه خپله په دې حدیث کښې ذکر شوې دې او د صماء بل تفسیر دا کړې شوې دې چه څادر په پوره بدن باندې داسې واغوندی چه لاسونه خپې ئې ټول په هغې کښې دننه پاتې شی او د لاسونو بهر راویستل ئې ګران شی، د اخستلې شوې دې د ﴿ الصخرة الصماء ﴾ نه یعنی کلک کانړې، په داسې لباس کښې د غورزیدو ویره ده او هم دغه شان یو ضرری څناور لره دفع کول هم مشکل وی، د اشتمال الصماء او اشتمال الیهود ذکر په کتاب الصلاة کښې هم تیر شوې دې.

(۱): صحيح مسلم/اللباس ۲۱ (۲۹۹)، سنن الترمذي/الأدب ۲۰ (۲۷٦۷)، سنن النسائي/الزينة ۵۳ (۵۳۴۴)، (تحفة الأشراف: ۲٦۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۲۹۳، ۲۹۷، ۳۲۲، ۳۳۱، ۳۴۴، ۳۴۹) (صحيح)

# بَابٌ فِي حَلِّ الأَزْرَارِ

## باب: د قمیص گریوان د کهلاؤ ساتلو بیان

ازار د زر جمع ده د گریوان وغیره تنړئ ته وائی....

[۴۰۸۲](۱)حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ وَأَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَا: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عُرْوَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ ابْنُ نُفَيْلٍ بْنُ قُشَيْرٍ أَبُو مَهَلٍ الْجُعْفِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: "أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَهْطٍ مِنْ مُزَيْنَةَ، فَبَايَعْنَاهُ وَإِنَّ قَمِيصَهُ لَمُطْلَقُ الأَزْرَارِ، قَالَ: فَبَايَعْتُهُ ثُمَّ أَدْخَلْتُ يَدَيَّ فِي جَيْبِ قَمِيصِهِ، فَمَسِسْتُ الْخَاتَمَ"، قَالَ عُرْوَةُ: فَمَا رَأَيْتُ مُعَاوِيَةَ وَلَا ابْنَهُ قَطُّ إِلَّا مُطْلِقَيْ أَزْرَارِهِمَا فِي شِتَاءٍ وَلَا حَرٍّ وَلَا يُزَرِّرَانِ أَزْرَارَهُمَا أَبَدًا.

معاویه بن قره د خپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه د مزینه قبیلې دیوند سره زه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او مونږ ورسره په اسلام بیعت وکړو اودنبی علیه السلام دقمیص گریبان کولاو وو ما خپل لاس دننه کړو او مهر نبوت مې مسح کړو عروه وائی مادنبی علیه السلام گریبان کولاو لیدلي وو چه گري به وه اوکه یخني به وه اوکله کله به ئې په قمیص کښې بټنې نه وي.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ قال حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي رَهْطٍ مِنْ مُزَيْنَةَ فَبَايَعْنَاهُ وَإِنَّ قَمِيصَهُ لَمُطْلَقُ الأَزْرَارِ الخ ﴾

معاویه بن قره وائی چه ماته زما پلار قرة بن ایاس بیان اوکړو چه زه یو ځل د قبیله مزینه د یو جماعت سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم مونږ د حضور ﷺ په لاس باندې بیعت اوکړو او د هغوی د قمیص تنړئ هغه وخت پرانستلې شوې وې، ما په خپل گریوان کښې لاس داخلولو سره مهر نبوت مسح کړو، په دې باندې عروه رحمه الله فرمائی چه ما خپل استاد معاویه ته او د هغه ځوی (ایاس بن معاویه) همیشه په داسې حال کښې لیدلې دی چه د قمیص تنړئ به ئې پرانستلې وې، که د گرمئ موسم به وو یا د یخنئ.

په دې حدیث کښې د معاویه او د هغه د ځوی حال خو ذکر دې ځکه چه عروه هم هغوی دواړه لیدلي دی، او ښکاره خبره ده چه معاویه دا عادت د خپل پلار قرة بن ایاس صحابی نه حاصل کړې دې چا چه رسول الله ﷺ په داسې حال کښې لیدلې وو.

په دې حدیث کښې په صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو کښې د اتباع سنت نمونه موندلې شي او په هغې باندې ډیر په مضبوطیا سره قائم اوسیدل، جعلنا الله من اهل الاتباع وجنبنا الابتداع (بذل) او د گنگوهی صاحب په تقریر کښې دی چه اگر چه دا طریقه د گریوان پرانستلو خصوصا په مانځه کښې خلاف اولی ده خو دې دواړو چه څۀ اوکړل هغه ئې د رسول الله ﷺ سره د تعلق او محبت په بناء باندې کړې دې په دې وجه د هغوی په حق کښې زمونږ امید دې چه مکروه به نه وی. والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

---

۱): سنن الترمذي/ الشمائل (۵۸)، سنن ابن ماجه/اللباس ۱۱ (۳۵۷۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۷۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۴۳۴، ۴/۱۹، ۵/۳۵) (صحیح)

# بَابٌ فِي التَّقَنُّعِ

## باب په یوه جامه باندې د سر پټولو بیان

[۴۰۸۳] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، قَالَ: قَالَ الزُّهْرِيُّ، قَالَ عُرْوَةُ، قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: "بَيْنَا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ، قَالَ قَائِلٌ لِأَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَ فَأَذِنَ لَهُ فَدَخَلَ".

د ام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه مونږ د گرمي په موسم کښې د ماسپخین په وخت کښې په خپل کور کښې ناست وو یو ویونکي ابوبکر صدیق و ته ووئیل چه دا راروان رسول الله ﷺ دې او سر ئې پټ کړې وو خو په دې شکل کښې به عموما نبی علیه السلام نه راتلو کله چه نبی علیه السلام راغې نو کورته ئې د داخلیدو د پاره اجازت وغوښتو صدیق اکبر نه ورته اجازت ورکړو او بیا داخل شو.

**قوله:** ﴿ قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها بَيْنَا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ قَالَ قَائِلٌ لأَبِي بَكْرٍ رضي الله عنه هَذَا رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– مُقْبِلاً مُتَقَنِّعًا فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَدَخَلَ ﴾

### قصه د هجرت د ابتداء حصه:

دا واقعه کومه چه په دې حدیث کښې ذکر ده قبل الهجرة د مکې مکرمې ده، سیده عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه مونږ په خپل کور کښې عین د غرمې په وخت کښې ناست وو نو یو ویونکې راغلو او والد صاحب (ابوبکرصدیق رضي الله عنه) ته ئې خبر ورکړو چه رسول الله ﷺ دلته تشریف راوړی په سر باندې کپړه اچولې، عائشه رضي الله عنها فرمائی چه هغه وخت د رسول الله ﷺ تشریف راوړل د عادت مبارک خلاف وو، یعنی عین د غرمې په وخت کښې چه کله رسول الله ﷺ دروازې ته راورسیدلو نو هغوی اجازت طلب کړو، په اجازت ملاویدو باندې دننه راغلل، دا اوږد حدیث دې د هجرت د قصې متعلق کومه چه په بخاری کښې ذکر ده، امام بخاری رحمه الله دا د کتاب المناقب په اخیر کښې د کتاب المغازی نه مخکښې ذکر فرمائیلې ده، د بخاری په روایت کښې داسې دی: ﴿ فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا – فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ فِدَاءٌ لَهُ أَبِي وَأُمِّي وَاللَّهِ مَا جَاءَ بِهِ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ إِلاَّ أَمْرٌ قَالَتْ فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَدَخَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم لأَبِي بَكْرٍ أَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّمَا هُمْ أَهْلُكَ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَإِنِّي قَدْ أُذِنَ لِي فِي الْخُرُوجِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ الصَّحَابَةُ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: نَعَمْ قَالَ أَبُو بَكْرٍ فَخُذْ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِحْدَى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: بِالثَّمَنِ الحديث ﴾ یعنی کله چه صدیق اکبر رضي الله عنه ته اوئیلې شو چه رسول الله ﷺ تشریف راوړی نو وې فرمائیل چه په تاسو دې زما مور او پلار قربان وی قسم په الله چه تاسو لره د دې وخت د معمول خلاف یو لوئې څیز راوستلې

(۱): صحيح البخاري/اللباس ۱۶ (۵۸۰۷)، (تحفة الأشراف: ۱۶۶۵۳، ۱۶۶۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۸/۶) (صحيح)

يئ، دننه د تشريف راوړلو نه پس رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه غير متعلق کسان د دې ځائې نه لرې کړه، هغوی عرض اوکړو چه يا رسول اللهﷺ په تاسو باندې دې زما مور او پلار قربان وی دلته خو ټول ستاسو د کور خلق دی څوک هم پردی نشته. رسول اللهﷺ اوفرمائيل (ښه زه دا وايم) چه ماته د مکې مکرمې نه د خروج اجازت کړې شوې دې په دې باندې هغوی عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ زما مور او پلار دې په تاسو قربان وی ما هم ځان سره کړئ، رسول اللهﷺ اوفرمائيل بالکل ضرور.... بيا هغوی عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ زما مور، پلار دې په تاسو قربان وی زما په دې دوه سورلو کښې يو تاسو واخلئ، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل صحيح ده خو په قيمت (يعنی هسې نه) ددې نه پس په بخاری کښې په اوږد حديث کښې د هجرت پوره واقعه ذکر ده.

## د تقنع مفهوم او د هغې تحقيق او استعمال:

مصنف رحمه الله په دې حديث باندې د تقنع ترجمه قائم کړې ده لکه چه په حديث الباب کښې دی چه رسول اللهﷺ هغه وخت چه د ماسپخين وخت وو د صديق اکبر رضی الله عنه کور ته متقنعا تشريف راوړلو. په دې باندې په بذل کښې ليکلې دی: ﴿ ای مغطيا راسه اما حفظا عن حر الشمس او اختفاء من الکفار ﴾ يعنی د رسول اللهﷺ په خپل سر مبارک باندې کپړه کيخودل يا خو د ګرمئ نه د بچ کيدلو دپاره وو يا د کفارو نه د پټيدو دپاره، امام بخاری رحمه الله هم په کتاب اللباس کښې د باب العمائم نه پس باب التقنع قائم کړې دې، په دې باندې حافظ ليکلې دی: ﴿ وهو تغطية الراس واکثر الوجه برداء اوغيره ﴾ يعنی د سر او مخ اکثر حصه پټول په يو څادر يا رومال سره، او امام ترمذی رحمه الله هم په شمائل کښې باب تړلې دې، ﴿ باب ما جاء فی تقنع رسول اللهﷺ ﴾ او بيا ئې د هغې د لاندې د انس رضی الله عنه حديث ذکر کړې دې ﴿ کان رسول اللهﷺ يکثر القناع کان ثوبه ثوب زيات ﴾ رسول اللهﷺ به ډير زيات قناع استعمالولو تر دې چه داسې به معلوميده چه د هغوی هغه کپړه (قناع) د تيلی کپړه ده. او هم دا قسم حديث امام بخاری رحمه الله هم په باب التقنع کښې ذکر فرمائيلې دې ﴿ خرج النبیﷺ وعليه عصابة دسماء ﴾ يو ځل رسول اللهﷺ د کور نه بهر تشريف راوړلو په داسې حال کښې چه د رسول اللهﷺ په سر مبارک باندې غوړ شان رومال وو. خو امام ابوداؤد رحمه الله د باب التقنع ترجمه قائمولو سره په ځائې د شمائل والا روايت حديث الهجرة ذکر اوفرمائيلو او ښکاره خبره ده چه په هغه حديث الهجرة کښې چه کومه تقنع ذکر ده هغه د هغې نه علاوه ده کومه چه امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس او امام ترمذی رحمه الله په شمائل کښې ذکر فرمائيلې ده لکه چه په دواړو احاديثو کښې د غور کولو نه پس معلوميږی،

حضرت سهارنپوری په بذل کښې د تقنع چه کومه شرح ليکلې ده او مصلحت ئې بيان فرمائيلې دې د حديث الهجرة والا تقنع هم هغه مناسب ده [1] چه په هغې کښې د سر او اکثر

[1] زمونږ بعض مشائخو به هم داسې تقنع کوله ما اوريدلې دی چه مولانا عبدالرحمن صاحب کيمل پوری د مظاهر العلوم صدر مدرس کوم چه د حضرت تهانوی په اجل خلفاء کښې وو د هغوی عادت د حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زکريا صاحب د ماسپخين نه روسته مجلس کښې د مدرسې.....له

مخ پټیدل وی لکه چه د حافظ د کلام نه مونږ د تقنع په تفسیر کښ لیکلي دی، او د حدیث شمائل تقنع هغه بیل څیز دې یعنی د پټکی د لاندې یو رومال وغیره په دې غرض باندې کیخودل چه د تیلو په غوړوالی باندې پټکې خراب نه شی دلته د تقنع نه مراد په ظاهر کښ صرف تغطیة الرأس مراد دې د مخ سره د هغې هیڅ تعلق نشته. هذا والله تعالی اعلم بالصواب.

والحدیث اخرجه البخاری بنحوه فی الحدیث الطویل فی الهجرة، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي إِسْبَالِ الْإِزَارِ

### باب د کیتو نه ښکته د لنګ د اوږدولو بیان

د اسبال ازار نه په حدیث کښ په جر ازار سره تعبیر کړې شوې دې یعنی جامه که هغه ازار وی یا قمیص هغه دومره اوږدول او زوړندول چه په هغې سره کعبین پټ شی په حدیث کښ د دې ممانعت راغلي دې، پس په حدیث الباب کښ دی ﴿ وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى الْكَعْبَيْنِ وَإِيَّاكَ وَإِسْبَالَ الْإِزَارِ ﴾ او د باب په دویم روایت کښ دی ﴿ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ علماء کرامو لیکلي دی چه اسبال د ازار که د تکبر په طور وی نو حرام دې، او که د بې علمۍ یا بې توجه کیدو په وجه وی نو مکروه تنزیهی دې او که بغیر د قصد نه عذرا وی نو مباح دې لکه چه د ابوبکرصدیق رضی الله عنه په باره کښ حدیث کښ مذکور دی چه د هغې وجه شارحینو دا لیکلي ده چه صدیق اکبر رضی الله عنه نحیف الجسم وو د هغوی لنګ به په خپل ځائې نه ایساریدو لاندې به خوئیدلو. او مونږ د خپلو مشائخو نه اوریدلي چه د علی رضی الله عنه ازار به هم لاندې خوئیدلو چه د هغې وجه دا وه چه هغوی بطین وو یعنی خیټه ئې وړاندې وتلې وه.

[۴۰۸۴] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ أَبِي غِفَارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيُّ وَأَبُو تَمِيمَةَ اسْمُهُ طَرِيفُ بْنُ مُجَالِدٍ، عَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَجُلًا يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ لَا يَقُولُ شَيْئًا إِلَّا صَدَرُوا عَنْهُ، قُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: عَلَيْكَ السَّلَامُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَرَّتَيْنِ، قَالَ: لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ فَإِنَّ عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ، قُلِ السَّلَامُ عَلَيْكَ، قَالَ: قُلْتُ أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: أَنَا رَسُولُ اللَّهِ الَّذِي إِذَا أَصَابَكَ ضُرٌّ فَدَعَوْتَهُ كَشَفَهُ عَنْكَ، وَإِنْ أَصَابَكَ عَامُ سَنَةٍ فَدَعَوْتَهُ أَنْبَتَهَا لَكَ، وَإِذَا كُنْتَ بِأَرْضٍ قَفْرَاءَ أَوْ فَلَاةٍ فَضَلَّتْ رَاحِلَتُكَ فَدَعَوْتَهُ رَدَّهَا عَلَيْكَ، قَالَ: قُلْتُ اعْهَدْ إِلَيَّ، قَالَ: لَا تَسُبَّنَّ أَحَدًا، قَالَ: فَمَا سَبَبْتُ بَعْدَهُ حُرًّا وَلَا عَبْدًا وَلَا بَعِيرًا وَلَا شَاةً، قَالَ: وَلَا تَحْقِرَنَّ شَيْئًا مِنَ الْمَعْرُوفِ، وَأَنْ تُكَلِّمَ أَخَاكَ وَأَنْتَ مُنْبَسِطٌ إِلَيْهِ وَجْهُكَ إِنَّ ذَلِكَ مِنَ

---

←..... نه چه د حضرت شیخ کور ته چه کله تشریف راوړلو نو په لاره کښ به ئې په خپل سر او مخ باندې تولیه کیخودلو سره تشریف اوړلو، په دې کښ به یو مصلحت دا هم وو چه په لاره کښ بې محل په یو څیز باندې نظر پرې نه اوځی، او دا چه کومه نن صبا د رومال د اچولو طریقه جاری ده خصوصا په عربو کښ چه په سر باندې رومال واچوی بغیر د تړلو نه دا د حدیث والا تقنع نه دې بلکه دا د سدل یو قسم دې او د سدل په حدیث کښ مستقل ذکر راځی چه د هغې فقهاء کرامو او شارحینو مختلف صورتونه بیان کړې دی اوس دا خبره کول چه دا د هغې په نوع ممنوع کښ داخل دې یا نه دا امر اخر دې او پرې غور کول غواړی)

۱ : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۱۲۴)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ۲۸ (۲۷۲۲)، سنن النسائي/ الكبرى (۹۶۹۱)، مسند احمد (۳/۴۸۲، ۵/۶۳) (صحيح)

الْمَعْرُوفِ، وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى الْكَعْبَيْنِ، وَإِيَّاكَ وَإِسْبَالَ الْإِزَارِ فَإِنَّهَا مِنَ الْمَخِيلَةِ، وَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمَخِيلَةَ، وَإِنِ امْرُؤٌ شَتَمَكَ وَعَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ فَلَا تُعَيِّرْهُ بِمَا تَعْلَمُ فِيهِ فَإِنَّمَا وَبَالُ ذَلِكَ عَلَيْهِ".

دجابر بن سلیم ﷺ نه روایت دی فرمائی چه ما یو کس لیدلې وو چه هره خبره به ئې کوله نو خلقوبه قبلوله مادخلقونه تپوس اوکړو دا څوک دې؟ هغوی اووئیل دانبی ﷺ دې کله چه ورته زه ورنیزدې شوم نوما علیک السلام یارسول الله دوه پیرې اووئیل نبی ﷺ اوفرمائیل علیک السلام مه وایه ځکه چه په داسې الفاظوسره خو مړوته سلام کیږي بلکه ته داسې وایه السلام علیک ماعرض اوکړو آیا ته دالله رسول هې؟ هغه اوفرمائیل هو ضرور زه دالله استاذې یم کله چه تاته تکلیف ورسیږي نو ته هغه یادوی یعنی دعا ورنه غواړې اوهغه ستاتکلیف لرې کوي او په تاسوچه کله قحط سالې راشې اوتاسودهغه نه دعا وغواړئ نوهغه ستاسو دپاره غله اوستاسودځاروو دپاره ګیا پیداکوې اوکله چه تاسو په یوځنګل کښې یئ اوستاسو اوښه ورکه شي اوتاسو ورنه دعا وغواړئ نوهغه تاسوته ستاسو سورلی راواپس کوي، ما ورته عرض اوکړو چه ماته نصیحت اوکړه نبی ﷺ اوفرمائیل چاته به کنځل نه کوي دجابر بیان دې فرمائی چه ددغه ورځې نه پس بیا ماچاته کنځل نه دې کړې نه کوم آزاد کس ته اونه غلام ته نه اوښ ته اونه چیلئ ته ، بیانبی ﷺ اورفرمائیل دنیکی کومه خبره وړه مه ګڼړه اودخپل مسلمان ورور سره په خندیدونکې تندې باندې خبرې کوه ځکه چه داهم دنیکی کار دې اوخپل النګ دنیمي پنډ پورې پورته ساته اوکه داسې نه وي نوډګیټو پورې او دلنګ دزوړندولونه ځان بچ ساته یعنی دګیټونه ښکته ځکه چه دا دتکبر علامه ده اوالله تعالی تکبرنه خوښوي ، اوکه چرې څوک تاته کنځل اوکړي اوهغه کس ستادعیب نه خبر وي اوبیان ئې کړې اوته هم دده دعیب نه خبر ئې نودده عیب به نه بیانوې ځکه چه ددې ګناه بوج به ددغه کس په سر باندې وي.

## مضمون الحدیث :

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ قَالَ رَأَيْتُ رَجُلاً يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ لَا يَقُولُ شَيْئًا إِلاَّ صَدَرُوا عَنْهُ الخ ﴾ جابر بن سلیم ﷺ فرمائی (چه هغوی چه کله اول ځل مدینې طیبې ته تشریف راوړلو نو د هغه ځائې ئې چه کوم منظر اولیدو د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو هغه بیان فرمائی) چه ما دلته یو داسې سړې اولیدو چه خلق د هغه رائې اخلی او واپس کیږی. یعنی د هغوی په مجلس کښې چه څه اوری د هغې قبلولو سره راځی. نو ما د خلقو نه تپوس اوکړو چه دا صاحب څوک دې خلقو اووې چه دا رسول الله ﷺ دې. زه د هغوی طرف ته متوجه شوم او سلام مې عرض اوکړو، او داسې مې اووئیل : ﴿ علیک السلام یا رسول الله ﴾ نو هغوی اوفرمائیل داسې مه وایه دا طریقه د سلام (په زمانه د جاهلیت کښې) د مړی په حق کښې وه بلکه ﴿ السلام علیک ﴾ وایه. ما تپوس اوکړو تاسو د الله رسول یئ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: او...... زه د هغه الله رسول یم چه که تاته څه ضرر در اورسی او ته د هغه نه دعا اوکړې نو هغه به درنه لرې کړی او هغه داسې دې. که تاته څه قحط سالی در اورسی او ته هغه ته دعا اوغواړې نو هغه به ستا دپاره ګیا وغیره راټوکوی (یعنی باران ورولو سره) او

هغه الله پاک داسې دې چه که ته په يو ځنګل يا بيابان کښې ئې او ستا سورلۍ ورکه شي او بيا د هغه نه اوغواړې نو ستا طرف ته به ئې واپس کړي [۱]. هغوی وائی چه ما عرض اوکړو چه ماته نصيحت اوکړئ..... رسول الله ﷺ اوفرمائيل : چاته هر ګز کنځل مه کوه، هغوی وائی چه د دې نه پس ما چاته هم کنځل نه دی کړی، بد مې نه دی وئيلې نه يو آزاد ته او نه غلام ته، نه انسان ته او نه ځناور ته اوښ او بيزه وغيره. او وې فرمائيل چه هيڅ نيکی کمه مه ګڼره او ته چه چا سره په مسکی کيدو خبره کوې نو دا هم نيکی ده (لهذا دا هم معمولی مه ګڼره). او خپل لنګ د نيمې پنډۍ پورې اوچت ګره، او که دا منظوره نه وی نو صرف د کعبينو پورې [۲] او خپل ځان د اسبال د ازار نه بچ ساته چه دا د تکبر د وجې نه کيږی يا دا مطلب دې چه دا هم د تکبر يو قسم دې او الله پاک تکبر نه خوښوی، ﴿ وَإِنِ امْرُؤٌ شَتَمَكَ وَعَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ فَلاَ تُعَيِّرْهُ بِمَا تَعْلَمُ فِيهِ فَإِنَّمَا وَبَالُ ذَلِكَ عَلَيْهِ ﴾ او که يو سړې تاته کنځل اوکړی او تاته ته پيغور درکړی په هغه څيز چه کوم هغه ته په تا کښې معلوم دې نو هغه ته پيغور مه ورکوه په هغه عيب سره کوم چه تاته په هغه کښې معلوم دې ځکه چه د هغه پيغور وبال به هم په هغه باندې وی. دا آخری نصيحت ډير جامع دې الله پاک دې په دې باندې د عمل توفيق راکړی، په دې کښې د بل سړی په واقعی عيب باندې د پيغور ورکولو نه منع کړې شوې ده پاتې لا دا چه يو سړی باندې په داسې کار تهمت اولګولې شی کوم چه په هغه کښې نه وی لکه چه خلق په مخالفت او دشمنۍ کښې اخته شی.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي مختصرا، وقال الترمذي حسن صحيح، قاله المنذري.

[۴۰۸۵] ([۳]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلاَءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ أَحَدَ جَانِبَيْ إِزَارِي يَسْتَرْخِي إِنِّي لَأَتَعَاهَدُ ذَلِكَ مِنْهُ، قَالَ: لَسْتَ مِمَّنْ يَفْعَلُهُ خُيَلاَءَ".

سالم دخپل پلار عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت کوی فرمائی چه رسول الله فرمائيلي دي ځوک چه خپله جامه دتکبر په وجه په ځان پسې راکاږي نوالله تعالی به ورته دقيامت په ورځ ونه ګوري ، ابوبکر صديق رضي الله عنه عرض اوکړو اې دالله رسوله زمادلنګ يوګوټ خو په ماپسې راښکلې کيږی مګرهله چه زه هروخت ددې خيال وساتم نبی ﷺ اوفرمائيل ته دهغه خلقونه نه ئې ځوک چه دتکبر په وجه داسې کوي.

---

[۱] قال العلماء لاستجابة الدعاء شروط لا بد منها فمنها ان يكون الداعي عالما بان لا قادر علي حاجته الا الله تعالي وحده وان الوسائط في قبضته ومسخرة بتسخيره وان يدعو باضطرار والافتقار فان الله تعالي لا يقبل الدعاء من قلب غافل. (بذل)

[۲] يعنی کعبين حد او غاية دې د ازار دپاره چه په هغې کښې دا غايت داخل نه دې پس په يو روايت کښې دی اخرجه النسائي وصححه الحاكم ايضا من رواية حذيفة رضي الله عنه بلفظ الازار الي انصاف الساقين فان ابيت فاسفل فان ابيت فمن وراء الساقين ولا حق الكعبين في الازار)

[۳] صحيح البخاري/فضائل الصحابة ٥ (٣٦٦٥)، اللباس ١ (٥٧٨٣)، ٢ (٥٧٨٤)، ٥ (٥٧٩١)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٥٠ (٥٣٣٧)، (تحفة الأشراف: ٧٠٢٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ٩ (٢٠٨٥)، سنن الترمذي/اللباس ٨ (١٧٣٠)، ٩ (١٧٣١)، سنن ابن ماجه/اللباس ٦ (٣٥٧١)، ٩ (٣٥٧٦)، موطا امام مالك/اللباس ٥ (٩)، مسند احمد (٢/٥، ١٠، ٣٢، ٤٢، ٤٤، ٤٦، ٥٥، ٥٦، ٦٠، ٦٥، ٦٧، ٦٩، ٧٤، ٧٦، ٨١) (صحيح)

وحدیث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخاری والنسائی، قاله المنذری.

[۴۰۸۶](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "بَيْنَمَا رَجُلٌ يُصَلِّي مُسْبِلًا إِزَارَهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ، فَذَهَبَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ؟، ثُمَّ سَكَتَّ عَنْهُ، قَالَ: إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ وَإِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ".

د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یو کس لنګ دګیټونه ښکته کړې وو اومونځ ئې کولو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل دوباره اودس اوکړه او راشه هغه کس دوباره اودس اوکړو او راغې نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل لاړ شه چه اودس اوکړې بیا راشه نوده بیا اودس اوکړو کله چه راغې نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل اودس وکړه اوبیا راشه نو یو کس عرض اوکړو اې دالله رسوله ته ده ته وائی چه اودس اوکړه او راشه نودد ینه پس نبی علیه السلام خاموشی اختیارکړه (اخر ستامقصد څه دې) نبی علیه السلام اوفرمائیل لنګ ئې زوړند کړې وو اومونځ ئې کولو الله تعالی دداسې کس مونځ نه قبلوي.

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يُصَلِّي مُسْبِلاً إِزَارَهُ الخ﴾ دا حدیث په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې.

[۴۰۸۷](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ خَرَشَةَ بْنِ الْحُرِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلَا يُزَكِّيهِمْ، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ، قُلْتُ: مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ خَابُوا وَخَسِرُوا؟ فَأَعَادَهَا ثَلَاثًا، قُلْتُ: مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ خَابُوا وَخَسِرُوا؟ فَقَالَ: الْمُسْبِلُ، وَالْمَنَّانُ، وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ أَوِ الْفَاجِرِ".

د ابوذر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی درې کسان داسې دی چه الله تعالی به ورسره خبرې ونکړي اونه به ورته اوګوري په ورځ دقیامت درحمت په نظر اونه به ئې پاک کړي دګناهونونه اوددوی دپاره دردناک عذاب دې ماعرض وکړو اې دالله رسوله دوی څوک دي چه برباد شول او تاوانی شول؟ نبی علیه السلام درې پیرې همداسې اوفرمائیل اومابه وئیل اې دالله رسوله دغه کسان څوک دي چه برباد شول اوتاوانی شول نبی علیه السلام اوفرمائیل لنګ زوړندونک بل احسان زباتونکې اوبل د دروغو په قسم سره خپل مال خرڅونکې.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ قَالَ « ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ الخ﴾

په دې حدیث باندې هم په اسبال د ازار باندې وعید دې. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

---

(۱): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم (۶۳۸)، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۴۱) (ضعيف)

(۲): صحيح مسلم/الإيمان ۴۶ (۱۰۶)، سنن الترمذي/البيوع ۵ (۱۲۱۱)، سنن النسائي/الزكاة ۶۹ (۲۵۶۴)، البيوع ۵ (۴۴۶۳)، الزينة من المجتبى ۵۰ (۵۳۳۵)، سنن ابن ماجه/التجارات ۳۰ (۲۲۰۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۱۴۸، ۱۵۸، ۱۶۲، ۱۶۸، ۱۷۸)، دي/البيوع ۶۳ (۲۶۴۷) (صحيح)

[٤٠٨٨]( )حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُسْهِرٍ، عَنْ خَرَشَةَ بْنِ الْحُرِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ، قَالَ: الْمَنَّانُ الَّذِي لَا يُعْطِي شَيْئًا إِلَّا مَنَّهُ.

ابوذر دنبی ﷺ نه دتیرشوي روایت په شان روایت بیان کړې دي لیکن اولني روایت ډیر کامل دي اوپه دې روایت کښې ئې دا اضافه کړې ده چه احسان زباتلووالا کس داحسان زباتلونه بغیر هیڅ شې نه ورکوي.

[٤٠٨٩]( )حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ يَعْنِي عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ بِشْرٍ التَّغْلِبِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي وَكَانَ جَلِيسًا لِأَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: كَانَ بِدِمَشْقَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهُ: ابْنُ الْحَنْظَلِيَّةِ وَكَانَ رَجُلًا مُتَوَحِّدًا قَلَّمَا يُجَالِسُ النَّاسَ إِنَّمَا هُوَ صَلَاةٌ فَإِذَا فَرَغَ فَإِنَّمَا هُوَ تَسْبِيحٌ وَتَكْبِيرٌ حَتَّى يَأْتِيَ أَهْلَهُ، فَمَرَّ بِنَا وَنَحْنُ عِنْدَ أَبِي الدَّرْدَاءِ، فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ: كَلِمَةً تَنْفَعُنَا وَلَا تَضُرُّكَ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً فَقَدِمَتْ، فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَجَلَسَ فِي الْمَجْلِسِ الَّذِي يَجْلِسُ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِرَجُلٍ إِلَى جَنْبِهِ: لَوْ رَأَيْتَنَا حِينَ الْتَقَيْنَا نَحْنُ وَالْعَدُوُّ فَحَمَلَ فُلَانٌ فَطَعَنَ، فَقَالَ: خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْغِفَارِيُّ كَيْفَ تَرَى فِي قَوْلِهِ؟ قَالَ مَا أُرَاهُ إِلَّا قَدْ بَطَلَ أَجْرُهُ، فَسَمِعَ بِذَلِكَ آخَرُ، فَقَالَ: مَا أَرَى بِذَلِكَ بَأْسًا فَتَنَازَعَا حَتَّى سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ لَا بَأْسَ أَنْ يُؤْجَرَ وَيُحْمَدَ، فَرَأَيْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ سُرَّ بِذَلِكَ وَجَعَلَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَيْهِ وَيَقُولُ: أَنْتَ سَمِعْتَ ذَلِكَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيَقُولُ: نَعَمْ، فَمَا زَالَ يُعِيدُ عَلَيْهِ حَتَّى إِنِّي لَأَقُولُ لَيَبْرُكَنَّ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، قَالَ: فَمَرَّ بِنَا يَوْمًا آخَرَ، فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ: كَلِمَةً تَنْفَعُنَا وَلَا تَضُرُّكَ، قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُنْفِقُ عَلَى الْخَيْلِ كَالْبَاسِطِ يَدَهُ بِالصَّدَقَةِ لَا يَقْبِضُهَا ثُمَّ مَرَّ بِنَا يَوْمًا آخَرَ، فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ: كَلِمَةً تَنْفَعُنَا وَلَا تَضُرُّكَ قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْأَسَدِيُّ لَوْلَا طُولُ جُمَّتِهِ وَإِسْبَالُ إِزَارِهِ، فَبَلَغَ ذَلِكَ خُرَيْمًا فَعَجِلَ فَأَخَذَ شَفْرَةً فَقَطَعَ بِهَا جُمَّتَهُ إِلَى أُذُنَيْهِ وَرَفَعَ إِزَارَهُ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ ثُمَّ مَرَّ بِنَا يَوْمًا آخَرَ، فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ: كَلِمَةً تَنْفَعُنَا وَلَا تَضُرُّكَ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: إِنَّكُمْ قَادِمُونَ عَلَى إِخْوَانِكُمْ فَأَصْلِحُوا رِحَالَكُمْ وَأَصْلِحُوا لِبَاسَكُمْ حَتَّى تَكُونُوا كَأَنَّكُمْ شَامَةٌ فِي النَّاسِ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفُحْشَ وَلَا التَّفَحُّشَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ قَالَ أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ هِشَامٍ، قَالَ: حَتَّى تَكُونُوا كَالشَّامَةِ فِي النَّاسِ.

قیس بن نصر دخپل پلار څوک چه ددمشق په جومات کښې دابو الدرداء خلیفه وو، نه روایت کوي فرمائي چه دنبی ﷺ په صحابه کرامو کښې ددمشق په جومات کښې یوکس وو چه ابن الحنظلیه به ورته وئیلې شول هغه به خلوت یعنی یواځې والې خوښولو اودخلقوسره به ډیرکم کیناستو اکثر وخت به په مونځ کښې مشغول وو اوکله چه به دمونځ نه فارغ شو نو په تسبیح اوتکبیرکښې به مشغول شوتردې چه خپل کورته به لاړو، یوه ورځ دغه کس زمونږ په خواکښې تیریدو او مونږ د ابوالدرداء سره ناست وو ابودرداء ورته اووئیل ته مونږ ته یوه داسې خبره وښایه چه مونږ ته فائده راکړي اوتاته نقصان ونه رسوي هغه اووئیل چه رسول الله دجهاددپاره یو وړوکې لښکر ولیږلو کله چه دغه لښکر واپس راغې نودې لښکرد کسانونه یوکس راغې اوپه هغه ځای - کیناستو چرته چه به نبی ﷺ کیناستلو او څوک چه ورته نزدې وو هغه ته ئې ووئیل کاش چه تازه لیدلې وې کله چه

( ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٩٠٩) (صحيح)
( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٩/٤، ١٨٠) (ضعيف)

مونږه ددشمن دمقابلې دپاره پاڅیدو په مونږ کښې فلانی کس نیزه راواخسته اوددشمن طرف ته ئې غشې وویشل اودویشتلو په وخت کښې ئې داسې اووئیل دازخم زمادطرف نه دړواخله زه دغفار قبیلې والایم ته په دې وینا باندې څخه ګمان کوې دغه کس اووئیل زما په خیال کښې ددغه کس اجر ضائع شو اوداخبره یوبل کس هم واوریده هغه اووئیل چه په دې کښې څه حرج نشته بیا دواړو جګړه وکړه تردې چه داخبره نبی ﷺ ته هم ورسیده او وئې فرمائیل په دې کښې څه بدوالې دې؟ که چرې دې کس ته ثواب هم ورکړې شي اوخلق دده تعریف هم وکړي ، دبشر تغلبي بیان دې چه ما ابوالدرداء و لیدلې وو چه دا خبره ئې واوریده او خوشحاله شو اوخپل سرئې دهغه کس طرف ته ور پورته کړو دتپوس کولو دپاره چه ایا تا پخپله داخبره دنبی ﷺ نه اوریدلې ده؟ هغه اووئیل هو ، بیا ابودرداء ډیرې پیرې مسلسل ورنه داتپوس کوو تردې چه ماګمان وکړو چه دې به په زنګنونو باندې کښینې بشر تغلبي وائی چه یوه ورځ بیا ددغه کس زمونږ په خواکښې تیریدل وشو ابوالدرداء ورته اووئیل مونږ ته کومه داسې خبره واوروه چه زمونږ فائده په کښې وي اوستانقصان په کښې نه وي هغه اووئیل نبی ﷺ فرمائیلي دې په مونږ کښې چه څوک خپلې پیسې داسونوپه پالنوباندې خرچ کړي (دثواب په نیت نوډده مثال داسې دې چاچه خپل لاسونه دصدقي دپاره برابر خواره کړې وی او ولاړ وي اوهیڅ کله خپل لاسونه نه بندوی (یعنې مسلسل صدقې ورکوي) بیایوه ورځ دغه کس زمونږ په خواکښې تیرشو ابوالدرداء رضي الله عنه ورته اووئیل مونږته یوه داسې خبره واوروه چه په هغې کښې زمونږ کامیابي وي اوستا په کښې څه نقصان نه وي هغه اووئیل رسول الله مونږ ته فرمائیلي وو خریم اسدي څومره ښه سړې دې که چرې دده دسر ویښته لوي نه وې اودده لنګ ښکته نه وې داخبر چه کله خریم ته ورسیدو نو په جلتئ سره پر خپل لنګ دپنډو دنیې نه پورته کړو ، بیا یوه بله ورځ زمونږ په خواکښې ددې کس تیریدل کیدل ابودرداء نه ورته اووئیل مونږ ته یوه داسې خبره وښایه چه زمونږ په کښې فائده وي اوستا په کښې نقصان نه وي هغه اووئیل ما د رسول الله نه آوریدلی دی چه دسفرنه ئې دواپسئ په وخت کښې فرمائیلي وو تاسو خپلو رونړوته رسیدونکي یئ ، تاسوخپلې سورلئ برابرې کړئ اوخپلې جامې پاکې کړئ ددې دپاره چه هریوسرې تاسو وپیژندلې شي او الله تعالی فحش ویونکې اورفحش اوریدونکې نه خوښوي ، امام ابوداؤد فرمائی چه ابونعیم دهشام په واسطې سره دنبی ﷺ نه په همدې سند سره روایت بیان کړې دې او وئیلي یې دي چه تاسو دخال په شان واضح ښکارئ.

﴿عَنْ قَيْسِ بْنِ بِشْرٍ التَّغْلِبِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِى أَبِى وَكَانَ جَلِيسًا لأَبِى الدَّرْدَاءِ - قَالَ كَانَ بِدِمَشْقَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- يُقَالُ لَهُ ابْنُ الْحَنْظَلِيَّةِ الخ ﴾

### يو اوږد مضمون د حديث :

دا یو اوږد حدیث دې کوم چه په ډیرو احادیثو باندې مشتمل دې چه د هغې مضمون دا دې قیس بن بشر وائی چه ماته زما پلار بشر بن قیس بیان اوکړو. زما پلار د ابوالدرداء رضي الله عنه ملګرې وو ، یعنی هغوی سره ئې تړ راتړ ډیر وو ، زما والد فرمائی چه په دمشق کښ یو

صحابی وو چاته چه به ابن الحنظلیة وئیلې کیدو کوم چه ډیر ځانله پاتې کیدونکې وو، خلقو سره به ډیر کم ملاویدو د هغوی مشغله مونځ وو او د مانځه نه فارغ کیدو باندې به په تسبیح او تکبیر کښې مشغول شو او خپل کور ته به راغلو، زما پلار فرمائی چه دا صحابی زمونږ مخکښې تیر شو په داسې حال کښې چه مونږ د ابوالدرداء ﷛ سره ناست وو چه کله هغه تیریدو نو ابوالدرداء ﷛ هغوی ته عرض اوکړو ﴿ کلمة تنفعها ولا تضرک ﴾ (داسې څه خبره ده) یو خبره په ولاړه ولاړه اوکړئ چه په هغې سره مونږ ته فائده اوشی او تاسو ته پکښې هیڅ نقصان نه وی نو په دې باندې هغوی دا واقعه واوروله یو ځل رسول الله ﷺ یو سریه روانه کړه نو کله چه هغه سریه راواپس شوه نو په دې سریه والو کښې یو سړې راغلو او د رسول الله ﷺ په مجلس کښې کیناستلو نو دې راتلونکې سړی د هغه سړی نه کوم چه د مخکښې نه په دې مجلس کښې ناست وو او د هغه سره خوا کښې وو اوئیل چه کله زمونږ د دشمن سره مقابله اوشوه نو زمونږ په ملګرو کښې یو سړی په دشمن باندې حمله اوکړه دا حمله کونکې د قبیله غفار وو، نو د حملې کولو په وخت هغه اووې ﴿ خُذْهَا مِنِّی وَأَنَا الْغُلَامُ الْغِفَارِیُّ ﴾ چه دا انعام زما د طرف نه یوسه څه به یاد ساتې زه غفاری غلام یم. نو د هغه په باره کښې هغه قادم د خپل ملګری نه تپوس اوکړو چه ستا څه خیال دې کومه خبره چه هغه اوکړه د هغې په باره کښې؟ نو هغه جواب ورکړو چه زما خو دا خیال دې چه د هغه ټول ثواب باطل شو یعنی د دې فخریه جملې په وئیلو باندې هلته د مجلس یو بل سړی هم دا خبره واوریدله نو هغه اووې چه زما خیال دې چه په داسې وئیلو کښې هیڅ باک نشته، په دې باره کښې په دې دواړو کښې اختلاف پیدا شو، رسول الله ﷺ هم د هغوی دا خبره واوریدله نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل: ﴿سُبْحَانَ اللّٰهِ لاَ بَأْسَ أَنْ يُؤْجَرَ وَيُحْمَدَ ﴾ یعنی په دې کښې هیڅ باک نشته چه هغه ته دې د عمل اجر هم ملاؤ شی او د هغه دې تعریف هم اوکړې شی، (ځکه چه په جنګ کښې د کافر مخکښې خپله بهادری ښکاره کول نه صرف جائز بلکه غوره او مستحسن امر دې لکه حدیث کښې دی) راوی وائی ﴿ فَرَأَيْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ سُرَّ بِذَلِكَ ﴾ چه ابوالدرداء ﷛ د رسول الله ﷺ په دې ارشاد اوریدلو باندې ډیر خوشحاله شو پوره حدیث خو هغوی سر ښکته کولو سره اوریدلې وو خو د اوریدو نه پس ئې د خوشحالئ او تعجب د اظهار کولو دپاره د هغه صحابی طرف ته چا چه دا حدیث بیان کړې وو سر اوچتولو او د هغوی طرف ته ور وړاندې کیدو او بار بار ئې دا وئیل چه آیا تاسو واقعی دا خبره د رسول الله ﷺ نه اوریدلې ده چه په هغې باندې ما دا اوګڼرله چه اوس به هغوی اودریږی. (یو حدیث خو دا شو) راوی وائی چه بیا یوه ورځ هغه صحابی یعنی ابن الحنظلیه ﷛ په مونږ باندې تیر شو، دې ځل هم ابوالدرداء ﷛ هغوی ته اوفرمائیل: ﴿ کلمة تنفعنا ولا تضرک ﴾ په دې باندې هغوی یو بل حدیث واورولو چه مونږ ته رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د جهاد اس باندې خرچ کونکې په شان د هغه سړی دې چه هغه خپل لاس د صدقې کولو دپاره ورته واره خوروی او کله ئې هم نه راټولوی. (دا دویم حدیث شو) وړاندې راوی وائی چه دغه شان هغه یو ورځ بیا په مونږ باندې راتیر شو بیا ابوالدرداء ﷛ د هغه نه هم دا درخواست اوکړو

﴿ کلمة تنفعنا ولا تضرک ﴾ نو په دې باندې هغوی دا حدیث واورولو چه یو ځل رسول الله ﷺ د خریم اسدی په باره کښې داسې اوفرمائیل: ﴿ نعم الرجل خریم الاسدی لولا طول جمته واسبال ازاره ﴾ چه خریم اسدی څومره ښه سړې دې که د هغه ویښته زیات اوږده نه وې او لنګ ئې نه ښکته کولې یعنی بیا خو د هغه د خوبیانو څه بیان...... دا خبره خریم اسدی ﷺ ته هم اورسیدله نو هغوی حدیث اوریدلو سره قینچی په لاس کښې واخستله او خپل ویښته ئې د غوږونو پورې پرې کړل او خپل ازار ئې تر نصف ساق پورې اوچت کړو (دا دریم حدیث شو) راوی وائی چه بیا یو ځل هغه په مونږ باندې تیریدو نو ابوالدرداء ﷺ خپله هم هغه جمله مکرر کړه، ﴿ کلمة تنفعنا ولا تضرک ﴾ په دې باندې هغوی حدیث واورولو چه یو ځل د یو سفر نه په واپسئ باندې رسول الله ﷺ مدینې طیبې ته داخلیدونکې وو نو رسول الله ﷺ خپلو ټولو ملګرو ته اووې: ﴿ إِنَّكُمْ قَادِمُونَ عَلَى إِخْوَانِكُمْ فَأَصْلِحُوا رِحَالَكُمْ وَأَصْلِحُوا لِبَاسَكُمْ حَتَّى تَكُونُوا كَأَنَّكُمْ شَامَةٌ فِي النَّاسِ فَإِنَّ اللَّهَ لاَ يُحِبُّ الْفُحْشَ وَلاَ التَّفَحُّشَ ﴾ چه اوس تاسو خپلو خپلوانو کره ځئ نو د خپلو سورلو کجاوې برابر کړئ، او خپل لباس او جامه هم برابر کړئ، او داسې بدل شئ ګویا تاسو په خلقو کښې داسې لګئ لکه څنګه چه په بدن کښې تور خال وی یعنی بالکل صفا او مزیدار...... ځکه چه الله پاک د انسان خراب حالت نه خوښوی برابره خبره ده که هغه خرابی طبعی وی یا هغه وخت سره یعنی عارضی، د دې حدیث نه دا معلومه شوه چه د استقبال کونکو رعایت او اعزاز کښې خپل هیئت برابرول پکار دی.

**(د حضرت الشیخ یوه واقعه)**

په دې باندې ماته یو واقعه رایاده شوه زمونږ شیخ نور الله مرقده چه کله د علی ګړه د سفر نه د خپلې سترګې آپریشن کولو نه پس واپس کیدلو نو په سترګه باندې ئې شنه پټئ لګیدلې وه نو کله چه ګاډې کور ته راورسیدو نو د ګاډی نه د کوزیدو نه مخکښې هغوی خپل خادم ته اووې چه د سترګو نه مې پټئ کوزه کړه ځکه چه د پټئ د وجې نه د مخ هیئت خراب شان معلومیږی او حال دا چه خلق د استقبال دپاره منتظر ولاړ دی چه د دوستانو سره په ښه حالت کښې مخامخ شو.

د شمائل ترمذی په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ به د هر محل او هرې موقعې مطابق تیاری فرمائیله، ﴿ لکل حال عنده عتاد ﴾ د دوستانو سره په ښه او مناسب حالت کښې ملاقات کول په دې کښې صرف د خپل نفس احترام او عزت نه دې بلکه د مخاطب هم په دې کښې رعایت دې دا دی د تعلیم نبوی ﷺ په معاشره کښې باریکیانې.

.......

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْكِبْرِ

## باب: د تکبر او غرور د مذمت بیان

[۴۰۹۰](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا هَنَّادٌ يَعْنِي ابْنَ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ الْمَعْنَى، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ مُوسَى: عَنْ سَلْمَانَ الْأَغَرِّ، وَقَالَ هَنَّادٌ، عَنِ الْأَغَرِّ أَبِي مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ هَنَّادٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي، وَالْعَظَمَةُ إِزَارِي، فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا قَذَفْتُهُ فِي النَّارِ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي: تکبرزماڅادر دې اولوئي زما لنک دې څوک چه زمانه په دې دوه څیزونوکښې دکوم یوداخستلو کوشش کوي نواورته به ئي اوغورزوم.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « قَالَ اللَّهُ تعالى الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي وَالْعَظَمَةُ إِزَارِي فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا قَذَفْتُهُ فِي النَّارِ » ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه الله پاک داسې فرمائی چه تکبر زما څادر دې او عظمت زما ازار دې، یعنی دا دواړه زما مخصوص صفتونه دی نو کوم سړې چه په دې دواړو کښې ما سره جنګ کوی نو زه هغه په جهنم کښې غورځوم. د جنګ نه مراد دا دوه صفتونه اختیارول او استعمالول دی، او کوم سړې چه د بل چا څیز استعمالوی نو ګویا هغه د هغه سره جنګ ته تیار دې. د دې نه معلومه شوه چه تکبر ډیره لویه ګناه ده او د شرک په شان دې چه د هغې سزا به انسان ته ملاویږی، یعنی که د هغې نه تائب نه شو، او که په صدق سره ئې ترینه توبه اوکړه نو د شرک په شان دا هم معاف کیږی او د توبې دروازه د الله پاک په نزد هر وخت پرانستلې وی د هغې طرف ته رغبت کول پکار دی او یو وخت هم عاصی لره د الله پاک د رحمت نه نا امیده کیدل نه دی پکار،

یو ځل مې د حضرت شیخ نه هم اوریدلې وو پورته ئې د فضاء طرف ته په لاس سره اشاره کولو سره اوفرمائیل چه په دې میدان کښې د تکبر ګنجائش نشته، د حیوانی ګناهونو خو هیڅ اهمیت نشته خو دا تکبر چه شیطانی ګناه ده دا ډیر سخت څیز دې. والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۰۹۱](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ، وَلَا يَدْخُلُ النَّارَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْقَسْمَلِيُّ، عَنِ الْأَعْمَشِ مِثْلَهُ.

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: دچاپه زړه

[1]: صحيح مسلم/البر والصلة ٣٨ (٢٦٢٠)، سنن ابن ماجه/الزهد ١٦ (٤١٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٢١٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٨، ٣٧٦، ٤١٤، ٤٢٧، ٤٤٢) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الإيمان ٣٩ (٩١)، سنن الترمذي/البر والصلة ٦١ (١٩٩٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٥٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٨٧، ٤١٢، ٤١٦، ٢/١٦٤، ٣/١٢، ١٧) (صحيح)

کښې چه دزرې برابر تکبروي نوجنت ته به داخل نشي اوهغه څوک به جهنم ته داخل نشي دچاپه زړه کښې چه دزرې برابر ایمان وي. امام ابوداؤد فرمائی چه قسملي هم داعمش نه په دې طریقې سره روایت بیان کړې دې.

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِى قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ وَلاَ يَدْخُلُ النَّارَ مَنْ كَانَ فِى قَلْبِهِ مِثْقَالُ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ »﴾

## د حدیث تشریح او توجیه:

د حدیث دا دواړه جملې مخې ته کیخودلو سره یو منطقی طالب العلم دا نتیجه راوباسی [1] چه د کوم سړی په زړه کښې د اوری د دانې برابر کبر وی د هغه په زړه کښې به د اوری د دانې برابر ایمان هم نه وی بلکه هغه به د ایمان نه خالی وی، ډیر سخت وعید دې د کبر په باره کښې، خو د اهل سنت والجماعت په نزد خو دغه شان روایات ماؤل وی چه د دخول اولی نفی ده، یعنی د سزا موندلو نه پس به جنت ته ځی، یا دا چه د دخول جنت په وخت به دهغه په زړه کښې کبر باقی نه وی، او کبر لره اخستلوسره جنت ته نه شی داخلیدې کما قال الله تعالی: ونزعنا ما فی صدورهم من غل. او یو توجیه دا کړې شوې ده چه د کبرنه مراد استکبار دې دایمان نه.... والحدیث اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

[۴۰۹۲] ([2]) حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ رَجُلًا جَمِيلًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي رَجُلٌ حُبِّبَ إِلَيَّ الْجَمَالُ وَأُعْطِيتُ مِنْهُ مَا تَرَى حَتَّى مَا أُحِبُّ أَنْ يَفُوقَنِي أَحَدٌ، إِمَّا قَالَ بِشِرَاكِ نَعْلِي، وَإِمَّا قَالَ بِشِسْعِ نَعْلِي، أَفَمِنَ الْكِبْرِ ذَلِكَ؟ قَالَ: لَا وَلَكِنَّ الْكِبْرَ: مَنْ بَطِرَ الْحَقَّ وَغَمَطَ النَّاسَ".

د ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ ته یوداسې کس راغې څوک چه ډیر ښائسته وو او عرض ئې وکړوچه زماحسن اوجمال ډیر خوښ وي او الله تعالی ماته حسن اوجمال راکړې دې کوم چه ته وینې زه غواړم چه څوک زمانه زماد پیزار دتسې برابر هم په حسن کښې زیات نشي نوایا داخوبه تکبرنه وي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل دا تکبرندې بلکه تکبردادې چه څوک دحق مخې ته اودریږې اوخلق ورته سپک ښکاری.

﴿عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلاً أَتَى النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم- - وَكَانَ رَجُلاً جَمِيلاً - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّى رَجُلٌ حُبِّبَ إِلَىَّ الْجَمَالُ وَأُعْطِيتُ مِنْهُ مَا تَرَ ٥١ الخ﴾

سیدنا ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه یوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یو ډیر ښکلې سړې راغلو او هغه راتلو سره رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ زه داسې سړې یم چاته چه حسن او جمال ډیر خوښ دې او ماته دا څیز راکړې شوې هم دې څنګه چه تاسو ته ښکاری تر دې چه زما حال په حسن خوښولو کښې دې حد ته رسیدلې دې چه زما دا خبره نه

---

[1] ځکه چه د اول جملې مقتضا دا ده چه د کوم سړی په زړه کښې د اوری د دانې برابر کبر وی هغه دې جهنم ته لاړ شی او په دویمه جمله کښې د دې تصریح ده چه د کوم سړی په زړه کښې چه د اوری د دانې برابر ایمان وی هغه به جهنم ته نه ځی، فالنتیجة التي ذکرناها ظاهرة

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤٥٤٠) (صحيح الأسناد)

ده خوښه چه يو سړې هم په حسن کښې زما نه فوقيت يوسی، لږ شان هم په دې څيز کښې، مثلاً د څپلۍ تسمه هم، يعنی زما دا خبره نه ده خوښه چه د يو سړي د څپلۍ تسمه دې هم زما د څپلۍ د تسمې نه زياته ښکلې وی پاتې لا لوئې څيزونه. د خپل تول حال بيانولو نه پس هغه تپوس اوکړو چه دا تکبر خو نه دې؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا تکبر نه دې ﴿وَلَكِنَّ الْكِبْرَ مَنْ بَطَرَ الْحَقَّ وَغَمَطَ النَّاسَ﴾ بلکه متکبر هغه سړې دې چه د حق نه انکار کوی، يعنی د حق معلوميدو نه پس هم هغې ته نه تسليميږی او په خپله رائې باندې ولاړ وی او د دې سره سره خلق سپک گنړی.

د دې حديث نه معلومه شوه چه ښه خوراک او ښه جامه دا د کبر په حقيقت کښې داخل نه دې، دا خو وئيلې شي چه په زيات غوره لباس سره تکبر پيدا کيدلې شی پس دا بله خبره ده.

## بَابٌ فِي قَدْرِ مَوْضِعِ الْإِزَارِ

### باب: لنګ په څومره اندازه تړل پکار دی؟

[٤٠٩٣] (¹) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ عَنِ الْإِزَارِ، فَقَالَ: عَلَى الْخَبِيرِ سَقَطْتَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِزْرَةُ الْمُسْلِمِ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ، وَلَا حَرَجَ أَوْ لَا جُنَاحَ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ، مَا كَانَ أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ، فَهُوَ فِي النَّارِ، مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ".

علاء بن عبد الرحمن دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه دابوسعيدخدری رضی الله عنه نه مې دلنګ په باره کښې تپوس وکړو هغه راته اوفرمائيل تايقينا دخبردار کس نه تپوس وکړو، نبی علیه السلام فرمائيلی دی دمسلمان لنګ دنيمې پنډۍ پورې وي اوکه چرې لنګ دپنډۍ اودخپودګيټو ترمينځ وي نوهم څه باک نشته اوکه چرې دګيټونه خکته وي نودابيا اورته دداخليدو عمل دې ، الله تعالی به دقيامت په ورځ داسې کس ته اونه ګوري څوک چه دتکبر په نيت خپل لنګ په ځان پسې راکاږي.

﴿ سَأَلْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ عَنِ الْإِزَارِ فَقَالَ عَلَى الْخَبِيرِ سَقَطْتَ قال قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « إِزْرَةُ الْمُسْلِمِ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ وَلاَ حَرَجَ – فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ ﴾

يعنی د مسلمان د ازار صفت تر نيمې پنډۍ دې، يعنی اولی دا ده او بيا د نصف ساق نه تر د ګيټو پورې ګنجائش دې او کوم چه د هغې نه لاندې دې هغه د اور مستحق دې.

والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٠٩٤] (²) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْإِسْبَالُ فِي الْإِزَارِ، وَالْقَمِيصِ، وَالْعِمَامَةِ مَنْ جَرَّ مِنْهَا شَيْئًا خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

سالم بن عبدالله رضی الله عنه دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی کريم ﷺ فرمائيلي دي:

---

(¹): سنن ابن ماجه/اللباس ٦ (٣٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ٤١٣٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/اللباس ٥ (١٢)، مسند احمد (٣/٥، ٣١، ٤٤، ٥٢، ٩٧) (صحيح)

(²): سنن ابن ماجه/اللباس ٩ (٣٥٧٦)، (تحفة الأشراف: ٦٧٦٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري (٩٧٢٠) (صحيح)

اسبال یعنی کپړې اوږدي جوړول په لنګ، قمیص او پټي کښې وې څوک چه ددې ځیزونونه کوم یو په ځان پسې راکاږي دتکبر په نیت باندې نو الله تعالی به ورته دقیامت په ورځ باندې ونه ګوري.

﴿الإِسْبَالُ فِي الإِزَارِ وَالْقَمِيصِ وَالْعِمَامَةِ مَنْ جَرَّ مِنْهَا شَيْئًا خُيَلاَءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾

دا د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث مرفوع دې چه د اسبال کراهت څنګه چه په ازار کښې دې هم دغه شان په قمیص او عمامه کښې هم دې یعنی د عمامې شمله، کوم سړې چه په دې درې واړو کښې په هر یو کښې اسبال کوي د تکبر په طور نو الله پاک به د قیامت په ورځ دهغه طرف ته د رحمت نظر نه کوي. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری

[٤٠٩٥](1) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ أَبِي الصَّبَّاحِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي سُمَيَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "مَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الإِزَارِ فَهُوَ فِي الْقَمِيصِ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ چه څه دلنګ په باره کښې فرمائیلي دي نو هغه ئې دقمیص په باره کښې هم فرمائیلي دي.

[٤٠٩٦](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنِي عِكْرِمَةُ أَنَّهُ، رَأَى ابْنَ عَبَّاسٍ يَأْتَزِرُ، فَيَضَعُ حَاشِيَةَ إِزَارِهِ مِنْ مُقَدَّمِهِ عَلَى ظَهْرِ قَدَمَيْهِ وَيَرْفَعُ مِنْ مُؤَخَّرِهِ، قُلْتُ: لِمَ تَأْتَزِرُ هَذِهِ الإِزْرَةَ؟ قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتَزِرُهَا".

د عکرمه رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه ما عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په داسې حال کښې لیدلې ووچه لنګ یې تړلو اودمخامخ طرف نه ئې دومره زوړند کړوچه دجامویوګوټ کې دخپوکیتوته ورسیدو اودشادطرف نه ئې راپورته کړوما ابن عباس ته ووئیل چه ته لنګ داسې ولې تړې؟هغه راته په جواب کښې ووئیل چه مانبی علیه السلام دلنګ په داسې تړلوباندې لیدلې وو.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنِي عِكْرِمَةُ أَنَّهُ رَأَى ابْنَ عَبَّاسٍ يَأْتَزِرُ فَيَضَعُ حَاشِيَةَ إِزَارِهِ مِنْ مُقَدَّمِهِ عَلَى ظَهْرِ قَدَمَيْهِ وَيَرْفَعُ مِنْ مُؤَخَّرِهِ الخ﴾ عکرمه رحمه الله فرمائی چه ما ابن عباس رضی الله عنهما اولیدو چه کله به هغوی ازار اچولو نو د خپل ازار د مخکښې حصې غاړه به ئې دخپو په شا باندې کیخودله او شاته غاړه به ئې پورته اوچتوله حاصل دا چه د هغوی تهبند به د وړاندې طرف ته به ښکته وو، او شاته طرف ته لږ پورته اوچت شوې وو، عکرمه وائی چه ما دهغوی نه تپوس اوکړوچه تاسو خپل تهبند داسې ولې تړئ نو هغوی اوفرمائیل چه ما رسول الله ﷺ هم دغه شان کونکې لیدلې دې.

په بذل کښې لیکلې دی چه کیدې شی چه رسول الله ﷺ داسې د بیان د جواز دپاره کړې وی اه څکه چه بغیرد خیلاء نه داسې کول صرف خلاف اولی دی،ماته یاددی چه حضرت شیخ د دې حدیث د لوستلو په وخت فرمائیلې وو چه ګورئ دا کومه چه مغلی پاجامه وی د دې اصل هم دا خو نه دې؟ د مغلئ پاجامې هیئت داسې وی چه د لاندې طرف نه لږ شان ښکته اود پوندې دطرف نه لږ شان اوچت، حضرت دا خبره په طور د ظرافت فرمائیلې وه.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٥٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١١٠، ١٣٧) (صحيح الإسناد)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢١٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري (٩٦٨١) (صحيح الإسناد)

# بَاب لِبَاسِ النِّسَاءِ

## د زنانو د لباس بيان

[۴۰۹۷]([1])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ لَعَنَ الْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ، وَالْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ".

دعبدالله بن عباس ﷺ نه روايت دې فرمائى چه رسول كريم ﷺ دسړوسره په مشابهت كونكر ښځو باندې اودښځوسره په مشابهت كونكو سړوباندې لعنت فرمائيلې دې.

﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ لَعَنَ الْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ وَالْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ ﴾ يعنى كومې زنانه چه په شكل او لباس كښې د سړو مشابهت اختيار كړى په هغوى باندې رسول الله ﷺ لعنت فرمائيلې دې، او هم دغه شان ئې په هغه سړو هم چه د زنانو مشابهت اختياروى.

د دې حديث په عموم كښې د زنانو د سر ويښته وارۀ كول د سړو په شان او د سړو ګيره خرئيل داخل شى چه پكښې د خلقو اكثريت مبتلا دې، والله الهادى.... والحديث اخرجه البخارى والترمذى والنسائى وابن ماجه،قاله المنذرى.

[۴۰۹۸]([2])حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ، وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ".

د ابوهريره ﷺ نه روايت دې فرمائى چه رسول كريم په هغه نارينه باندې لعنت فرمائيلي دې څوک چه دزنانو لباس اغوندي، اونبى ﷺ په هغه زنانه باندې هم لعنت فرمائيلې دې څوک چه دسړو لباس اغوندي.

[۴۰۹۹]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لُوَيْنٌ وَبَعْضُهُ قِرَاءَةً عَلَيْهِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، قَالَ: قِيلَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ، فَقَالَتْ "لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ".

د ابن ابى مليكه نه روايت دې فرمائى چه دام المومنين عائشة ﷺ نه تپوس اوكړې شو دهغه زنانه په باره كښې كومه چه دنارينو پيزار اغوندي ام المومنين ورته اوفرمائيل نبى كريم و په هغه ښځه باندې لعنت فرمائيلې دې كومه چه دځان نه سړه جوړوي.

﴿ قِيلَ لِعَائِشَةَ رضى الله عنها إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ. فَقَالَتْ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ -صلى الله عليه وسلم- الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ ﴾ عائشي صديقى ﷺ ته چا اووې چه يو زنانه د سړو څپلۍ په خپو كوى نو هغې اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ لعنت فرمائيلې دې په هغه زنانه باندې چه رجله وى، يعنى د سړو سره مشابهت اختيار كونكې.

[1]: صحيح البخاري/اللباس ٦١ (٥٨٨٥)، الحدود ٣٣ (٦٨٣٤)، سنن الترمذي/الأدب ٣٤ (٢٧٨٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٢ (١٩٠٤)، (تحفة الأشراف: ٦١٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٥١، ٢٥٤، ٣٣٠، ٣٣٩)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢٦ (٢٦٩١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٢٥) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٥١) (صحيح)

## بَاب فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ}

### د الله تعالى ددې قول (يدنين عليهن من جلابيبهن) تفسير

[۴۱۰۰](1) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا "أَنَّهَا ذَكَرَتْ نِسَاءَ الْأَنْصَارِ، فَأَثْنَتْ عَلَيْهِنَّ، وَقَالَتْ: لَهُنَّ مَعْرُوفًا، وَقَالَتْ: لَمَّا نَزَلَتْ سُورَةُ النُّورِ عَمَدْنَ إِلَى حُجُورٍ أَوْ حُجُوزٍ شَكَّ أَبُو كَامِلٍ، فَشَقَقْنَهُنَّ فَاتَّخَذْنَهُ خُمُرًا".

دصفيه بنت شيبه نه روايت دې فرمائي. چه يوځل ام المومنين عائشې ﷺ نه دانصارود زنانو ذکر کول دهغوی تعریف ئې وکړو اوهغوی ته ئې نيکې خبرې اوکړې اووئې فرمائيل کله چه دسورة نور دا ايت: «قل للمومنت يغضضن» نازل شو نوهغوی دپردو پالنګونونه دراوی شک دې، لوپټې جوړې کړې.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّهَا ذَكَرَتْ نِسَاءَ الأَنْصَارِ فَأَثْنَتْ عَلَيْهِنَّ وَقَالَتْ لَهُنَّ مَعْرُوفًا﴾

د حديث دا ټکړه په باب غسل الحيض کښ هم تيره شوې ده ﴿ نعم النساء نساء الانصار لم يكن يمنعهن الحياء ان يتفقهن فى الدين ﴾

﴿ وَقَالَتْ لَمَّا نَزَلَتْ سُورَةُ النُّورِ عَمَدْنَ إِلَى حُجُورٍ - أَوْ حُجُوزٍ شَكٌّ - فَشَقَقْنَهُنَّ فَاتَّخَذْنَهُ خُمُرًا ﴾

هغوی فرمائی چه کله دا سورة نازل شو چه په هغې کښ دا آيت دې ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ نو هغوی قصد اوکړو د خپلې ملا ټکړو ته اوکتل او د دې نه مراد دا دې چه د بعض علاقو زنانه يو څادر لره راټولولو سره د ملا په مينځ کښ اوتړی. يعنی وړې وړې ټوټې کولو سره ئې په خپلو سرونو باندې واچوی، يعنی په ملا باندې تړلې شوې کپړې ئې ډيرې اوږدې وې چه د هغې د مختصر کولو ګنجائش وو په دې وجه هغوی داسې اوکړل چه په هغې کښ ئې يو يو ټکړه پرې کړه چه په هغې باندې سر پټ کړی د هغې نه ئې خمار جوړ کړو، ﴿ حجوز ﴾ جمع ده د ﴿ حجزة ﴾ ده او په دې روايت کښ دويم لفظ د حجور د راوی د شک په طور ذکر شوې دې د هغې دلته هيڅ معنی نه جوړيږی.

د آيت کريمه سبب د نزول دا ليکلې شوې دې چه د دې انصاری زنانو ګريوانونه کهلاؤ کهلاؤ وو چه د هغې نه به ئې سينې ښکاره کيدې، او د لوپټو په باره کښ د هغوی عادت دا وو چه هغه به ئې په سر باندې اچولو سره شاته زړوروندولې ، لهذا هغوی ته حکم اوکړې شو د شاته اچولو په ځائې ئې وراندې اچوئ چه په هغې سره سينه پټه شی.

## بَاب فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ}

### د الله تعالى ددې قول (وليضربن بخمرهن على جيوبهن) تفسير

په دې باب کښ مصنف ﷫ دوه احاديث ذکر کړې دی يو د ام سلمه ﷞ ﴿ قَالَتْ لَمَّا نَزَلَتْ (يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ) خَرَجَ نِسَاءُ الأَنْصَارِ كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِهِنَّ الْغِرْبَانُ مِنَ الأَكْسِيَةِ ﴾

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۴۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تفسير القرآن (النور) ۱۲ (۴۷۵۸، ۴۷۵۹)، مسند احمد (۶/۱۸۸) (صحيح الإسناد)

[٤١٠١](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "لَمَّا نَزَلَتْ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ خَرَجَ نِسَاءُ الْأَنْصَارِ كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِهِنَّ الْغِرْبَانَ مِنَ الْأَكْسِيَةِ".

دام سلمه ﷺ نه روايت دي فرمائی هرکله چه ايت: «يدنين عليهن من جلابيبهن» نازل شونوچه کله به دانصاروښځي دکورونونه وتلي نوداسې به ښکاريدلې لکه په سورونوچه پي کارغان ناست وي.

دا آيت کريمه کوم چه په دي حديث کښ ذکر شوي دي د سورة احزاب دي چه په هغي کښ داسي دی : ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَنْ يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا (٥٩) ﴾

په دي آيت کريمه کښ زنانو ته د پردې حکم دي چه خپلې څادرې په خپل ځان باندې په ښه طريقې سره اچوئ، ام سلمه ﷺ فرمائی چه د دې آيت کريمه د نزول نه پس چه کله انصاری زنانه په دي آيتونو باندې عمل کونکې د کورونو نه اوتلې (نو چونکه اوس هغوی خپلې څادرې په خپلو سرونو او باقی بدنونو باندې په ښه طريقې سره اچولې وې او د ټولو سرونو په تورو څادرونو باندې پټ شوې وو نو کتونکی ته به داسې ښکاريده) لکه چه د هغوی په سرونو باندې کارغان ناست دی.

غربان په وزن د غلمان، د غراب جمع ده چه تور وی، په کومو څادرونو سره چه هغوی خپل سرونه پټ کړې وو چونکه هغه د تور رنګ وو چه په هغې سره د هغوی سرونه د کارغانو سره مشابه شو، دا حديث د ام سلمه ﷺ د ترجمه اولی سره مناسب دي نه د ترجمه ثانيه سره او د اول باب په ضمن کښ چه کوم د عائشې ﷺ حديث ذکر شوې دي چه په هغې کښ د سورة النور حواله ده ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ هغه حديث د دي دويم ترجمه سره مناسب دي يعنی معامله برعکس شوه.

او د دي باب ثانی حديث ثانی دا دي:

[٤١٠٢](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ وَابْنُ السَّرْحِ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالُوا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي قُرَّةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَعَافِرِيُّ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "يَرْحَمُ اللَّهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الْأُوَلَ لَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ سورة النور آية ٣١ شَقَقْنَ أَكْنَفَ "، قَالَ ابْنُ صَالِحٍ: أَكْثَفَ مُرُوطِهِنَّ، فَاخْتَمَرْنَ بِهَا.

عروة بن الزبير قدام المومنين عائشة ﷺ نه روايت کوی فرمائی چه ام المومنين اوفرمائيل الله تعالی دي په هغه زنانوو باندې رحم وکړي چاچه دټولونه مخکښې هجرت کړي دي، کله چه الله تعالی دا ايت کريمه: «وليضربن بخمرهن على جيوبهن» نازل کړونو هغوی دخپلوپردونه دځان دپاره لوپټې جوړې کړې ګوياکښې هغوی په همدغه وخت کښې دحکم تعميل وکړو ابن صالح په خپل روايت کښې داکنف په ځائې باندې اکثف لفظ بيان کړي دي.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٢٨١) (صحيح)

٢): تفرد به أبو داود، انظر رقم حديث: (٤١٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٦٧، ١٦٥٧٧) (صحيح)

﴿ عَنْ عَائِشَةَ – رضى الله عنها – أَنَّهَا قَالَتْ يَرْحَمُ اللَّهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الأُوَلَ لَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ (وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ) شَقَقْنَ أَكْنَفَ – قَالَ ابْنُ صَالِحٍ أَكْثَفَ – مُرُوطِهِنَّ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا ﴾

په دې حدیث کښ د مهاجرو زنانو ذکر دې چه کله دا آیت کریمه نازل شو ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ نو دې زنانو داسې اوکړل چه په خپلو څادرو کښ ئې چه کوم د ټولو نه پیړ وو د هغې ټکړې کولو سره ئې ترې نه لوپټې جوړې کړې.

د عائشې صدیقې رضی الله عنها کوم حدیث چه په اول باب کښ راغلې دې په هغې کښ هم د دې آیت ذکر دې کوم چه دلته ذکر کړې شوې دې یعنی د سورة نور آیت، خو هلته نساء الانصار ذکر وو او دلته نساء المهاجرات، لهذا د دواړو احادیثو د یو ځائې کولو نه معلومه شوه چه په دې آیتونو کښ د نساء الانصار تخصیص نشته لکه چه د اول حدیث نه شک پیدا کیدو او نه د مهاجراتو تخصیص دې لکه چه د بل باب د حدیث نه شبه کیږی بلکه دا د دواړو په حق کښ دې.

## نزول حجاب، او د حجاب متعلق د ایتونو او روایاتو توضیح :

د دې دواړو ابوابو تعلق د حجاب سره دې او مونږ د کتاب اللباس نه بحث کوو، امام بخاری رحمه الله د حجاب مسئله په کتاب الاستیذان کښ ذکر کړې ده، په سنن ابوداؤد کښ د استیذان بیان د کتاب په آخری حصه کښ دې، د کتاب الادب په آخری حصه کښ ئې مختصرا ذکر کړې دې. امام بخاری رحمه الله ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب اية الحجاب ﴾ او په هغې کښ ئې دوه قصې ذکر کړې دی یو د زینب بنت جحش رضی الله عنها د ولیمې او دویمه د سیدنا عمر رضی الله عنه د سوده رضی الله عنها متعلق...... د اول قصې حاصل دا دې د کوم راوی چه انس رضی الله عنه دې چه د مسئله حجاب په قصه باندې د ټولو نه زیات زه خبر یم او بیا هغوی دنزول حجاب واقعه بیان کړه هغه دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زینب بنت جحش رضی الله عنها سره د نکاح کولو نه پس او د رخصتئ نه پس سحر خلق د ولیمې په دعوت کښ راوغوښتل نو اکثر خلق د خوراک کولو نه پس لاړل، خو بعض خلق د فارغ کیدو نه پس په خبرو کښ مشغول شو او د ډیر ساعته پورې ئې خبرې کولې، رسول الله صلی الله علیه وسلم په شروع کښ انتظار اوکړو د هغوی د پاسیدو، چه کله هغوی پانه سیدل ځکه چه هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په طبیعت باندې پوهه شوې نه وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دا صورت اختیار اوفرمائیلو [1] چه د هغوی د پاسولو دپاره رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله د کور نه بهر تشریف یوړلو او د ترمذی په روایت کښ دی چه زینب رضی الله عنها (د کومې ناوې د وادهٔ چه دا دعوت وو) په کور کښ یو طرف ته مخ کړې ناسته وه........ سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه د حضور صلی الله علیه وسلم سره زه هم د کور نه اوتلم او حضور صلی الله علیه وسلم د هلته نه وتلو سره د عائشې رضی الله عنها حجرې ته تشریف یوړو چه ورسره نزدې وه. زه هم د هغوی سره یوځائې لاړم، لږ ساعت پس هغوی د هغه ځائې واپس شو په دې ګمان چه غالبا اوس به هغه خلق هم بهر راغلې وی چا چه دننه خبرې کولې خو کور ته داخلیدو سره ئې اوکتل چه زینب رضی الله عنها ناسته ده او هم هغه څو سړی هغه شان ناست دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم بیا د کور نه راواپس شو او زه هم د

[1] په روایت کښ دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته د تلو په امر باندې شرمیدو)

هغوی سره سره، او حضور ﷺ دې ځل هم د عائشې ﷝ حجرې ته تشریف یوړلو، بیا چه کله رسول الله ﷺ ګمان اوکړو چه اوس به هغوی واپس تلې وی نو هغوی د هغه ځائې نه واپس کیدو سره کور ته داخل شو چه او ئې کتل نو هغه خلق تلې وو، هغوی سره زه هم کور ته داخلیدم نو هغوی زما او خپل مینځ کښې حجاب حائل کړو او د ایت کریمه نازل شو:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ ﴾.......

او دویمه قصه د سوده ﷝ دا ده عائشه ﷝ روایت کوی چه سیدنا عمر ﷛ به رسول الله ﷺ ته فرمائیل چه په خپلو بیبیانو باندې پرده کوئ. ﴿ قالت فلم یفعل ﴾ عائشه ﷝ فرمائی چه رسول الله ﷺ د عمر ﷛ په وینا باندې عمل اونکړو، وړاندې هغه فرمائی چه ازواج مطهرات به د استنجاء دپاره د شپې بهر وتلې، یو ځل ام المومنین سوده بنت زمعه ﷝ اوتله چه په قد کښې ښه اوږده وه، عمر ﷛ هغه د لرې نه اولیده نو هغوی اوفرمائیل: ﴿ عرفناک یا سودة ﴾ چه اې سوده مونږ ته اوپیژندلې، په تلو کښې په لیدو باندې..... ﴿ حرصا علی ان ینزل الحجاب ﴾ یعنی هغوی دا خبره په دې خیال باندې اوفرمائیله چه په څه طریقه باندې د حجاب حکم نازل شی. ﴿ قالت فانزل الله عزوجل اية الحجاب ﴾ یعنی په دې باندې د حجاب حکم نازل شو.

**نزول حجاب د زینب د وجې نه اوشو که د سوده ﷝ د وجې نه:**

په دې دواړو روایتونو کښې چه په ظاهره کوم تعارض دې چه په یو روایت کښې د نزول حجاب نسبت د زینب ﷝ قصې ته کړې شوې دې، او په بل روایت کښې د سوده ﷝ قصې ته کړې شوې دې د دې یو توجیه دا کړې شوې ده چه د دواړو قصو د پیښیدلو نه پس د حجاب نزول اوشو، لهذا دواړو ته د نزول نسبت صحیح دې، دا یو مشهوره او عام توجیه ده کومه چه د دې قسم تعارض د دفع کولو دپاره کیدلې شی. او د بعض شارحینو رائې دا ده چه د آیت حجاب نزول خو د زینب ﷝ د قصې د وجې نه شوې دې چه په هغې کښې مطلق د حجاب حکم دې کوم چه تر اوسه پورې نه وو، او د سوده ﷝ په حدیث کښې چه عمر ﷛ کومه پرده غوښتله نو هغه عام پرده نه وه بلکه د هغې تعلق د خاص حریم نبوی سره وو، عمر ﷛ دا غوښتله چه ازواج مطهرات سره د مخونو او د بدنونو د پردو هم پټې وی په هیڅ طریقه دې په هغوی باندې د یو پردی سړی نظر او نه لګی. خو د عمر ﷛ دا خواهش پوره نه کړې شو، خو په دې رائې کښې دا اشکال دې چه په حدیث کښې خو د سوده ﷝ قصې نه پس هم دا دی ﴿ فانزل الله اية الحجاب ﴾[1]

په صحیح بخاری کښې د دې سلسلې روایات په ډیرو ځایونو کښې دی اولا په ابواب الوضوء کښې، ثانیا په تفسیر د سورة احزاب کښې، او د هغې نه پس بیا په کتاب الاستیذان کښې او د هغې خپل مینځ کښې تعارض هم دې، په قصه د سوده ﷝ کښې په یو ځائې کښې داسې دی: ﴿ انه کان بعد ما ضرب الحجاب ﴾ او په کتاب الوضوء کښې چه کوم روایت دې د

[1] دې باره کښې زمونږ یو خاص رائې ده کومه چه وړاندې راځی.

هغې نه معلومیږی چه د واقعه د قبل الحجاب ده، د دې تعارض په دفع کولو کښې هم شارحین د حدیثو مختلف دی، او حافظ د دې اختلافاتو توجیه کولو سره یو ځائې کښې (کتاب الوضوء) دا هم وئیلې دی. ﴿والمراد باية الحجاب في بعضها قوله تعالى : ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ اهـ﴾ مونږ چه په کوم باب کښې بحث کوو په هغې کښې ړومبې هم په دې آیت کریمه باندې دې. (¹)

ځان پوهه کول پکار دی چه د حجاب په مراتبو او درجات باندې شارحینو د حدیث او هم دغه شان فقهاء کرامو په تفصیل سره کلام کړې دې، مونږ خو دلته ضمنا په انتهائی اختصار سره د مقام د مناسبت سره لیکل کړې دی، حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله په معارف القرآن کښې د آیات حجاب په تفسیر کښې په مسئله د حجاب باندې کافی مفصل مدلل او مرتب بحث کړې دې.

**د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د زنانو د پردو سره نه مخ پټول :**

د دې ټولو خبرو باوجود بعضو دنیاوی تعلیم یافته چاته چه دینی مسائل په ښه طریقه باندې یاد نه وی، هغوی په مسائل شرعیه کښې دخل اندازی کوی، داسې قسم خلق په مسئله د حجاب کښې هم شکوک او شبهات پیدا کوی او دا هم وائی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د مخ د پټولو دستور نه وو، حال دا چه دا خبره غلطه ده د مخ د پټولو ثبوت د روایاتو نه ثابت دې پس په ابوداؤد کښې د عائشې رضی الله عنها روایت دې :

﴿عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ محرمات مَعَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا على وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ ﴾

عائشه رضی الله عنها د خپل سفر حج په باره کښې د لارې کیفیت بیانوی چه کله مونږ د احرام په حالت کښې د رسول الله ﷺ سره روانې وو نو زمونږ مخې ته به نور قافله سوارهٔ هم تیریدل چه کله به هغوی مونږ ته رانزدې شو نو مونږ به خپل څادرونه ښکته کړل او پرده به مو اوکړه بیا چه به کله هغوی تیر شو نو مونږ به خپل مخ ښکاره کړو، او دا روایت د حج په سفر کښې د زنانو د نورو مخکښې په مخ پټولو کښې صریح دې، په دې باندې د ﴿ امراءة ختعمیه ﴾ د قصې نه اشکال کیدلې شی د هغې جواب ښکاره دې چه هلته مخ ښکاره کول د حاجت د وجې نه ؤو

---

(¹) وفي العيني نقلا عن الكرماني : الحجاب أي حكم الحجاب يعني حجاب النساء عن الرجال فأنزل الله آية الحجاب ويحتمل أن يراد بآية الحجاب الجنس فيتناول الآيات الثلاث قوله تعالي (يا أيها النبي قل لأزواجك وبناتك ونساء المؤمنين يدنين عليهن من جلابيبهن) الآية وقوله تعالي (وإذا سألتموهن متاعا فاسألوهن من وراء حجاب) وقوله تعالي (وقل للمؤمنات يغضضن من أبصارهن ويحفظن فروجهن ولا يبدين زينتهن إلا ما ظهر منها وليضربن بخمرهن علي جيوبهن) الآية او د دې نه مخکښې شورع کښې مشروع بحث د حجاب کښې علامه عینی لیکلې دی چه : الحجب ثلاثة الأول الأمر بستر وجوههن يدل عليه قوله تعالي (يا أيها النبي قل لأزواجك وبناتك ونساء المؤمنين يدنين عليهن من جلابيبهن) الثاني هو الأمر بإرخاء الحجاب بينهن وبين الناس يدل عليه قوله تعالي (وإذا سألتموهن متاعا فاسألوهن من وراء حجاب) الثالث هو الأمر بمنعهن من الخروج من البيوت إلا لضرورة شرعية فإذا خرجن لا يظهرن شخصهن كما فعلت حفصة يوم مات أبوها سترت شخصها حين خرجت وزينب عملت لها قبة لما توفيت (د قبه نه مراده خانګو ده چه د هغې نه په نعش سره تعبير کوی كما سبق في كتاب الجنائز) وكان لهن في التستر عند قضاء الحاجة ثلاث حالات–الي آخر ما ذكر (عيني ٢٦٨/٢)

يعنى حاجت د سوال چه هغې د رسول اللهﷺ نه يو مسئله تپوسله، ښکاره ده چه د نورو حاضرينو نظر دې وخت کښې د هغوى طرف ته نه وو، د صحابه کرامو رضي الله عنهم په احوال کښې دا خبره مشهوره ده چه هغوى به د رسول اللهﷺ په مجلس کښې او د هغوى مخکښې سرونه ښکته کړې وو، ﴿ كان على رؤسهم الطير ﴾ خو د رسول اللهﷺ د ترۀ خوئې حضرت فضل بن عباس رضي الله عنهما کوم چه هغه وخت کښې په رسول اللهﷺ پسې شاته ناست وو د هغوى په باره کښې په رواياتو کښې راځى چه هغوى دغه وخت کښې دغه زنانه ته اوکتل خو هم په دې روايت کښې د دې هم تصريح ده چه رسول اللهﷺ په خپل لاس مبارک باندې د هغوى مخ بل طرف ته واړولو. ﴿ رايت شابا وشابة فلم امن الشيطان عليهما ﴾ يعنى دواړه ځوانان دى په دې وجه د فتنې ويره وه. معلومه شوه چه د زنانه دپاره چه د مخ ښکاره کولو ته جائز وئيلې شوې دى د هغې تعلق د مانځه سره دې چه په هغې کښې د مخ پټول ضرورى نه دى د هغې نه مراد پردو سړو ته مخ ښکاره کول نه دى لهذا پردو سړو ته مخ ښکاره کول مطلقا لکه چه د سفر حج د روايت نه معلومه شوه يا کم از کم د فتنې د ويرې په وخت لکه چه د حديث الخثعمية نه معلومه شوه ناجائز دى، او هم دا خبره فقهاء کرام فرمائى، حديث الخثعميه او په هغې باندې کلام په کتاب الحج باب الرجل يحج عن غيره کښې تير شوې دې، هغې طرف ته رجوع اوکړئ.

تنبيه : د سوده رضي الله عنها په قصه کښې چه راځى چه ﴿ فانزل الله اية الحجاب ﴾ د دې په مقابله کښې په کتاب التفسير کښې يو روايت داسې دې چه د هغې مضمون داسې دې چه د نزول حجاب نه پس سوده رضي الله عنها د خپل څه حاجت دپاره د کور نه بهر اوتله، او دا په بدن باندې غټه زنانه وه چه په ليدو سره به پيژندلې کيده، عمر رضي الله عنه هغوى په تلو سره اوليده نو د هغې د کور نه په وتلو باندې ئې اوټوکله، هغه د هغوى په ټوکلو باندې واپس شوه، عائشه رضي الله عنها فرمائى چه هغه وخت رسول اللهﷺ زما په کور کښې وو، سوده رضي الله عنها راغله او د عمر رضي الله عنه شکايت ئې اوکړو، عائشه رضي الله عنها فرمائى چه په رسول اللهﷺ باندې د وحى آثار ښکاره شو بيا چه کله هغه آثار لاړل نو هغوى اوفرمائيل : ﴿ انه قد اذن لكن ان تخرجن لحاجتكن ﴾ چه د هغې مطلب دا شو چه د عمر رضي الله عنه خواهش پوره نه کړې شو او څه چه هغوى غوښتل يعنى د مطلق خروج نه منع کول د هغې حکم زنانو ته اونکړې شو، بلکه د خروج للحاجة اجازت ورکړې شو.

**ايقاظ :**

زمونږ خيال دا دې[1] چه په کومو روايتونو کښې چه د سوده رضي الله عنها د قصې په باره کښې راځى ﴿فانزل الله اية الحجاب ﴾ هغه غالبا د راويانو تصرف دې، اصل وحى کومه چه په رسول اللهﷺ باندې په دې موقع نازله شوې وه هغه د نزول حجاب نه وه، نزول حجاب خو د دې نه مخکښې په قصه د زينب بنت جحش کښې شوې وو، د عمر رضي الله عنه د واقعې نه پس کومه چه د سوده رضي الله عنها سره پيښه شوه په هغې کښې چه د کومې وحې نزول شوې وو[2] هغه خو دا دې کوم

[1] وقد ابدى هذا الاحتمال العزيز المولوي حبيب الله سلمه الله تعالي)

[2] هغې ته آيت د حجاب په دې لحاظ سره وئيلې شى چه د هغې تعلق د حجاب سره دې اګر چه نفيا دې والله تعالي اعلم.... لكن يشكل عليه لفظ آية اللهم الا ان يقال ان المراد بالآية الوحي اي غير المتلو.

چه په دې روايت کښې مصرَح دي، په دې صورت کښې د دوه احاديثو خپل مينځ کښې تعارض چه د يو نه معلوميږي چه نزول د حجاب په قصه د زينب کښې اوشو او د يو روايت نه معلوميږي چه په قصه د سوداء کښې شوې وو دا تعارض به اوس نه پيښيږي، خو يو شارح هم دې طرف ته توجه نه ده کړې، والله اعلم بالصواب.

امام بخاري رحمه الله د حجاب مسئله د کتاب الاستيذان په ضمن کښې ذکر فرمائيلې ده او امام ابوداؤد رحمه الله په کتاب اللباس کښې او هم دا زيات اولی معلوميږي، ځکه چه د حجاب تعلق د لباس سره دې. او استيذان د حجاب نه علاوه يو مستقل څيز دې چه د هغې په باره کښې په سورة نور کښې دوه آيتونه نازل شوي دی يو دهغې په شروع کښې، ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا﴾ او دويم آيت کريمه د هغې په آخر کښې ﴿لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ﴾ ملا علي قاري رحمه الله په مرقات کښې فرمائي چه د استيذان معنی طلب الاذن دي، او اصل په دې کښې دا آيت کريمه دې ‹د سورة النور اولنې آيت› او حافظ ابن کثير رحمه الله د آيت ثانيه په باره کښې فرمائي چه دا ايت د الاستيذان الاقارب بعضهم على بعض باندې مشتمل دې، او په آيت اولی کښې استيذان الاجانب بعضهم على بعض ذکر دې، هکذافي الابواب والتراجم.

### ايت د استيذان د ايت حجاب نه مقدم دې:

او په هغې کښې دا هم دی چه په تاريخ خميس کښې د ايت ثانيه په باره کښې ليکلې دی چه د هغې نزول په ۱۰ هجری کښې شوې دې، د دې نه پس حضرت شيخ رحمه الله فرمائي چه ظاهر دا ده چه آيت اولی د دې نه مخکښې نازل شوې دې لکن لم ار التصريح بذلک، وفی التفسير الکبير ما يؤيد هذا.... الى آخر ما فيه... او نزول د حجاب د دې نه مخکښې دې ځکه چه د حضرت زينب نکاح په يو قول کښې په ۵ هجرئ کښې شوې او په يو قول کښې په دريمه هجرئ کښې شوې کما في المواهب اللدنية، للقسطلاني ۸۸/۲ او هم دا دوه اقوال علامه عينی نقل کړې دی او دريم قول ذوالقعده ۴ هجری دې.

[۴۱۰۳](1) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، قَالَ: رَأَيْتُ فِي كِتَابِ خَالِي عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ.

ابن السرح ويلي دي چه ما د خپل ماما په کتاب کښې داسې ليدلې دي چه د عقيل په واسطه ئې د ابن شهاب نه د دې روايت په شان روايت بيان کړې دې.

## بَابٌ فِيمَا تُبْدِي الْمَرْأَةُ مِنْ زِينَتِهَا (2)

### باب په ښځې کوم قسم سنګار ښکاره کولې شی؟

[۴۱۰۴](3) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْطَاكِيُّ، وَمُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ خَالِدٍ، قَالَ يَعْقُوبُ بْنُ دُرَيْكٍ: عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ دَخَلَتْ

(1): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤١٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٦٧، ١٦٥٧٧) (صحيح)

(2) لعل المراد بالزينة محلها كما قال المفسرون في تفسير قوله تعالي ولا يبدين زينتهن الاية)

(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٦٢) (صحيح)

عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ، فَأَعْرَضَ عَنْهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "يَا أَسْمَاءُ إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ لَمْ تَصْلُحْ أَنْ يُرَى مِنْهَا إِلَّا هَذَا وَهَذَا، وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مُرْسَلٌ خَالِدُ بْنُ دُرَيْكٍ لَمْ يُدْرِكْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا.

دام المومنين عائشة ﷞ نه روايت دي فرمائی چه اسماء بنت ابی بکر دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اونرئ جامې ئې په غاړه وې نونبی ﷺ دهغې دطرف نه مخ واړولو او ورته ئې اوفرمائيل اې اسماء کله چه يوه جينئ دحيض راتلو وخت ته ورسيږي نودهغې دپاره جائزندي چه دهغې دجسم نه څه حصه علاوه ددې نه ښکاره شي اودهغې مخ اولاسونوته ئې اشاره وکړه امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت مرسل دې دخالد بن دريک ملاقات اولیدل دعائشې سره ثابت نه دی.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِى بَكْرٍ دَخَلَتْ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ فَأَعْرَضَ عَنْهَا رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم الخ ﴾

عائشه ﷞ فرمائی چه زما خور اسماء ﷞ رسول الله ﷺ ته راغله يعنی زمونږ کور ته او رسول الله ﷺ هلته موجود وو نو هغه وخت هغې نرئ او سپکې جامې اغوستلې وې، نو رسول الله ﷺ ترې نه مخ واړولو او وې فرمائيل : اې اسماء ! زنانه چه کله بلوغ ته اورسيږي نو د هغې دپاره جائز نه دی چه د هغې بدن ښکاره شی سوا د دې او دې نه، رسول الله ﷺ مخ او لاسونو ته اشاره اوفرمائيله.

يعنی د وجه او کفين نه علاوه چه د بدن کومه نوره حصه ده د هغې ښکاره کول خو په هيڅ حال کښې جائز نه دی نه په کور کښې او نه خارج د کور نه صرف دا دوه اجزاء داسې دی د بدن چه د هغې ښکاره کول جائز دی، اعنی داخل الدار او عند عدم حضور الاجانب (والدليل على هذا القيد قرينة الحال اذ القصة قصة داخل الدار)

## بَابٌ فِي الْعَبْدِ يَنْظُرُ إِلَى شَعْرِ مَوْلَاتِهِ

### آيا غلام د خپلې مالکې د سر ويختو ته کتلې شي؟

[۴۱۰۵] ([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَابْنُ مَوْهَبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ: "أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ اسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحِجَامَةِ فَأَمَرَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا، قَالَ: حَسِبْتُ أَنَّهُ، قَالَ: كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ".

دجابر ﷛ نه روايت دې فرمائی چه ام سلمه ﷞ دنبی ﷺ نه دښکرلګولو په باره کښې اجازت وغوښتو نونبی ﷺ ابوطيبه ته حکم اوکړو چه ښکر ورته ولګوي جابر وائی زماخيال دی چه هغه اووئيل ابو طيبه ددې رضاعي ورور وو او يا يو نابالغ هلک وو.

﴿ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ اسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- فِى الْحِجَامَةِ فَأَمَرَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا. قَالَ حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ ﴾

[1]): صحيح مسلم/السلام ۲۶ (۲۲۰۶)، سنن ابن ماجه/الطب ۲۰ (۳۴۸۰)، (تحفة الأشراف: ۲۹۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۵۰) (صحيح)

جابر ﷺ فرمائی چه ام سلمه ﷺ د رسول الله ﷺ نه اجازت طلب کړو د ښکر لګولو نو رسول الله ﷺ ابوطیبه ته حکم اوکړو هغې ته د ښکر لګولو، راوی وائی چه ماته یادیږی چه جابر ﷺ دا هم فرمائیلي وو چه دا ابوطیبه د ام سلمه ﷺ رضاعی رور وو یا نابالغ هلک وو.

### مطابقة الحديث للترجمة :

په ترجمة الباب کښې د نظر الى شعر المراة ذکر دې او ښکر دیر کرته د بدن په هغه حصو باندې لګولې شی کوم چه د عورت په حد کښې داخل دی، او رسول الله ﷺ اجازت مطلقا اوکړو دغه شان به ئې د ترجمې سره مناسبت پیدا شی، د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت په یو لحاظ سره خو پیدا شو خو په ترجمه کښې قید د خپل غلام دې چه د زنانه غلام د هغې د سر ویښته لیدلې شی یا نه، د دې جواب زما په ذهن کښې دا دې چه په دې حدیث کښې د مصنف ﷺ غرض د ترجمة الباب اثبات نه دې د دې اثبات خو د باب د حدیث ثانی نه کیږی، دا روایت خو مصنف دلته استطرادا او تقریبا للمرام راوړې دې.

### هل العبد محرم لسیدته ام لا؟ :

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر ده د هغې حاصل دا دې چه د زنانه غلام د هغې محرم دې یا نه؟ دا مسئله سره د اختلاف د ائمه نه د ابواب العتق په رومبی باب کښې تیره شوې ده. والحديث اخرجه مسلم وابن ماجه، قاله المنذری

[٤١٠٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو جُمَيْعٍ سَالِمُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى فَاطِمَةَ بِعَبْدٍ كَانَ قَدْ وَهَبَهُ لَهَا، قَالَ: وَعَلَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ثَوْبٌ إِذَا قَنَّعَتْ بِهِ رَأْسَهَا لَمْ يَبْلُغْ رِجْلَيْهَا، وَإِذَا غَطَّتْ بِهِ رِجْلَيْهَا لَمْ يَبْلُغْ رَأْسَهَا، فَلَمَّا رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَلْقَى قَالَ: إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكِ بَأْسٌ إِنَّمَا هُوَ أَبُوكِ وَغُلَامُكِ".

د انس ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فاطمې ﷺ ته یوغلام بوتلو کوم چه ئې هغې ته هبه کړې وو او په دې وخت کښې فاطمې ﷺ داسې جامه اغوستلې وه که چرې هغې وربانديې سر پټولې نو دپندو پورې نه رسیده اوکه چرې خپې ئې وربانديې پټولې نوسرته نه رسیده نبی ﷺ چه کله فاطمه په دې مشکل کښې ولیدله نوونئې فرمائیل په دې کښې هیڅ خرج نشته ځکه چه دا والد دې او بل ستاغلام دې.

﴿عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَتَى فَاطِمَةَ بِعَبْدٍ قَدْ وَهَبَهُ لَهَا الخ﴾

رسول الله ﷺ فاطمې ﷺ ته یو غلام راوستلو، فاطمې ﷺ د هغې غلام نه پرده کول شروع کړل خو څادر ئې وړوکې وو که سر به ئې پټولو نو خپې به ئې ښکاره کیدې او که خپې به ئې پټولې نو سر به ئې ښکاره کیدو نو رسول الله ﷺ په دې لیدو باندې اوفرمائیل چه د پټولو فکر ولې کوې اوس دې وخت کښې خو په کور کښې ستا پلار او هم ستا غلام دې....

کوم حضرات چه د زنانه غلام د هغې محرم نه منی هغوی د دې تاویل دا کوی چه ﴿ان هذا العبدكان صغيرا لاطلاق لفظ الغلام، ولانها واقعة حال الى آخرما ذكرمن المسئلة ودليلها فى البذل﴾

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٩) (صحيح)

## باب في قوله {غير أولي الإربة}

### د الله تعالى ددې قول (غير اولى الاربة) تفسير

دا لفظ په ترجمة الباب کښې ذکر دې د سورة نور په يو اورد آيت ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ ﴾ په آخر کښې دى ﴿ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ ﴾ يعنى کوم سړى چه داسې دى چاته چه د شهوت نه کيدو په وجه باندې د زنانو حاجت نشته لکه بعض مخنث او عنين نو دا په هغې کښې دى چه د هغوى مخکښې د مواضع زينت ابداء جائز ده، څنګه چه د اباء او خامنو او د خاوندانو دپاره جائز دې.

[٤١٠٧]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَهِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ يَدْخُلُ عَلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُخَنَّثٌ فَكَانُوا يَعُدُّونَهُ مِنْ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ، فَدَخَلَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَهُوَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ وَهُوَ يَنْعَتُ امْرَأَةً، فَقَالَ: "إِنَّهَا إِذَا أَقْبَلَتْ أَقْبَلَتْ بِأَرْبَعٍ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ أَدْبَرَتْ بِثَمَانٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا أَرَى هَذَا يَعْلَمُ مَا هَاهُنَا، لَا يَدْخُلَنَّ عَلَيْكُنَّ هَذَا فَحَجَبُوهُ".

عروه دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت کوى چه هغې فرمائيلي دي چه په ازواجو مطهراتوکښې ديوي تني دخدمت دپاره به يوهجرا راتلو او دوى به هغه د غير اولي الاربه دجملي نه ګڼرلو يوه ورځ زمونږ خواته نبى عليه السلام راغي او په دې وخت کښې دغه هجراهم ناست وو اوديوي ښځې تعريف ئې کولو اووئيل ئې کله چه دغه زنانه مخامخ راشي نوڅلور راوړي اوکله چه روانه شي نواته راوړي نبى عليه السلام اوفرمائيل زما خيال دې چه دې هم دزنانو د خبرونه خبر دې ددينه پس دې دې ستاسو خواته نه راځى نوازواج مطهراتو دده نه پرده کول شروع کړل.

**قوله:** ﴿ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَ يَدْخُلُ عَلَى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مُخَنَّثٌ فَكَانُوا يَعُدُّونَهُ مِنْ غَيْرِ أُولِى الإِرْبَةِ الخ ﴾

### شرح الحديث:

عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى چه يو مخنث به زمونږ کورونو ته تلو راتلو مونږ هغه په ﴿ غير اولى الاربة ﴾ کښې شمار کولو، يو ځل رسول الله صلى الله عليه وسلم کور ته تشريف راوړلو او هغه مخنث د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بعض بيبيانو سره وو، او هغه د يو زنانه وصف بيانول شروع کړل چه په هغوى کښې يو زنانه داسې ده چه ډيره غټه او ښکلې بدن ئې دې چه کله مخامخ راځى نو په خيټه کښې ئې څلور کندې وى او کله چه واپس شى نو اته کندې پرې ښکاره کيږى، يعنى څلور مخامخ او څلور شاته يعنى د اړخونو، رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه په دې جمله اوريدو باندې اوفرمائيل ﴿ أَلاَ أَرَى هَذَا يَعْلَمُ مَا هَا هُنَا ﴾ خبردارا زه پوهيږم چه دا سړې خو د زنانو د حال نه

(): صحيح مسلم/السلام ١٣ (٢١٨١)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٣٤، ١٧٢٤٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري (٩٢٣٧)، مسند أحمد (١٥٢/٦) (صحيح)

خبر دي او پرې پوهيږي، لهذا دې بيا دلته داخل نه شي، پس ټولو هغه بيا دپاره کور ته د راتلو نه منع کړو.

(اسم المخنث؟)

شارحينو د دې مخنث نوم هم ليکلې دې: قيل اسمه هيت وقيل هند وقيل ماتع.

د دې بعض ازواج نه مراد چا کره چه دا مخنث وو ام سلمة ﵂ ده ځکه چه دا روايت په کتاب الادب باب الحکم فی المخنثين کښې راغلې دې: « عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا مُخَنَّثٌ وَهُوَ يَقُولُ لِعَبْدِ اللَّهِ أَخِيهَا إِنْ يَفْتَحِ اللَّهُ الطَّائِفَ غَدًا دَلَلْتُكَ عَلَى امْرَأَةٍ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ. فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ » »

د عربو په نزد او د هغوی په مزاق کښې د زنانو څرب کيدل ممدوح او خوښ دی، د طائف د يوې زنانه هم دا صفت دا مخنث بيانوی چه کله مخامخ راشی نو د تلو د حرکت د وجې نه او د هغې د څرب والی د وجې نه د هغې په خيټه کښې څلور کندې جوړې شی او بيا چه کله واپس ځی نو اوس چونکه د خيټې او د شا لړه لړه حصه ښکاری نو اوس هم هغه څلور کندې اتۀ شوې، خيټې او ملا لره يو ځائې کولو سره.

د دې نه روستو رواياتو کښې لږ زيادت دې

[٤١٠٨](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ بِمَعْنَاهُ.

عروه دام المومنين عائشة ﵂ نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دې.

[٤١٠٩](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ زَادَ وَأَخْرَجَهُ، فَكَانَ بِالْبَيْدَاءِ يَدْخُلُ كُلَّ جُمُعَةٍ يَسْتَطْعِمُ.

عروه دام المومنين عائشة ﵂ نه دتيرشوي روايت هم معنی روايت بيان کړې دې ليکن ددې اضافې سره چه: دکورنه ئې وويستلواوپه بيابان کښې به اوسيدو اوهره جمعه به دخوراک غوښتلو دپاره راتلو.

﴿ فکان بالبيداء يدخل کل جمعة يستطعم ﴾ چه کله ئې هغه ويستلو نو هغه د بيداء طرف ته لاړو، په هفته کښې به يو ځل د جمعې په ورځ راتلو د خوراک غوښتلو دپاره، او په يو روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړې شو چه يا رسول الله ﷺ په ځنګل کښې خو به دې د لوږې نه مړ شی تاسو هغه ته په هفته کښې دوه کرته ښهر ته د داخليدو اجازت اوکړئ د سوال کولو نه پس به واپس کيږی.

[٤١١٠](3) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ إِذَنْ يَمُوتُ مِنَ الْجُوعِ، فَأَذِنَ لَهُ أَنْ يَدْخُلَ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّتَيْنِ فَيَسْأَلَ، ثُمَّ يَرْجِعَ.

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٦٦٣٤) (صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: ٤١٠٧، (تحفة الأشراف: ١٦٧٤١) (صحيح)
(3): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤١٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٥١٨) (صحيح)

عمرو د اوزاعي نه په دې قصه کښې نقل کړي دي چه نبی ﷺ ته ووئیلې شول چه اې دالله رسوله اوس خوبه دولړي نه مرشي نونبی ﷺ ورته په جمعه کښې دوه ځله دراتلواجازت ورکړو نوراتلويه دخوراک غوښتلو دپاره اوبيابه واپس تلو.

والحديث اخرجه النسائي واخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه من حديث زينب بنت ام سلمة عن امها ام سلمة رضي الله عنها واخرجه ابوداؤد كذلك في كتاب الادب، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ}

### د الله تعالی ددې قول (وقل للمؤمنات يغضضن من ابصارهن) تفسير

دا د جنس حجاب د سلسلې دریم آیت کریمه دې لکه چه په تیر شوی باب کښې د علامه کرمانی نه تیر شوې دی چه هغه درې آیتونه دی، ۱: ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ او دويم ۲: ﴿ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ او دريم دا دې چه په ترجمة الباب کښې ذکر دي.

[٤١١١]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ "وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ سورة النور آية ٣١ الْآيَةَ، فَنُسِخَ وَاسْتُثْنِيَ مِنْ ذَلِكَ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا سورة النور آية ٦٠ الْآيَةَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه دالله تعالی ددې قول تفسير: «وقل للمؤمنات يغضضن من أبصارهن» حکم منسوخ شوي دي اوددې نه هغه زنانه مستثنی شوي دي څوک چه په کورونو کښې ناستې وي اودنکاح خواهشمندې نه وي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ) الْآيَةَ فَنُسِخَ وَاسْتُثْنِيَ مِنْ ذَلِكَ (وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا) الْآيَةَ ﴾

يعنی د آيت د حجاب نه دا زنانه مستثنی دی چه بوډۍ کيدو د وجې نه د حيض او د ولادت په سلسله باندې تيرې شوې دی، او په کومو کښې چه د نکاح طمع باقی نه ده، نو د هغوی په حق کښې هيڅ باک نشته چه هغوی دپاسه جامې لکه هغه څادر کوم چه په خمار دپاسه وی د پردې دپاره هغه په سر نه کړی په داسې طريقه چه مقصد ئې پکښې اظهار د زينت نه وی.

[٤١١٢]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَبْهَانُ مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ مَيْمُونَةُ، فَأَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَذَلِكَ بَعْدَ أَنْ أُمِرْنَا بِالْحِجَابِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: احْتَجِبَا مِنْهُ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَيْسَ أَعْمَى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا؟، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ؟"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا لِأَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً أَلَا تَرَى إِلَى اعْتِدَادِ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ، قَدْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ: اعْتَدِّي عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمَى تَضَعِينَ ثِيَابَكِ عِنْدَهُ.

د ام سلمة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه زه دنبی ﷺ سره موجوده وم او ميمونه رضي الله عنها هم ورسره موجوده وه او په دې وخت کښې عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه راغې اودادهغه وخت واقعه ده کله چه دپردې متعلق آيت نازل شوې وونبی ﷺ اوفرمائيل تاسودواړه ددنه پرده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٦) (حسن الإسناد)
[2]: سنن الترمذي/الأدب ٢٩ (٢٧٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٦) (ضعيف)

وکړئ مونږ عرض اوکړواي دالله رسوله دې خو نابينادې نه خومونږ ليدلې شي اونه مونږه پيژندلې شي نبی ﷺ اوفرمائيل ايا تاسوهم نابينايي آيا تاسودې نه وينئ؟

﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كُنْتُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعِنْدَهُ مَيْمُونَةُ فَأَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَذَلِكَ بَعْدَ أَنْ أُمِرْنَا بِالْحِجَابِ الخ ﴾

ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه يوه ورځ زه او ميمونه رضی الله عنها دواړه رسول الله ﷺ سره وو، دا د نزول حجاب نه پس واقعه ده، نو عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته راغلو، نو حضور ﷺ مونږ ته اوفرمائيل چه د دې سړی نه پرده اوکړئ. مونږ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ آيا دا ړوند نه دې؟ نه مونږ ليدلې شی نه مو پيژندلې شی نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ ﴾ عمياوان تثنيه ده د عمياء، يعنی آيا تاسو هم نابينا يئ، آيا تاسو نه شئ ليدلې هغه لره؟

د دې حديث نه معلومه شوه چه د زنانه سړی ته کتل جائز نه دی، د امام شافعی رحمه الله اصل قول هم دا دې عند النووی....... او د جمهور علماء کرامو او د ائمه ثلاثه په نزد جائز دی، د هغوی دليل د حراب الحبشه واله حديث عائشه رضی الله عنها دې او د فاطمه بنت قيس کوم چه په کتاب الطلاق کښ تير شوې دې. ﴿ فانه رجل اعمی تضعين عنده ثيابک ﴾ د جمهورو په نزد حديث الباب په ورع باندې حمل دې، او کوم حضرت چه د تحريم قائل دی هغوی د حديث عائشه رضی الله عنها تاويل داسې کوی چه هغه د قبل الحجاب واقعه ده، او بعضو داسې وئيلې دی چه عائشه رضی الله عنها هغه وخت صغير السن وه. خو علامه سيوطی رحمه الله فرمائی چه د قدوم حبشه واقعه په ۷ هجرئ کښ ده او د عائشې رضی الله عنها عمر هغه وخت شپاړس کاله وو، او هغه واقعه د نزول حجاب نه روسته ده، لهذا دا دواړه تاويلونه صحيح نه دی. (من المنهل وهامشه) او د ابوداؤد په بعض نسخو کښ دی د حديث الباب متعلق چه دا د ازواج مطهرات سره خاص دې، او په دليل د خصوص کښ هغوی د فاطمه بنت قيس روايت پيش کړې دې، خو په دې باندې به اشکال وی د حراب حبشه د حديث نه، کذافی هامش المنهل، حديث د حراب حبشه په بخاری او مسلم کښ دې، په سنن ابوداؤد کښ د حراب حبشه سره متعلق دومره روايت مونډلې شوې دې په کتاب الادب باب فی الغناء عن انس رضی الله عنه قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْمَدِينَةَ لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ لِقُدُومِهِ فَرَحًا بِذَلِكَ لَعِبُوا بِحِرَابِهِمْ.

## نظر الرجل الی المراءة وعکسه کښ مذاهب ائمه :

نظر الرجل الی المراءة او نظر المراءة الی الرجل د دې تفصيل او د مذاهب ائمه تحقيق په در منضود کتاب الحج کښ تير شوې دې. ﴿ وحاصله ان نظر الرجل الی المراءة الی الوجه والکفين يجوز عند الحنفية والمالکية بشرط عدم الشهوة وعدم اللذة، ولا يجوز عند احمد وعن الشافعية روايتان رجح النووی عدم الجواز والرافعی الجواز اما عکسه فيجوز عند الائمة الثلاثة (الحنفية والمالکية والحنابلة) ورواية عن الشافعية والرواية الثانية انه لا يجوز واختارها النووی ﴾ والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی، حسن صحيح، قاله المنذری.

[۴۱۱۳] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمَيْمُونِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ، فَلَا يَنْظُرْ إِلَى عَوْرَتِهَا".

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی کله چه یوکس ستاسو خپله وینځه خپل یوغلام ته په نکاح ورکړي نودهغي عورت ته دي نه ګوري.

[۴۱۱۴] (۲) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنِي دَاوُدُ بْنُ سَوَّارٍ الْمُزَنِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ خَادِمَهُ عَبْدَهُ أَوْ أَجِيرَهُ، فَلَا يَنْظُرْ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَصَوَابُهُ سَوَّارُ بْنُ دَاوُدَ الْمُزَنِيُّ الصَّيْرَفِيُّ وَهِمَ فِيهِ وَكِيعٌ.

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه رسول الله فرمائیلي دي کله چه یوکس ستاسو خپله وینځه خپل یوخادم ته یا مزدور ته په نکاح ورکړي نو دنوم نه ښکته ترزنګنونو پورې دي ورته نه ګوري ، امام ابوداؤد فرمائی صحیح نوم سوار بن داود مزني الصیرفي دې او وکیع په دې کښې وهم کړې دې.

﴿إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ فَلَا يَنْظُرْ إِلَى عَوْرَتِهَا﴾ د حدیث مضمون واضح دې چه کله مولی د خپلې وینځې نکاح د بل چا سره اوکړی نو دغه وینځه د هغه په حق کښې پردئ شوه لهذا اوس به دهغې د ستر طرف ته کتل د هغه دپاره ناجائز وی، دا حدیث مخکښې په کتاب الصلوة باب متی یومر الغلام بالصلوة کښې تیر شوي دي.

## بَابٌ فِي الِاخْتِمَارِ

### باب د لوپټې په سرولو بیان

[۴۱۱۵] (۳) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ وَهْبٍ مَوْلَى أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ: "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَهِيَ تَخْتَمِرُ، فَقَالَ: لَيَّةً لَا لَيَّتَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: مَعْنَى قَوْلِهِ لَيَّةً لَا لَيَّتَيْنِ يَقُولُ: لَا تَعْتَمَّ مِثْلَ الرَّجُلِ لَا تُكَرِّرْهُ طَاقًا أَوْ طَاقَيْنِ.

دام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ زما کورته راغې اومالوپټه پسرکوله نوونې فرمائیل چه لوپټه یوځل راتاوکړه دوه ځله ئې مه تاوهه ، امام ابوداؤد فرمائی دلیتون معنی داده چه دسړي په شان پټکې مه جوړه اوبیابیا ئې مه راتاوهه.

﴿عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– دَخَلَ عَلَيْهَا وَهِيَ تَخْتَمِرُ فَقَالَ « لَيَّةً لاَ لَيَّتَيْنِ »﴾

**شرح الحدیث:**

ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ ماته تشریف راوړلو او ما په ځان باندې لوپټه اچوله نو هغوی دا خبرداري راکړو چه د اچولو په وخت دې ته یو ول ورکوه نه دوه.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷٤۲) (حسن)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۱۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۷/۲) (حسن)

(۳): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۳/٦، ۲۹٤، ۲۹٦، ۲۹۷، ۳۰۷) (ضعيف)

ددې نه دا معلومه شوه چه لوپټه هسې په سر باندې نه دی کیخودل پکار بلکه هغې لره په سر باندې کیخودلو سره یو ول ورکول پکار دی چه هغه د سر نه بار بار نه پریوځی، خو دوه ولونه نه دی ورکول پکار چه د عمامه مشابهت رانشی ، مصنف رحمه الله د دې هم دا حکمت بیان کړې دې، ﴿ يقول لا تعتم مثل الرجل ﴾

## بَابٌ فِي لُبْسِ الْقَبَاطِيِّ لِلنِّسَاءِ

### باب: د زنانو دپاره د نرو جامو د اغوستلو د مما نعت بیان

[٤١١٦]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ مُوسَى بْنِ جُبَيْرٍ: أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ دِحْيَةَ بْنِ خَلِيفَةَ الْكَلْبِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبَاطِيَّ فَأَعْطَانِي مِنْهَا قُبْطِيَّةً، فَقَالَ: "اصْدَعْهَا صَدْعَيْنِ، فَاقْطَعْ أَحَدَهُمَا قَمِيصًا وَأَعْطِ الْآخَرَ امْرَأَتَكَ تَخْتَمِرُ بِهِ، فَلَمَّا أَدْبَرَ، قَالَ: وَأْمُرِ امْرَأَتَكَ أَنْ تَجْعَلَ تَحْتَهُ ثَوْبًا لَا يَصِفُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، فَقَالَ: عَبَّاسُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ.

ددحیه کلبی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام ته مصري جامې راوړل شوي اودهغه نه ئې یوه جامه ماته هم راکړه اوراته ئې اوفرمائیل دا دوه توتي کړه دیوي نه دځان دپاره قمیص جوړ کړه اوبله توته خپلې ښځې ته ورکړه چه لوپټه ورنه جوړه کړي راوی وائی کله چه دحیه شاه کړه او روان شونبی علیه السلام اوفرمائیل چه خپلې ښځې ته دي اووایه چه ددې لوپټې نه لاندې یوه بله کپړه هم پسروي ددې دپاره چه بدن ئې نه ښکاري یعنی چه ددې جسم بربند ښکاره نشي، ابوداؤد فرمائی دا روایت یحي بن ایوب بیان کړې دې اودعبیدالله بن عباس په ځائې باندې عباس بن عبیدالله بن عباس بیان کړې دې۔

﴿ عَنْ دِحْيَةَ بْنِ خَلِيفَةَ الْكَلْبِيِّ أَنَّهُ قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِقَبَاطِيَّ فَأَعْطَانِي مِنْهَا قُبْطِيَّةً فَقَالَ « اصْدَعْهَا صَدْعَيْنِ الخ ﴾

قباطی د قبطیة جمع ده د نرو جامو یو قسم دې چه د کتان وې، دا نسبت دې قبط طرف ته یعنی اهل مصر قوم فرعون... ومنهم مارية القبطية ام ابراهيم رضی الله عنها.....

سیدنا دحیه بن خلیفه رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ ته قباطی کپړې راغلې نو په هغې کښ یوه رسول الله ﷺ ماته راکړه او وې فرمائیل چه دا دوه ټکړې کړه د یوې نه ځانله قمیص جوړ کړه او دویمه ټکړه خپلې ښځې ته ورکړه د لوپټې دپاره، او دا ئې هم اوفرمائیل چه هغې ته داسې اوایه چه دې سره لاندې یو کپړه بله هم اولګوی چه د سر ویښته ئې ښکاره نه شی، ځکه چه دا کپړه نرئ وه نو په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې نه لاندې د یو بل استر د لګولو حکم اوفرمائیلو.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٣٨) (ضعيف)

# باب في قدر الذيل

## باب د ښځو د لمن د مقدار بيان

[۴۱۱۷]( )حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ: أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ ذَكَرَ الْإِزَارَ: "فَالْمَرْأَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: تُرْخِي شِبْرًا، قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: إِذًا يَنْكَشِفُ عَنْهَا، قَالَ: فَذِرَاعًا لَا تَزِيدُ عَلَيْهِ".

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائی کله چه دنبی کريم ﷺ په وړاندې دلنګ په باره کښې ذکر اوشونو ماد زنانوودننګ ذکر وکړو اوعرض مې وکړوچه اې دالله رسوله ښځې به څنګه کوي؟(يعنی که چرې لنګ زوړند نکړي نوبيا خود ستر انديښنه ده)نبی عليه السلام اوفرمائيل ښځې دي خپل لنګونه ديوبالښت په مقدار اوږدوی ام سله عرض وکړوچه اوس هم ستردکولاويدو انديښنه باقی ده نبی عليه السلام اوفرمائيل بيانې ديولاس په مقدار اوږده کړئ اوددې نه ئې مه زياتوئ.

### شرح الحديث:

**قوله:** ﴿ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حِينَ ذَكَرَ الْإِزَارَ الخ﴾ ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ چه کله د سړو په حق کښې مقدار د ازار بيان کړو نو په دې باندې ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه زنانه دې خپل ازار د کوم ځائې پورې زوړندوی؟ نو هغوی اوفرمائيل يو لیشت ....... يعنی کوم مقدار چه د سړو په حق کښې بيان کړې شوې دې د زنانو دپاره په هغې باندې د يو ليشت د زيات اجازت دې، ام سلمه رضي الله عنها فرمائی ما عرض اوکړو چه په دې صورت کښې خو به د هغې خپې ښکاره شي. يعنی د تلو په وخت، نو بيا دې يو ذراع زيات کړی، د دې نه زياتی نه.

حافظ فرمائی چه د مقدار د ازار په باره کښې د سړو دوه حالتونه دی يو حالت د جواز او يو حالت د استحباب، حالت د استحباب الی نصف الساق دې او حالت د جواز تر د کعبينو پورې دې، هم دغه شان د زنانو په حق کښې هم دوه حالتونه دی يو د استحباب، او هغه مقدار د شبر زيادت دې علی ما جوز للرجال..... يعنی د سړو په حالت جواز باندې، او حال جواز مقدار د ذراع زيادت په علی ما جوز للرجال [۲] او د حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې کومه چه په الکوکب الدری کښې ده په هغې کښې هم د زنانه دوه حالتونه ذکر شوې دی يو د مقدار شبر زيادت او يو د مقدار ذراع زيادت، خو حضرت دا زيادت په مقدار د جواز باندې نه دې محمول کړې بلکه د سړو په حالت استحباب باندې ئې دا زيادت مراد کړې دې، يعنی په نصف ساق باندې د يو ليشت زيادت د زنانو په حق کښې مستحب او د يو زراع زيادت په

[۱] ): سنن النسائي/الزينة من المجتبى ۵۱ (۵۳۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۸۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ۹ (۱۷۳۱)، سنن ابن ماجه/اللباس ۱۳ (۳۵۸۰)، موطا امام مالك/اللباس ۶ (۱۳)، مسند احمد (۲۹۳/۶، ۲۹۶، ۳۰۹، ۳۱۵)، سنن الدارمي/الاستئذان ۱۶ (۲۶۸۶) (صحيح)

[۲] ) الحاصل د زنانو په حق کښې د مقدار شبر زيادت په کعبين باندې دا حال د استحباب دې او د مقدار زراع زيادت علی الکعبين دا حال د جواز دې ۱۲)

نصف ساق باندې د هغوی په حق کښې جائز دي، په حديث کښې يو مسئله بله ده چه د زنانو خپې په حد د عورت کښې داخل دي يا نه.؟ د شوافعو او حنابله په نزد د ظهور قدمين په مانځه کښې ستر واجب دې، د احنافو او مالکيانو په نزد نه دې، دا مسئله په تفصيل سره په ثياب الصلوة کښې تيره شوې ده. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[۴۱۱۸](1) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ إِسْحَاق، وَأَيُّوبُ بْنُ مُوسَى، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ صَفِيَّةَ.

د ام سلمه رضي الله عنها نه دتيرشوي روايت په شان روايت منقول دې. امام ابوداؤد فرمائي: دا روايت ابن اسحق او يعقوب په واسطه دنافع سره د صفيه رضي الله عنها نه بيان کړې دې.

[۴۱۱۹](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنِي زَيْدٌ الْعَمِّيُّ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ فِي الذَّيْلِ شِبْرًا ثُمَّ اسْتَزَدْنَهُ فَزَادَهُنَّ شِبْرًا فَكُنَّ يُرْسِلْنَ إِلَيْنَا فَنَذْرَعُ لَهُنَّ ذِرَاعًا".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم دازواج مطهرات دپاره د لنګونو داوږدولو ديوبالخت په مقدار اجازت ورکړې دې هغوی لنګونه اوږدول غوښتل نوبيا نبی عليه السلام ددوه بالختوبه مقدار اجازت ورکړو ازواج مطهرات به مونږ ته خپل لباس راليږلو او مونږه به په خپل لاس ناپ کولو.

## بَابٌ فِي أُهُبِ الْمَيْتَةِ

### د مردار څاروی د څرمنې بيان

جلد ميتة، د ميتة په شان نجس دې. اوس دا چه د دباغت نه پاکيږي او که نه؟

### د جلد ميتة په دباغت سره پاکيدو کښې مذاهب ائمه:

مسئله مختلف فيه ده، په الابواب والتراجم کښې شيخ ليکي: د بخاری ترجمه ﴿ باب جلود الميتة قبل ان تدبغ ﴾ د لاندې، بسط الکلام علی حديث الباب والابحاث المتعلقة به فی الاوجز، وذکر فيه عن النووی اختلاف العلماء فيه علی سبعة اقوال. کما فی هامش اللامع.... د دې نه پس د ائمه اربعه مذاهب په هغې کښې دا ليکلې دی: د امام شافعی رحمه الله په نزد د کلب او خنزير نه علاوه ټول جلود ميتة په دباغت سره پاکيږي. بله دا چه ظاهر جلد او باطن جلد دواړه پاکيږي. او د امام احمد رحمه الله په نزد اشهر الروايتين او هم دا يو روايت د امام مالک رحمه الله نه دې چه هيڅ يو جلد هم نه پاکيږي په دباغت سره، او د احنافو په نزد ټول جلود پاکيږي سوا د خنزير نه (او د انسان نه) او د امام مالک رحمه الله مشهور مذهب دا دې چه ټولې څرمنې پاکيږي خو صرف د هغې ظاهر پاکيږي نه باطن. لهذا صرف په يابساتو کښې هغه استعمال

---

(1): سنن النسائي/الزينة من المجتبي ٥١ (٥٣٤١)، سنن ابن ماجه/اللباس ١٣ (٣٥٨٠)، سنن النسائي/اللباس ١٣ (٣٥٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٩، ١٨٢٨٢)، وانظر ما قبله (صحيح)

(2): سنن ابن ماجه/ اللباس ١٣ (٣٥٨١)، (تحفة الأشراف: ٦٦٦١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ٩ (١٧٣١)، مسند احمد (١٨/٢، ٩٠) (صحيح)

کیدې شی نه په مائعاتو کښې. ویصلی علیه لا فیه.. یعنی په جلد مدبوغ باندې مونځ کول جائز دی نه په هغې کښې یعنی په هغې کښې اوبه اخستلو سره اودس کول جائز نه دی اهـ. دا څلور مذاهب شو د څلورو امامانو او درې مذاهب په دې کښې نور دی، د زهری په نزد جلد میتة پاک دې بغیر د دباغت نه هم لکه چه وړاندې خپله په متن کښې راځی، او د اهل ظواهر په نزد ټولې څرمنې پاکیږی په دباغت سره بغیر د استثناء نه تر دې چه خنزیر کما فی هامش البذل، اوس یو بل مذهب باقی پاتې شو او هغه د امام اوزاعی او د اسحق بن راهویه وغیره دې چه د ماکول اللحم جلد پاکیږی او د غیر ماکول اللحم نه، دا اووه واړه مذاهب امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې ذکر کړې دی.

**حقیقت د دباغت او په هغې کښې اختلاف د امامانو:**

بیا ځان پوهول پکار دی چه په حقیقت د دباغت کښې اختلاف دې چه د هغې تفصیل په اوجز ۴/۲۰۰ کتاب الصید کښې دې: ففیه عن ((التعلیق الممجد)) الدباغ بکسر الدال المهملة وهو ازالة الرائحة الکریهة والرطوبات النجسة باستعمال الادویة وغیرها، وروی محمد عن ابی حنیفة فی کتاب الاثار "کل شئ یمنع الجلد من الفساد فهو دباغ، وفی الروض المربع (فی مذهب احمد) ولا یحصل بالتشمیس ولا تتریب اهـ وقال الموفق: ویفتقر ما یدبغ به الی ان یکون منشفا للرطوبة، منقیا للخبث کالشب والقرظ، وقال النووی یجوز الدباغ بکل شئ ینشف فضلات الجلد ویطیبه ویمنع من ورود الفساد علیه من الادویة الطاهرة، ولا یحصل بالتشمیس عندنا، وقال اصحاب ابی حنیفة یحصل، الی اخر ما ذکر.... وفی الهدایة ثم ما یمنع النتن والفساد فهو دباغ وان کان تشمیسا او تتریبا، لان المقصود یحصل به فلا معنی لاشتراط غیره، وفی هامشه: الدباغة اعم من ان تکون حقیقته کالقرظ [1] ونحوه او حکمیة کالتتریب والتشمیس والالقاء فی الریح، فان کانت بالاول لا یعود نجسا ابدا، وان کانت بالثانیة ثم اصابه الماء ففیه روایتان عن الامام والاظهر انه یعود قیاسا، وعندهما لا یعود استحسانا، وهو الصحیح،..... پس حاصل دا چه د جمهور په نزد دباغت حقیقیه معتبر دې، دباغت حکمیه معتبر نه دې. او د احنافو په نزد معتبر دې خو په دې کښې اختلاف دې زمونږ په نزد د حکمیه په صورت کښې د لوندیدلو نه پس نجاست عود کوی که نه، والصحیح انه لا یعود، وفی الکوکب: استثنی منه الانسان والخنزیر، لکرامة الاول، ونجاسته الثانی مع ان الدباغة غیر ممکنة فیهما للاتصال الذی بین الجلد واللحم فلا یمکن سلخه بحیث ینفصل اللحم باسره من الجلد، ولا یمکن الدبغ مالم یفرز الجلد عن اجزاء اللحم.... اهـ

[۴۱۲۰] [2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَوَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ مُسَدَّدٌ، وَوَهْبٌ، عَنْ مَيْمُونَةَ، قَالَتْ: "أُهْدِيَ

---

[1] وهو ورق السلم د کیکر په شان یو اونه وی.

[2]: صحیح البخاري/الزکاة ٦١ (١٤٩٢)، والبیوع ١٠١ (٢٢٢١)، صحیح مسلم/الحیض ٢٧ (٣٦٤، ٣٦٥)، سنن النسائي/الفرع والعتیرة ٣ (٤٢٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٦، ٥٨٣٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ٧ (١٧٢٧)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٥ (٣٦١٠)، موطا امام مالك/الصيد ٦ (١٦)، مسند احمد (١/٢٦١، ٣٢٧، ٣٢٩، ٣٦٥)، سنن الدارمي/الأضاحي ٢٠ (٢٠٣١) (صحیح)

لِمَوْلَاةٍ لَنَا شَاةٌ مِنَ الصَّدَقَةِ، فَمَاتَتْ فَمَرَّ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَلَا دَبَغْتُمْ إِهَابَهَا وَاسْتَنْفَعْتُمْ بِهِ، قَالُوا: يَارَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا مَيْتَةٌ، قَالَ: إِنَّمَا حُرِّمَ أَكْلُهَا".

دزهري په روايت كښې دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې اودمسدد او وهب په روايت كښې دميمونه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه زمونږ يوازاد كړې شوي غلام ته دصدقې يوه چيلۍ ملاو شوه او هغه مرداره شوه نبي عليه السلام هلته تشريف يوړو او وئې فرمائيل تاسو ددغه چيلۍ څرمن درنګ كولوپه ذريعه ولې نه پاكوله چه بيا مواستعمال كړې وې؟ هغوی عرض اوكړو اې دالله رسوله هغه خو مرداره شوې وه نبي عليه السلام اوفرمائيل ددې خوصرف خوړل حرام دي (يعنى ددې څرمن استعمالول خو حرام نه دي).

﴿ عَنْ مَيْمُونَةَ قَالَتْ أُهْدِيَ لِمَوْلَاةٍ لَنَا شَاةٌ مِنَ الصَّدَقَةِ الخ ﴾

سيده ميمونه رضي الله عنها فرمائي چه زمونږ يوې وينځې ته د صدقې يو بيزه راغله هغه مړه شوه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه طرف باندې تير شو نو وې فرمائيل ﴿ أَلَا دَبَغْتُمْ إِهَابَهَا فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهِ... قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا مَيْتَةٌ. قَالَ: إِنَّمَا حُرِّمَ أَكْلُهَا ﴾

[٤١٢١]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الْحَدِيثِ لَمْ يَذْكُرْ مَيْمُونَةَ قَالَ: فَقَالَ: أَلَا انْتَفَعْتُمْ بِإِهَابِهَا، ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَاهُ لَمْ يَذْكُرِ الدِّبَاغَ.

د ميمونه رضي الله عنها نه دتيرشوی روايت په شان روايت منقول دې او په دې روايت كښې داسې دی چه ناسوددې دڅرمنې نه نفع ولې وانه خسته او په دې روايت كښې درنګ كولو ذكرنشته.

[٤١٢٢]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ: قَالَ مَعْمَرٌ وَكَانَ الزُّهْرِيُّ "يُنْكِرُ الدِّبَاغَ وَيَقُولُ: يُسْتَمْتَعُ بِهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرِ الْأَوْزَاعِيُّ، وَيُونُسُ، وَعُقَيْلٌ فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ الدِّبَاغَ، وَذَكَرَهُ الزُّبَيْدِيُّ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَحَفْصُ بْنُ الْوَلِيدِ ذَكَرُوا الدِّبَاغَ.

د معمر بيان دې فرمائي چه ابن شهاب زهري به باغت ښه نه ګڼړلو او وئيل به ئې چه په هرحال كښې ددينه فائده اخستلې شي ، امام ابوداؤد فرمائي چه اوزاعي، يونس او عقيل دزهري په روايت كښې د دباغت ذكرنه دې كړې او زبيدي او سعيد بن عبدالعزيز او حفص بن وليد پخپل روايت كښې د دباغت ذكر كړې دې.

د دې نه پس مصنف رحمه الله دا حديث په يو بل طريق باندې ذكر كړې چه په هغې كښ د دباغت ذكر نشته.

﴿ قَالَ مَعْمَرٌ وَكَانَ الزُّهْرِيُّ يُنْكِرُ الدِّبَاغَ وَيَقُولُ يُسْتَمْتَعُ بِهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ ﴾ د امام زهري رحمه الله مذهب هم دا دې كوم چه مخكښ هم تير شوې دې چه د هغوی په نزد جلد ميتة بغير د دباغت نه هم پاک دې. والحديث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٩) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:) (صحيح الإسناد)

[٤١٢٣] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ وَعْلَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام نه مې اوريدلي دي چه فرمائيل ئې کله چه څرمن رنګ کړې شوه نو په يقيني طور سره پاکه شوه.

﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِذَا دُبِغَ الإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ »﴾ والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري

[٤١٢٤] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَنْ يُسْتَمْتَعَ بِجُلُودِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ".

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام حکم اوکړو دمردار شوي ځناور دڅرمني نه په فائدي اخستلو باندې پس درنګ کولو نه.

[٤١٢٥] ([3]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ جَوْنِ بْنِ قَتَادَةَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ أَتَى عَلَى بَيْتٍ فَإِذَا قِرْبَةٌ مُعَلَّقَةٌ فَسَأَلَ الْمَاءَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا مَيْتَةٌ، فَقَالَ: دِبَاغُهَا طُهُورُهَا".

دسلمه بن محبق نه روايت دې فرمائي چه دغزوه تبوک په موقعه باندې نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو کورته ورغې هلته يو مشک زوړند رونبي عليه السلام دهغې نه اوبه وغوښتې خلقو عرض اوکړو اې دالله رسوله دا مشق خودمردار شوي ځناور دڅرمني نه جوړ دې نبي عليه السلام اوفرمائيل ددې څرمن په رنګ کولو سره پاکه شوې ده.

[٤١٢٦] ([4]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ فَرْقَدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكِ بْنِ حُذَافَةَ حَدَّثَهُ، عَنْ أُمِّهِ الْعَالِيَةِ بِنْتِ سُبَيْعٍ، أَنَّهَا قَالَتْ: كَانَ لِي غَنَمٌ بِأُحُدٍ فَوَقَعَ فِيهَا الْمَوْتُ، فَدَخَلْتُ عَلَى مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهَا، فَقَالَتْ لِي مَيْمُونَةُ: لَوْ أَخَذْتِ جُلُودَهَا فَانْتَفَعْتِ بِهَا، فَقَالَتْ: أَوَيَحِلُّ ذَلِكَ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، مَرَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِجَالٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَجُرُّونَ شَاةً لَهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا، قَالُوا: إِنَّهَا مَيْتَةٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ".

د عاليه بنت سبيع رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه داحد په غر کښې زما ګران وو هغه مړه

---

[1]: صحيح مسلم/الحيض ٢٧ (٣٦٦)، سنن الترمذي/اللباس ٧ (١٧٢٨)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٣ (٤٢٤٦)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٥ (٣٦٠٩)، (تحفة الأشراف: ٥٨٢٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيد ٦ (١٧)، مسند احمد (١/٢١٩، ٢٣٧، ٢٧٩، ٢٨٠، ٣٤٣)، سنن الدارمي/الأضاحي ٢٠ (٢٠٢٩) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٥ (٤٢٥٧)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٥ (٣٦١٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٩١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصيد ٦ (١٨)، مسند احمد (٦/٧٣، ١٠٤، ١٤٨، ١٥٣)، دي /الأضاحي ٢٠ (٢٠٣٠) (صحيح لغيره)

ملاحظه: صحيح موارد الظمآن: ١٢٢، غاية المرام: ٢٦)

[3]: سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٣ (٤٢٤٨)، (تحفة الأشراف: ٤٥٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٧٦، ٥/٦، ٧) (صحيح)

[4]: سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٣ (٤٢٥١، ٤٢٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٣٤) (صحيح)

شول نوزه ام المومنين ميمونه رضي الله عنها ته راغلم او ددې خبرې ذکر مې ورته وکړو هغوی اووئيل کاش چه تا ددوی څرمني راوړي وې نوفائده به موترې اخستلې وې ماعرض اوکړو ايا دمردار شوي څناور دڅرمني نه فائده اخستل جائزدي؟ هغې اووئيل هو، داصحيح خبره ده يوځل دنبي عليه السلام په وړاندې ديوی مرداري شوي چيلۍ ذکر وشو چه هغوی دمرڅر په شان رانبکله نبي عليه السلام اوفرمائيل کاش چه تاسودينه څرمن ويستلې وې خلقو عرض اوکړو اې دالله رسوله هغه چيلۍ خومرداره شوې وه نبي عليه السلام اوفرمائيل په دې کښې څه خبره ده څرمن خو په اوبو او قرظ سره پاکيږي (قرظ ديوقسم وني پانړي دي په کوي چه څرمن پاکيږي).

﴿مَرَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- رِجَالٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَجُرُّونَ شَاةً لَهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا ». قَالُوا إِنَّهَا مَيْتَةٌ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ »﴾ اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## بَابُ مَنْ رَوَى أَنْ لَا يُنْتَفَعَ بِإِهَابِ الْمَيْتَةِ

### باب دهغه چا د دليل بيان چه د مرداري د څرمن نه فائده نه شي اخستلې

[۴۱۲۷] (۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ، قَالَ: قُرِئَ عَلَيْنَا كِتَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَرْضِ جُهَيْنَةَ وَأَنَا غُلَامٌ شَابٌّ "أَنْ لَا تَسْتَمْتِعُوا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ".

دعبدالله بن عکيم رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ ته دجهينه په زمکه کښې دنبي عليه السلام خط ولوستلې شو اوزه په دغه وخت کښې ځوان وم، په دې خط کښې ليکلې شوي وو چه دمردار شوي څناور دڅرمن نه به فائده نه اخلئ، نه به ددې دڅرمني نه فائده اخلئ او نه به ددې د پټو (پي) نه.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ قَالَ قُرِئَ عَلَيْنَا كِتَابُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم « أَنْ لاَ تَسْتَمْتِعُوا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلاَ عَصَبٍ » ﴾

عبدالله بن عکيم رضي الله عنه فرمائي چه زمونږ مخې ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم ليکل واورولې شو، په ارض جهينه کښ په داسې حال کښ چه زه ځوان هلک اوم چه په هغې کښ دا وو چه د اهاب ميتة نه دې فائده اوچته نه کړې شي او نه د هغې د هډوکو نه، د دې نه په روستو طريق کښ دی: ﴿ کتب الى جهينة قبل موته بشهر الخ ﴾

[۴۱۲۸] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ، حَدَّثَنَا الثَّقَفِيُّ، عَنْ خَالِدٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ أَنَّهُ انْطَلَقَ هُوَ وَنَاسٌ مَعَهُ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ رَجُلٍ مِنْ جُهَيْنَةَ، قَالَ الْحَكَمُ: فَدَخَلُوا وَقَعَدْتُ عَلَى الْبَابِ، فَخَرَجُوا إِلَيَّ، فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُكَيْمٍ أَخْبَرَهُمْ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى جُهَيْنَةَ قَبْلَ مَوْتِهِ بِشَهْرٍ أَنْ لَا يَنْتَفِعُوا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: فَإِذَا دُبِغَ لَا يُقَالُ لَهُ إِهَابٌ، إِنَّمَا يُسَمَّى شَنًّا وَقِرْبَةً، قَالَ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ يُسَمَّى إِهَابًا مَا لَمْ يُدْبَغْ.

---

(۱): سنن الترمذي/اللباس ۷ (۱۷۲۹)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٤ (٤٢٥٤)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٦ (٣٦١٣)، (تحفة الأشراف: ٦٦٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٠/٤، ٣١١) (صحيح)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٦٤٢) (صحيح)

دحکیم بن عیینه نه روایت دې فرمائی چه زه دیوځو کسانوسره عبدالله بن عکیم ته لاړم ځوک چه دجهینه قبیلې والادې حکم وائی چه زه په دروازه کښې ناست وم اونور کسان دننه ورداخل شول کله چه هغوی بهر راغلل نو ماته ئې اووئیل چه مونږ ته عبدالله بن عکیم بیان اوکړو چه نبی ﷺ دخپل وفات نه یوه میاشت مخکښې جهینه قبیلې خلقوته خط رالیږلې وو چه دمرداري دڅرمن اودپټونه به فائده نه اخلی ، ابوداؤد فرمائی چه نضر بن شمیل وئیلی دی اهاب هغه څرمنې ته وئیلې شي کومه چه درنګ کولونه مخکښې وي خوکله چه رنګ کړې شي نو بیا ورته اهاب نئشي وئیلې بلکه شن یا قربه ورته وئیلې شي.

ابن رسلان فرمائی چه دا حدیث د امام مالک رحمه الله دپاره حجت دې. ان الجلد بعد الدباغ نجس. او دا چه دا حدیث ناسخ دې د هغه احادیثو دپاره په کوم کښې چه د دباغت مطهر کیدل ذکر دی الی اخر ما ذکر....... وقال الترمذی کان احمد بن حنبل یقول به ثم ترکه لما اضطربوا فی اسناده اهـ امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په سند کښې اختلاف او اضطراب ذکر کړې دې، دا حدیث په اصل کښې د امام احمد رحمه الله دلیل دې د هغوی د مشهور قول، امام بیهقی رحمه الله وغیره وائی چه دا حدیث مرسل دې ځکه چه ابن عکیم صحابی نه دې. (بذل بزیادة)

تنبیه : د ﴿ ایما اهاب دبغ فقد طهر ﴾ د لاندې امام ترمذی رحمه الله د نضر بن شمیل په حوالې سره نقل کړی دی چه هغوی داسې وائی : ﴿ الاهاب معناه جلد ماکول اللحم ﴾ اهاب وائی د ماکول اللحم جلد ته، حال دا چه امام ابوداؤد رحمه الله د نضر بن شمیل نه د هغې خلاف دا نقل کړې دی ﴿ یسمی اهابا ما لم یدبغ، فاذا دبغ لا یقال له اهاب، یسمی شنا وقربة ﴾ یعنی اهاب وائی کچه څرمنې ته مخکښې د دباغت نه، او پس د دباغت نه ورته شن او قربه وائی (مشک) په دې وجه ئې په الکوکب الدری کښې هم په دې باندې نقد کړې دې پس په هغې کښې دی: قوله انما یقال اهاب لجلد ما یوکل وهذا لا یصح لغة اهـ لهذا د امام ابوداؤد رحمه الله نقل صحیح دې،

(د حدیث نه جواب)

او د امام ابوداؤد رحمه الله غرض د نضر بن شمیل په قول نقل کولو سره د عبدالله بن عکیم د حدیث جواب ورکول دی د جمهورو د طرف نه چه په هغې کښې دا دی چه د اهاب میتة نه انتفاع جائز نه ده، چه د هغې جواب امام ابوداؤد رحمه الله دا ورکړو.چه جلد میتة ته اهاب قبل الدباغة وئیلې شی لهذا مطلب دا شو چه د جلد میتة نه قبل الدباغت انتفاع جائز نه ده، لهذا د عبدالله بن عکیم د حدیث اوس دوه جوابونه شو یو ضعف او اضطراب او دویم هغه توجیه کومه چه مصنف رحمه الله نقل کړه، والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، وابن ماجه، وقال الترمذی حسن، قاله المنذری.

............

# بَابٌ فِي جُلُودِ النُّمُورِ وَالسِّبَاعِ

## باب د نمورا و د ليوانو د څرمنو بيان

[٤١٢٩] (١) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ أَبِي الْمُعْتَمِرِ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَرْكَبُوا الْخَزَّ وَلَا النِّمَارَ"، قَالَ: وَكَانَ مُعَاوِيَةُ لَا يُتَّهَمُ فِي الْحَدِيثِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَنَا أَبُو سَعِيدٍ: قَالَ لَنَا أَبُو دَاوُدَ: أَبُو الْمُعْتَمِرِ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ طَهْمَانَ كَانَ يَنْزِلُ الْحِيرَةَ.

دمعاوية رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه ني کريم ﷺ فرمائيلی دی سورلي مه کوئ په خالص ريشمي زينونوباندې اونه د نمور درنده ځناور په څرمن باندې. ابن سيرين وئيلی دی چه معاويه دحديث په روايت کښې متهم نه وو.

**قوله:** ﴿لاَ تَرْكَبُوا الْخَزَّ وَلاَ النِّمَارَ﴾ خز يعنی ريښم باندې مه سوريږئ يعنی هغه په کته وغيره باندې ږدلوسره، او نه د زمری په څرمن باندې، د دې شرح په باب الحرير کښې تيره شوې ده.

﴿قَالَ وَكَانَ مُعَاوِيَةُ لاَ يُتَّهَمُ فِي حَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم﴾ يعنی معاويه رضي الله عنه د خلقو په نزد په باب د حديث کښې متهم نه وو. يعنی اګر چه خلقو به په هغه يا د هغه د کور په خلقو باندې نور اعتراضات او تبصرې کولې لکه چه وړاندې دا قسم روايتونه راروان دی خو د ناقدينو هيڅ نقد په هغوی باندې د روايت حديث حوالې سره نه وو. دا مقوله د چا ده؟ حضرت خو د دې نسبت ابن سيرين رحمه الله ته کړې دی کوم چه په سند کښې ذکر دې او د معاويه رضي الله عنه نه حديث الباب روايت کوی. او د دې نه پس حضرت د ابن رسلان رائې دا ليکلې ده چه هغوی د قال ضمير مصنف رحمه الله ته راجع کړې دې او حضرت دا هم ليکلې دی يعنی مع امارته غير متهم فی الحديث.... چه سره د خلافت او بادشاهت په روايت د حديث کښې د ټولو په نزد معتبر وو.

[٤١٣٠] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جِلْدُ نَمِرٍ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه ني کريم ﷺ فرمايلي دي فرښتي دداسې کسانوسره ملګرتيانه کوي دچاسره چه د نمور ځناور څرمن وي.

[٤١٣١] (٣) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ بْنِ سَعِيدٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ بَحِيرٍ، عَنْ خَالِدٍ، قَالَ: وَفَدَ الْمِقْدَامُ بْنُ مَعْدِي كَرِبَ، وَعَمْرُو بْنُ الْأَسْوَدِ، وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي أَسَدٍ مِنْ أَهْلِ قِنَّسْرِينَ إِلَى مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، فَقَالَ مُعَاوِيَةُ لِلْمِقْدَامِ "أَعَلِمْتَ أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ تُوُفِّيَ، فَرَجَّعَ الْمِقْدَامُ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: أَتَرَاهَا مُصِيبَةً؟ قَالَ لَهُ: وَلِمَ لَا أَرَاهَا مُصِيبَةً وَقَدْ وَضَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حِجْرِهِ، فَقَالَ: هَذَا مِنِّي، وَحُسَيْنٌ مِنْ عَلِيٍّ، فَقَالَ الْأَسَدِيُّ: جَمْرَةٌ أَطْفَأَهَا اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، قَالَ: فَقَالَ الْمِقْدَامُ: أَمَّا أَنَا فَلَا أَبْرَحُ الْيَوْمَ حَتَّى أُغَيِّظَكَ وَأُسْمِعَكَ مَا تَكْرَهُ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُعَاوِيَةُ إِنْ أَنَا صَدَقْتُ، فَصَدِّقْنِي وَإِنْ أَنَا كَذَبْتُ، فَكَذِّبْنِي، قَالَ: أَفْعَلُ، قَالَ: فَأَنْشُدُكَ بِاللَّهِ هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ الذَّهَبِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَنْشُدُكَ بِاللَّهِ هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

---

(١): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١١٤٢٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ٤٧ (٣٦٥٦)، مسند احمد (٩٣/٤، ٩٤) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٨٩٨) (حسن)

(٣): سنن النسائي/الفرع والعتيرة ٦ (٤٢٥٩)، (تحفة الأشراف: ١١٤١١، ١١٥٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٢/٤) (صحيح)

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَنْشُدُكَ بِاللهِ هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ جُلُودِ السِّبَاعِ وَالرُّكُوبِ عَلَيْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَوَاللهِ لَقَدْ رَأَيْتُ هَذَا كُلَّهُ فِي بَيْتِكَ يَا مُعَاوِيَةُ، فَقَالَ مُعَاوِيَةُ: قَدْ عَلِمْتُ أَنِّي لَنْ أَنْجُوَ مِنْكَ يَا مِقْدَامُ، قَالَ خَالِدٌ: فَأَمَرَ لَهُ مُعَاوِيَةُ بِمَا لَمْ يَأْمُرْ لِصَاحِبَيْهِ وَفَرَضَ لِابْنِهِ فِي الْمِائَتَيْنِ، فَفَرَّقَهَا الْمِقْدَامُ فِي أَصْحَابِهِ قَالَ: وَلَمْ يُعْطِ الْأَسَدِيُّ أَحَدًا شَيْئًا مِمَّا أَخَذَ فَبَلَغَ ذَلِكَ مُعَاوِيَةَ، فَقَالَ: أَمَّا الْمِقْدَامُ فَرَجُلٌ كَرِيمٌ بَسَطَ يَدَهُ وَأَمَّا الْأَسَدِيُّ فَرَجُلٌ حَسَنُ الْإِمْسَاكِ لِشَيْئِهِ".

دخالد ؓ نه روايت دې فرمائی چه مقدام بن معدي کرب اوعمرو بن الاسود اودبني اسد قبيلې يو کس دقنسرين مقام اوسيدونکې معاويه بن ابی سفيان نه ته په وفد کښې راغلل معاويه مقدام ته اووئيل ايا تاته معلومه ده چه حسن بن علی وفات شوې دې مقدام چه دا خبره واوريده نو انا لله وانا اليه راجعون ئې اووئيل په دې باندې دې کس اووئيل ايا ته دا واقعه مصيبت کنړې؟ مقدام اووئيل زه دا واقعه مصيبت څنګه ونه ګڼړم چه نبی علیه السلام حسن ؓ پخپله غيږ کښې کينولې وو او وئيلې ئې وو چه دا ماشوم زمانه دې اوحصين علی ؓ نه دې، دا خبره چه دبني اسد قبيلې شخص واوريده نو وئې وئيل په الله مې دې قسم وي چه هغه خويوه سکروټه وه کومه چه الله تعالی يخه کړې وه مقدام اووئيل ليکن زه نن ورځ تاسولره دغصه کولونه بغيرنه پريږدم اوتاسوته به داسې خبره اوروم کومه چه به تاسونه خوښوي اوبيا ئې اووئيل اې معاويه که چرې ما رښتيا اووئيل نوته مې ريښتونې وګڼړه اوکه چرې دروغ مې اووئيل نومادروغژن وګڼړه معاويه ؓ اووئيل زه به همداسې کوم، مقدام اووئيل ستادې په الله تعالی قسم وي چه تادنبی علیه السلام نه آوريدلی دی چه دسرو زرو داغوستلونه ئې منع فرمائيلې وه معاويه و اوفرمائيل هو، ما آوريدلی دی، مقدام بيا اووئيل ستادې په الله قسم وي چه نبی علیه السلام دخالص ريښمي کپړې داستعمال نه منع فرمائيلې ده؟ معاويه اووئيل هو، مقدام اووئيل ستادې په الله قسم وي چه نبی علیه السلام د درنده څناورو د څرمنې داغوستلونه او په دې باندې دسوريدونه منع فرمائيلې وه؟ معاويه اووئيل هو، مقدام: وز پر پوين څيزونه ستاپه کور کښې وينم معاويه اوفرمائيل اې مقدام زه په دې پوهيږم چه زه ستادلاس نه مخ نه شم حاصلولې، خالې. وائی چه زيبا و ساده اند - ددومره مال ورکولو حکم وکړو څومره م ايد. بيشترين ملګرودباره کړې وو اودده دځوی دياره بين حصه به دوه سوه کسانوکښې مقرر کړه مقدام هغه ما رو بخونه ملګروباندې تقسيم کړو اودقبيله بنو اسية. واشي دخپل مال نه چاته هيڅ هم ورنسکړل کله چه برون ته ددې خبرې اطلاع ورسيده نوهغه اووئيل مقدام يوسخي سړې دې دچاچه لاسونه پراخه دي اودکومه حده پورې چه داسدې تعلق دې نوهغه خپل مال لره ښه منع کونکې کس دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ خَالِدٍ قَالَ وَفَدَ الْمِقْدَامُ بْنُ مَعْدِيكَرِبَ وَعَمْرُو بْنُ الْأَسْوَدِ وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي أَسَدٍ مِنْ أَهْلِ قِنَّسْرِينَ إِلَى مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ لِلْمِقْدَامِ أَعَلِمْتَ أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ تُوُفِّيَ فَرَجَّعَ الْمِقْدَامُ........ فَقَالَ الْمِقْدَامُ أَمَّا أَنَا فَلاَ أَبْرَحُ الْيَوْمَ حَتَّى أُغِيظَكَ ....الخ ﴾

**مضمون الحديث**:

بحير بن سعد ؓ روايت کوی د خالد بن معدان نه چه يو ځل د معاويه ؓ په خدمت کښې

دا درې کسان يو مقدام بن معديکرب، عمرو بن الاسود او يو بل سړی اسدی د قنسرين د اوسيدونکو نه د وفد په طور حاضر شول. په مجلس کښې معاويه اوفرمائيل. حضرت مقدام ته خطاب کولو سره چه تاسو ته هم معلومه ده چه د حسن بن علی وفات اوشو (توفی ٤٩ هجری) نو په دې باندې مقدام ﴿ انا لله ﴾ اولوستلو نو يو سړی اووې (لعله الرجل الاسدی او غيره) آيا ته دا مصيبت گڼړې؟ مقدام اوفرمائيل زه به دا مصيبت ولې نه گڼړم حال دا چه رسول الله ﷺ په داسې حال کښې چه حسن د هغوی په غيږ مبارک کښې وو فرمائيلې وو ﴿ هذا منی وحسين من علی ﴾ نو په دې باندې اسدی اووې چه وفات شو نو څه چل اوشو يو سکروټه وه چه الله مړه کړه، نو معاويه په دې باندې خاموش وو او د هغوی خاموشی په مقدام باندې بده اولگيده په دې وجه هغوی اوفرمائيل چه نن به زه هم د دې ځائې نه نه ځم تر څو زه تا (معاويه) غصه نه کړم او يو ناخوښه خبره درته اونکړم، او په دې وينا باندې تياريدو سره کيناستلو او معاويه ته ئې اوفرمائيل چه گوره که زه رښتيا وايم نو د هغې تصديق کوه او که غلطه وايم نو تکذيب ئې کوه. (د معاويه خو حلم مشهور دې پس) هغوی اوفرمائيل چه او زه خو به هم داسې کوم، او بيا ئې څو څيزونه چه د هغې نه رسول الله ﷺ منع فرمائيلې ده د هغوی مخې ته بيان کړل چه تاسو د رسول الله ﷺ نه دا اوريدلې دی، هغوی به د هر يو په باره کښې فرمائيل بغير د خفگان نه چه او....... ما دا حديث د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دې. هغه امور دا دی:

د سړو په حق کښې د سرو زرو اچولو نه ممانعت او هم دغه شان د لبس حرير نه، او دريم د لبس جلود سباع [1] او په هغې باندې د رکوب نه، معاويه د ټولو په باره کښې فرمائيل چه او ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی. بيا په آخير کښې مقدام معاويه ته اوفرمائيل چه دا ټول ممنوع څيزونه ما ستا په کورکښې ليدلې دی. ﴿ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ قَدْ عَلِمْتُ أَنِّي لَنْ أَنْجُوَ مِنْكَ يَا مِقْدَامُ ﴾ په دې باندې معاويه اوفرمائيل چه زه خو اول پوهه شوې اوم، چه زه به نن ستا نه نه بچ کيږم، او ستا د تنقيد به ضرور په نخښه کيږم، ﴿ قَالَ خَالِدٌ فَأَمَرَ لَهُ مُعَاوِيَةُ بِمَا لَمْ يَأْمُرْ لِصَاحِبَيْهِ وَفَرَضَ لِابْنِهِ فِي الْمِئَتَيْنِ ﴾ خالد بن معدان فرمائی چه معاويه د مقدام دپاره د دومره لوئې هديه حکم اوفرمائيلو کوم ئې چه د هغوی د دواړو ملگرو دپاره نه وو فرمائيلې، او د دې نه علاوه ئې د هغوی ځوی ته د چا نوم چه يحيی وو، په خپل فوج کښې داخل کړو چه د هغه وظيفه څو سوه ته يا دوه سوه وه (علی اختلاف النسخ ففی نسخة المائتين) وړاندې راوی وائی چه کومه هديه مقدام ته ملاؤ شوې وه هغوی خو هغه ټول هر څه په خپلو ملگرو باندې تقسيم کړل، او دې اسدی سړی چا چه د حسن په باره کښې سخته جمله وئيلې وه هغوی چاته هيڅ هم ورنکړل، دا خبره معاويه ته روسته پته اولگيده نو هغه د مقدام تعريف او مدح اوکړه، ﴿ اما المقدام فرجل کريم بسط يده، يا بسط يده ﴾ چه مقدام ډيرشريف اوسخی دې د هغوی لاس د ورکړې دپاره فراخه دې. ﴿ واما

[1]) وعلة المنع في جلود النمور والسباع اما لان الدبغ لايوثر في الشعر ولا يطهره واما لانه من زي المتكبرين وهذان الوجهان عند الشافعي والوجه عندنا هو الآخير)

الاسدی فرجل حسن الامساک لشیه وفی نسخة لشیئه ﴾ (۱) یعنی اسدی خپل څیز لره ښه بندونکي دي، زمونږ په اردو محاوره کښ غټ بخیل ته ممسک اعظم وائی.

والحدیث اخرجه النسائي مختصرا، قاله المنذري.

[۴۱۳۲](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، وَإِسْمَاعِيلَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَاهُمُ الْمَعْنَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ بْنِ أُسَامَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ".

اسامه نه دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه نبي کریم ﷺ دد درنده ګانو دڅرمنو داستعمال نه منع فرمائیلي ده.

## بَاب فِي الِانْتِعَالِ

### باب د پیزار په خپو کولو بیان

[۴۱۳۳](۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَقَالَ: "أَكْثِرُوا مِنَ النِّعَالِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ رَاكِبًا مَا انْتَعَلَ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره په یوسفرکښې وونبی علیه السلام اوفرمائیل تاسو په کثرت سره پیزارونه اغوندئ په دې وجه چه کله چه پیزار دیوانسان په خپروي نودا داسې ده لکه چه دې همیشه سور رې (یعنی دده خپه دتکلیفونونه محفوظ وي).

﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ قَائِمًا﴾ یعنی پیزار په ناسته باندې په خپو کول پکار دی، په ولاړه باندې په خپو کول نه دی پکار.

[۴۱۳۴](۴) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ "أَنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ".

دانس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام په پیزارکښې دوه تسې لګیدلي وي.

دا نهی د شفقت دپاره ده څکه چه په بعض صورتونو کښ په دې سره د سقوط ویره وی او چه هر کله په ولاړه ولاړه په سهولت سره وانغوستلې شی نو په دې سره د اغوستونکی هیئت خراب شان شی، ففی الکوکب الدری لما فیه من احتمال السقوط ومخالفة التودة، ونکارة الهیئة الظاهرة...

(۱) شیء که په تشدید د یاء سره وی بغیر د همزې نه نو د دې معنی مشوی لیکلې شوې ده یعنی تیار کړې شوې او حاصل کړې شوې څیز.

(۲): سنن الترمذي/اللباس ۳۲ (۱۷۷۱)، سنن النسائي/الفرع والعتيرة ۶ (۴۲۵۸)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷۴/۵، ۷۵) (صحيح)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۹۷۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ۱۸ (۲۰۹۶)، مسند احمد (۳۳۷/۳) (صحيح)

(۴): صحيح البخاري/الخمس ۵ (۳۱۰۷)، اللباس ۴۱ (۵۸۵۷)، سنن الترمذي/اللباس ۳۳ (۱۷۷۳)، الشمائل ۱۰ (۷۱)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ۶۲ (۵۳۶۹)، سنن ابن ماجه/اللباس ۲۷ (۳۶۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۲/۳، ۲۰۳، ۲۴۵، ۲۶۹) (صحيح)

[۴۱۳۵] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَبُو يَحْيَى، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ قَائِمًا".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام په ولاړه دپیزار خپو کولونه منع فرمائیلي ده.
دا حدیث د جابر رضی الله عنه دي او هم دا متن په ترمذی شریف کښ په روایت د ابوهریره رضی الله عنه او یو په روایت د انس بن مالک رضی الله عنه په بیل بیل سند سره روایت کړې شوې دې، په دې دواړو احادیثو باندې امام ترمذی رحمه الله کلام کړې دې ولفظه : وکلا الحدیثین لا یصح عند أهل الحدیث و الحرث بن نبهان لیس عندهم بالحافظ ولا نعرف لحدیث قتادة عن أنس أصلا، د دې نه پس ئې د امام بخاری رحمه الله نه هم داسې نقل کړې دی چه دا دواړه احادیث ثابت نه دی.

[۴۱۳۶] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي النَّعْلِ الْوَاحِدَةِ لِيَنْتَعِلْهُمَا جَمِيعًا، أَوْ لِيَخْلَعْهُمَا جَمِيعًا".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی په تاسو کښې دې هیڅوک په یوبیزار کښې نه ګرځي یابه دواړه پیزارونه په یوځای خپو کوي اویابه دواړه په یوځائې اوباسي.

**قوله:** ﴿ لاَ يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي النَّعْلِ الْوَاحِدَةِ لِيَنْتَعِلْهُمَا جَمِيعًا أَوْ لِيَخْلَعْهُمَا جَمِيعًا ﴾
یعنی څوک دې هم په یو څپلۍ اچولو سره نه ګرځی، یا خو دې په دواړو خپو کښ واچوی یا دې بیا دواړه اوباسی، د دې مصلحت هم د دې په شان دې کوم چه پورته نهی راغلې ده، د وقار خلاف هم ده او په تلو کښ هم مشقت وی ځکه چه په دواړو خپو کښ د لوړوالی او ښکته والی په وجه باندې په تلو کښ تکلیف وی.
امام ترمذی رحمه الله په دې سلسله کښ دوه بابونه قائم کړې دی ﴿ باب ما جاء فی کراهیة المشی فی النعل الواحدة ﴾ د دې نه پس ﴿ ما جاء فی الرخصة فی النعل الواحدة ﴾ اوپه دې دویم باب کښې دحضرت عائشې رضی الله عنها حدیث ذکرکړې دې: (قالت ربما مشی النبی فی نعل واحدة) په کوکب الدری کښ لیکلي دی : قوله فی نعل واحدة : لئلا یحمل النهی علی التحریم اهـ..... امام ترمذی رحمه الله دا حدیث په دوه طریقو سره ذکر کړې دې په یو طریق کښ دا حدیث مرفوع دې او په دویم کښ موقوف په عائشې رضی الله عنها باندې، ﴿ عن عائشة رضی الله عنها انها مشت بنعل واحدة ﴾ وهذا اصح، یعنی صدیقه رضی الله عنها به کله کله یو پیزار اچولو سره هم په کور کښ ګرځیده، امام ترمذی رحمه الله فرمائی : وهذا اصح.... یعنی د دې حدیث موقوف کیدل (د عائشې رضی الله عنها فعل کیدل) زیات صحیح دی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی، قاله المنذری.

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۶۴۹) (صحیح)
(²): صحیح البخاري/اللباس ۴۰ (۵۸۵۵)، صحیح مسلم/اللباس ۱۹ (۲۰۹۷)، سنن الترمذي/اللباس ۳۷ (۱۷۷۴)، سنن ابن ماجه/اللباس ۲۹ (۳۶۱۷)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۰۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/اللباس ۷ (۱۴)، مسند احمد (۲/۲۴۵، ۲۵۳، ۳۱۴، ۴۲۴، ۴۴۳، ۴۷۷، ۴۸۰، ۵۲۸) (صحیح)

[۴۱۳۷](1) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ فَلَا يَمْشِ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ حَتَّى يُصْلِحَ شِسْعَهُ وَلَا يَمْشِ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ وَلَا يَأْكُلْ بِشِمَالِهِ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله له فرمائیلی دی کله چه په تاسوکښې دیوکس پیزار تسمه وشلیږي نوپه یوپیزار کښې دې تلل نه کوي ترڅوچه ئې دخپل پیزار تسمه روغه کړي نه وي اونه به څوک په یوه موزه کښې ځي اونه به څوک په ګس لاس باندې خوراک کوي.

[۴۱۳۸](2) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ هَارُونَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي نَهِيكٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "مِنَ السُّنَّةِ إِذَا جَلَسَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْلَعَ نَعْلَيْهِ فَيَضَعَهُمَا بِجَنْبِهِ".

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه سنت طریقه داده کله چه څوک کښیني نوخپل پیزار دې اوباسي او خپل خواته دې کیږدي.

[۴۱۳۹](3) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِينِ، وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ، لِتَكُنِ الْيَمِينُ أَوَّلَهُمَا يُنْتَعَلُ وَآخِرَهُمَا يُنْزَعُ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نه علیه السلام فرمائیلی دی کله چه په تاسوکښې یوکس پیزار خپوکوي نودښي پیزارنه دې مخکښې شروع وکړي اوکله چه څوک په تاسوکښې پیزار اوباسي نودګس پیزار نه دې اول شروع وکړي ددې دپاره چه ښۍ خپه په خپوکولوکښې مخکښې شي اوګه خپه په ویستلوکښې مخکښې شي.

[۴۱۴۰](4) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ فِي طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَنَعْلِهِ"، قَالَ مُسْلِمٌ: وَسِوَاكِهِ وَلَمْ يَذْكُرْ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَنْ شُعْبَةَ مُعَاذٌ وَلَمْ يَذْكُرْ سِوَاكَهُ.

دعائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه رسول الله به په ټولو کارونوکښې دښۍ طرف نه شروع کول خوښول ترڅوچه به ممکن وو تردې پورې چه په اودس کولوکښې ویښته ګمنزولوکښې او په پیزار خپوکولوکښې هم اودمسلم به روایت کښې دومره اضافه ده چه

(1): صحیح مسلم/اللباس ۲۰ (۲۰۹۹)، (تحفة الأشراف: ۲۷۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۳/۳، ۳۲۷) (صحیح)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٧١) (ضعیف الإسناد)
(3): صحیح البخاري/اللباس ۳۹ (٥٨٥٤)، سنن الترمذي/اللباس ۳۷ (۱۷۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۱٤)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/اللباس ۱۹ (۲۰۹۷)، سنن ابن ماجه/اللباس ۲۸ (۳٦۱٦)، موطا امام مالك/اللباس ۷ (۱٥)، مسند احمد (۲٤٥/۲، ۲٦٥، ۲۸۳، ٤۳۰، ٤۷۷) (صحیح)
(4): صحیح البخاري/الوضوء ۳۱ (۱٦۸)، الصلاة ٤۷ (٤۲٦)، الأطعمة ٥ (٥۳۸۰)، اللباس ۳۸ (٥٨٥٤)، ۷۷ (٥۹۲٦)، صحیح مسلم/الطهارة ۱۹ (۲٦۸)، اللباس ٤٤ (۲۰۹۷)، سنن الترمذي/الصلاة ۳۱٦ (٦۰۸)، الشمائل ۱۰ (۸۰)، سنن النسائي/الطهارة ۹۰ (۱۱۲)، الغسل ۱۷ (٤۲۱)، الزینة ۸ (٥۰٦۲)، الزینة من المجتبی ۹ (٥۲٤۲)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٤۲ (٤۰۱)، (تحفة الأشراف: ۱۷٦٥۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹٤/٦، ۱۳۰، ۱٤۷، ۱۸۸، ۲۰۲، ۲۱۰) (صحیح)

دمسواک په وهلوکښې هم. امام ابوداؤد فرمائی دا روایت معاذ دشعبه نه نقل کړې دې لیکن دمسواک ذکرئې نه دې کړې.

﴿ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِى شَأْنِهِ كُلِّهِ فِى طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَنَعْلِهِ. قَالَ مُسْلِمٌ وَسِوَاكِهِ ﴾

د عائشې صدیقې ﷺ یو حدیث په ابواب الاستنجاء کښې تیر شوې دې. ﴿ كانت يد رسول الله ﷺ اليمنى لطهوره وطعامه، وكانت يده اليسرى لخلائه وما كان من اذى ﴾ د دې شرح دې هم اوکتلې شي. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤١٤١] (١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِى صَالِحٍ، عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا لَبِسْتُمْ وَإِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَءُوا بِأَيَامِنِكُمْ".

د ابوهریره ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی کله چه لباس بدلوئ یا اودس کوئ نوتاسو دخپل ښی طرف نه مخکښې شروع وکړئ.

## بَابٌ فِى الْفُرُشِ

### دبسترو بیان

[٤١٤٢] (٢) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الْهَمْدَانِيُّ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ أَبِى هَانِئٍ، عَنْ أَبِى عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِىِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفُرُشَ، فَقَالَ: "فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ وَفِرَاشٌ لِلْمَرْأَةِ وَفِرَاشٌ لِلضَّيْفِ وَالرَّابِعُ لِلشَّيْطَانِ".

دجابر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ دسترو تذکره کوله نوئې فرمائیل یوه بستره دخپل ځان دپاره پکار ده اوبله بستره دخپلې ښځې دپاره اویوه بستره د میلمه دپاره پکار ده اوددینه علاوه بسترې دشیطان دپاره وي.

**قوله:** ﴿ فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ وَفِرَاشٌ لِلْمَرْأَةِ وَفِرَاشٌ لِلضَّيْفِ وَالرَّابِعُ لِلشَّيْطَانِ ﴾

### شرح الحديث :

یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه درې بسترې په کور کښې کیدل کافی دی یو د ځان دپاره او یو د ښځې دپاره، او یو د میلمه دپاره، د دې نه مراد جنس فراش دې، یعنی د میلمنو د ضرورت دپاره اوس چه هر څومره ضرورت وی د هغې اعتبار به کولې شي، او څلورمه د شیطان دپاره، یعنی کومه چه د ضرورت نه زیاتی وی، چه دا د دنیا د سازوسامان تکثیر دې کوم چه د شیطان د طرف نه دې.

﴿ فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ وَفِرَاشٌ لِلْمَرْأَةِ ﴾ باندې شراح الحديث یو بله خبره هم لیکلې ده چه د سړی د ښځې سره ملاسته اولی ده یا بیله ملاسته؟ ففى ((البذل)) استدل بعضهم على انه لا يلزم للرجل

---

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٢ (٤٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٨٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/اللباس ٢٨ (١٧٦٦)، مسند احمد (٣٥٤/٢) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/اللباس ٨ (٢٠٨٤)، سنن النسائي/النكاح ٨٢ (٣٣٨٧)، (تحفة الأشراف: ٢٣٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٣/٣، ٣٢٤) (صحيح)

النوم مع امراته وان له الانفراد عنها بفراش ثان، قال النووى والاستدلال به فى هذا ضعيف، لان المراد بهذا وقت الحاجة بالمرض وغيره، وان كان النوم مع الزوجة ليس بواجب، والصواب فى النوم مع الزوجة انه اذا لم يكن لواحد منهما عذر فى الانفراد فاجتماعهما فى فراش واحد افضل وهو ظاهر فعل رسول الله ﷺ الذى واظب عليه...الى آخرما ذكر. والحديث اخرجه مسلم والنسائى، قاله المنذرى

[٤١٤٣](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهِ، فَرَأَيْتُهُ مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ"، زَادَ ابْنُ الْجَرَّاحِ عَلَى يَسَارِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ أَيْضًا عَلَى يَسَارِهِ.

جابر بن سمره نه روايت دې فرمائی چه زه دنبی ﷺ کور ته داخل شوم ما نبی ﷺ اوليد و چه يا لخت ته ئې ډډه وهلې وه ابن جراح دا اضافه کړې ده چه نبی ﷺ درباخت بې طرفې نه ډډه وهلې وه امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت اسحق داسرائيل نه نقل کړې سې اوپه دې کښې لفظ على يساره موجود دې.

[٤١٤٤](٢) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ سَعِيدِ بْنِ عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ رَأَى رُفْقَةً مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ رِحَالُهُمُ الْأَدَمُ، فَقَالَ: "مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى أَشْبَهِ رُفْقَةٍ كَانُوا بِأَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلْيَنْظُرْ إِلَى هَؤُلَاءِ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه ما يو خو ملګرې اوليدل کوم چه ديمن اوسيدونکې وو اوددوئ بسترې دخرمنونه جوړې شوې وې هغه اوفرمائيل څوک چه غواړې چه دصحابه کرامو سره مشابه ملګرې اووينې نودوی ته دې اوګورې.

﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ رَأَى رُفْقَةً مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ رِحَالُهُمُ الْأَدَمُ ﴾

عبدالله بن عمر رضی الله عنهما خو د سفر ملګرې اوليدل چه د يمن والا وو چه د هغوی په اوښانو باندې د خرمنې کيجاوې وې. الادم جمع ده د اديم يعنى جلد مدبوغ نو هغوی د هغې په ليدو باندې اوفرمائيل چه کوم سړې دا خوښوی چه داسې د سفر ملګرې وينې کوم چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم زيات مشابه وی نو هغوی له پکار دی چه دوی ته اوګورې. يعنى په اعتبار د سادګئ او ترک د تکلف او زينت کښې

[٤١٤٥](٣) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اتَّخَذْتُمْ أَنْمَاطًا"، قُلْتُ: وَأَنَّى لَنَا الْأَنْمَاطُ، قَالَ: أَمَا إِنَّهَا سَتَكُونُ لَكُمْ أَنْمَاطٌ".

دجابر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ راته اوفرمائيل تاسو خو توشکونه جوړ کړل عرض اوکړې شواې دالله رسوله زمونږ سره توشکونه چرته دي نبی ﷺ اوفرمائيل ډيره نزدې ده چه تاسو ته به درکړې شي توشکونه.

﴿ أَتَّخَذْتُمْ أَنْمَاطًا، قُلْتُ وَأَنَّى لَنَا الأَنْمَاطُ الخ ﴾ د جابر رضی الله عنه نه روايت دې چه ماته رسول

(١): سنن الترمذي/الاستئذان ٢٨ (٢٧٧٢، ٢٧٧٣)، الأدب ٢٣ (٢٧٧١)، (تحفة الأشراف: ٢١٣٨) (صحيح)
(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٧٠٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٠/٢) (صحيح الإسناد)
(٣): صحيح البخاري/المناقب ٢٥ (٣٦٣١)، النكاح ٦٢ (٥١٦١)، صحيح مسلم/اللباس ٧ (٢٠٨٣)، سنن الترمذي/الأدب ٢٦ (٢٧٧٤)، سنن النسائي/النكاح ٨٣ (٣٣٨٨)، (تحفة الأشراف: ٣٠٢٩) (صحيح)

الله ﷺ اوفرمائیل چه تا نری د جال په شان څادرونه ساتل شروع کړل. ما عرض اوکړو چی هغه مونږ سره کوم دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اوس نشته خو څو ورځې پس به درسره شی، یعنی روستو به درسره د فتوحاتو په وجه د مالداری د وجې نه پیدا شی او دا د تکلف او ډول ځیزونه به تاسو اختیارول شروع کړئ.

﴿ انماط ﴾ د نمط جمع ده جالر نری قسم څادر ته وائی کوم چه په ګدئ وغیره باندې اچولې شی د ډول دپاره.

دا روایت په صحیحین او ترمذی کښې هم دې چه په هغې کښې دا زیادت دې، جابر ﷺ فرمائی چه زما د کور والا سره دا قسم یو څادر وو، ما به هغې ته وئیل چه دا د دې ځائې نه لرې کړه ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وو ﴿ انها ستکون ﴾ چه روستو زمانه کښې به داسې څادرې شی، ﴿ فادعها ﴾ نوپه دې زه دا پریږدم، یعنی سکوت اختیاروم چه کله هغه د حدیث حواله ورکوی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[٤١٤٦] ([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ وِسَادَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ ابْنُ مَنِيعٍ: الَّتِي يَنَامُ عَلَيْهَا بِاللَّيْلِ ثُمَّ اتَّفَقَا مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ".

دعائشه ﷺ نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ یوداسې بالخت وو په کوم چه به دشپې اوده کیدو د رنګ کړې شوې څرمنې نه جوړ وو او مینځ ئې دکجورو دپاڼړو نه ډک کړې شوې وو.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَ وِسَادَةُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- - الذى يَنَامُ عَلَيْهَا بِاللَّيْلِ - مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ ﴾

عائشه صدیقه ﷺ فرمائی چه د رسول الله ﷺ وساده یعنی تکیه د چمړې وه چه د کهجورې د پوستکو نه ډکه کړې شوې وه.

لیف... یعنی پوستکې د کهجورې..... او د هغې نه روستو روایت کښې د حضور ﷺ د ضجعة په باره کښې هم دا راروان دی کوم چه د وساده په باره کښې راغلې دی، یعنی بستره چه هغه هم د داسې چمړې وه چه په هغې کښې د کجهورې پوستکې اچولې شوې وو، او د ابن ماجه په روایت کښې د لیف په ځائې د الاذخر لفظ دې یعنی یو مشهوره ګیا (سرګړې) چه د هغې ذکر په کتاب الحج کښې هم راغلې دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی بمعناه، قاله المنذری.

[٤١٤٧] ([2]) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ حَيَّانَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَتْ ضِجْعَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ".

---

[1]: صحيح مسلم/اللباس ٦ (٢٠٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٢٠٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الرقاق ١٦ (٦٤٥٦)، سنن الترمذي/اللباس ٢٧ (١٧٦١)، وصفة القيامة ٣٢ (١٧٢٠٢)، سنن ابن ماجه/الزهد ١١ (٤١٥١)، مسند احمد (٦/٤٨، ٥٦، ٧٣، ١٠٨، ٢٠٧، ٢١٢) (صحيح)

[2]: سنن ابن ماجه/الزهد ١١ (٤١٥١)، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٦٩٥١) (صحيح)

دعائشه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه دنبی ﷺ یوتوشک وو په کوم چه به دشپې اوده کیدو درنګ کړي شوي څرمنی نه جوړ وو او مینځ ئې دکجورو دپاڼو نه ډک کړي شوي وو.

[۴۱۴۸]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كَانَ فِرَاشُهَا حِيَالَ مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه زما بستره دنبی ﷺ د مونځ ځائ ته مخامخ پرته وه.

﴿عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ فِرَاشُهَا حِيَالَ مَسْجِدِ النبي –صلى الله عليه وسلم ﴾

**شرح الحديث:**

ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چه زما د ملاستې بستره د رسول الله ﷺ د مونځ کولو د ځائې په خوا کښ وه، او خپله به د رسول الله ﷺ بستره د مانځه ځائې ته نزدې وه نو ګویا دا درې واړه څيزونه به نزدې نزدې وو، د رسول الله ﷺ بستره او د هغوی د اهل او د نفلونو د کولو ځایونه، پس په کتاب الادب کښ ﴿ باب كيف يتوجه الرجل عند النوم ﴾ کښ د ام سلمه رضي الله عنها حدیث راروان دې.

﴿ كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ الإِنْسَانُ فِي قَبْرِهِ وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ﴾ د دې مسجد نه مراد هم دا مسجد بیت دې د تهجد کولو ځائې، والحديث اخرجه ابن ماجه، وقال عن زينب بنت ام سلمة، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي اتِّخَاذِ السُّتُورِ

### د پردې زوړندولو بيان

[۴۱۴۹]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ غَزْوَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، فَوَجَدَ عَلَى بَابِهَا سِتْرًا، فَلَمْ يَدْخُلْ، قَالَ: وَقَلَّمَا كَانَ يَدْخُلُ إِلَّا بَدَأَ بِهَا فَجَاءَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَرَآهَا مُهْتَمَّةً، فَقَالَ: مَا لَكِ؟ قَالَتْ: جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيَّ فَلَمْ يَدْخُلْ فَأَتَاهُ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ فَاطِمَةَ اشْتَدَّ عَلَيْهَا أَنَّكَ جِئْتَهَا فَلَمْ تَدْخُلْ عَلَيْهَا، قَالَ: وَمَا أَنَا وَالدُّنْيَا وَمَا أَنَا وَالرَّقْمَ، فَذَهَبَ إِلَى فَاطِمَةَ، فَأَخْبَرَهَا بِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: قُلْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَأْمُرُنِي بِهِ، قَالَ: قُلْ لَهَا فَلْتُرْسِلْ بِهِ إِلَى بَنِي فُلَانٍ".

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ د فاطمې رضي الله عنها کورته تشریف راړو نودهغې په دروازه کښې يې يوسوه پرده اوليده نو ورته داخل نه شو بلکه د بهرنه وپې لاړو، راوی وائی چه نبی ﷺ به ډير ستشم داسې کول چه کورته به لاړو او د فاطمې رضي الله عنها سره به په خبرې ونکړې، کله چه نبی ﷺ راغې نوفاطمه به ولیده چه خفه ناسته د هغه اووئیل اې فاطمې رضي الله عنها څه خبره ده؟ فاطمې اووئیل زماطرف ته نبی ﷺ راغلې وو لیکن دننه رانغې علی ده چه دا واوریدل نو دنبی ﷺ به خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې وکړو چه فاطمة ستاسو په نه راتلوباندې ډيره خفه ده نبی ﷺ اوفرمائیل زمادددنیا سره څه تعلق ده؟ زمادنقش نګارسره څه تعلق دې علی رضي الله عنه چه د واوریدل نو فاطمې رضي الله عنها نه لاړو اودنبی ﷺ

(): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۰ (۹۵۷)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۲/۶) (صحیح)
(): صحيح البخاري/الهبة وفضلها ۲۷ (۲۶۱۳)، (تحفة الأشراف: ۸۲۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱/۲) (صحیح)

فرمان ئې ورته بيان کړو فاطمې اووئيل دنبي ﷺ نه معلومه کړه چه په دې پرده باندې څه وکړو نبي ﷺ ورته اووئيل فاطمې ته وايه چه فلانکي خلقوته ئې ولېږه.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَتَى فَاطِمَةَ رضى الله عنها فَوَجَدَ عَلَى بَابِهَا سِتْرًا فَلَمْ يَدْخُلْ الخ ﴾

## شرح الحديث :

يعنى يو ځل رسول الله ﷺ فاطمې رضي الله عنها کره تشريف اوړلو د هغې کور ته، چه کله دروازې ته اورسيدل نو وې کتل چه په هغې باندې يو منقش پرده زوړنده ده، لکه چه په روستو روايت کښې راځي، ﴿ قَالَ وَكَانَ سِتْرًا مَوْشِيًّا ﴾ نو رسول الله ﷺ دننه داخل نه شو بلکه واپس لاړو. راوي وائي چه د رسول الله ﷺ معمول د سفر نه په واپس کيدو باندې د ټولو نه اول فاطمې رضي الله عنها سره د ملاقات وو. لږ ساعت پس علي رضي الله عنه کور ته راغلو، هغوی فاطمه رضي الله عنها خفه اوليده. د هغې وجه ئې اوتپوسله، هغوی د دې وجه بيان کړه. سيدنا علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او تلو سره ئې رسول الله ﷺ ته د فاطمې رضي الله عنها حال بيان کړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ وَمَا أَنَا وَالدُّنْيَا وَمَا أَنَا وَالرَّقْمَ ﴾ چه زما د دنيا او د هغې د ډول سره څه مناسبت دې، او وې فرمائيل چه زما د دې جهان او د دې د ګلونو سره څه کار دې؟ علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ دا ارشاد هغې ته بيان کړو نو فاطمې رضي الله عنها سيدنا علي رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې چه زه په دې پردې څه اوکړم نو رسول الله ﷺ د يو کورنۍ نوم اخستلو سره اوفرمائيل چه دا هلته اولېږه.

## (ايا پرده زوړندول ممنوع دی؟)

په دروازه باندې پرده کيدل خو ناجائز او ممنوع نه دی بلکه هغه خو کيدل پکار دی د پردې دپاره، دلته چه رسول الله ﷺ په څه خفه شو هغه د هغې په منقش کيدو باندې، خو چه کومه پرده په کور کښې دننه په ديوال يا چهت باندې خوره کړې شی د ډول دپاره د هغې مطلقا مذمت راغلې دې لکه چه په يو روايت کښې دی کوم چه د کتاب الصلوة په آخير کښې تير شوې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ لا تستروا الجدر ﴾ د دې شرح او تفصيل هلته تير شوې دې، په باب الدعاء کښې.

[ ۴۱۵۰ ]([1]) حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الأَسَدِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: وَكَانَ سِتْرًا مَوْشِيًّا.

دفضيل نه دتيرشوی روايت په شان روايت بيان شوې دې البته په دې روايت کښې دا سې ذکرشوې دې چه په هغه پرده باندې ګلونه جوړ شوې وو.

﴿ قَالَ وَكَانَ سِتْرًا مَوْشِيًّا ﴾ او په يو نسخه کښې دی ﴿ موشی ﴾ دا د وشئ نه ماخوذ دې چه د هغې معنی د نقش ده.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۲۵۲) (صحيح)

## بَابٌ فِي الصَّلِيبِ فِي الثَّوْبِ

### په کومه جامه باندې چه د صلیب نشان جوړ شوې وی

[٤١٥١](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حِطَّانَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ لَا يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فِيهِ تَصْلِيبٌ إِلَّا قَضَبَهُ".

د عائشه رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ به په خپل کور کښې داسې یوشې نه پریخودو په کوم چه به د صلیب تصویر جوړ شوې وو مګر ماتولوبه ئې.

﴿ كَانَ لَا يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فِيهِ تَصْلِيبٌ إِلَّا قَضَبَهُ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ به چه په خپل کور کښې د صلیب صورت جوړ شوې اولیدو نو هغه به ئې ماتولو، صلیب اګر چه د غیر ذی روح تصویر دې خو چونکه هغه د نصاراو شعار دې او هغوی به د دې تعظیم کولو په دې وجه د مسلمان په کور کښې نه دی کیدل پکار او که وی نو هغه ختمول پکار دی.

صلیب یعنی سولئ چه د هغې په باره کښې د نصاراو دا ګمان دې چه یهودو عیسی علی نبینا وعلیه الصلاة والسلام په سولئ باندې خیژولې وو، هم په دې وجه باندې به هغوی د هغې تعظیم کولو او بعض وخت به ئې پکښې د عیسی علیه السلام تصویر هم جوړولو د صلیب شکل داسې وی: ✝... والحدیث اخرجه البخاری والنسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الصُّوَرِ

### د تصویرونو بیان

[٤١٥٢](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُجَيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ وَلَا جُنُبٌ".

د علی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی هغه کورته د رحمت فرښتې نه داخلیږي په کوم کښې چه تصویرونه یا سپې یا جنب سړې وي.

**قوله:** ﴿ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ وَلَا جُنُبٌ ﴾

دا حدیث په کتاب الطهارة، باب فی الجنب یوخر الغسل، کښې تیر شوې دې او په دې باندې کلام هم هلته تیر شوې دې، او بله دا چه په دې حدیث کښې د کلب نه مراد عام دې یا که صرف ممنوع الاتخاذ، فارجع الیه لو شئت.... والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، ولیس فی حدیث ابن ماجه، ((لاجنب)).......قاله المنذری

[٤١٥٣](۳) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ سُهَيْلٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ الْأَنْصَارِيِّ،

[۱]: صحیح البخاري/اللباس ۹۰ (۵۹۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷٤۲٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۲/۶، ۲۳۷، ۲۵۲) (صحيح)

[۲]: انظر حديث رقم: (۲۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۹۱) (صحيح)

[۳]: صحیح البخاري/بدء الخلق ۷ (۳۲۲۵)، ۱۷ (۳۳۲۲)، المغازي ۱۲ (٤۰۰۲)، اللباس ۸۸ (۵۹٤۹)، ۹۲ (۵۹۵۸)، صحیح مسلم/اللباس ۲۶ (۲۱۰۶)، سنن الترمذي/الأدب ٤٤ (۲۸۰٤)، سنن النسائي/الصيد والذبائح ۱۱ (٤۲۸۷)، الزينة من المجتبى ۵۷ (۵۳٤۹)، سنن ابن ماجه/اللباس ٤٤ (۳۶٤۹)، (تحفة الأشراف: ۱۶۰۸۹، ۳۷۷۹)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ۳ (۶)، مسند احمد (۲۸/٤، ۲۹، ۳۰) (صحيح)

عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَدْخُلُ
الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا تِمْثَالٌ"، وَقَالَ: انْطَلِقْ بِنَا إِلَى أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ نَسْأَلُهَا عَنْ ذَلِكَ، فَانْطَلَقْنَا، فَقُلْنَا: يَا أُمَّ
الْمُؤْمِنِينَ إِنَّ أَبَا طَلْحَةَ، حَدَّثَنَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَذَا وَكَذَا فَهَلْ سَمِعْتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ يَذْكُرُ ذَلِكَ؟ قَالَتْ: لَا، وَلَكِنْ سَأُحَدِّثُكُمْ بِمَا رَأَيْتُهُ فَعَلَ، خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ
مَغَازِيهِ وَكُنْتُ أَتَحَيَّنُ قُفُولَهُ، فَأَخَذْتُ نَمَطًا كَانَ لَنَا فَسَتَرْتُهُ عَلَى الْعَرَضِ، فَلَمَّا جَاءَ اسْتَقْبَلْتُهُ فَقُلْتُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا
رَسُولَ اللَّهِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَعَزَّكَ وَأَكْرَمَكَ، فَنَظَرَ إِلَى الْبَيْتِ فَرَأَى النَّمَطَ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ شَيْئًا
وَرَأَيْتُ الْكَرَاهِيَةَ فِي وَجْهِهِ فَأَتَى النَّمَطَ حَتَّى هَتَكَهُ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَأْمُرْنَا فِيمَا رَزَقَنَا أَنْ نَكْسُوَ الْحِجَارَةَ وَاللَّبِنَ،
قَالَتْ: فَقَطَعْتُهُ وَجَعَلْتُهُ وِسَادَتَيْنِ وَحَشَوْتُهُمَا لِيفًا فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ عَلَيَّ".

دابوطلحه انصاری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه درسول الله ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې درحمت فرشتې هغه کورته نه داخلیږي په کوم کښې چه سپې یا دذي روح تصویر موجود وي ددې حدیث راوی زید بن خالد سعید بن یسارته اووئیل چه زماسره عائشې رضی الله عنها ته لاړ شه مونږ دهغې نه په دې سلسله کښې معلومات کوو نومونږ دواړه د عائشه رضی الله عنها په خدمت کښې حاضر شو و او عرض مو ورته وکړو چه اې ام المومنین ابوطلحه ماته حدیث بیان کړې دې چه نبی ﷺ داسې فرمائیلې دی تابه هم په دې سلسله کښې دنبی ﷺ نه څه اوریدلي وي؟ عائشې رضی الله عنها په جواب کښې اووئیل نه، لیکن زه تاسوته یوحدیث بیانوم کوم چه مې دنبی ﷺ عمل لیدلې وو نبی ﷺ چه یه کله دکوم جهاد په سفرباندې تلو اومابه دهغه دواپسئ انتظار کولو نوما یه یوه پرده راواخسته اوددروازې په لوي لرګي پورې به مې زوړنده کړه کله چه به نبی ﷺ راغې نوزه به ورمخکښې شوم اوداسې به مې اووئیل السلام علیک یارسول الله ورحمة الله وبرکاته ، دهغه الله شکردې چاچه تاته عزت درکړې دې او په تاباندې ئې احسان کړې دې اونبی ﷺ به په دروازه باندې پرده اولیدله او زما دکوې خبرې جواب ئې ونکړو اومابه دهغه په مخ باندې خفګان اولیدو نبی ﷺ به دپردې خواته راغې اوهغه به ئې لرې کړه اوبیابه ئې ددینه پس اوفرمائیل یقینا الله تعالی مونږ ته دا حکم کړې دې چه مونږ دهغه درزق نه کاڼړو اولوټونه لباس واغوندور عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل بیاما دغه پرده لرې کړه اودوه بالختونه مې ورنه جوړ کړل اودکجورو دپاڼرو او پوټکونه مې ډکه کړه نوداخبره نبی ﷺ بده اونه ګڼړله.

﴿ وَقَالَ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ رضی الله تعالی عنها ﴾

## مضمون حدیث مع الشرح :

یعنی ابوطلحه انصاری رضی الله عنه چه کله دا حدیث زید بن خالد رضی الله عنه ته بیان کړو نو هغوی ابوطلحه رضی الله عنه ته یا خپل شاګرد سعید بن یسار ته اووې [1] چه مونږ عائشې رضی الله عنها ته بوځه چه د دې حدیث په باره کښې مونږ د هغې نه تپوس اوکړو، پس مونږ هغې ته لاړو او مونږ تلو سره د هغې نه د دې حدیث په باره کښې تپوس اوکړو چه آیا تاسو هم د رسول الله ﷺ نه د دې په باره کښې څه اوریدلي دي؟ نو هغوی اوفرمائیل چه ما دا حدیث خو نه دې اوریدلي د رسول

[1] الاول اختاره في البذل، والثاني صاحب العون)

الله ﷺ د خولې مبارکې نه، خو زه تاسو ته واقعه اوروم، مطلب دا شو چه ما سره دې باره کښې حديث قولي خو نشته خو حديث فعلي دې او بيا ئې يو واقعه واوروله چه يو خل رسول الله ﷺ يو غزوې ته تشريف يوړو، چه کله زه د هغوی د واپسئ په انتظار شوم نو ما يو ښکلې ځادر واخستلو کوم چه مونږ کره وو او ما په تير کښې زوړند کړو په خوړولو سره يعنی د کور خائسته کولو دپاره، چه کله رسول الله ﷺ تشريف راوړلو نو ما د رسول الله ﷺ مخې ته اودريدلو سره سلام عرض کړو، ﴿ السلام عليک يا رسول الله ﷺ ورحمة الله وبرکاته الحمد لله الذی اعزک واکرمک ﴾

خو د رسول الله ﷺ نظر په دې ځادر باندې پريوتلو نو زما د سلام جواب ئې رانکړو او ما د هغوی په مخ مبارک باندې خفګان اوليدو، رسول الله ﷺ هغه پردې ته نزدې شو او هغه ئې اوشلوله او وې فرمائيل الله پاک چه کوم څيزونه مونږ ته راکړې دی د هغې په باره کښې ئې مونږ ته دا نه دی فرمائيلی چه مونږ دې کاڼړو او ښختو ته جامې واغوندو. هغه فرمائی چه ما د هغه ځادر ټکړې کولو سره د هغې نه تکيې جوړې کړې او په هغې کښې مې د کهجورو پوستکی ډک کړل، ﴿ فلم ينکر ذلک علی ﴾ نو په دې سره رسول الله ﷺ په ما باندې هيڅ انکار اونکړو.

دا قسم روايتونه په صحيح مسلم کښې په مختلفو طرق سره دی او په بعض طرق کښې تصريح ده د دې خبرې چه په دې پرده کښې د ذوات الاجنحة خيل تصوير وو. بيا عائشې ﷺ چه کله د هغې ټکړې کولو سره د هغې نه تکيې جوړې کړې چه په هغې باندې رسول الله ﷺ هيڅ نکير او نه فرمائيلو، په دې کښې دوه احتماله دی کيدې شی چه د دې پردې د ټکړې کولو په وجه باندې د هغه صورتونو ازاله شوې وی هم په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې په تکيه جوړولو باندې نکير اونه فرمائيلو او دا هم احتمال دې چه د صورت ازاله به نه نوی شوې خو چونکه د صورت استعمال په هر صورت کښې ممنوع نه دې بلکه ممنوع په هغه وخت دې چه کله هغه د زينت دپاره اويزاند کړې شی، او که د استعمال نوعيت دا نه وی بلکه داسې وی چه په هغې کښې د هغې شکل ابتذال او امتهان وی مثلا فرش په کوم باندې چه ګرزی، يا مثلا په څپلو باندې تصوير وی، او هم دغه شان د تکيه غلاف چه په هغې کښې تصوير پټ پاتې کيږی په دې صورتونو کښې د هغې استعمال مغتفر دې (بذل نقلا عن القرطبی) او د شارحينو د کلام نه دا هم مستفاد کيږی چه په پرده وغيره کښې د ذی روح د تصوير استعمال خو حرام دې، او د ساده پردې استعمال په ديوالونو کښې دا خلاف د زهد کيدو د وجې نه مکروه تنزيهی دې.والحديث اخرجه مسلم بطوله، واخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه ببعضه، قاله المنذری.

[٤١٥٤][1] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ سُهَيْلٍ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلِهِ، قَالَ: فَقُلْتُ: يَا أُمَّهْ إِنَّ هَذَا حَدَّثَنِي، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَقَالَ فِيهِ سَعِيدُ بْنُ يَسَارٍ مَوْلَى بَنِي النَّجَّارِ.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٦٠٨٩) (صحيح الإسناد)

سهيل پخپل سند سره دتيرشري روايت په شان روايت بيان کړي دي مګردا اضافه ئې کړې ده چه ماورته اووئيل اې موري ابوطلحه ماته دنبی ﷺ نه حديث بيان کړي دي اوپه دې روايت کښې ئې دا وئيلی دی چه سعيد بن يسار دبني النجار ازادکړې غلام وو.

[٤١٥٥]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، أَنَّهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ"، قَالَ بُسْرٌ: ثُمَّ اشْتَكَى زَيْدٌ، فَعُدْنَاهُ فَإِذَا عَلَى بَابِهِ سِتْرٌ فِيهِ صُورَةٌ فَقُلْتُ لِعُبَيْدِ اللَّهِ الْخَوْلَانِيِّ رَبِيبِ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَمْ يُخْبِرْنَا زَيْدٌ عَنِ الصُّوَرِ يَوْمَ الْأَوَّلِ؟ فَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: أَلَمْ تَسْمَعْهُ حِينَ قَالَ إِلَّا رَقْمًا فِي ثَوْبٍ.

دابوطلحه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی درحمت فرشتې هغه کورته نه داخليږي په کوم کښې چه دذي روح تصوير موجود وي بسر وئيلی دی بیازيد بيمار شو او مونږ دهغه بيمار پرسئ ته ورغلو اودهغه عيادت مووکړو مونږ وليدل چه دهغه په دروازه باندې يوه پرده زوړنده وه اوتصوير ورباندې جوړ شوې وو نومادعبيدالله خولاني نه دچاچه ام المومنين ميمونه رضي الله عنها پرورش کړې وو ، تپوس اوکړو چه ايا زيد مونږ ته دتصوير ممانعت متعلق روايت نه وو اوروليې؟ عبيدالله اووئيل تادهغه نه نه وو اوريدلي چه دابه ئې هم فرمائيل مګرپه کپړه کښې چه کوم خپل ګلان اوبوټي وی.

## شرح الحديث :

**قوله:** ﴿ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ بُسْرٌ ثُمَّ اشْتَكَى زَيْدٌ فَعُدْنَاهُ فَإِذَا عَلَى بَابِهِ سِتْرٌ فِيهِ صُورَةٌ فَقُلْتُ لِعُبَيْدِ اللَّهِ الْخَوْلَانِيِّ أَلَمْ يُخْبِرْنَا زَيْدٌ عَنِ الصُّوَرِ يَوْمَ الْأَوَّلِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ أَلَمْ تَسْمَعْهُ حِينَ قَالَ إِلاَّ رَقْمًا فِي ثَوْبٍ ﴾ د دې حاصل دا دې چه د زيد بن خالد جهنی رضي الله عنه په دروازه باندې يو پرده پرته وه چه په هغې کښې تصوير وو، بسر بن سعيد د حديث راوی وائی چه ما په دې پردې ليدلو باندې عبيدالله خولانی ته اووې چه زيد بن خالد خو خپله مونږ ته د تصوير د ممانعت حديث اوروليې وو، نو هغوی جواب ورکړو چه تاسو په حديث کښې نه وو اوريدلې چه ﴿ الا رقما فی الثوب ﴾

دا حديث او په دې کښې چه کوم سوال او جواب ذکر دې دا محل د بحث او نظر دې خکه چه په دې پرده کښې چه کوم صورت وو که هغه د غير ذی روح وو نو بيا خو د بسر بن سعيد د اشکال جواب دا وو چه ممانعت د ذی روح دې نه د غير ذی روح، او که په دې پرده کښې تصوير د ذی روح وو نو بيا د بسر بن سعيد اشکال صحيح دې. او د عبيدالله خولانی جواب په ﴿ الا رقما فی الثوب ﴾ سره په ظاهر کښې صحيح نه دې، خکه چه په دې استثناء سره خو د دې ذی روح تصوير جواز مقصود دې کوم چه په مستعمل کپړو کښې وی او ممتهن وی، او که په پرده کښې وی نو دې سره د استثناء تعلق نشته او هغه جائز نه دې، فتامل وهذا علی مسلک الجمهور بخلاف القاسم بن محمد وغيره چه د هغوی په نزد د ذی روح تصوير مطلقا جائز دې که ممتهن وی يا نه وی.

---

(): انظر حديث رقم: (٤١٥٣)، (تحفة الأشراف: ٣٧٧٥) (صحيح)

[٤١٥٦](١)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، أَنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ عَبْدِ الْكَرِيمِ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ عَقِيلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ جَابِرٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زَمَنَ الْفَتْحِ وَهُوَ بِالْبَطْحَاءِ أَنْ يَأْتِيَ الْكَعْبَةَ، فَيَمْحُوَ كُلَّ صُورَةٍ فِيهَا فَلَمْ يَدْخُلْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى مُحِيَتْ كُلُّ صُورَةٍ فِيهَا".

دجابر ﷺ نه روایت دی فرمائی چه دفتح مې په وخت کښې نبی ﷺ په بطحاء مقام کښې عمر بن الخطاب و ته حکم کړې وو چه کعبې ته ورشي او هلته چه څومره تصویرونه دي هغه ضایع کړي اوترڅوچه تصویرونه ضایع شوي نه وو ترهغې پورې نبی ﷺ کعبې ته نه داخلیدو.

[٤١٥٧](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ السَّبَّاقِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي مَيْمُونَةُ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ وَعَدَنِي أَنْ يَلْقَانِيَ اللَّيْلَةَ فَلَمْ يَلْقَنِي ثُمَّ وَقَعَ فِي نَفْسِهِ جِرْوُ كَلْبٍ تَحْتَ بِسَاطٍ لَنَا فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِهِ مَاءً فَنَضَحَ بِهِ مَكَانَهُ فَلَمَّا لَقِيَهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ، قَالَ: إِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ فَأَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ حَتَّى إِنَّهُ لَيَأْمُرُ بِقَتْلِ كَلْبِ الْحَائِطِ الصَّغِيرِ وَيَتْرُكُ كَلْبَ الْحَائِطِ الْكَبِيرِ".

دمیمونه ﷺ نه روایت د شرهاني به نبی ﷺ فرمائیلي دي یقین ما معده په ز دیده و دوره جبرائیل ﷺ بملاقات وغمده کسرې و مګر ملاقات ئې ونکړو، بیادنبی ﷺ په زړه کښې داخبره راغله چه زمونږ د کټ د لاندې د سپي یو وړوکې بچې دې نبی ﷺ حکم اوکړو چه بهرئې وباسئ بیانبی ﷺ پخپل لاس مبارک باندې هلته داوبو څڼر کاو اوکړو بیادنبی ﷺ سره ددینه پس د جبریل ﷺ ملاقات اوشو جبریل نبی ﷺ ته اوفرمائیل مونږ هغه کورته نه داخلیږو په کوم کښې چه سپید پاته ویو نه وي، بیدسحر په وخت کښې نص ﷺ دسپو دوژلو حکم وکړو تردې پورې په نوم سمیر دورو باغونود څوکۍ دپاره وو دهغوی د وژلو هستم ئې هم وکړو اوکوم سپي چه دلویو باغونو د مسوکي دپاره وو هغه ئې پریخودل.

**قوله:** ﴿ إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ وَعَدَنِي أَنْ يَلْقَانِيَ اللَّيْلَةَ فَلَمْ يَلْقَنِي ». ثُمَّ وَقَعَ فِي نَفْسِهِ جِرْوُ كَلْبٍ تَحْتَ بِسَاطٍ الخ ﴾

رسول الله ﷺ یو ځل ارشاد اوفرمائیلو چه جبرائیل ﷺ ما سره وعده کړې وه چه نن شپه به ما سره ملاقات کوی خو ملاقات ئې اونکړو، بیا زما په زړه کښې خیال راغلو د کوترې، په دې روایت کښې دی ﴿ تحت بساط ﴾ او د مسلم په روایت کښې دی ﴿ تحت فسطاط ﴾ او په یو روایت کښې دی ﴿ تحت سرير عائشة ﴾ او د دې نه په روستو روایت کښې دی ﴿ كان تحت نضدلهم ﴾ او د نضد تفسیر په بعضو نسخو کښې داسې دې، قال ابوداود: والنضد شئ يوضع عليه الثياب شبه السرير، یعنی د تخت په شان یو څیز وی چه په هغې باندې کپړې سامان

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣١٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٣٥، ٣٣٦، ٣٨٣، ٣٨٥، ٣٩٦) (حسن صحيح)

(٢): صحيح مسلم/اللباس ٢٦ (٢١٠٥)، سنن النسائي/الصيد ٩ (٤٢٨١)، ١١ (٤٢٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٣٠) (صحيح)

وغیره ږدلې شی، کوم ته چه زمونږ په نزد تخته پوش یا تخت وغیره وائی. یعنی هغه کوترې (د سپی بچې) د تخته پوش لاندې ناست وو. د دې خیال راتلو نه پس رسول الله ﷺ هغه بهر کړو، بیا ئې په خپل لاس مبارک کښې اوبه واخستلې او چرته چه هغه ناست وو هلته ئې چړکاؤ کړې، بیا د دې نه روستو چه کله جبرائیل علیه السلام تشریف راوړلو نو هغوی اوفرمائیل چه مونږ داسې کور ته نه داخلیږو چه په هغې کښې کلب وی یا تصویر. او د دې نه په روستو روایت کښې دا زیادت دې. ﴿إِلاَّ أَنَّهُ كَانَ عَلَى الْبَابِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ﴾ یعنی باریک پرده چه په هغې کښې د ساه لرونکی څیز تصویرونه وو. ﴿وَإِذَا الْكَلْبُ لِحَسَنٍ أَوْ حُسَيْنٍ﴾ دا کوترې په دې دواړو ماشومانو کښې د یو وو یا د حسن او یا د حسین رضی الله عنهما. او د پردې په باره کښې رسول الله ﷺ حکم اوفرمائیلو چه هغه دې تکړې کولو سره د هغې نه تکیې جوړې کړې شی. ﴿وسادتین منبوذتین﴾ کښې هم دې طرف ته اشاره ده چه د ذی روح د تصویر استعمال په داسې کپړو کښې جائز دې کوم چه زوړند نه وی او د خپو لاندې کیږی.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری، آخر کتاب اللباس.

[٤١٥٨] ([1]) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلاَم، فَقَالَ لِي: أَتَيْتُكَ الْبَارِحَةَ فَلَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَكُونَ دَخَلْتُ إِلاَّ أَنَّهُ كَانَ عَلَى الْبَابِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي الْبَيْتِ كَلْبٌ، فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي فِي الْبَيْتِ يُقْطَعُ فَيَصِيرُ كَهَيْئَةِ الشَّجَرَةِ، وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ فَلْيُجْعَلْ مِنْهُ وِسَادَتَيْنِ مَنْبُوذَتَيْنِ تُوطَآنِ وَمُرْ بِالْكَلْبِ فَلْيُخْرَجْ فَفَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِذَا الْكَلْبُ لِحَسَنٍ أَوْ حُسَيْنٍ كَانَ تَحْتَ نَضَدٍ لَهُمْ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالنَّضَدُ شَيْءٌ تُوضَعُ عَلَيْهِ الثِّيَابُ شِبْهُ السَّرِيرِ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی زماخواته جبریل علیه السلام راغې اوماته ئې اووئیل چه په تیره شوې شپه هم زه تاته راغلې وم لیکن په دروازه کښې موجود تصویر زه د دننه تلونه منع کړم او په کور کښې رنګ کړې شوې اونقش کړې شوې کپړه وه او په دغه کور کښې سپې هم موجود وو نو لهسه د تصویرونو دسر کټ کولو حکم وکړه کوم تصویرونه چه په کورونو کښې وي څکه چه بیابه دهغې نه د ونې شکل جوړ شي اودپردې د پریکولوحکم اوکړه اوددې نه دې دکیناستو دپاره دوه توتې جوړې شي ددې دپاره چه دخپوسره ومرلې شي اودسپودشړلودپاره حکم وکړه چنانچه نبی علیه السلام همداسې وکړل سپې شاید د حسن یاحصین رضی الله عنهما وو کوم چه دنبی علیه السلام دتحت دلاندې ناست وو نبی علیه السلام حکم اوکړو او هغه اوویستلی شو.

(آخر کتاب اللباس)

[1]: سنن الترمذي/الأدب ٤٤ (٢٨٠٦)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٦٠ (٥٣٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٥، ٣٠٨، ٤٧٨) (صحيح)

# كِتَابُ التَّرَجُّلِ

## د ویښتو ګومنځولو بیان

د دې کتاب تعلق د انسان په بدن باندې چه کوم ویښته دی، د بدن په مختلفو حصو بانده بالخصوص د سر او مخ ویښتهٔ یعنی اننګی او ګیره او بریت. د هغې نه دې.... ګویا احکام شعور بیانول دی او دا څیزونه د باب تزیین او تنظیف نه دی، هم د دې په ضمن کښې مصنف رحمه الله تبعا تطییب هم بیان کړې دې. پس د طیب سره متعلق ډیر ابواب مصنف رحمه الله په دې کښې بیان کړې دی، باب ماجاء فی رد الطیب باب طیب المراۃ للخروج، باب الخلوق للرجال.

او امام نسائی رحمه الله په ځائې د کتاب الترجل..... په دې ابواب او احادیث باندې د کتاب الزینة عنوان قائم کړې دې او بیا ئې د هغې د لاندې هم دغه شان ابواب او احادیث راوړلي دی کوم چه مصنف رحمه الله په کتاب الترجل کښې راوړې دی.

### د الدین النصیحة تشریح :

په حدیث شریف کښې دی ﴿ الدين النصيحة ﴾ دین سراسر د خیرخواهئ نوم دې، د خیر خواهئ حاصل دا دې چه هر څیز سره د هغې شایان شان معامله کول، واعطاء کل ذی حق حقه، د کوم څیز چه کوم حق دې هغه ورکولو سره ادا کول او په دې کښې د یو څیز تخصیص نشته نه د انسان او نه د حیوان بلکه هر څیز په دې کښې داخل دې ځنګه چه د نعمت حق شکر دې نو د مصیبت حق صبر دې او د شکر نعمت په مفهوم کښې دا هم داخله ده چه د دې نعمت صحیح استعمال اوشی او د هغې نه داسې انتفاع اوکړې شی د کوم دپاره چه هغه څیز جوړ کړې شوې دې، مثلا په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ من كان له شعر فليكرمه ﴾ یعنی د چا په سر چه ویښته وی د هغې اکرام دې کوی، یعنی د هغې اصلاح دې کوی کومه چه د اصلاح طریقه ده. د هغې تنظیف او تطهیر، هم دغه شان تدهین او ترجیل، تیل ورکول، ګومنځول او هغه برابرول، هم دغه شان د انسان خپله جامه ده چه هغه پاکه او د هغه د مالی حیثیت مطابق کیدل پکار دی چه مالدار انسان ډیره بیکاره جامه واغوندی نو په حدیث شریف کښې په دې باندې هم خبرداري راغلې دې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ فليرا الر نعمة الله عليک ﴾ یعنی هر کله چه الله پاک تا ته وسعت او فراخی درکړه نو د هغې اثر په تا باندې ښکاره کیدل پکار دی، هم دغه شان په اسلام کښې د میلمه او ګاونډی حق ثابت کړې شوې دې ﴿ من كان يومن بالله واليوم الاخر فليكرم ضيفه ﴾ او ﴿ لا يومن احدكم حتى يامن جاره بوائقه ﴾ رسول الله ﷺ اکرام ضیف د ایمان تقاضا او ایذاء جار د ایمان منافی کړې دې. دا د اسلامی تعلیماتو یو نمونه ده کوم چه د دې اصل کلی د لاندې داخل دی. ﴿ الدين النصيحة ﴾ واعطاء کل ذی حق حقه..... د اسلام په محاسن کښې چه څومره غور اوکړې شی هغه به ښکاره کیږی، الله پاک دې مونږ ته د نعمت اسلام و ایمان او د باقی ټولو مادی او معنوی نعمتونو د شکر ادا کولو توفیق راکړی. والله تعالی الموفق.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الإِرْفَاهِ

### باب د ويښتو د ډيرو غوړولو د مما نعت بيان

[٤١٥٩] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّرَجُّلِ إِلَّا غِبًّا".

دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام هروخت دوختو ګومنزولو نه منع فرمائيلې ده مګر کله کله.

**﴿په ترجل او تسريح کښې فرق﴾**

قوله: ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ التَّرَجُّلِ إِلاَّ غِبًّا ﴾ ترجل او ترجيل د ويښتو برابرول د هغې اصلاح کول د امتشاط (ګومنځولو) په ذريعه. يو بل لفظ دې تسريح د هغې معنی هم دا ده خو د ترجل استعمال غالبا او اکثر د سر په ويښتو کښې کولې شي، او د تسريح استعمال په ګيره کښې. او د غب معنی دا ده چه يو کار يو ورځ پس اوکړې شي.

په دې حديث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ روزانه د ويښتو د ګومنځولو نه منع فرمائيلې ده ځکه چه روزانه ګومنځ کولو ته حاجت نشته او بغير د حاجت نه په تزيين کښې داخل دی او مبالغه فی التزيين ده او که د چا ويښته دومره وی چه روزانه د هغې د اصلاح ضرورت وی نو بيا روزانه کولو کښې هم څه باک نشته. (من المذل) والحديث اخرجه الترمذی والنسائي، قاله المنذری.

[٤١٦٠] (²) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحَلَ إِلَى فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ وَهُوَ بِمِصْرَ، فَقَدِمَ عَلَيْهِ فَقَالَ: أَمَا إِنِّي لَمْ آتِكَ زَائِرًا وَلَكِنِّي سَمِعْتُ أَنَا وَأَنْتَ حَدِيثًا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَوْتُ أَنْ يَكُونَ عِنْدَكَ مِنْهُ عِلْمٌ، قَالَ: وَمَا هُوَ؟ قَالَ: كَذَا وَكَذَا، قَالَ: فَمَا لِي أَرَاكَ شَعِثًا وَأَنْتَ أَمِيرُ الْأَرْضِ؟ قَالَ: "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْهَانَا عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الْإِرْفَاهِ، قَالَ: فَمَا لِي لَا أَرَى عَلَيْكَ حِذَاءً؟ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا أَنْ نَحْتَفِيَ أَحْيَانًا".

دعبدالله بن بريده نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام په صحابه کرامو کښې يو کس مصرته دفضاله بن عبيد سره دملاويدو دپاره سفر وکړو کله چه ورسره ملاو شونوورته ئې ووئيل چه زه تاته ستاد ملاقات په غرض باندې نه يم راغلې ليکن ما او تادواړو دنبي عليه السلام نه يوحديث اوريدلي وو، زما دا اميد ووچه تاته به دهغه حديث متعلق څه علم وي فضاله بن عبيدو ورنه تپوس وکړوچه هغه کوم يوحديث دي؟هغه ووئيل فلانی فلانی حديث اوفضاله نه ئې داتپوس هم وکړوچه داڅه وجه ده ويښته دي زه ګډوډ وينم اوحالانکه نه ديوملک امير ئې (داواقعه دهغه وخت ده کله چه فضاله بن عبيد دمصر ګورنروو) هغه

¹): سنن الترمذي/اللباس ٢٢ (١٧٥٦)، سنن النسائي/الزينة ٧ (٥٠٥٩)، (تحفة الأشراف: ٩٦٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٦/٤) (صحيح)

²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٠٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢/٦) (صحيح)

ووئیل چه مونږ به نبی ﷺ هروخت دوختوګومنز ولونه منع کولو، نوهغه بیافضاله ته ووئیل چه پیزار ولي نه په خپو کوي؟هغه ووئیل چه نبی ﷺ به مونږته کله کله دخپي ابله ګرځید وحکم کولو.

قوله: ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ أَنَّ رَجُلاً مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- رَحَلَ إِلَى فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ وَهُوَ بِمِصْرَ فَقَدِمَ عَلَيْهِ الخ﴾

## مضمون الحديث :

یعنی یو صحابی بل صحابی فضاله بن عبید ﷛ ته لاړو په داسې حال کښې چه هغه د مصر امیر وو، هغوی ته رسیدو سره هغوی اوفرمائیل چه زه تاسو ته صرف د زیارت او ملاقات دپاره نه یم راغلې بلکه ما او تاسو د رسول الله ﷺ نه یو حدیث اوریدلې دې نو په دې امید باندې راغلې یم چه تاسو سره به د دې حدیث علم وی (یا خو به د دوی نه هیر وی په دې وجه د هغې د معلومولو دپاره راغلو او یا د دې حدیث شرح او د بعض متعلقاتو د معلومولو دپاره راغلې وو) په دې باندې هغوی تپوس اوکړو چه هغه کوم حدیث دې نو هغوی اوفرمائیل چه داسې داسې دې (د دې نه پس به د دوی دواړه ترمینځه په دې باندې څه مذاکره هم شوې وی کومه چه دلته په دې روایت کښې نه ده ذکر شوې) ﴿قَالَ فَمَا لِي أَرَاكَ شَعِثًا وَأَنْتَ أَمِيرُ الأَرْضِ؟﴾ دې صحابی د فضاله ﷛ نه تپوس اوکړو چه زه تاسو وینم چه ویښته مو خوارۀ وارۀ دی حال دا چه تاسو د دې زمکې والی او قاضی یئ نو هغوی اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ به مونږ منع فرمائیلو د زیات ډول او زینت اختیارولو نه، ﴿عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الإِرْفَاهِ﴾ او په بعض نسخو کښې دی ﴿ الارفاء ﴾ او په یو نسخه کښې دی ﴿ الارفه ﴾ یعنی د ترفه او نازونعمت ژوند تیرولو نه، بیا هغوی د فضاله ﷛ نه تپوس اوکړو چه دا څه وجه ده چه ستاسو په خپو کښې پیزار هم نشته؟ نو هغوی جواب ورکړو چه ﴿قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَأْمُرُنَا أَنْ نَحْتَفِيَ أَحْيَانًا﴾ چه رسول الله ﷺ به مونږ ته حکم کولو چه کله کله مونږ خپې ابله هم ګرځو.

د دې کتاب تعلق چونکه د اسباب زینت سره دې هم په دې وجه مصنف ﷫ په شروع کښې د سادګئ او ترک تکلف والا روایت راوړې دې. چه دا خبرې په ذهن کښې ږدلو سره وړاندې تلل دی. فلله در المصنف....

[۴۱۶۱] (١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أُمَامَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: ذَكَرَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا عِنْدَهُ الدُّنْيَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا تَسْمَعُونَ أَلَا تَسْمَعُونَ إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ، إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ" يَعْنِي التَّقَحُّلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ أَبُو أُمَامَةَ بْنُ ثَعْلَبَةَ الْأَنْصَارِيُّ.

د ابوامامه ﷛ نه روایت دې فرمائي چه یوه ورځ صحابه کرامو دنبی ﷺ په وړاندې ددنیا ذکر کولونبی ﷺ ورته اوفرمائیل اياتاسونه آورئ اياتاسونه آورئ چه سادګي دايمان يوه

(١): سنن ابن ماجه/الزهد ٤ (٤١١٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٥) (صحيح)

حصه ده ، سادګي دايمان يوه حصه ده. امام ابوداؤد فرمائي چه ابوامامه بن ثعلبه مراد دي.
﴿ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ ذَكَرَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمًا عِنْدَهُ الدُّنْيَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَلاَ تَسْمَعُونَ أَلاَ تَسْمَعُونَ إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الإِيمَانِ ....الخ﴾

ابوامامه انصاري رضي الله عنه فرمائي چه يوه ورځ بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخکښ د دنيا تذکره اوکړه نو هغوی اوفرمائيل: خبردار واورئ په ښه طريقه ! دوه کرته ئې اوفرمائيل... بيشکه سادګي او تواضع او ترک تکلف د ايمان حصه ده، يعنی د ايمان په خصلتونو کښ يو خصلت دې. د ﴿ بذاذة ﴾ تفسير يعنی ﴿ التفحل ﴾ دا د مصنف رحمه الله د طرف نه دې د تفحل معنى د انسان د بدن اوچيدل د حال د خرابيدو په وجه بانديې، او کمزور او تپ کيدل، حضرت په بذل کښ ليکلي دی ﴿ وانما كان البذاءة من الايمان لانه يودى الى كسر النفس والتواضع ﴾ والحديث اخرجه ابن ماجه قاله المنذرى.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي اسْتِحْبَابِ الطِّيبِ

### باب د خوشبو استعمالولو د استحباب بيان

[٤١٦٢](1) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ شَيْبَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُخْتَارِ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُكَّةٌ يَتَطَيَّبُ مِنْهَا".

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چ دنبی عليه السلام مرکبه خوشبو وه اودهغې نه به ئې خوشبو لګوله.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَتْ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- سُكَّةٌ يَتَطَيَّبُ مِنْهَا ﴾ د سکة په تفسير کښ دوه قوله دی د يو مرکب خوشبوئ نوم دې، وقيل هى وعاء للطيب. يعنی عطردان د کوم نه چه به هغوی خوشبوئی لګوله. والحديث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي إِصْلَاحِ الشَّعْرِ

### باب د ويښتو سمولو بيان

[٤١٦٣](2) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ، فَلْيُكْرِمْهُ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی هرچاچه ويښته پريخودلي وي نو په ښه طريقه دې ئې اوساتي.

﴿ مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ فَلْيُكْرِمْهُ ﴾ د دې مضمون په شروع کښ راغلو.

---

(1): تفرد به أبو داود، سنن الترمذي/الشمائل (٢١٦)، (تحفة الأشراف: ١٦١١) (صحيح)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٩١) (حسن صحيح)

# بَابٌ فِي الْخِضَابِ لِلنِّسَاءِ

## دزنانو نکریزو بیان

[٤١٦٤] ([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي كَرِيمَةُ بِنْتُ هَمَّامٍ "أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْ خِضَابِ الْحِنَّاءِ، فَقَالَتْ: لَا بَأْسَ بِهِ وَلَكِنْ أَكْرَهُهُ، كَانَ حَبِيبِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ رِيحَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: تَعْنِي خِضَابَ شَعْرِ الرَّأْسِ.

دکریمه بنت همام رَحِمَهَا اللَّهُ نه روایت دې فرمائی چه یوه ښځه ام المومنین عائشة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته راغله اوتپوس ئې ورنه اوکړو دنکریزو دخضاب په باره کښې نوورته ئې اوفرمائیل په دې کښې څه حرج نشته لیکن زه ئې بدګنړم نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ به ددې بوې بدګنړلو.

﴿ أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - فَسَأَلَتْهَا عَنْ خِضَابِ الْحِنَّاءِ الخ ﴾

یوې زنانه د عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه تپوس اوکړو د نکریزو د رنګ په باره کښې، نو هغوی اوفرمائیل هیڅ باک پکښې نشته، خو زما خوښې نه دی، ځکه چه زما د محبوب رسول الله ﷺ د هغې بوئی ناخوښه وو.

خضاب د بدن هم وی او د ویښتو هم وی، د ویښتو هغه خو د سړو او ښځو دواړو دپاره جائز دې، خو د بدن خضاب لکه لاسونه او خپې هغه صرف د سړو په حق کښې مستحب دې. او د ښځو دپاره بغیر د حاجت او ضرورت نه حرام دې. او په ترجمة الباب کښې چونکه خضاب مقید کړې دې په للنساء سره په دې وجه مصنف رَحِمَهُ اللَّهُ د خضاب نه خضاب الجسم مراد اخستلې دې. (بذل) والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

[٤١٦٥] ([2]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَتْنِي غِبْطَةُ بِنْتُ عَمْرٍو الْمُجَاشِعِيَّةُ، قَالَتْ: حَدَّثَتْنِي عَمَّتِي أُمُّ الْحَسَنِ، عَنْ جَدَّتِهَا، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ بَايِعْنِي، قَالَ: "لَا أُبَايِعُكِ حَتَّى تُغَيِّرِي كَفَّيْكِ كَأَنَّهُمَا كَفَّا سَبُعٍ".

دعائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه روایت دې فرمائی چه هند بنت عتبه اووئیل اې دالله نبی زماسره بیعت وکړه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته اوفرمائیل تر هغې پورې درسره بیعت نه کوم ترڅوچه دې دخپلو لاسونو رنګ نه وې بدل کړې ستاددواړه لاسونو ورغوې داسې دی لکه د درندګانو ځناورو د ورغوو پشان.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ هِنْدًا بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ بَايِعْنِي الخ ﴾

### شرح الحدیث:

یعنی هنده بنت عتبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ ما سره بیعت اوکړئ (د رسول الله ﷺ نظر د هغې په لاسونو باندې پریوتلو په دې وجه) رسول الله ﷺ اوفرمائیل زه تاسره بیعت نه کوم تر څو چه تا په خپلو لاسونو باندې نکریزې نه وی لګولې، ځکه چه د نکریزو نه لګولو په وجه باندې هغه داسې معلومیږی چه دا د ځناور لاسونه دی.

[1]: سنن النسائي/الزينة ١٩ (٥٠٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٧/٦، ٢١٠) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٩٤) (ضعيف)

د زنانه په نکریزو نه لګولو کښې چونکه تشبه بالرجال ده په دې وجه د هغې په حق کښې مکروه دی.

**﴿نبی کریم ﷺ سره د ښځو بیعت کیدو طریقه﴾**

د رسول الله ﷺ بیعت به د زنانو سره بغیر د اخذ بالید او بغیر د مصافحې نه وو لکه چه په روایاتو کښې د دې تصریح ده لهذا ځوک دې د حدیث نه دا معنی فهم نه کړي چه د رسول الله ﷺ غرض دا وو چه د نکریزو نه مخکښې به زه مصافحه نه کوم، عائشه رضی الله عنها فرمائی ﴿ والله ما مس یده ﷺ ید امراءة قط ﴾ (بذل)

[٤١٦٦] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الصُّورِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا مُطِيعُ بْنُ مَيْمُونٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ عِصْمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "أَوْمَتِ امْرَأَةٌ مِنْ وَرَاءِ سِتْرٍ بِيَدِهَا كِتَابٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَبَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ، فَقَالَ: مَا أَدْرِي أَيَدُ رَجُلٍ أَمْ يَدُ امْرَأَةٍ؟ قَالَتْ: بَلِ امْرَأَةٌ، قَالَ: لَوْ كُنْتِ امْرَأَةً لَغَيَّرْتِ أَظْفَارَكِ يَعْنِي بِالْحِنَّاءِ".

د عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه یوې ښځې دپردې نه شاته په لاس باندې نبی علیه السلام ته اشاره وکړه نبی علیه السلام دهغې لاس اونیو او وئې فرمائیل زه نه پوهیږم چه دا دسړي لاس دې اوکه دښځې هغې اووئیل بلکه دښځې لاس دې نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې ته ښځه وې نوخپل نوکان به دې په نکریزو باندې رنګ کړي وې.

﴿عَنْ عَائِشَةَ – رضی الله عنها – قَالَتْ أَوْمَاتِ امْرَأَةٌ مِنْ وَرَاءِ سِتْرٍ بِيَدِهَا كِتَابٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ – صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ او د نسائی په روایت کښې دی ﴿ ان امراءة مدت یدها الی النبی ﷺ بکتاب ﴾ عائشه رضی الله عنها فرمائی چه یوې زنانه د پردې نه اخوا لاس راوړد کړو او رسول الله ﷺ ته ئې یو پرچه ورکوله. نو رسول الله ﷺ لاس راښکلو او د هغې پرچه ئې او نه نیوله په دې فرمائیلو سره چه نه معلومیږی چه دا د سړی لاس دې او که د ښځې، هغې عرض اوکړو: نه بلکه دا د زنانه لاس دې، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل که ته ښځه وې نو په خپلو نوکونو به دې نکریزې لګولې. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي صِلَةِ الشَّعْرِ

**باب د بل چا ویښته د خپلو ویښتو سره د یو ځای کولو بیان**

د صلة الشعر په حدیث کښې ممانعت راغلې دې ﴿ لعن رسول الله ﷺ الواصلة والمستوصلة ﴾ یعنی زنانه چه دخپل سرپه ویښتو کښې دخپلو کمسو د زیاتولو دپاره نورویښتو یوځائې کړی.

**په دې مسئله کښې مذاهب د ائمه:**

په ویښتو کښې ویښته یوځائې کول د امام مالک رحمه الله په نزد مطلقا منع دی او د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد ممانعت خاص دې د انسان د ویښتو سره، یعنی چه یو زنانه د بلې زنانه ویښته شامل کړی، دا ممنوع دی، او که د یو ځاروی وړئ وغیره شامل کړی نو د دې دواړو په نزد دا جائز ده. او هم دا د احنافو مذهب دې لکه چه په موطاء د امام محمد

(١): سنن النسائي/الزينة ١٨ (٥٠٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٦٢) (حسن)

کښې دی او هم دغه شان په در مختار کښې هم دی او د حضرت رائې هم په بذل المجهود کښې دا معلومیږی خو د حضرت گنگوهی میلان د مطلق منع طرف ته دې که هغه ویښته د یو انسان وی او که د یوې زنانه یا د یو څاروی.

[٤١٦٧] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ، وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَتَنَاوَلَ قُصَّةً مِنْ شَعَرٍ كَانَتْ فِي يَدِ حَرَسِيٍّ يَقُولُ: يَا أَهْلَ الْمَدِينَةِ أَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ؟ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْ مِثْلِ هَذِهِ وَيَقُولُ: "إِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ حِينَ اتَّخَذَ هَذِهِ نِسَاؤُهُمْ".

دحمید بن عبدالرحمن رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه دمعاویه بن ابوسفیان نه مې اوریدلی دی په هغه کال په کوم کال چه هغه حج کړې وو او هغه په منبر باندې وو او ددربان دلاس نه ئې یوموټې ویښته واخستل او وئې فرمائیل اې اهل مدینه ستاسو عالمان څه شول؟ مادنبی ﷺ نه آوریدلی دی چه ددینه ئې منع فرمائیل اودائې هم فرمائیل کله چه بنی اسرائیلی داکار شروع کړو نوهغوی تباه شول.

**قوله:** ﴿ أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ الخ ﴾

حمید بن عبدالرحمن وائی چه په کوم کال باندې معاویه رضی الله عنه د حج دپاره تشریف راوړلو نو هغوی په منبر باندې تقریر کولو سره د یو شرطی د لاس نه د ویښتو څیله واخستله او وې فرمائیل اې اهل مدینه ستاسو علماء څه شو؟ (کوم چه د وصل الشعر نه منع نه کوی) ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی چه هغوی به د دې نه منع فرمائیله، او فرمائیل به ئې چه د بنی اسرائیلو د هلاکت په اسبابو کښې یو سبب دا هم دې یعنی د زنانو په خپلو ویښتو کښې نور ویښته یوځائې کول.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[٤١٦٨] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ".

د عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم و په هغه ښځه باندې لعنت وئیلې دې څوک چه دخپلوویښتو سره دبل چا ویښته ولګوي اوپه خال لګونکي باندې او چاچه خال لګول ري.

﴿عن عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَعَنَ اللَّهِ - الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ ﴾

[1]: صحيح البخاري/الأنبياء ٥٤ (٣٤٦٨)، واللباس ٨٣ (٥٩٣٢)، صحيح مسلم/اللباس ٣٣ (٢١٢٧)، سنن الترمذي/الأدب ٣٢ (٢٧٨١)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ١٣ (٥٢٤٧)، (تحفة الأشراف: ١١٤٠٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الشعر ١ (٢)، مسند احمد (٤/٩٥، ٩٧، ٩٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/اللباس ٨٣ (٥٩٣٧)، ٨٥ (٥٩٤٠)، ٨٧ (٥٩٤٧)، صحيح مسلم/اللباس ٣٣ (٢١٢٤)، سنن الترمذي/اللباس ٢٥ (١٧٥٩)، الأدب ٣٣ (٢٧٨٣)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ١٧ (٥٢٥٣)، سنن ابن ماجه/النكاح ٥٢ (١٩٨٧)، (تحفة الأشراف: ٨١٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢١) (صحيح)

## مضمون الحديث :

د عبدالله بن مسعود ﷛ نه روايت دې چه الله پاک لعنت کوی په واشمات او مستوشمات، او واصلات باندې او متنمصات باندې.

دمتنمصات تفسير وړاندې په متن کښې مصنف ﷫ کړې دې : التى تنفس الحاجب حتى ترقه... يعنى هغه زنانه چه د وريزو نه ويښته اوباسی د هغې د نرئ کولو دپاره، او د متفلجات نه مراد هغه زنانه دی چه د خپلو غاښونو ترمينځه فلج يعنى فصل کوی، کوم چه عام طور سره د کم عمره جينکو په غاښونو کښې وی. المغيرات خلق الله په دې کښې علة د منع ته اشاره ده چه په دې کارونو کښې تغير د خلق الله موندلې شی، يعنى کوم څيز چه الله پاک څنګه پيدا کړې دې او هغه څيز د عادت مطابق هم دې په هغې کښې د خپل طرف نه تغيرکول،اوکه دعادت خلاف په چا کښې يو څيز پيدا کړې شی لکه زياتی ګوته، ياد زنانه په مخ باندې د ګيرې راتلل، نو دهغې لرې کول په دې کښې داخل نه دی. (بذل)

وړاندې په روايت کښې دی چه يوې زنانه چه د هغې کنيت ام يعقوب دې چه هغې ته کله د ابن مسعود ﷛ دا خبره اورسيده نو هغه هغوی ته راغله او راتلو سره ئې د اعتراض په طور اووې چه تا په دې زنانو باندې لعنت کړې دې څه خبره ده؟ نو هغوی جواب ورکړو چه زه به په هغه چا لعنت ولې نه وايم په چا باندې چه رسول الله ﷺ لعنت کړې وی او قرآن پرې لعنت کړې وی هغه زنانه اووې چه ما خو قرآن لوستلې دې په دې کښې خو چرته هم لعنت نشته په هغوی باندې، نو هغوی جواب ورکړو چه آيا تا په قرآن کريم کښې نه دی لوستلې چه : ﴿ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا ﴾ بيا هغې اووې چه ستا ښځه هم په دې کښې بعض کارونه کوی، نو هغوی اوفرمائيل چه لاړه شه اوګوره، هغه لاړه او ئې کتل او وې وئيل چه اوس خو داسې نه ده نو هغوی اوفرمائيل : ﴿ لَوْ كَانَ ذَلِكَ مَا كَانَتْ مَعَنَا ﴾ که هغې داسې کړې وې نو مونږ سره نه شوه اوسيدې.

[٤١٦٩](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَالْوَاصِلَاتِ، وَقَالَ عُثْمَانُ: وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، ثُمَّ اتَّفَقَا: وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَبَلَغَ ذَلِكَ امْرَأَةً مِنْ بَنِي أَسَدٍ يُقَالُ لَهَا: أُمُّ يَعْقُوبَ زَادَ عُثْمَانُ كَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ ثُمَّ اتَّفَقَا، فَأَتَتْهُ فَقَالَتْ: بَلَغَنِي عَنْكَ أَنَّكَ لَعَنْتَ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَالْوَاصِلَاتِ، وَقَالَ عُثْمَانُ: وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، ثُمَّ اتَّفَقَا: وَالْمُتَفَلِّجَاتِ، قَالَ عُثْمَانُ: لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ تَعَالَى، فَقَالَ: وَمَالِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي كِتَابِ اللَّهِ تَعَالَى، قَالَتْ: لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ لَوْحَيِ الْمُصْحَفِ فَمَا وَجَدْتُهُ، فَقَالَ: وَاللَّهِ لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ ثُمَّ قَرَأَ: وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا سورة الحشر آية ٧، قَالَتْ: إِنِّي أَرَى بَعْضَ هَذَا عَلَى امْرَأَتِكَ، قَالَ: فَادْخُلِي فَانْظُرِي، فَدَخَلَتْ ثُمَّ

[1]): صحيح البخاري/تفسير سورة الحشر ٤ (٤٨٨٦)، اللباس ٨٢ (٥٩٣١)، ٨٤ (٥٩٣٩)، ٨٥ (٥٩٤٣)، ٨٦ (٥٩٤٤)، ٨٧ (٥٩٤٨)، صحيح مسلم/اللباس ٣٣ (٢١٢٥)، سنن الترمذي/الأدب ٣٣ (٢٧٨٢)، سنن النسائي/الزينة ٢٤ (٥١٠٢)، ٢٦ (٥١١٠، ٥١١١)، الزينة من المجتبى ١٨ (٥٢٥٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ٥٢ (١٩٨٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٠٩، ٤١٥، ٤٣٤، ٤٤٨، ٤٥٤، ٤٦٢، ٤٦٥)، سنن الدارمي/الاستئذان ١٩ (٢٦٨٩) (صحيح)

خَرَجْتُ، فَقَالَ: مَا رَأَيْتِ؟ وَقَالَ عُثْمَانُ: فَقَالَتْ: مَا رَأَيْتُ، فَقَالَ: لَوْكَانَ ذَلِكَ مَا كَانَتْ مَعَنَا".

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه الله تعالى په هغه ښځو باندې لعنت کړې دې څوک چه خال لګونکې وې اوچاچه خالونه لګولې وې اود محمد په روايت کښې واصلات لفظ ذکردې يعنى چاچه دخپلو ويښتوسره نور ويښته يوځاى کړې وى اودعثمان په روايت کښې والمتنمصات يعنى په هغه ښځوهم لعنت دې څوک چه خپل ويښته اوباسي په باقى روايت کښې دواړه راويان متفق دي اودښائسته کيدو دپاره خپل غاښونه کولارونکې هم په لعنت والاښځوکښې داخل وې اودالله تعالى جوړ کړې شوې شکل اوصورت بدلوي ، راوى وائى دقبيله بن اسد يوه ښځه چه نوم ئې ام يعقوب وو ماته داخبر راورسيدو چه هغه ښځه قران کريم وائى او عبدالله بن مسعود و ته راغله او وئې وئيل چه تاپه خال لګونکې ښځه باندې لعنت وئيلې دې او په هغه چاباندې هم چاچه خالونه لګولې وي محمدبن عيسى داهم وئيلى دى اودخپلوويښتوسره دنورو ويښتو په يوځائې کونکې باندې هم اودعشان په روايت کښې دى دويښتوپه ويستونکې باندې هم اودغاښونو په نري کونکې باندې هم، دعثمان په روايت کښې دى چاچه دحسن اوجمال دپاره دالله تعالى جوړ کړې شوې شکل اوصورت بدل کړې وي عبدالله بن مسعود و اوفرمائيل زه به پرې ولې لعنت نه وايم په چاباندې چه نبى عليه السلام لعنت وئيلې دې اوهغه د قران کريم په اعتبارسره هم دلعنت مستحق ده هغې ښځې اووئيل چه ماددواړو ګتوبه مينځ کښې قران کريم لوستلې دې ليکن داخبره په کښې مانه ده موندلې عبدالله به ورته اووئيل که چرې تادالله کتاب په غور وفکر سره تلاوت کړې وې نوخامخا به درته داحکم ملاو شوې وو، اوبيا ئې دا ايت کريمه اووئيلو: «وما آتاكم الرسول فخذوه وما نهاكم عنه فانتهوا» هغې اووئيل ماستا ښځه ليدلې وه چه دا کارونه ئې کړې وو هغه ورته اووئيل ډيره ښه ده ته دننه لاړه شه او وبې ګوره هغه دننه لاړه اوبيا راغله او وى وئيل مالى هم نشته عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اووئيل چې هغې داسې کړې وې نوستا سره به نه وې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٤١٧٠](¹) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ أُسَامَةَ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مُجَاهِدِ بْنِ جَبْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لُعِنَتِ الْوَاصِلَةُ وَالْمُسْتَوْصِلَةُ وَالنَّامِصَةُ وَالْمُتَنَمِّصَةُ وَالْوَاشِمَةُ وَالْمُسْتَوْشِمَةُ مِنْ غَيْرِ دَاءٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَتَفْسِيرُ الْوَاصِلَةِ الَّتِي تَصِلُ الشَّعْرَ بِشَعْرِ النِّسَاءِ وَالْمُسْتَوْصِلَةُ الْمَعْمُولُ بِهَا، وَالنَّامِصَةُ الَّتِي تَنْقُشُ الْحَاجِبَ حَتَّى تُرِقَّهُ وَالْمُتَنَمِّصَةُ الْمَعْمُولُ بِهَا، وَالْوَاشِمَةُ الَّتِي تَجْعَلُ الْخِيلَانَ فِي وَجْهِهَا بِكُحْلٍ أَوْ مِدَادٍ وَالْمُسْتَوْشِمَةُ الْمَعْمُولُ بِهَا.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى فرمائي چه دو يختوبه يوځائې کونکې او لګونکې باندې اودتندې دوختر ويستونکې اود چندباره چه ويستلې شي اوخال لګونکې اودچادپاره چه حال لګولې شي کوم چه دعذرنه بغيروې پدوى د الله تعالى لعنت دې، امام ابوداؤد فرمائى چه واصله هغه چاته وئيلې شي څوک چه دنوروزنانوو دويتوسره نور ريختـه يوځاى کوي، اونامصه هغه چاته وتلې شي غاښونه نري کوي او متنمصه هغه چاته وئيلې شي

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٧٨) (صحيح)

دچاغابنونه چه نري کولې شي اوواشمه خال لګونکي ته وائی اومستوشمه هغه چاته وئیلې شي دچاسره چه دا کارکیږی ، ابوداؤد وائی چه احمد وئیلی دی په کوم شي باندې دویښتو په تړلو کښې څه حرج نشته.

وړاندې په کتاب کښې مصنف رحمه الله خپله د خپل طرف نه د هغه الفاظو کوم چه په حدیث کښې راغلې دی تفسیر او تشریح کړې ده او د هغې په آخر کښې دی

[٤١٧١](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: "لَا بَأْسَ بِالْقَرَامِلِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَأَنَّهُ يَذْهَبُ إِلَى أَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ شُعُورُ النِّسَاءِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ أَحْمَدُ يَقُولُ الْقَرَامِلُ لَيْسَ بِهِ بَأْسٌ.

سعید بن جبیر وائی چه دویختر په تړلوکښې څه حرج نشته ابوداؤد وائی چه اند وئیلی دی په کوم شي باندې دویختو په تړلوکښې څه حرج نشته.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ كَانَ أَحْمَدُ يَقُولُ الْقَرَامِلُ لَيْسَ بِهِ بَأْسٌ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله د خپل استاد امام احمد بن حنبل رحمه الله رائې نقل فرمائی چه په قرامل یعنی د پیوی په اچولو کښې هیڅ باک نشته. یعنی زنانه که په خپلو ویښتو کښې د یو ځناور وړئ یعنی د وړئ پیوې یا ریښمی پیوې یو ځائې کړی نو په دې کښې هیڅ باک نشته، ګویا منع د شعر النساء په یو ځائې کولو کښې ده. (د دې مسئلې تشریح په شروع کښې تیره شوې ده)

## بَابٌ فِي رَدِّ الطِّيبِ

### د خوشبو د واپس کولو بیان

[٤١٧٢](۲) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمَعْنَى، أَنَّ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِءَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ طِيبٌ فَلَا يَرُدَّهُ فَإِنَّهُ طَيِّبُ الرِّيحِ خَفِيفُ الْمَحْمَلِ".

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چاته چه خوشبو پیش کړې شي نوهغه دې نه واپس کوي ځکه چه ددې بوي ښکلې دې او وزن ئې سپک دې،

﴿ مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ طِيبٌ فَلَا يَرُدَّهُ فَإِنَّهُ طَيِّبُ الرِّيحِ خَفِيفُ الْمَحْمَلِ ﴾

یعنی په کوم سړی چه خوشبوئی یعنی عطر وغیره پیش کړې شی یعنی هدیة نو هغه دې نه واپس کوی، ځکه چه دا داسې هدیه ده چه د هغې بوئی ډیر عمده دې (چه هغې طرف ته د انسان طبیعت مائل کیږی) او په اوچتولو کښې سپک دې، په دې حیثیت سره هم سپک دې چه وزنی څیز نه دې او دې حیثیت سره هم چه ډیر قیمتی څیز نه دې چه د هغه د احسان بوجه اوچتول وی، عام طور سره دا څیزونه یو بل ته هدیه کولې شی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، ولفظ مسلم ﴿ من عرض علیه ریحان ﴾ قاله المنذری.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۶۷۹) (ضعیف منکر)

(۲): صحیح مسلم/الألفاظ من الأدب ٥ (۲۲۵۳)، سنن النسائي/الزینة من المجتبی ۲۰ (۵۲۶۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹٤۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۲۰) (صحیح)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ تَتَطَيَّبُ لِلْخُرُوجِ

### باب: کومه ښځه چه د کور نه د وتلو دپاره خوشبو لګوی

[٤١٧٣] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، أَخْبَرَنَا ثَابِتُ بْنُ عُمَارَةَ، حَدَّثَنِي غُنَيْمُ بْنُ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا اسْتَعْطَرَتِ الْمَرْأَةُ فَمَرَّتْ عَلَى الْقَوْمِ لِيَجِدُوا رِيحَهَا فَهِيَ كَذَا وَكَذَا، قَالَ: قَوْلًا شَدِيدًا".

دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی کله چه یوه ښځه عطر استعمال کړې اوبیا دسړوپه مینځ کښې تیرېږي ددې دپاره چه په سړوباندې ددې خوشبو ورشي نوهغه زنانه داسې ده یعنی نبی علیه السلام دیره بده وګڼړله.

په حدیث الباب کښې زنانه په سختئ سره منع کړې شوې دی، د دې خبرې نه چه کله هغه د څه ضرورت دپاره د کور نه بهر تشریف اوړی نو خوشبوئی دې نه لګوی او هم دغه شان په احادیثو کښې په طیب الرجال او طیب النساء کښې دا فرق بیان کړې شوې دې چه په اول کښې خوشبوئی کیدل پکار دی رنګ دې پکښې نه وی او په دویم کښې رنګ وی خوشبوئی نه وی.

الحدیث الاول حدیث ابی موسی رضی الله عنه اخرجه الترمذی والنسائی، ولفظ النسائی، فهی زانیة.

[٤١٧٤] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عُبَيْدٍ مَوْلَى أَبِي رُهْمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَقِيَتْهُ امْرَأَةٌ وَجَدَ مِنْهَا رِيحَ الطِّيبِ يَنْفَحُ وَلِذَيْلِهَا إِعْصَارٌ، فَقَالَ: يَا أَمَةَ الْجَبَّارِ جِئْتِ مِنَ الْمَسْجِدِ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: وَلَهُ تَطَيَّبْتِ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ حِبِّي أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ لِامْرَأَةٍ تَطَيَّبَتْ لِهَذَا الْمَسْجِدِ حَتَّى تَرْجِعَ فَتَغْتَسِلَ غُسْلَهَا مِنَ الْجَنَابَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الْإِعْصَارُ غُبَارٌ.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوه زنانه راسره مخامخ شوه چه خوشبوئي ورنه روانه وه اودهغې لمن هوا الوزوله هغه ورته اووئیل اې دجبار وینځې ته دجومات نه راغلې؟ هغې اووئیل هو، ابوهریره ورته اووئیل ایا خوشبودې لګولې ده هغې اووئیل هو، ابوهریره اوفرمائیل مادنبي کریم نه آوریدلی دی کوم چه زمادوست وو هغه فرمائیل کوي زنانه چه خوشبو لګولې وي اومسجد ته داخله شي نودهغې مونځ نه کیږی ترڅوچه هغه کورته نه وي تلې اودجنابت په شان غسل ئې نه وي کړې.

[٤١٧٥] (٣) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَبُو عَلْقَمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ خُصَيْفَةَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُورًا فَلَا تَشْهَدَنَّ مَعَنَا الْعِشَاءَ"، قَالَ ابْنُ نُفَيْلٍ: عِشَاءَ الْآخِرَةِ.

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی کوي ښځې چه دخوشبو

---

(١): سنن الترمذي/الأدب ٣٥ (٢٧٨٦)، سنن النسائي/الزينة ٣٥ (٥١٢٩)، (تحفة الأشراف: ٩٠٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٠٠، ٤١٤، ٤١٨) (حسن)

(٢): سنن ابن ماجه/الفتن ١٩ (٤٠٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٤١٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٦، ٢٩٧، ٣٦٥، ٤٤٤، ٤٦١) (صحيح)

(٣): صحيح مسلم/الصلاة ٣٠ (٤٤٤)، سنن النسائي/الزينة ٣٧ (٥١٣١)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٤) (صحيح)

سپړې کړې وی هغه دي زمونږ سره د ماخوستن په مونځ کښې نه شامليږي.

والحديث الثاني حديث ابي هريرة رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه، والحديث الثالث حديث ابي هريرة ايضا اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْخَلُوقِ لِلرِّجَالِ

### باب د سړو دپاره د خلوق (خوشبو) د استعمالولو بیان

خلوق د يو مرکب خوشبويئ نوم دې کومه چه د زعفران وغيره نه جوړيږی هم په دې وجه رنګداره وی، د جمهورو په نزد د سړو په حق کښې ممنوع ده او د امام مالک رحمه الله په نزد مباح ده لکه چه په کتاب النکاح کښې باب قلة المهر کښې ﴿ رای عبدالرحمن بن عوف وعليه ردع زعفران الحديث ﴾ په شرح کښې تیر شوي دي.

[٤١٧٦]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: "قَدِمْتُ عَلَى أَهْلِي لَيْلًا وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَايَ، فَخَلَّقُونِي بِزَعْفَرَانٍ، فَغَدَوْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ، وَلَمْ يُرَحِّبْ بِي، وَقَالَ: اذْهَبْ فَاغْسِلْ هَذَا عَنْكَ، فَذَهَبْتُ فَغَسَلْتُهُ ثُمَّ جِئْتُ وَقَدْ بَقِيَ عَلَيَّ مِنْهُ رَدْعٌ فَسَلَّمْتُ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَلَمْ يُرَحِّبْ بِي، وَقَالَ: اذْهَبْ فَاغْسِلْ هَذَا عَنْكَ، فَذَهَبْتُ فَغَسَلْتُهُ ثُمَّ جِئْتُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ عَلَيَّ وَرَحَّبَ بِي، وَقَالَ: إِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَحْضُرُ جَنَازَةَ الْكَافِرِ بِخَيْرٍ وَلَا الْمُتَضَمِّخَ بِالزَّعْفَرَانِ وَلَا الْجُنُبَ، قَالَ: وَرَخَّصَ لِلْجُنُبِ إِذَا نَامَ أَوْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ أَنْ يَتَوَضَّأَ".

دعمار بن یاسر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائی چه زه خپل کورته دشپې راغلم او لاسونه مې چاودلي وو نوکوروالا زما په لاسونو باندې د زعفرانو خلوق ولګول کله چه سحرشونودنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اسلام مې ورباندې واچولو ماته ئې دسلام جواب رانکړو اونه ئې راته پخير راغلې اووئيل ، اوونې فرمائيل لاړ شه اودا ووينځه زه لاړم ما چه اووينځل نوبيا راغلم اسلام مې واچولو ماته ئې دسلام جواب راکړو او پخير راغلې يي راته اووئيل اوبيا ئې اوفرمائيل يقينا فرشتې پخير سره دکافرجنازې ته نه حاضريږي اونه په زعفرانو باندې لهلې شوي ته اونه جنب ته ، راوی وائی اجازت ئې ورکړو دجنب دپاره کله چه اوده شي ياخوراک اوکړي ياڅکل اوکړي ددې خبرې چه اودس به کوي.

﴿ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قَدِمْتُ عَلَى أَهْلِي لَيْلاً وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَایَ فَخَلَّقُونِي بِزَعْفَرَانٍ الخ ﴾

سيدنا عمار بن ياسر رضي الله عنهما فرمائی چه زه د خپل کار نه فارغ کيدو سره چه د شپې يا ماښام خپل کور ته اورسيدم نو (د يخنئ او د محنت په وجه) زما لاسونه چودلې وو نو زما د کور خلقو زما په لاسونو باندې خلوق يعنی زعفران والا خوشبوئی اولګوله (دواء وعلاجا) سحر چه کله زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم او سلام مې اوکړو (نو چونکه د هغوی په جامه او بدن باندې زعفرانی رنګ ښکاره کيدو) رسول الله صلی الله علیه وسلم زما د سلام جواب رانکړو او نه ئې مرحبا اووې، او وئې فرمائيل چه لاړ شه او دا وينځه، زه فورا لاړم او هغه مې وينځلو او سلام کولو سره کيناستلم هغه وخت هم رسول الله صلی الله علیه وسلم زما د سلام جواب رانکړو ځکه چه د هغې اثر لا باقی وو، او بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه لاړ شه او دا وينځه، زه

(): تفرد به أبوداود (تحفة الأشراف: ١٠٣٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٠/٤) وأعاد المؤلف بعضه في السنة (٤٦٠١) (حسن)

لاړم او ومې وینځلو بیا راغلم دې وخت کښې رسول اللهﷺ زما د سلام جواب راکړو او مرحبا ئې اوئیل، او وې فرمائیل چه بیشکه د خیر ملائک نه خو د کافر په جنازه کښې شریکیږی او نه د زعفران خوشبوئی لګونکی په جنازه کښې، او نه جنبی ته حاضریږی.

د دې نه روستو روایت کښې دی ﴿ ثَلاثَةٌ لاَ تَقْرَبُهُمُ الْمَلاَئِكَةُ جِيفَةُ الْكَافِرِ وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ وَالْجُنُبُ إِلاَّ أَنْ يَتَوَضَّأَ ﴾

[٤١٨٠] ([1]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأُوَيْسِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ثَلَاثَةٌ لَا تَقْرَبُهُمُ الْمَلَائِكَةُ: جِيفَةُ الْكَافِرِ، وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ، وَالْجُنُبُ إِلَّا أَنْ يَتَوَضَّأَ".

دعمار بن یاسر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم فرمائیلی دی درې کسان داسې دی چه فرښته ورته نه نزدې کیږی یو دکافر مړې ته او بل هغه کس دې چه خلوق ئې لګولې وې او بل جنب دې چه اودس ئې نه وې کړې.

## د جنبی د اودس یوه خاص فائده:

یعنی جنبی که صرف اودس اوکړی او غسل موخر کړی د مانځه د وخته پورې نو بیا په دې کښې هیڅ نقصان نشته ملائک هغه ته راځی، دا مضمون او د دې حدیث حواله په کتاب الطهارة باب ما فی الجنب یوخر الغسل کښې تیر شوې دې، چه د هغې لفظ دا وو لا تدخل الملائکة بیتا فیه صورة ولا کلب ولا جنب... هلته مونږ دا لیکلی دی چه که جنبی اودس اوکړی نو بیا د هغه دا حکم نه دې لکه چه د موجوده باب په حدیث کښې دی.

[٤١٧٧] ([2]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ عَطَاءِ ابْنِ أَبِي الْخُوَارِ، أَنَّهُ سَمِعَ يَحْيَى بْنَ يَعْمَرَ يُخْبِرُ، عَنْ رَجُلٍ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، زَعَمَ عُمَرُ: أَنَّ يَحْيَى سَمَّى ذَلِكَ الرَّجُلَ، فَنَسِيَ عُمَرُ اسْمَهُ أَنَّ عَمَّارًا، قَالَ: تَخَلَّقْتُ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ بِكَثِيرٍ فِيهِ ذِكْرُ الْغُسْلِ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ: وَهُمْ حُرُمٌ؟ قَالَ: لَا، الْقَوْمُ مُقِيمُونَ.

دعمار بن یاسر نه همدا رنګې روایت منقول دې لیکن اولنې روایت کامل دې او په دې روایت کښې دغسل ذکر نشته ابن جریج وئیلی دی چه ما عمر بن یحي ته اووئیل ایا په دې وخت کښې خلق داحرام په حالت کښې وو؟ هغه اووئیل نه، بلکه ټول خلق پخپلو کورونو کښې مقیم وو.

[٤١٧٨] ([3]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ الْأَسَدِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَرْبٍ الْأَسَدِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ الرَّازِيُّ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ جَدَّيْهِ، قَالَا: سَمِعْنَا أَبَا مُوسَى، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَقْبَلُ اللَّهُ تَعَالَى صَلَاةَ رَجُلٍ فِي جَسَدِهِ شَيْءٌ مِنْ خَلُوقٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: جَدَّاهُ زَيْدٌ، وَزِيَادٌ.

دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول کریمﷺ فرمائیلی دی دهغه کس مونځ نه قبلیږې دچا په جسم باندې چه لږ غوندې خلوق هم لګیدلې وې امام ابوداؤد وائی چه دده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٤٧) (حسن)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧٦) (حسن)
[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٩١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٣/٤) (ضعيف)

دنیکه اونیانوم زید او زیاد دي.

﴿ عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ جَدَّيْهِ قَالاَ سَمِعْنَا أَبَا مُوسَى يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لاَ يَقْبَلُ اللَّهُ صَلاَةَ رَجُلٍ فِي جَسَدِهِ شَيْءٌ مِنْ خَلُوقٍ». قَالَ أَبُو دَاوُدَ جَدَّاهُ زَيْدٌ وَزِيَادٌ ﴾ دا حديث ربیع بن انس د خپلو جدینو نه روایت کوی لکه چه پورته په سند کښ راغلل یعنی د مور د پلار او د پلار د پلار نه...... مصنف رحمه الله فرمائی چه په هغوی کښ د یو نوم زید او د بل نوم زیاد دي.

[۴۱۷۹](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ حَمَّادَ بْنَ زَيْدٍ، وَإِسْمَاعِيلَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَاهُمْ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّزَعْفُرِ لِلرِّجَالِ"، وَقَالَ عَنْ إِسْمَاعِيلَ، أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ.

دانس رضی الله عنه نه روایت فرمائی چه رسول الله و منع فرمائیلي ده ددینه چه سړي زعفران ولګوي او داسماعیل راوی نه «أن يتزعفر الرجل» الفاظ منقول دي.

[۴۱۸۱](٢)حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الْهَمْدَانِيِّ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ، قَالَ: "لَمَّا فَتَحَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ جَعَلَ أَهْلُ مَكَّةَ يَأْتُونَهُ بِصِبْيَانِهِمْ، فَيَدْعُو لَهُمْ بِالْبَرَكَةِ وَيَمْسَحُ رُءُوسَهُمْ، قَالَ: فَجِيءَ بِي إِلَيْهِ وَأَنَا مُخَلَّقٌ فَلَمْ يَمَسَّنِي مِنْ أَجْلِ الْخَلُوقِ".

دولید بن عقبه نه روایت دي فرمائی هرکله چه نبی علیه السلام مکه فتح کړه نودمي خلقوبه ورته خپل ماشومان راوستل نبی علیه السلام به هغوی ته دبرکت دپاره دعا کوله او ددوی په سرونوبه ئي لاس راښکلو ، راوی وائی چه یوځل ورته زه راوستلی شوم اوماخلوق لګولي وو نودخلوق په وجد ئي پد ماباندي لاس رانښکلو.

**قوله:**﴿ عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ قَالَ لَمَّا فَتَحَ نَبِيُّ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مَكَّةَ جَعَلَ أَهْلُ مَكَّةَ يَأْتُونَهُ بِصِبْيَانِهِمْ فَيَدْعُو لَهُمْ بِالْبَرَكَةِ وَيَمْسَحُ رُءُوسَهُمْ قَالَ فَجِيءَ بِي إِلَيْهِ وَأَنَا مُخَلَّقٌ فَلَمْ يَمَسَّنِي مِنْ أَجْلِ الْخَلُوقِ ﴾ یعنی د فتح مکي په ورځ باندي ډیر خلق (یعنی مسلمة الفتح کښ) خپلو بچو لره د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښ راوستل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به د هغوی دپاره دعا فرمائیله د برکت او خپل لاس مبارک به ئي د هغوی په سرونو باندي راښکلو. دا ولید بن عقبه رضی الله عنه د حدیث راوی فرمائی چه زه هم راوستلي شوم هغوی خو په ما باندي خلوق لګیدلي وو نو په دي وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم زما په سر باندي خپل لاس مبارک رانښکلو.

[۴۱۸۲](٣)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا سَلْمٌ الْعَلَوِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ أَثَرُ صُفْرَةٍ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَلَّمَا يُوَاجِهُ رَجُلًا فِي وَجْهِهِ بِشَيْءٍ يَكْرَهُهُ، فَلَمَّا خَرَجَ، قَالَ: لَوْ أَمَرْتُمْ هَذَا أَنْ يَغْسِلَ هَذَا عَنْهُ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه یوکس دنبی علیه السلام په خدمت کښي حاضر

[1]: صحيح مسلم/اللباس ٢٣ (٢١٠١)، سنن الترمذي/الأدب ٥١ (٢٨١٥)، سنن النسائي/الحج ٤٣ (٢٧٠٧)، الزينة من المجتبى ١٩ (٥٢٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٠١١، ٩٩٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ٣٣ (٥٨٤٦) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٧٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢/٤) (منكر)

[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٨٦٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/ الشمائل ٣٤٦)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٢٣٥)، وأعاده المؤلف في الأدب (٤٧٨٩)، مسند احمد (١٣٣/٣، ١٥٤، ١٦٠) (ضعيف)

شواوپه هغه باندې دزيږوالي اثر وو، اونبی ﷺ به ډير کم دهغه کس سره مخامخ کيدو دچاپه مخ چه به داسې يوشې وو چه هغه به بد ګڼړلو، نوهرکله چه اوړتو نورې فرمائيل که چرې تاسوده ته حکم کړې وې چه دا زيږوالي دځان نه اووينځي نوبهتره به وه.

﴿ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا سَلْمٌ الْعَلَوِيُّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَجُلاً دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعَلَيْهِ أَثَرُ صُفْرَةٍ الخ ﴾

د حديث مضمون واضح دې، دا حديث هم په دې سند سره په كتاب الادب، باب فى حسن المعاشرة كښې راروان دې او هلته دا زيادت دې ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَلْمٌ لَيْسَ هُوَ عَلَوِيًّا كَانَ يُبْصِرُ فِى النُّجُومِ الخ ﴾ يعنې په سند كښې چه كوم سلم علوى راوى راغلې دې هغوى ته علوى د دې معنى په لحاظ سره نه شي وئيلې كيدې چه هغوى خپله د علي رضی الله عنه په اولاد كښې دى بلكه دا د علو نه دې دا د علم نجوم نه واقف وو ګويا نجومى وو په دې وجه هغوى ته علوى وائى.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الشَّعْرِ

### باب د ويښتو ساتلو بيان

[٤١٨٣] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ مِنْ ذِي لِمَّةٍ أَحْسَنَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، زَادَ مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لَهُ شَعْرٌ يَضْرِبُ مَنْكِبَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا رَوَاهُ إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: يَضْرِبُ مَنْكِبَيْهِ، وَقَالَ شُعْبَةُ: يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ.

دبراء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه ما په سره جوړه كښې داسې څوک نه دى ليدلي چه دغوږونو پورې ويښته ئې پريښي وي اودنبى ﷺ نه ښكلى وي محمد بن سليمان په خپل روايت كښې دا اضافه كړې ده چه دومره ويښته ئې ساتلي ووچه غوږونوته رسيدل. امام ابوداؤد فرمائى چه همدارنګې دا روايت اسرائيل داسحاق نه نقل كړې دې اووئيلي ئې دي چه دسرويښته ئې غوږونونه رسيدل، اوشعبه وئيلى دى چه دغوږونونرموته رسيدل.

﴿ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ مَا رَأَيْتُ مِنْ ذِى لِمَّةٍ أَحْسَنَ فِى حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- زَادَ مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لَهُ شَعْرٌ يَضْرِبُ مَنْكِبَيْهِ. وَقَالَ شُعْبَةُ يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ ﴾

سيدنا براء رضی الله عنه فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ په شان ويښته پريخودونكې چه په سره جوړه كښې وى زيات ښكلې نه دې ليدلې هم په دې روايت كښې وراندې يو راوى د رسول الله ﷺ د ويښتو مباركو په باره كښې دا بيان كړې ده چه د رسول الله ﷺ د سر مبارک ويښته به اوږو پورې لګيدل، او بل راوى اووې چه د دواړو غوږونو مباركو د غاړو پورې، او د دې نه پس د انس رضی الله عنه په روايت كښې راځى چه ﴿ الى انصاف اذنيه ﴾ دا ټول روايات په

(١): صحيح مسلم/الفضائل ٢٥ (٢٣٣٧)، سنن الترمذي/اللباس ٤ (١٧٢٤)، الأدب ٤٧ (٢٨١١)، المناقب ٨ (٣٦٣٥)، الشمائل ١ (٣)، ٣ (٢٥)، سنن النسائي/الزينة ٩ (٥٠٦٣)، الزينة من المجتبى ٥ (٥٢٣٥)، ٣٩ (٥٣١٦)، (تحفة الأشراف: ١٨٤٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المناقب ٢٣ (٣٥٥١)، واللباس ٣٥ (٥٨٤٨)، ٦٨ (٥٩٠٣)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٠ (٣٥٩٩)، مسند احمد (٢٨١/٤، ٢٩٥) (صحيح)

اختلاف د اوقاتو او اختلاف د زمان باندې محمول دی. په يو وخت باندې نه چه څوک ئې تعارض اوګنړی.

[٤١٨٤] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ شَعْرٌ يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ".

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی کريم ﷺ ويښته دغوږونو نرموته رسيدل.

[٤١٨٥] (٢) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ شَعْرُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام دسرويخته دغوږونونرموته رسيدل.

[٤١٨٦] (٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ شَعْرُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَنْصَافِ أُذُنَيْهِ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام دسرويخته دغوږونو نيمي ته رسيدل.

[٤١٨٧] (٤) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ شَعْرُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوْقَ الْوَفْرَةِ وَدُونَ الْجُمَّةِ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دنبی علیه السلام ويښته مبارک دوفره نه زيات وو اودجمه نه کم وو. (وفره هغه وختونه وئيل شي چه دغوږونو پورې وي اوجمه هغه وختونه وئيلي شي کوم چه داوږوپورې وي).

﴿عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ شَعْرُ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَوْقَ الْوَفْرَةِ وَدُونَ الخ﴾

**د ويښتو قسمونه او د هغې نومونه:**

وفره او جمه او لمه... کوم چه په اول حديث کښې تير شو دا د ويښتو (سنړو) قسمونه دی. د يو قول مطابق وفره د ټولو نه کمه درجه ده، د غوږونو د غاړو پورې. او لمه د هغې نه زياتی، او جمه د هغې نه هم زياتی يعنی اوږو ته نزدې، دې ترتيب لره يادولو دپاره مونږ د خپلو استاذانو نه لفظ د وَلِج اوريدلې دې په اول قسم کښې حرف واؤ، او دويم کښې لام او دريم کښې جيم دې.

(١): انظر حديث رقم: (٤٠٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٦٩) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الشمائل ٣ (٢٩)، سنن النسائي/الزينة ٩ (٥٠٦٤)، الزينة من المجتبى ٥ (٥٢٣٦)، (تحفة الأشراف: ٤٦٩، ١٨٩٦٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ٦٨ (٥٩٠٤)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٦ (٣٦٣٤)، مسند احمد (١١٣/٣، ١٦٥) (صحيح)

(٣): صحيح مسلم/ الفضائل ٢٦ (٢٣٣٨)، سنن الترمذي/ الشمائل (٢٤)، سنن النسائي/ الزينة من المجتبى ٥ (٥٢٣٦)، (تحفة الأشراف: ٥٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٢/٣، ٢٤٩) (صحيح)

(٤): سنن الترمذي/اللباس ٢١ (١٧٥٥)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٦ (٣٦٣٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٠١٩) (حسن صحيح)

**د ابوداؤد او ترمذی په روایتونو کښې تعارض او په هغې کښې تطبیق:**

او د ترمذی په روایت کښې په حدیث د عائشې رضی الله عنها کښې د دې خلاف دی په هغې کښې دی (فوق الجمه دون الوفرة) کوم چه په ظاهر کښې تعارض دې او د دې تشریح هم خلاف ده کومه چه مونږ د ویښتو په ترتیب کښې بیان کړه. د دې توجیه دا کیدې شی چه د فوق او دون دواړو معنی په دواړو روایتونو کښې بیله بیله واخستلې شي، د ابوداؤد په روایت کښې د فوق معنی زائد او د دون معنی کم یعنی ناقص واخستلې شي، او مطلب به دا وی چه د وفره نه زیات او د جمه نه کم، د دې دواړو درمیانی درجه وه یعنی لمه، او د ترمذی په روایت کښې به د فوق معنی اخستلې شي پورته او د دون معنی به اخستلې شي اسفل یعنی لاندې پس مطلب دا شو چه د رسول الله ﷺ ویښته د جمه نه لږ شان پورته او د وفره نه لږ لاندې وو، د دې مصداق هم لمه شوه، والله تعالی اعلم.

**د سر د ویښتو په باره کښې د رسول الله ﷺ عادت مبارک:**

په دې احادیثو کښې د رسول الله ﷺ د ویښتو (سنړو) حال مذکور دې، د دې نه معلومه چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک په سر مبارک باندې د ویښتو ساتلو وو، دا مضمون زمونږ په نزد په کتاب الطهارة کښې د غسل جنابت په بیان کښې د علی رضی الله عنه په قول (ومن ثم عادیت راسی) د لاندې تیر شوی دې هغه دې هم اوکتلې شي، ابن العربی وائی چه د سر ویښته د هغې زینت دې د هغې باقی ساتل سنت دی او حلق ئې بدعت دې، او په شرح د مصابیح کښې لیکلې دی چه رسول الله ﷺ د خپل سر مبارک حلق د هجرت نه پس صرف درې کرته کړې دې په عمرة د حدیبیه کښې، په عمرة القضاء کښې، او په حجة الوداع کښې، او تقصیر د هغوی نه صرف یو ځل ثابت دې لکه چه په صحیحین کښې دی. (قاله الباجوری فی شرح الشمائل)

قلت: واما مذهب الحنفية ففى الروضة للزندويستى ان السنة فى شعر الراس اما الفرق او الحلق وذكر الطحاوى ان الحلق سنة ونسب ذلک الى العلماء الثلاثة (شامی ۲۶۱/۵) (هندیه ۳۵۷/۵ معزيا للتتارخانية) وفى الفتاوى المحمودية ۱۴۹/۵، عام عادت مبارکه ئې د ویښتو د ساتلو وو، خرئیل ترې نه ډیر کم ثابت دی، بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم به همیشه خرائیلو. والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْفَرْقِ

**باب د سر په مینځ کښې د لار جوړولو بیان**

[۴۱۸۸] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَعْنِي يَسْدِلُونَ أَشْعَارَهُمْ وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرُقُونَ رُءُوسَهُمْ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُعْجِبُهُ مُوَافَقَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ فِيمَا لَمْ يُؤْمَرْ بِهِ فَسَدَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ".

¹: صحيح البخاري/المناقب ۲۳ (۳۵۵۸)، ومناقب الأنصار ۵۲ (۳۹۴۴)، واللباس ۷۰ (۵۹۱۷)، صحيح مسلم/الفضائل ۲۴ (۲۳۳۶)، سنن الترمذي/الشمائل ۳ (۲۹)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ۷ (۵۲۴۰)، سنن ابن ماجه/اللباس ۳۶ (۳۶۳۲)، (تحفة الأشراف: ۵۸۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۴۶، ۲۶۱، ۲۸۷، ۳۲۰) (صحيح)

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه من اهل کتابو (یهودیانو اونصرانیانو) به ویښته اوږده پریخودل او مشرکانو به پکښې لارویستله اونبی ﷺ به داهل کتابوسره په هغه څه کښې چه حکم ئې ورته نه ووشوې موافقت ناشنا ګڼړلو او دتندې ویښته به ئې اوږده ساتل اوبیابه ئې په سرکښې لاره هم ویستله.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ - يَعْنِي - يَسْدِلُونَ أَشْعَارَهُمْ وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرُقُونَ رُءُوسَهُمْ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- تُعْجِبُهُ مُوَافَقَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ فِيمَا لَمْ يُؤْمَرْ بِهِ فَسَدَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ ﴾

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه اهل کتابو به په ویښتو کښې سدل کولو او مشرکینو به فرق یعنی لاره ویستله او رسول الله ﷺ ته په شروع کښې په هغه امورو کښې چه د هغې په باره کښې په هغوی باندې څه وحی او هدایت نه وو نازل شوې د اهل کتابو موافقت خوښ وو، او هم په دې وجه کیدې شوه چه د هغه اهل کتابو فعل د هغوی په دین کښې ثابت وی، په خلاف د مشرکینو چه د هغوی په یو کار کښې هم دا احتمال نه وو چه هغه دې د الله پاک د طرف نه وی، او د رسول الله ﷺ د اهل کتابو موافقت کول زړونو لره د اسلام طرف ته مائل کول هم وو، بیا چه کله الله پاک اسلام ته غلبه ورکړه نو بیا رسول الله ﷺ د هغوی ښکاره مخالفت شروع کړو. (بذل) پس په دې څیز کښې رسول الله ﷺ د هغوی موافقت پریخودلو سره د سدل په ځائې لاره ویستل شروع کړل. د سدل نه مراد دا دې چه د سر وړاندې ویښته په تندی باندې اچول او د فرق مطلب دا دې چه د سر د مخامخ حصې ویښتو لره په دوه حصو کښې تقسیمول د ښی طرف ویښتو لره ښی طرف ته او د ګس طرف ویښتو لره ګس طرف ته کړې شی، پس د دې نه روستو روایت کښې راځی کوم چه د عائشې صدیقې رضی الله عنها نه روایت دې هغوی فرمائی.

[۴۱۸۹] (١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كُنْتُ إِذَا أَرَدْتُ أَنْ أَفْرُقَ رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَعْتُ الْفَرْقَ مِنْ يَافُوخِهِ وَأُرْسِلُ نَاصِيَتَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ".

د ام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی کله چه به مادنبی ﷺ په سرکښې لاره ویستل غوښتل نودسرپه مینځ کښې به مې لار ویستله اودنبی ﷺ دتندې ویښته به مې ددواړو سترګو په مینځ بیل کړل.

﴿ إِذَا أَرَدْتُ أَنْ أَفْرِقَ رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- صَدَعْتُ الْفَرْقَ مِنْ يَافُوخِهِ وَأُرْسِلُ نَاصِيَتَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ ﴾ چه کله به ما د رسول الله ﷺ په سر مبارک کښې لار ویستله نو (وړاندې هغوی د دې طریقه بیانوی) چه د هغوی د سر مبارک د مینځ نه به مې لار ویستله او د وړاندې حصې ویښته به مې په دوه حصو کښې تقسیم کړل ښی او ګس طرف ته. د دې حدیث نه معلومه شوه چه په ویښتو کښې لاره ویستل سنت دی: حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٩٠، ٢٧٥) (حسن)

## بَابٌ فِي تَطْوِيلِ الْجُمَّةِ
### باب د سر د ويښتو د اوږدولو بيان

[۴۱۹۰] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، وَسُفْيَانُ بْنُ عُقْبَةَ السُّوَائِيُّ هُوَ أَخُو قَبِيصَةَ، وَحُمَيْدُ بْنُ خُوَارٍ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِي شَعْرٌ طَوِيلٌ فَلَمَّا رَآنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ذُبَابٌ ذُبَابٌ، قَالَ: فَرَجَعْتُ فَجَزَزْتُهُ ثُمَّ أَتَيْتُهُ مِنَ الْغَدِ، فَقَالَ: إِنِّي لَمْ أَعْنِكَ وَهَذَا أَحْسَنُ".

د وائل بن حجر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه يوځل زما دسر ويښته اوږده شوي وو اوزه دنبى عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم نبى عليه السلام اوفرمائيل نحوست دې نحوست دې، ماچه دا واوريدل نو واپس لاړم بله ورځ چه بيا راتلم نو ويښته مې کم کړل اوراغلم نبى عليه السلام راته اوفرمائيل ماخو ته نه وي قصد کړي داسې ويښته خوبهتر دي.

**قوله**: ﴿ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– وَلِي شَعْرٌ طَوِيلٌ الخ ﴾

د دې حديث حواله او مضمون په باب فى الحمرة کښې تير شوي دې، والحديث اخرجه النسائى وابن ماجه، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَعْقِصُ شَعْرَهُ
### باب: دهغه سړى بيان چه خپل ويښته کونځۍ کوى

[۴۱۹۱] (²) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ "قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مَكَّةَ وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ تَعْنِي عَقَائِصَ".

دام هاني بنت ابى طالب رضی الله عنها نه روايت دې فرمائى چه کله چه مکه فتح شوه اونبى عليه السلام راغې نو د سر د وختونه ئې ځلور کونځۍ جوړې شوي وې.

**قوله**:﴿ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ قَدِمَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– إِلَى مَكَّةَ وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ تَعْنِي عَقَائِصَ ﴾ او د شمائل هم په دې حديث کښې يو لفظ زائد دې ﴿ قدم رسول الله ﷺ مكة قدمة ﴾ علامه باجورى ليکى اى مرة من القدوم... او بيا ليکى چه د دې نه مراد هغه قدوم دې کوم چه په فتح مکه کښې شوي وو، هغوى فرمائى چه د رسول الله ﷺ تشريف راوړل مکې مکرمې ته د هجرت نه پس ځلور کرته شوي وو، په عمرة القضاة کښې، فتح مکه، عمرة الجعرانة او حجة الوداع.

### شرح الحديث:

ام هانى رضی الله عنها فرمائى چه رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته تشريف راوړلو په داسې حال کښې چه د هغوى د سر د ويښتو ځلور کمسۍ وې.

غدائر د غديرة جمع ده او په يو روايت کښې ﴿ اربع ضفائر ﴾ دې دا دواړه روايتونه په ترمذى

¹): سنن النسائي/الزينة ٦ (٥٠٥٥)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٧ (٣٦٣٦)، (تحفة الأشراف: ١١٧٨٢) (صحيح)

²): سنن الترمذي/اللباس ٣٩ (١٧٨١)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٦ (٣٦٣١)، (تحفة الأشراف: ١٨٠١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤١/٦، ٤٢٥) (صحيح)

کښې دی غدائر او ضفائر او ذوابه چه د هغې ذکر د وړاندې باب په حديث کښې راغې دا ټول هم معنی دی. الشعر المضفور (ګلګوتې ويښته) هغه ويښته چه هغې ته غوټه ورکړې شوې وی يعنی د کمسو په شان لکه چه په کتاب الطهارة کښې د غسل حائض د لاندې د نقض ضفائر مسئله کښې تير شوې دی، حضرت شيخ په خصائل کښې ليکی د سړو دپاره د زنانو په شان کمسئ کول مکروه دی. په دې حديث کښې د کمسو نه مراد هم هغه ويښته دی په کوم کښې چه تشبه نه وی چه د تشبه رسول الله ﷺ پخپله ممانعت فرمائيلې دې، او په ابن ماجه کښې ترجمة الباب داسې دې، باب اتخاذ الجمة والضفائر... د هغې په حاشيه کښې حضرت شاه عبدالغنی صاحب رحمه الله ليکی: قوله: وله اربع غدائر...لعله فعل ذلک لدفع الغبار قلت وهو الظاهر لانه صلی الله عليه وسلم کان فی السفر (تحفه) يعنی د رسول الله ﷺ معمول د ويښتو پريخودلو خو وو خو د ضفائرو معمول ئې نه وو د ضرورة د وجې نه به ئې د سفر د ګردوغبار نه د بچ کيدو دپاره هغوی خپل ويښته مبارک داسې کول. او يو وی عقص يعنی د سر ټولو ويښتو له يو ځائې کولو سره شاته اړولو باندې جوړه تړل دا هغه دې چه د هغې ذکر په کتاب الصلوة کښې ﴿باب الرجل يصلی عاصقا﴾ کښې تير شوې دې، او دغه شان د مونځ کولو نه منع راغلې ده. ام هانی رضی الله عنها چه فرمائی چه رسول الله ﷺ تشريف راوړلو مکې مکرمې ته يو کرت، نور هم دغه شان په بعض روايتونو کښې راغې چه رسول الله ﷺ زمونږ کور مکې مکرمې ته تشريف راوړلو مثلا هغه فرمائی، چه د فتح مکه په ورځ رسول الله ﷺ زمونږ په کور کښې د صلوة ضحی اته رکعتونه کړل. د دې مقصد دا دې چه ام هانی رضی الله عنها چه د علی رضی الله عنه خور او د رسول الله ﷺ د تره لور ده هغې هجرت نه دې فرمائيلې، دا د مهاجراتو نه نۀ وه ځکه چه د هغې اسلام د فتح مکه نه پس دې په دې وجه هجرت ته خبره اونه رسيدله.

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابٌ فِي حَلْقِ الرَّأْسِ

### باب د سر خريلو بيان

[٤١٩٢](١) حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، وَابْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي يَعْقُوبَ يُحَدِّثُ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمْهَلَ آلَ جَعْفَرٍ ثَلَاثًا أَنْ يَأْتِيَهُمْ، ثُمَّ أَتَاهُمْ، فَقَالَ: لَا تَبْكُوا عَلَى أَخِي بَعْدَ الْيَوْمِ، ثُمَّ قَالَ: ادْعُوا لِي بَنِي أَخِي فَجِيءَ بِنَا كَأَنَّا أَفْرُخٌ، فَقَالَ: ادْعُوا لِي الْحَلَّاقَ، فَأَمَرَهُ فَحَلَقَ رُءُوسَنَا".

دعبدالله بن جعفر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ دجعفرخاندان ته درې ورځې مهلت ورکړې وو (يعنی دجعفرد ماتم دپاره) اوبيانبی ﷺ دوی ته راغې او اوې فرمائيل دنن نه پس به تاسو زما په وروړسې نه جاړئ اوبيائې اوفرمائيل تاسوماته زماد وروړبچې راولئ نومونږ نبی ﷺ ته راوستلې شواو دمرغودچوپه شان زمونږ ويښته ګډوډ کړې شوې وو نبی ﷺ اوفرمائيل نائي را اوغواړې او زمونږ د سرونو خريلو حکم ئې وکړو.

(١) سنن النسائي بالزينة من المجتبي ٣ (٥٢٢٩)، (تحفة الأشراف: ٥٢١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٠٤) (صحيح)

## شرح الحديث :

قوله: ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم- أَمْهَلَ آلَ جَعْفَرٍ ثَلاَثًا أَنْ يَأْتِيَهُمْ ثُمَّ أَتَاهُمْ الخ ﴾ سیدنا جعفر بن ابی طالب ﷺ چه د رسول الله ﷺ د ترهٔ ځوئي دې کوم چه په جنګ موته کښې شهید شوې وو د هغوی ځوئي عبدالله بن جعفر ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ د هغوی د کور خلقو ته تر درې ورځو پورې مهلت ورکړو يعنی د ژړا او غم کولو، بيا درې ورځې پس رسول الله ﷺ کور ته تشريف راوړلو او وې فرمائيل بس اوس ژړا بنده کړئ. بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ماته زما وريرونه راولئ. مونږ رسول الله ﷺ ته راوستلي شو، مونږ دومره واړهٔ واړهٔ وو لکه چرګوټي رسول الله ﷺ حلاق رااوغوښتلو زمونږ سرونه ئې اوخرئيل. د بذل المجهود نه هم دا معلوميږی چه دا ماشومان هغه وخت ډير واړهٔ وو د کور خلقو دوی په غيږ کښې راوستل، خو د تاريخ نه معلوميږی چه دوی دومره واړهٔ نه وو. پس عبدالله بن جعفر ﷺ کوم چه خپله د هغوی ځوئې دې او دا واقعه بيان فرمائی د هغوی عمر د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کښې لس کاله وو. هم په دې وجه نورو شارحينو ليکلي دی چه په ﴿ كَأَنَّا أَفْرُخٌ ﴾ کښې تشبيه د وړوکوالی په اعتبار سره نه ده بلکه د ويښتو په اعتبار سره ده. چه د هغه بچو په سر باندې ويښته غټ وو او داسې ښکاريدل لکه د چرګوټو په بدن باندې چه ولاړ ولاړ ويښته وی. او حلق ئې د هغوی په دې وجه اوکړو، اګر چه د ويښتو ساتل افضل دی چه د ويښتو ساتلو نه پس د هغې خيال ساتل، او د هغې تيل لګول او ګومنځول وو چه هغه د هغوی مور ته د دې غم په زمانه کښې ګرانه وه. والحديث اخرجه النسائي،قاله المنذری

# بَابٌ فِي الذُّؤَابَةِ

## باب د چوټی (زلفو) ساتلو بيان

[٤١٩٣] ()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُثْمَانَ، قَالَ: أَحْمَدُ كَانَ رَجُلًا صَالِحًا، قَالَ: أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْقَزَعِ وَالْقَزَعُ أَنْ يُحْلَقَ رَأْسُ الصَّبِيِّ فَيُتْرَكَ بَعْضُ شَعْرِهِ".

دعبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې فرمائی چه رسول کريم ﷺ منع فرمائيلې ده ددينه چه دماشوم سر وخريلې شي او بعضې ويښته ئې پريخودلې شي.

﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْقَزَعِ وَالْقَزَعُ أَنْ يُحْلَقَ رَأْسُ الصَّبِيِّ فَيُتْرَكَ بَعْضُ شَعْرِهِ ﴾

د دې باب په ټولو روايتونو کښې د قزع [2] ممانعت ذکر دې چه د هغې تفسير هم پکښې ذکر

---

[1]: صحيح البخاري/اللباس ٧٢ (٥٩٢١)، صحيح مسلم/اللباس ٣١ (٢١٢٠)، سنن النسائي/الزينة ٥ (٥٠٥٣)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٨ (٣٦٣٧)، (تحفة الأشراف: ٨٢٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢ /٤، ٣٩، ٥٥، ٦٧، ٨٢، ٨٣، ١٠١، ١٠٦، ١١٨، ١٣٧، ١٤٣، ١٥٤) (صحيح)

[2]: قزع په لغت کښې په فضاء کښې د وريځو متفرق ټکړو ته وائی کومې چه د لرې نه پرقيدونکې ښکاری، په سر کښې چه کوم ويښته داسې پريخودلې شی چونکه هغه هم داسې محسوسيږی په دې وجه هغې ته قزع وائی)

دي، هغه دا چه د يو ماشوم د سر ويښته د خريئلو په وخت د هغې څه حصه باقي پريخودلې شي، خو دا نهي د صبي سره خاص نه ده، حکم د غټ دپاره هم دا دي، ممکنه ده چه په هغه زمانه کښې به خلقو د خپلو بچو سره هم داسې کول په مينه محبت کښې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۱۹۴] (¹)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنِ الْقَزَعِ، وَهُوَ أَنْ يُحْلَقَ رَأْسُ الصَّبِيِّ فَتُتْرَكَ لَهُ ذُؤَابَةٌ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه رسول کريم ﷺ منع فرمائيل ده ددينه چه دماشوم سر وخريلي شي او بعضې ويښته ئې دکونځي په شکل کښې پريخودلي شي.

[۴۱۹۵] (²)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى صَبِيًّا قَدْ حُلِقَ بَعْضُ شَعْرِهِ وَتُرِكَ بَعْضُهُ فَنَهَاهُمْ عَنْ ذَلِكَ، وَقَالَ: احْلِقُوهُ كُلَّهُ أَوِ اتْرُكُوهُ كُلَّهُ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه رسول کريم صل الله عليه وسلم يوماشوم وليدوچه دسردويختو بعضې حصه ئې خريلي شوي وو اوبعضې حصه ئې پريخودلي شوي وه نومنع ئې اوفرمائيله ددې کارنه او اوئې فرمائيل ياخو ورله ټول سر وخروئ ياتول پريږدئ.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ

### باب: د هلکانو دپاره د زلفو ساتلو د جواز بيان

[۴۱۹۶] (³)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَتْ لِي ذُؤَابَةٌ، فَقَالَتْ لِي أُمِّي: لَا أَجُزُّهَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُدُّهَا وَيَأْخُذُ بِهَا".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه زما دسر دويښتونه زلفې جوړې شوي وې ماته زما مور اووئيل چه زه دا نه کوم څکه چه نبي عليه السلام به دا نيولې او راښکل به ئې، اوکله به هسې نبي عليه السلام دشفقت په وجه ونيولې.

﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَتْ لِي ذُؤَابَةٌ فَقَالَتْ لِي أُمِّي لَا أَجُزُّهَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَمُدُّهَا وَيَأْخُذُ بِهَا ﴾

دا د انس رضي الله عنه د مور فعل دي (⁴) چه د انس رضي الله عنه د سر کوم ويښته به د هغوی په وروکوالی کښې رسول الله ﷺ په خپلو لاسو مبارکو باندې نيول او راښکل به ئې د هغې په باره کښې هغه فرمائي چه هغه به زه کله هم پرې نکړم د سر د نورو ويښتو سره.

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۰۱، ۱۴۳، ۱۵۴) (صحيح)

²): سنن النسائي/الزينة ۳ (۵۰۵۱)، مسند احمد (۲/۸۸) وانظر رقم: (۴۱۹۳)، (تحفة الأشراف: ۷۵۲۵)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ۳۱ (۲۱۲۰) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۲۶) (ضعيف الإسناد)

⁴) لهذا د مصنف رحمه الله د هغوی د فعل نه د ذوابه په جواز باندې استدلال محل نظر دي.

[۴۱۹۷] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ حَسَّانَ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، فَحَدَّثَتْنِي أُخْتِي الْمُغِيرَةُ، قَالَتْ: وَأَنْتَ يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ وَلَكَ قَرْنَانِ أَوْ قُصَّتَانِ، فَمَسَحَ رَأْسَكَ وَبَرَّكَ عَلَيْكَ، وَقَالَ: "احْلِقُوا هَذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا فَإِنَّ هَذَا زِيُّ الْيَهُودِ".

دحجاج بن حسان رحمه الله نه روایت دي فرمائي چه مونږ انس بن مالک ته ورغلونوماته زماخور مغیره حدیث بیان کړو او وئې وئیل چه تاسو په هغه وخت کښې هلکان وئ اوستاسو د سرونو نه په دوه زلفې زوړندي وي انس بن مالک ستاسو په سر باندې لاس راښکلو او دخیر اوبرکت دپاره ئې دعا وغوښته اووئې فرمائیل دا زلفې وخروی یائې کټ کړئ؟ځکه چه دا د یهودیانو طریقه ده.

﴿ دَخَلْنَا عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَحَدَّثَتْنِي أُخْتِي الْمُغِيرَةُ قَالَتْ وَأَنْتَ يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ وَلَكَ قَرْنَانِ أَوْ قُصَّتَانِ فَمَسَحَ رَأْسَكَ وَبَرَّكَ عَلَيْكَ وَقَالَ : احْلِقُوا هَذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا فَإِنَّ هَذَا زِيُّ الْيَهُود ﴾

حجاج بن حسان د خپل وړوکوالی واقعه بیانوی چه مونږ یو ځل انس رضي الله عنه کره لاړو. (هلته تلو سره څه اوشو هغوی ته خو د وړوکوالی هغه خبره یاده نه وه په دې وجه هغوی د خپلې خور نه نقل کوی) پس ماته زما خور مغیره بیان اوکړو چه ته خو هغه وخت ماشوم وې او ستا په سر باندې د ویښتو دوه حصې وې نو انس رضي الله عنه ستا په سر باندې لاس راښکلې وو او د برکت دعاء ئې کړې وه او دا ئې هم فرمائیلې وو چه دا دواړه حصې پرې کړه ځکه چه دا د یهودو طریقه ده. دا حدیث د ترجمة الباب سره مناسب نه دې. فتامل.

## باب في أخذ الشارب

### باب د بریتو د کمولو بیان

[۴۱۹۸] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْفِطْرَةُ خَمْسٌ أَوْ خَمْسٌ مِنَ الْفِطْرَةِ: الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَنَتْفُ الْإِبِطِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ وَقَصُّ الشَّارِبِ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي فطرت په پنځه څیزونوکښې دې پائې داسې اوفرمائیل چه پینځه څیزونه دفطرت سره تعلق لري : (۱) ختنه یعنی سنتول (۲) دنوم نه ښکته صفائې کول (۳) دطرخونو ویښته ویستل (۴) نوکان کټ کول (۲) بریتونه کمول.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- « الْفِطْرَةُ خَمْسٌ أَوْ خَمْسٌ مِنَ الْفِطْرَةِ الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَنَتْفُ الإِبْطِ وَتَقْلِيمُ الأَظْفَارِ وَقَصُّ الشَّارِبِ » ﴾

دا حدیث په ابواب الوضوء باب السواک من الفطرة کښې تیر شوې دې او په دې باندې تفصیلی کلام هم هلته تیر شوې دې.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۲۲) (ضعيف الإسناد)

(۲): صحيح البخاري/اللباس ۶۳ (۵۸۸۹)، ۶۴ (۵۸۹۱) الاستئذان ۵۱ (۶۲۹۷)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۶ (۲۵۷)، سنن النسائي/الطهارة ۹ (۹)، الزينة من المجتبى ۱ (۵۲۲۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸ (۲۹۲)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲۶)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ۱۴ (۲۷۵۶)، موطا امام مالك/صفة النبي ۳ (۳موقوفا) مسند احمد (۲/۲۳۹) (صحيح)

[۴۱۹۹] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِإِحْفَاءِ الشَّوَارِبِ وَإِعْفَاءِ اللِّحَى".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی کريم و دبريتو په کمولو اود ږيرې پريخودلو حکم فرمائيلې دې۔

[۴۲۰۰] (۲) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ الدَّقِيقِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "وَقَّتَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلْقَ الْعَانَةِ وَتَقْلِيمَ الْأَظْفَارِ وَقَصَّ الشَّارِبِ وَنَتْفَ الْإِبْطِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا مَرَّةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ أَنَسٍ، لَمْ يَذْكُرِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وُقِّتَ لَنَا وَهَذَا أَصَحُّ.

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم زمونږ د شرمګاه دصفايي دپاره اود نوکانو دکټ کولو دپاره اودبريتودکټ کولو دپاره اود ترخونو دويختو دويستلو دپاره يوځل څلوېښت ورځې ميعاد مقررکړو. امام ابوداؤد فرمائي دا روايت جعفربن ابی سليمان دابوعمران نه اوهغه دانس بن مالک نه هم نقل کړې دې ليکن دنبی عليه السلام ذکرئې پکښې نه دی کړې اوداسې ئې وئيلی دی چه نبی عليه السلام زمونږ دپاره وخت مقررکړو اودا روايت دټولونه زيات صحيح دې۔

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ وَقَّتَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَلْقَ الْعَانَةِ وَتَقْلِيمَ الْأَظْفَارِ وَقَصَّ الشَّارِبِ وَنَتْفَ الإِبْطِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا مَرَّةً﴾

**شرح الحديث :**

يعنی رسول الله صلى الله عليه وسلم د نامه نه د لاندې ويښتو د خرئيلو او دغه شان د هغه ټولو څيزونو کوم چه په دې حديث کښې ذکر دی، د هغې حد څلوېښت ورځې يو ځل مقرر کړو. يعنی د دې څيزونو اکثر او انتهائی موده رسول الله صلى الله عليه وسلم دا تجويز اوفرمائيله، يعنی د دې نه پس خو د هغې د باقی پريخودلو بالکل ګنجائش نشته، اوس دا چه اولی او مناسب څه دی؟ د دې معلومات به د نورو روايتونو او د فقهاء کرامو د اقوالو نه معلوميږی، حضرت په بذل کښې ليکلې دی: وهذا تحديد لاكثر المدة ويستحب ذلک من الجمعة الى الجمعة والا فلا تحديد فيه بل كلما كثر ازاله ويختلف ذلک باختلاف طباع الناس.... يعنی د حاجت په وخت دې دا ټول کارونه اوکړې شی. د خلقو طبيعتونه په دې کښې مختلف دی د بعضو نوکونه او ويښته زر غټيږی او دبعضو روستو وفی هامش البذل:روی انه عليه السلام كان ياخذ اظفاره وشاربه كل جمعة ويحلق العانة فی عشرين ونتف الابط فی اربعين وفی العالمكيرية: الافضل الاسبوع والخمسة عشر الوسط، ولاعذرفی اكثرمن اربعين الخ وقريب منه مافی الدرالمختار. اهـ والحديث اخرجه الترمذی قاله المنذری.

[1]: صحيح مسلم/الطهارة ١٦ (٢٥٩)، سنن الترمذي/الأدب ١٨ (٢٧٦٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٥ (١٥)، الزينة ٥٤ (٥٢٢٨)، (تحفة الأشراف: ٨٥٤٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ٦٤ (٥٨٩٢)، ٦٥ (٥٨٩٣)، الزينة من السنن ٢ (٥٠٤٩)، الزينة من المجتبي ٢ (٥٢٢٨)، موطا امام مالك/الشعر ١ (١)، مسند احمد (٥٢/٢) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الطهارة ١٦ (٢٥٨)، سنن الترمذي/الأدب ١٤ (٢٧٥٨)، سنن النسائي/الطهارة ١٤ (١٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٢/٣، ٢٠٣، ٢٥٥) (صحيح)

[۴۲۰۱] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، قَرَأْتُ عَلَى عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَقَرَأَهُ عَبْدُ الْمَلِكِ عَلَى أَبِي الزُّبَيْرِ، وَرَوَاهُ أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كُنَّا نُعْفِي السِّبَالَ إِلَّا فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الِاسْتِحْدَادُ حَلْقُ الْعَانَةِ.

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ به دحج نه علاوه هميشه ږيري اوږدي ساتلي ، امام ابوداؤد فرمائي چه داستحداد نه مراد دنوم نه لاندې ويښته کټ کول دي.

﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا نُعْفِي السِّبَالَ إِلاَّ فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ﴾

## شرح الحديث :

سبال د سبله جمع ده لکه چه رقاب جمع د رقبة ده، دا د هغه جموع نه ده چه د هغې نه مراد تثنيه وی يعنی د شارب طرفين، د بريتو دواړه طرفونه ښي طرف او ګس طرف، د هغې په باره کښې دواړه اقوال دی بعض وائی چه دا په شارب کښې داخل دی او دويم قول دا دې چه دا د ګيرې په حکم کښې دی پس حافظ رحمه الله ليکی قوله وقص الشارب، الشارب هو الشعر النابت على الشفة العلياء واختلف في جانبيه وهما السبالان، فقيل هما من الشارب ويشرع قصهما معه، وقيل هما من جملة شعر اللحية اهـ. جابر رضي الله عنه د سبالتين په باره کښې فرمائی چه مونږ به د لوئې ساتل خو په حج او عمره کښې به مو دا پرې کول، قال الغزالي في الاحياء ولا باس بترک سبالتيه يعنى على ما خلقه الله تعالى وهما طرفا الشارب... امام غزالی رحمه الله هم داسې فرمائی چه د سبالتين په باقی ساتلو کښې هيڅ باک نشته. (بذل)

او په صحيح بخاری کښې باب قص الشارب واللحية، يعنى ابن عمر رضي الله عنهما به خپل شارب دومره پرې کول چه د شونډو سپين والې به ئې ښکاره کيدو او هغه دواړه به ئې هم اخستل کوم چه د شارب او د لحيه ترمينځه دی، د دې نه مراد هم هغه سبالتين دی، قال الكرماني رحمه الله هذين يعنى بطرفي الشفتين اللذين هما بين الشارب واللحية وملتقاهما كما هو العادة عند قص الشارب في ان ينظف الزاويتان ايضا من الشارب.... او بيا وړاندې ليکی : ويحتمل ان يراد بهما طرفا العنفقة... چه دا هم احتمال دې چه د هذين نه مراد د ګيرې دواړه طرفونه مراد وی. د ابن عمر رضي الله عنهما کوم روايت چه مونږ ذکر کړې دې د بخاری نه ګويا دا مخالف دې د ابوداؤد د جابر رضي الله عنه د روايت سره. چه په هغې کښې دا دی چه مونږ به سبالتين باقی ساتل سوا د حج او عمرې نه، خو د ابن عمر رضي الله عنهما پلار عمر رضي الله عنه معمول د سبالتين د باقی ساتلو وو. پس په فتح الباری کښې دی : وقد روى مالک عن زيد بن اسلم ان عمر رضي الله عنه كان اذا غضب فتل شاربه... يعنى عمر رضي الله عنه به چه کله په څه خبره باندې غصه شو نو خپل بريت به ئې تاوهل. دلته د شارب نه مراد په ظاهر کښې سبالتين دی ځکه چه ول خو هم هغې ته ورکړې کيدې شی نه اصل شارب ته، او بعض علماء کرامو د بعض احنافو نه نقل کړې دی چه قال لا باس بابقاء الشوارب في الحرب ارها بالعدو ونقله الحافظ ايضا في الفتح ۱۰/۳۴۷.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۷۸۹) (ضعيف الإسناد)

# بَابٌ فِي نَتْفِ الشَّيْبِ

## باب د ږیرې یا سر نه د سپینو ویښتو د ویستلو بیان

[۴۲۰۲] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الْمَعْنَى، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَنْتِفُوا الشَّيْبَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَشِيبُ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ، قَالَ عَنْ سُفْيَانَ: إِلَّا كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَقَالَ فِي حَدِيثِ يَحْيَى: إِلَّا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِهَا حَسَنَةً وَحَطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً".

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه رسول پاک ﷺ فرمائیلی دی دسر یا ږیرې نه سپین ویښته مه اوباسئ ځکه چه هیڅ یو مسلمان داسې نشته دچاچه د اسلام په حالت کښې ویښته سپین شوي وي مګر دغه ویښته به دده دپاره دقیامت په ورځ نور وي، دیحې په روایت کښې دی ددغه کس دپاره به دهر یو سپین ویښته په بدل کښې یوه یوه نیکي ولیکلې شي اویوه یوه بدي به ئې معاف کړې شي.

**قوله:** ﴿ لاَ تَنْتِفُوا الشَّيْبَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَشِيبُ شَيْبَةً فِى الإِسْلاَمِ، إِلاَّ كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾

د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه سپین ویښته مه اوباسئ (که په ږیره کښې وی او که په سر کښې وی قاله النووی) د کوم سړی چه ویښته د اسلام په حالت کښې سپین شی نو هغه ویښته به د هغه دپاره د قیامت په ورځ باندې د رڼړا ذریعه وی.

زمونږ استاذ مولانا محمد اسعد صاحب رحمه الله به فرمائیل چه د اسلام او ایمان په حالت کښې وخت تیریدل دا هم عبادت دې انتهی کلامه. ځکه چه ښکاره ده چه ایمان او اسلام خو د ایمان اصل او جرړه ده نو د اتصاف بالایمان سره چه کوم وخت تیریږی او عمر زیاتیږی هغه هم عبادت دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي الْخِضَابِ

## باب د خضاب بیان

[۴۲۰۳] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الْيَهُودَ، وَالنَّصَارَى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی یهودیان اونصرانیان خپل ویښته نه رنګ کوي تاسو ددوی مخالفت وکړئ یعنی بیري رنګ کړئ.

﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى لاَ يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ » ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۳، ۸۸۰۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ۵۹ (۲۸۲۱)، سنن النسائي/الزينة ۱۳ (۵۰۸۳)، سنن ابن ماجه/الأدب ۲۵ (۳۷۲۱)، مسند احمد (۲۰۶/۲، ۲۰۷، ۲۱۲) (حسن صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأنبياء ۵۰ (۳۴۶۲) واللباس ۶۷ (۵۸۹۹)، صحيح مسلم/اللباس ۲۵ (۲۱۰۳)، سنن الترمذي/اللباس ۲۰ (۱۷۵۲)، سنن النسائي/الزينة ۱۴ (۵۰۷۵)، سنن ابن ماجه/اللباس ۳۳ (۳۶۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۴۸۰، ۱۵۱۴۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۴۰/۲، ۲۶۰، ۳۰۹، ۴۰۱) (صحيح)

يهود او نصارى به خضاب نه كولو، مسلمانانو لره د هغوى په مخالفت كښې خضاب كول پكار دى.

## د خضاب حكم عند الائمة :

امام نووي رحمه الله فرمائى چه زمونږ مذهب استحباب خضاب دې د سرو او ښځو دواړو دپاره، زيړ يا سور او خضاب سواد حرام دې د اصح قول په بناء باندې. (بذل) او په حاشيه د بذل كښې دى چه د احنافو مذهب هم دا دې صرح به الشامي اذ قال : يستحب للرجل خضاب شعره ولحيته ولو في غير حرب، وبسط الاختلاف في ذلک القاري في شرح الشمائل، وقال حجة من احب ترک الخضاب الحديث المذكور قبل (من شاب شيبة في الاسلام الحديث) اه

او هم دا مسلک د امام احمد رحمه الله دې قال الموفق : ويستحب خضاب الشعر بغير السواد. امام احمد رحمه الله فرمائى چه كله زه شيخ مخضوب ته گورم نو په دې باندې خوشحاليږم. د حضرات شيخين ابوبكر او عمر رضي الله عنهما نه خضاب ثابت دې او د على رضي الله عنه نه ترک خضاب، حافظ فرمائى چه د صحابه كرامو رضي الله عنهم يو جماعت خضاب اختيار كړې دې او يو جماعت ترک خضاب، د دې ترمينځه طبرى رحمه الله تطبيق داسې كړې دې چه د چا دپاره چه څه مناسب او لائق وه هغه هم هغه شان اوكړل. د بعضو سپين ويښته په كتلو كښې بدې ښكاره كيدل او د بعضو غير شنيع، حافظ فرمائى : لكن الخضاب مطلقا اولى لان فيه امتثال الامر في مخالفة اهل الكتاب، وفيه صيانة الشعر عن تعلق الغبار وغيره، وړاندې فرمائى : مگر دا چه د ښهر د خلقو عادت د ترک خضاب وى ځكه چه په دې صورت كښې چه كوم سړې خضاب كوى هغه به په مقام د شهرت كښې وى په دې وجه دې صورت كښې د هغه په حق كښې به ترک خضاب اولى وى.

## په خضاب اسود كښې مذاهب ائمه :

دويمه مسئله دلته د خضاب اسود ده قال النووي : يحرم خضابه السواد على الاصح وقيل يكره تنزيها والمختار التحريم لقوله صلى الله عليه وسلم في مسلم اجتنبوا السواد... وهذا مذهبنا اه وفي المحلي : وعند احمد يكره كراهة تحريم كما في الغيبة وهو مذهب ابى حنيفة وفي الدر المختار يكره بالسواد وقيل لا قال ابن عابدين قوله يكره : اى لغير الحرب، اما الخضاب بالسواد للغز وليكون اهيب في عين العدو فهو محمود بالاتفاق وان ليزين ان يتزين لي النساء تحب هي ان اتزين لها، وعن ابى يوسف في رواية ان فعل احد لاجل التزيين لامراته فلا باس الى اخر ما بسط في الاوجز.

او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره كښې اختلاف دې د هغوى په خضاب او ترک خضاب كښې لكه چه وړاندې راځى. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٢٠٤] [1] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ بَيَاضًا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَيِّرُوا هَذَا بِشَيْءٍ وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ".

[1]: صحيح مسلم/اللباس ٢٤ (٢١٠٢)، سنن النسائي/الزينة ١٥، (٥٢٤٤)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٣ (٣٦٢٤)، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٧، ٥٠٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٦٧٣، ٣٢٢، ٣٣٨) (صحيح)

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دفتح مې په ورځ باندې ابوقحافه راوستلی شوسر او ږيره ئې دثغامة (ديوي سپينې گيا نوم دې) په شان سپين شوي وو نبی ﷺ اوفرمائيل ددې بيري سپين والي په څه شي سره بدل کړئ اودتور والي نه ځان وساتئ.

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ بَيَاضًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « غَيِّرُوا هَذَا بِشَىْءٍ وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ » ﴾

ابوقحافه رضي الله عنه چه کنيت دې د ابوبکرصديق رضي الله عنه د والد محترم چه دوی هم په مسلمة الفتح کښې دی په دې ورځ باندې هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راوستلې شو بالکل بوډا وو چه د سر او ګيرې ويښته ئې د ثغامه په شان سپين شوې وو، کوم چه د يوې گيا نوم دې چه د هغې گلونه او ميوه دواړه سپين وی نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا سپين والې بدل کړه په يو رنګ باندې او د توروالی نه پرهيز کوه.

د تور خضاب باب وړاندې مستقل راروان دې. والحديث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۲۰۵]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ سَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدِّيلِيِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ هَذَا الشَّيْبُ الْحِنَّاءُ وَالْكَتَمُ".

دابوذر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی هغه بهترين څيز په کوم باندې چه دويښتو داسپين والې لرې کړې شي هغه نکريزې او کتم دې (کتم ديوي ګيانوم دې چه دوسمې سره يوځائې کولې شي او په ويښتوباندې دخضاب لګولو دپاره په کار راوستلی شي، اوبعضو وئيلی دی چه کتم وسمې ته وئيلې شي)

**قوله:** ﴿إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ هَذَا الشَّيْبُ الْحِنَّاءُ وَالْكَتَمُ﴾

يعنی د ويښتو د سپين والی د زائل کولو دپاره د ټولو نه غوره څيز نکريزې او کتم دې. کتم يو قسم ګيا ده د خضاب کار کوی. چه کله دا دواړه يو ځائې کولو سره خضاب اوکړې شی نو سور بخن رنګ راوړی، بعض علماء کرامو وئيلې دی چه ممکنه ده چه د دې نه مراد صرف د کتم استعمال وی بغير د حناء نه ځکه چه د دې دواړو په يو ځائې کولو سره رنګ توريږی، په دې وجه دې خلقو وئيلې دی چه ممکنه ده چه د اصل حديث الفاظ ﴿ بالحناء اوالكتم ﴾ وی خو په ټولو روايتونو کښې د واؤ سره دې كذا قال ابن الاثير، او د دې خلاف علامه مناوی ليکلې دی چه که صرف په کتم سره رنګ کړې شی نو توريږی او د حناء د يو ځائې کولو نه پس د احمر او اسود ترمينځه وی (يعنی سوربخن) او ممانعت د خالص تور نه دې. وقد اخرج مسلم من حديث انس قال اختضب ابوبكر رضي الله عنه بالحناء والكتم، واختضب عمر رضي الله عنه بالحناء بحتا (عون) والحديث اخرجه الترمذی والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

(): سنن الترمذي/اللباس ۲۰ (۱۷۵۳)، سنن النسائي/الزينة ۱۶ (۵۰۸۱، ۵۰۸۲)، سنن ابن ماجه/اللباس ۳۲ (۳۶۲۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۲۷، ۱۸۸۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۷/۵، ۱۵۰، ۱۵۴، ۱۵۶، ۱۶۹) (صحيح)

[۴۲۰۶] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ إِيَادٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِيَادٌ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ، قَالَ: "انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي نَحْوَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ ذُو وَفْرَةٍ بِهَا رَدْعُ حِنَّاءٍ وَعَلَيْهِ بُرْدَانِ أَخْضَرَانِ".

دابو رمثه نه روایت دي فرمائی چه دخپل پلارسره دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نوما ولیدل چه دنبی ﷺ په سر باندې دغوړونو دسرونو پورې ویښته وو او دنکریزو رنګ ئې ورکړې وو اودشین رنګ دوه څادرونه ئې اغوستلې.

﴿عَنْ أَبِي رِمْثَةَ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي نَحْوَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَإِذَا هُوَ ذُو وَفْرَةٍ بِهَا رَدْعُ حِنَّاءٍ وَعَلَيْهِ بُرْدَانِ أَخْضَرَانِ ﴾

ابورمثه رضی الله عنه فرمائی چه زه د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو هغه وخت د هغوی سرې مبارکې وې او په هغې کښې د نکریزو اثر وو او په هغوی باندې دوه شنې څادرې وې.

د دې نه په روستو روایت کښې زیادت دې

[۴۲۰۷] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبْجَرَ، عَنْ إِيَادِ بْنِ لَقِيطٍ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَقَالَ لَهُ أَبِي: أَرِنِي هَذَا الَّذِي بِظَهْرِكَ فَإِنِّي رَجُلٌ طَبِيبٌ، قَالَ: اللَّهُ الطَّبِيبُ بَلْ أَنْتَ رَجُلٌ رَفِيقٌ طَبِيبُهَا الَّذِي خَلَقَهَا.

د ابو رمثه نه په همدې روایت کښې منقول دي چه زما پلار نبی ﷺ ته اووئیل ماته خپله ملا وښایه ځکه چه زه یو طبیب یم نبی ﷺ اوفرمائیل طبیب خو الله تعالی دې البته ته یوملګرې یې باقی طبیب هغه ذات دې چاچه دا پیدا کړې دې.

﴿فَقَالَ لَهُ أَبِي أَرِنِي هَذَا الَّذِي بِظَهْرِكَ فَإِنِّي رَجُلٌ طَبِيبٌ. قَالَ « اللَّهُ الطَّبِيبُ بَلْ أَنْتَ رَجُلٌ رَفِيقٌ طَبِيبُهَا الَّذِي خَلَقَهَا » ﴾

## شرح الحدیث:

یعنی زما والد محترم رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه دا ستاسو په شا باندې څه دی ما ته ئې اوښایئ. اشاره ده د مهر نبوت طرف ته کومه چه د غوښې د یوې ورې ټکرې په شان وو. او وې وئیل چه زه طبیب او معالج یم، لهذا د دې علاج به درله اوکړم. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل اصل طبیب خو الله پاک دې بلکه ته خو یو همدرد او ملګرې ئې. او د دې نه په روستو طریق کښې دی ﴿فَقَالَ لِرَجُلٍ أَوْ لأَبِيهِ « مَنْ هَذَا ». قَالَ ابْنِي. قَالَ « لاَ تَجْنِي عَلَيْهِ » ﴾

[۴۲۰۸] (۳) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِيَادِ بْنِ لَقِيطٍ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَأَبِي فَقَالَ لِرَجُلٍ أَوْ لِأَبِيهِ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: ابْنِي، قَالَ: لَا تَجْنِي عَلَيْهِ وَكَانَ قَدْ لَطَّخَ لِحْيَتَهُ بِالْحِنَّاءِ".

د ابورمثه نه روایت دي فرمائی چه زه او زما پلار نبی ﷺ ته لاړو نبی ﷺ یوکس ته یازه

(۱): انظر حدیث رقم: (۴۰۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۳۶) (صحیح)
(۲): انظر حدیث رقم: (۴۰۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۳۶) (صحیح)
(۳): سنن الترمذي/ الشمائل (۴۳، ۴۵)، سنن النسائي/القسامة ۳۵ (۴۸۳۶)، ویأتي برقم (۴۴۹۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۳/۴) (صحیح)

پلارته اووئیل اوتپوس ئې وکړو داڅوک دې؟ زما پلار اووئیل دازماځوي دې نبی ﷺ اوفرمائیل دې به دقیامت په ورځ ستابوج نه اوچتوي ستادعملونوتپوس به هم ستانه کیږي اونبی ﷺ پخپله ږیره باندې نکریزي مږلي وي.
چه رسول الله ﷺ یو سړی ته یا د ابورمثه د پلار نه تپوس اوکړو چه دا تاسره څوک دې؟نو هغوی جواب ورکړو چه دا زما ځوئې دې. دا حدیث په کتاب الدیات کښ هم راروان دې هلته نور هم زیات تفصیل دې هلته داسې دی : عَنْ أَبِى رِمْثَةَ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِى نَحْوَ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لأَبِى « ابْنُكَ هَذَا ». قَالَ إِى وَرَبِّ الْكَعْبَةِ قَالَ « حَقًّا ». قَالَ أَشْهَدُ بِهِ. قَالَ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- ضَاحِكًا مِنْ ثَبْتِ شَبَهِى فِى أَبِى وَمِنْ حَلْفِ أَبِى عَلَىَّ. ثُمَّ قَالَ « أَمَا إِنَّهُ لاَ يَجْنِى عَلَيْكَ وَلاَ تَجْنِى عَلَيْهِ » وَقَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- (وَلاَ تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى) ﴾
د پوره روایت مفهوم دا دې : ابو رمثه ﷺ فرمائی چه کله زه د خپل والد محترم سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښ حاضر شوم (نو چونکه په ما کښ د خپل پلار مشابهت ډیر زیات وو په دې وجه) رسول الله ﷺ زما د پلار نه تپوس اوکړو چه دا ستاسو ځوئې دې؟نو زما پلار جواب ورکړو چه او په رب د کعبې مې دې قسم وی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل بالکل صحیح وائې؟ نو هغوی جواب ورکړو چه او زه د دې خبرې ګواهی ورکوم. نو په دې باندې رسول الله ﷺ مسکې شو، یو خو زما د خپل پلار سره په پوره پوره مشابهت باندې، او دویم زما د پلار په قسم خوړلو باندې زما په باره کښ، د دې نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه یوه خبره په ذهن کښ اوساتئ چه نه خو ستا ځوئې په تا باندې جنایت کوی او نه ته په هغه باندې جنایت کوې، رسول الله ﷺ هغه د اسلامی قانون نه خبر کړو چه په اسلام کښ دا نشته چه جنایت دې یو کس اوکړی او سزا دې بل کس ته ملاؤ شی. په اسلام کښ خو دا ده چه که د چا پلار په چا باندې جنایت اوکړی نو د هغې سزا به جنایت کونکی ته ملاویږی، او د هغه ځوئی یا بل خپلوان ته به نه ملاویږی، او هم دغه شان که د چا ځوئې جنایت اوکړی نو د هغې سزا به هغه ته ملاویږی د هغه پلار ته به نه ملاویږی. او په استدلال کښ رسول الله ﷺ آیت کریمه تلاوت اوفرمائیلو کوم چه پورته ذکر دې. د دې حدیث په آخر کښ دی چه د هغې په وجه باندې مصنف ﷫ دا حدیث دلته راوړې دې ﴿ وكان قد لطخ لحيته بالحناء ﴾ چه دې وخت کښ رسول الله ﷺ په خپله ګیره مبارکه کښ د حناء خضاب کړې وو.

## د رسول الله ﷺ د خضاب په باره کښ اختلاف د روایاتو :

او د دې نه روستو د انس ﷜ نه روایت دې ﴿ عَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ خِضَابِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- فَذَكَرَ أَنَّهُ لَمْ يَخْضِبْ وَلَكِنْ قَدْ خَضَبَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُمَا ﴾ چه د هغوی نه تپوس اوکړې شو د رسول الله ﷺ د خضاب په باره کښ نو هغوی د رسول الله ﷺ نه د خضاب نفی اوکړه چه رسول الله ﷺ خضاب نه دې کړې خو ابوبکر او عمر ﷠ کړې دې.

[۴۲۰۹] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ أَنَّهُ لَمْ يَخْضِبْ وَلَكِنْ قَدْ خَضَبَ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا".

دثابت نه روایت دې فرمائی چه دانس بن مالک ﷺ نه دنبی ﷺ دخضاب په باره کښې تپوس اوکړې شو هغه اووئیل نبی ﷺ خضاب نه دې استعمال کړې لیکن صدیق اکبر اوعمرفاروق ﷺ به خضاب استعمالول.

## (تطبیق بین الروایتین)

په دې دواړو احادیثو کښې د رسول الله ﷺ د خضاب په باره کښې نفیا او اثباتا تعارض دې، د دې ډیر توجیهات کیدلې شی.

(۱) خضب لحیته یعنی بعضها، ولم یحضب ای کلها. او یا دې دا اوئیلې شی چه قد خضب ای لحیته، ولم یحضب ای راسه،

(۲) او یو توجیه دا کیدې شی چه انه خضب فی وقت وترک فی معظم الاوقات فاخبر کل بما راه... رسول الله ﷺ کله خضاب کړې دې او کله ئې نه دې کړې، چا چه څنګه لیدلې دې د هغې خبر ئې ورکړې دې، لهذا دواړه خبرې په خپل ځائې صحیح دی.

(۳) او یو توجیه ابن رسلان کړې ده چه چرته راغلی دی چه خضب، د دې نه مراد لحیه یا راس دې، او چرته چه دی چه لم یحضب نو ددې نه مراد یدین او رجلین دی، قال صاحب البذل ان وجه الجمع هذا لیس بصواب، بل الصواب ما کتب مولانا محمد یحیی المرحوم الی اخره.

د دې نه پس هم هغه توجیهات دی کوم چه پورته ذکر شو. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي خِضَابِ الصُّفْرَةِ (²)

## باب د زیړ رنګ خضاب په بیان کښې

[۴۲۱۰] (³) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مُطَرِّفٍ أَبُو سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ وَالزَّعْفَرَانِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُ ذَلِكَ".

دعبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ به درنګ کړې شوي څرمني پیزار استعمالول اوخپله ږیره به ئې په ورس یوقسم زیړه ګیاده) او په زعفرانو باندې زیرولو اوابن عمر ﷺ به هم داسې کول.

[1]: صحیح البخاري/المناقب ۲۳ (۳۵۵۰)، اللباس ٦٦ (٥٨٩٥)، صحیح مسلم/الفضائل ۲۹ (۲۳٤۱)، (تحفة الأشراف: ۲۹۳)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الزینة ۱۷ (۵۰۹۰)، مسند احمد (۳/۲۱٦) (صحیح)

[2]) ثم الخضاب بالحمرة والصفرة واما بالسواد فمكروه عند الجمهور ومنهم الائمة الثلاثة فقيل تنزيها وقيل تحريما وعند مالك خلاف اولي، لكن الكراهة عندنا في غير الحرب، اما للحرب فمحمود بلا خلاف عند الحنفية كما في حاشية ابن عابدين وفي رواية عندنا يجوز بلا كراهة مطلقا اي الغزو وغيره وكان عثمان وكذا الحسن والحسين رضي الله عنهم يخضبون بالسواد واما علي فكان لا يخضب مطلقا (ملخصا من المترجم ۹٦٦)

[3]: سنن النسائي/الزینة من المجتبي ۱۲ (۵۲٤٦)، (تحفة الأشراف: ۷۷٦۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۱٤) (صحیح)

قوله: ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ وَالزَّعْفَرَانِ ﴾

د دې حديث نه د خضاب اصفر ثبوت اوشو اګر چه په ورس او زعفرانو باندې وی. او منع چه په کوم حديث کښې راغلې ده د هغې نه مراد ثياب دې چه سړی لره خپلې جامې په دې رنګ باندې رنګ کول نه دی جائز. او د دې نه په روستو حديث کښې ثابتيږی چه خالص حنا او حنا وکتم دواړو لره يو ځائې کولو سره خضاب کول د دې دواړو په مقابله کښې خضاب اصفر غوره دې. والحديث اخرجه النسائي: قاله المنذري.

[٤٢١١](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ: مَا أَحْسَنَ هَذَا؟ قَالَ: فَمَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ، فَقَالَ: هَذَا أَحْسَنُ مِنْ هَذَا، قَالَ: فَمَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالصُّفْرَةِ، فَقَالَ: هَذَا أَحْسَنُ مِنْ هَذَا كُلِّهِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په خوا کښې يو کس تيريدو اودنکريزو خضاب ئې استعمال کړې وو نبی ﷺ اوفرمائيل څومره ښه رنګ دې ، بيايوبل کس تيريدو چاچه نکريزې اوکتم (کيا) استعمال کړې وونبی ﷺ اوفرمائيل دادمخکښې نه ډير ښه دې ، راوی وائی بيابل کس تيريدو چه دزيړ رنګ خضاب ئې لګولې وونبی ﷺ اوفرمائيل دا دټولو نه ډير ښه دې.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي خِضَابِ السَّوَادِ
### باب د تور رنګ خضاب په بيان کښې

د خضاب اسود حکم مخکښې تير شوې دې وحاصله : يکره عند الجمهور : ومنهم الائمة الثلاثة، فقيل تحريما وقيل تنزيها، وعند مالک خلاف الاولى (٢) وفي البذل : يكره تحريما وكذا قال النووى انه حرام على الأصح واما للحرب فقد تقدم انه يجوز بلا كراهة، وفي رواية عن الحنفية الجواز مطلقا، وفي الفتاوى الامدادية للشيخ التهانوى رحمه الله تعالى، هو حرام.

[٤٢١٢](٣) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَكُونُ قَوْمٌ يَخْضِبُونَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ بِالسَّوَادِ كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ لَا يَرِيحُونَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه رسول الله فرمائيلی دی په اخره زمانه کښې به داسې خلق راشي چه دتور رنګ خضاب به لګوي دکونترې دسينې پشان، دوی به دجنت خوشبو بوې نکړي (يعنی جنت ته به داخل نه شي).

قوله: ﴿ يَكُونُ قَوْمٌ يَخْضِبُونَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ بِالسَّوَادِ كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ لاَ يَرِيحُونَ رَائِحَةَ الخ ﴾

---

(١): سنن ابن ماجه/اللباس ٣٤ (٣٦٢٧)، (تحفة الأشراف: ٥٧٢٠) (ضعيف)

(٢) وفي الموطاء قال مالك في صبغ الشعر بالسواد لم اسمع في ذلك شيئا معلوما، وغير ذلك من الصبغ احب الي)

(٣): سنن النسائي/الزينة ١٥ (٥٠٧٨)، (تحفة الأشراف: ٥٥٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٣/١) (صحيح)

رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه بعض خلق به په آخیره زمانه کښ داسې وی چه هغوی به په خپلو ویښتو کښ تور خضاب کوی لکه د کوترو ججورې دا خلق به د جنت خوشبوئی هم بوئی نه کړی.

**«دجنت د خوشبو نه بوئی کولو مطلب»**

د حدیث د آخری جملې درې مطلبه کیدې شی یو عدم دخول جنت، یعنی د دخول اولی نفی، د لازم وئیلو سره د ملزوم نفی کړې شوې ده، دویم مطلب دا دې چه جنت ته به اګر چه ځی خو د هغه ځائې د خوشبویئ نه به محروم وی. اهل جنت ته به د قیامت په ورځ باندې میدان حشر ته د جنت نه د هغه ځائې خوشبوئی راځی خو په دې خلقو به نه راځی، کذا اتذکر هذه المعانی الثلاثة من حضرة الشیخ رحمه الله تعالی.

په دې باندې اوجز ۶/۳۳۳ کښ کلام کړې شوې دې ففیه وروی ابوداوٗد والنسائی عن ابن عباس مرفوعا یکون فی اخر الزمان الحدیث واخطاء ابن الجوزی، کما قال الحافظ حیث اورده فی الموضوعات وقال انه لا یصح، ففیه عبدالکریم وهو ابن ابی المخارق فان عبدالکریم هذا هو ابن مالک الخدری (والصواب الجزری) وهو ثقة مخرج له فی الصحیحین ولو سلم انه ابن ابی المخارق فقد روی عنه مالک وهو لا یروی الا عن ثقة عنده، الی آخر ما فیه.

والحدیث اخرجه النسائی قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْإِنْتِفَاعِ بِالْعَاجِ

### باب د هاتی د غاښ استعمالولو بیان

[۴۲۱۳] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ الشَّامِيِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْمُنَبِّهِيِّ، عَنْ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ كَانَ آخِرُ عَهْدِهِ بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ، وَأَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ عَلَيْهَا إِذَا قَدِمَ فَاطِمَةَ، فَقَدِمَ مِنْ غَزَاةٍ لَهُ وَقَدْ عَلَّقَتْ مِسْحًا أَوْ سِتْرًا عَلَى بَابِهَا وَحَلَّتِ الْحَسَنَ، وَالْحُسَيْنَ قُلْبَيْنِ مِنْ فِضَّةٍ فَقَدِمَ فَلَمْ يَدْخُلْ فَظَنَّتْ أَنَّ مَا مَنَعَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَا رَأَى، فَهَتَكَتِ السِّتْرَ وَفَكَّكَتِ الْقُلْبَيْنِ عَنِ الصَّبِيَّيْنِ وَقَطَّعَتْهُ بَيْنَهُمَا، فَانْطَلَقَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمَا يَبْكِيَانِ، فَأَخَذَهُ مِنْهُمَا، وَقَالَ: يَا ثَوْبَانُ اذْهَبْ بِهَذَا إِلَى آلِ فُلَانٍ أَهْلِ بَيْتٍ بِالْمَدِينَةِ إِنَّ هَؤُلَاءِ أَهْلُ بَيْتِي أَكْرَهُ أَنْ يَأْكُلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي حَيَاتِهِمُ الدُّنْيَا يَا ثَوْبَانُ اشْتَرِ لِفَاطِمَةَ قِلَادَةً مِنْ عَصَبٍ وَسِوَارَيْنِ مِنْ عَاجٍ".

د ثوبان رضی الله عنه (دنبی علیه السلام ازاد کړې غلام) نه روایت دې فرمائی کله چه به نبی علیه السلام کوم ځای ته دسفرکولواراده کوله نودکور په ټولو افرادوکښې به دفاطمې رضی الله عنها سره دهغه آخری خبرې کیدلې اوکله چه به دسفرنه واپس راغې نودټولونه مخکښې به ئې د فاطمې رضی الله عنها سره ملاقات کولو یوځل نبی علیه السلام دجهاد نه راغې اوفاطمې رضی الله عنها پخپله دروازه باندې یوه پرده یاتات زورند کړې وو اوحسن اوحسین رضی الله عنهما ته ئې دسپینو زرو دوه بنګړې په لاس کښې اچولې وو نبی علیه السلام چه راغې نودخپل عادت کریمه خلاف کورته ورداخل نه شو ، فاطمې رضی الله عنها دا ګمان وکړو چه دې څیزونو نبی علیه السلام دلته دراتلونه منع کړو کوم چه هغه اولیدل ،

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۲۰۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۵/۵، ۲۷۹) (ضعیف الإسناد منکر)

فاطمه ﷺ دغه پرده وشلوله او دخپلو ځامنونه ئې بنګړي لرې کړل او مات ئې کړل او دنبی ﷺ مخې ته ئې وروغورځول، او هغوی دواړه نبی ﷺ ته په ژړا لاړل نبی ﷺ دهغوی نه دبنګرو ماتې ټوټې واغستې او ویې فرمائیل اې ثوبان دا ټوټې یوسه او دفلانې فلانی کور خلقوته ئې ورکړه څوک چه په مدینه کښې اوسیدل بیا ئې اوفرمائیل دا خلق (فاطمه حسن اوحسین) زما اهل بیت دې زه دابده ګنړم چه دوی خپل پاک څیزونه په دنیاکښې حاصل کړې، اې ثوبان دفاطمې دپاره د ملغلرو هار او دهاتې دغاښونو بنګړي واخله، د روایت په اخرکښې دي چه دفاطمې دپاره ئې د هار جوړولو حکم اوکړو.

﴿ عَنْ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا سَافَرَ كَانَ آخِرُ عَهْدِهِ بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ وَأَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الخ ﴾

## مضمون الحديث:

سیدنا ثوبان ﷺ فرمائی چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چه کله به هغوی چرته د سفر اراده فرمائیله نو د خپل کور په ټولو خلقو کښې به د ټولو نه اخر کښې چه چا سره ملاویدو هغه فاطمه ﷺ وه او کله چه به د سفر نه واپس کیدلو نو د ټولو نه اول به چه چا سره ملاویدو نو هغه هم فاطمه ﷺ وه. یو ځل رسول الله ﷺ د یوې غزوې نه تشریف راوړلو نو د هغوی په استقبال او د خوشحالئ په اظهار کښې فاطمې ﷺ د کور په دروازه باندې یو پرده خوره کړه او حسن او حسین ﷺ ته ئې د چاندئ دوه بنګړی واچول، نو د عادت مطابق رسول الله ﷺ د دې سفر نه په واپسئ باندې د ټولو نه مخکښې د هغې دروازې ته راغلو خو دننه داخل نه شو بلکه واپس شو. فاطمه پوهه شوه چه رسول الله ﷺ د دې پردې د وجې نه واپس شوې دې پس هغوی دا پرده اوشوکوله، او دواړه بنګړی ئې د ماشومانو د لاسونو نه ویستل او هم هغوی ته ئې ورکړل. هغه دواړو ماشومانو ژړل هغوی دواړه رسول الله ﷺ ته لاړل نو رسول الله ﷺ هغه د دې دواړو د لاسونو نه واخستل او ثوبان ﷺ ته ئې اوفرمائیل چه دا فلانی کور والو ته ورکړه (یعنی غریبانانو ته ئې اولیږل) او بیا ئې اوفرمائیل چه زه دا د خپل کور د سړو دپاره نه خوښوم چه هغوی دې په خپل دنیوی ژوند کښې خوندونه واخلی. او وې فرمائیل ﴿اشْتَرِ لِفَاطِمَةَ قِلاَدَةً مِنْ عَصَبٍ وَسِوَارَيْنِ مِنْ عَاجٍ ﴾ چه د فاطمې ﷺ دپاره یو امیل د بازار نه واخله د عصب جوړ کړې شوې. او دوه کړې ورله واخله د عاج جوړې کړې شوې.

## الكلام على فقه الحديث والترجمة:

په ترجمة الباب کښې انتفاع بالعاج ذکر دې، مصنف ﷺ د دې حدیث نه د هغې جواز ثابت کړې دې. د عاج یو معنی یا دا چه مشهوره معنی د هاتهی غاښ ده خو د هاتهی غاښ د امام شافعی ﷺ په نزد نجس دې اود احنافو په نزد طاهردې. په دې صورت کښې به حدیث د شوافعو خلاف وی ممکنه ده چه هغوی به د دې جواب دا ورکوی چه د عاج نه مراد دلته د هغې دویمه معنی ده ﴿ الذبل ﴾ یعنی د شمشتئ څرمن. او میتة البحر چونکه د جمهورو په نزد پاکه ده په دې وجه په ذبل مراد کولو کښې به هیڅ اشکال نه وی. ففی البذل قال فی القاموس العاج : الذبل وعظم الفيل، والذبل بفتح الذال المعجمة سكون والموحدة على وزن فلس، قال

فی القاموس والذبل جلد السحفاة البحرية او البرية الخ
....... خو مونږ وایو چه د عاج معروف معنی هم دا ده د هاتهی د غاښ د کوم اعتراف چه امام خطابی رحمه الله هم کړې دې هغوی لیکی: فاما العاج الذی تعرفه العامة فهو عظم انیاب الفیلة....
او ددې نه مخکښې هغوی دا اوئیل د اصمعی نه نقل کولو سره چه د عاج معنی د ذبل ده او د معروف معنی مراد کولو نه خطابی په ظاهر کښې انکار کوی ځکه چه د هاتهی د غاښ استعمال خو جائز نه دې هغه میتة ده.
په حاشیه د بذل کښې د ابن قدامه نه د امام مالک رحمه الله مذهب دا نقل کړې شوې دې چه فیل د امام مالک رحمه الله په نزد ماکول اللحم دې: وذهب مالک الی ان الفیل ان ذکی فعظمه طاهر لان الفیل عنده ماکول..... خو شیخ د دردیر مالکی نه نقل کړی دی چه هغوی تصریح کړې ده د عاج د کراهت یا د هغې د نجس کیدو، دغه شان صاحب د حیوة الحیوان د فیل په بحث کښې د فقهاء کرامو اقوال د هغې په حلت او حرمت کښې نقل کړې دی. د مالکیانو په نزد د دې حلال کیدل هغوی هم نه دی لیکلی.
آخر کتاب الترجل

.......................

# كِتَابُ الْخَاتَمِ

## د ګوتمې دا حکامو بیان

# بَاب مَا جَاءَ فِي اتِّخَاذِ الْخَاتَمِ

## د مُهر جوړولو بیان

د خاتم اچول د شوافعو او مالکیانو په نزد د صحیح قول مطابق مطلقا مباح دې کما فی الابواب والتراجم عن المحلی، او د احنافو په نزد د ضرورت د وجې نه د دې اچول مباح دی، او بغیر د ضرورت نه د دې ترک اولې دې. کما فی الشرح الشمائل للقاری، د احنافو تائید د هغه حدیث نه کیږی کوم چه په ﴿ باب من كرهه ﴾ کښې تیر شوې دې ﴿ ولبوس الخاتم الا لذی سلطان ﴾

[۴۲۱۴] (1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مُطَرِّفٍ الرُّوَاسِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "أَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى بَعْضِ الْأَعَاجِمِ فَقِيلَ لَهُ: إِنَّهُمْ لَا يَقْرَءُونَ كِتَابًا إِلَّا بِخَاتَمٍ، فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام د عجم وبعضې بادشاهانو ته خط لیکل اوغوښتل نو نبی علیه السلام ته ووئیلې شول چه دوی بغیر د مهر نه خط نه لولې نو نبی علیه السلام د خان دپاره د سپینو زرو نه ګوتمه جوړه کړه او «محمد رسول الله» ئې پکښې ولیکل.

(1): صحیح البخاري/اللباس ۴۷ (۵۸۶۸)، ۵۰ (۵۸۷۲)، ۵۲ (۵۸۷۵)، ۵۴ (۵۸۷۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۳، ۱۱۸۵، ۱۲۵۶، ۱۳۶۸)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/اللباس ۱۲ (۲۰۹۲)، سنن الترمذي/اللباس ۱۴ (۱۷۳۹)، الشمائل ۱۱ (۹۲)، الاستئذان (۲۷۱۸)، سنن النسائي/الزینة سنن ابن ماجه/اللباس ۳۹ (۳۶۴۱)، ۴۱ (۳۶۴۵)، مسند احمد (۳/۱۶۱، ۱۷۰، ۱۸۱، ۱۹۸، ۲۰۹، ۲۲۳) (صحیح)

﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يَكْتُبَ إِلَى بَعْضِ الأَعَاجِمِ فَقِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لاَ يَقْرَءُونَ كِتَابًا إِلاَّ بِخَاتَمٍ فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ وَنَقَشَ فِيهِ الخ﴾

**د رسول الله ﷺ د خاتم جوړولو قصه او په هغې کښې د روایات مختلفه تحقیق او توجیه**

سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ د بعض ملوک عجم طرف ته د دعوت اسلام د خطونو لیږلو اراده اوفرمائیله، او په بخاری کښې داسې دی: اراد ان یکتب الی کسری وقیصر والنجاشی... نو هغوی ته عرض اوکړې شو چه د هغه بادشاهانو طریقه دا ده چه هغه خط چه په هغې باندې مهر نه وی هغه نه قبلوی. په دې باندې رسول الله ﷺ د چاندئ ګوتمه جوړه کړه (او چونکه هغه د رسول الله ﷺ د نوم مهر وو په دې وجه هغې باندې محمد رسول الله (ﷺ) نقش کړې شو.

دا حدیث په روایت د انس رضی الله عنه دې، د انس رضی الله عنه په دې سلسله کښې دوه روایتونه دی یو خو په طریق د قتاده عن انس کوم چه حدیث الباب دې. او دویم په طریق د ابن شهاب عن انس، کوم چه به مصنف رحمه الله په راروان باب کښې ذکر کوی. په اول روایت کښې کوم چه په طریق د قتاده دې په هغې کښې د رسول الله ﷺ د چاندئ د ګوتمې اچولو ذکر دې. او د دویم طریق والا روایت کښې دی چه ما د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کښې د چاندئ ګوتمه اولیده یوه ورځ، خلقو هم دغه شان ګوتمې جوړولو سره واچولې. رسول الله ﷺ هغه اوغورځوله خلقو هم اوغورځولې. او د ابن عمر رضی الله عنهما په حدیث کښې دی کوم چه هم په دې باب کښې وړاندې ذکر دې چه اول رسول الله ﷺ د سرو زرو ګوتمه جوړه کړه نو خلقو هم د سرو زرو ګوتمې واچولې، چه کله رسول الله ﷺ دا حال اولیدو نو هغوی دا اوغورځوله، د دې نه پس رسول الله ﷺ د چاندئ ګوتمه جوړه کړه چه هغه ئې اچوله، د ابن عمر رضی الله عنهما د دې حدیث په ټولو طرقو کښې هم دغه شان دی په خلاف د حدیث د انس رضی الله عنه چه د هغې په یو طریق کښې د خاتم فضة غورځول ذکر دی.

امام بخاری رحمه الله د خاتم په باره کښې ډیر ابواب قائم کړې دی اول خو د خواتیم الذهب چه په هغې کښې ئې یو روایت د ابن عمر رضی الله عنهما ذکر کړې دې چه په هغې کښې د خاتم الذهب غورزول ذکر دی، د دې نه پس ئې خاتم الفضة باب قائم کړې دې چه په هغې کښې ئې دوه روایتونه ذکر کړې دی یو هم دا د ابن عمر رضی الله عنهما په کوم کښې چه طرح د خاتم الذهب ذکر دې، او بیا ئې دویم روایت د انس رضی الله عنه ذکر کړې دې په طریق د زهری چه په کښې طرح د خاتم الفضة ذکر دې، او بیا ئې په یو دریم باب کښې باب نقش الخاتم کښې د انس رضی الله عنه دویم حدیث په طریق د قتاده ذکر فرمائیلې دې چه په هغې کښې صرف لبس د خاتم فضه ذکر دې، د هغې د غورزولو هیڅ ذکر نشته، یعنی هم هغه روایت کوم چه دلته د باب رومبې حدیث دې.

خلاصه دا چه د ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې هیڅ اختلاف او تعارض نشته صرف د خاتم ذهب د غورځولو ذکر دې په خلاف د حدیث انس رضی الله عنه چه د هغې په یو طریق کښې د خاتم فضة اچول ذکر دی او په بل طریق کښې د خاتم فضة غورځول ذکر دی. په الابواب والتراجم کښې حضرت شیخ لیکی: قال الحافظ تحت روایة طرح خاتم الفضة: هکذا روی

الحديث الزهري عن أنس واتفق الشيخان على تخريجه من طريقه ونسب فيه إلى الغلط لأن المعروف أن الخاتم الذي طرحه النبي صلى الله عليه و سلم بسبب اتخاذ الناس مثله إنما هو خاتم الذهب كما صرح به في حديث بن عمر قال النووي تبعا لعياض قال جميع أهل الحديث هذا وهم من ابن شهاب لأن المطروح ما كان الا خاتم الذهب ومنهم من تأوله كما سيأتي قال الحافظ وحاصل الاجوبة ثلاثة ثم ذكرها وزاد عليه من عنده وجها رابعا. ذكره فارجع اليه.

د دې نه معلومه شوه چه حديث انس رضی الله عنه په طريق د زهری چه په هغې کښې غورځول د خاتم فضة ذکر دې دا په بخاری او مسلم دواړو کښې ذکر دې او په قول د امام نووی رحمه الله او عياض په اتفاق د محدثينو دا وهم دې، يعنی د خپل ظاهر په اعتبار سره که څه تاويل اونکړې شی، مګر دا چه که د دې څه تاويل اوکړې شی نو بيا صحيح کيدې شی او بعض محدثينو د دې توجيهات هم ذکر کړې دی کوم چه حضرت شيخ هم په الابواب والتراجم کښې ذکر نه دی فرمائيلي هم دغه شان هغه مونږ هم پريږدو. من شاء رجع الى الشروح.

د امام زهری رحمه الله د روايت صرف يو تاويل دلته نقل کوم کوم چه علامه سندی په حاشيه د نسائی کښې ذکر کړې دې. هغوی فرمائی : ان ثبتت رواية الزهری فی طرح خاتم الفضة فلعله لکراهة الزينة تنزيها، وکان يلبسه احيانا بعد ذلک لبيان الجواز ولا يلبسها فی غالب الاوقات ۱هـ....

[1] د دې تاويل نه پس به د ابن عمر او د انس رضی الله عنهما د دواړو د روايتونو مجموعه حاصل دا وی چه اول خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د سرو زرو ګوتمه جوړه کړه هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم په شروع شروع کښې واچوله په دې باندې خلقو هم د سرو زرو ګوتمې واچولې، رسول الله صلی الله علیه وسلم دا د سرو زرو ګوتمه اوغورځوله او وې فرمائيل چه بيا به زه دا چرې هم نه اچوم، چه کله خلقو دا اوليدل نو هغوی هم اوغورځولې، د دې نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د چاندئ ګوتمه جوړه کړه ضرورة د مهر لګولو دپاره چه هغه به رسول الله صلی الله علیه وسلم د مهر د لګولو دپاره استعمالوله او اکثر وختونو کښې به ئې نه اچوله لکراهة الزينة تنزيها، او کله کله به ئې د بيان د جواز دپاره اچوله، پس د نسائی په روايت کښې دی چه د هغې په وجه باندې علامه سندی دا تاويل مذکور بيان کړې دې ﴿ فکان يختم به ولا يلبسه ﴾ (ای خاتم الفضة) په دې صورت کښې د امام زهری رحمه الله روايت ته د وهم وئيلو ضرورت نشته، هسې هم امام زهری رحمه الله لوئې امام حديث دې.

دا د علامه سندی رحمه الله تاويل کوم چه ذکر شو داسې معلوميږی چه د مصنف رحمه الله رائې هم دا ده ځکه چه مصنف رحمه الله اول باب قائم کړو ﴿ باب ما جاء فی اتخاذ الخاتم ﴾ او بيا ئې دويم باب ﴿ باب ما جاء فی ترک الخاتم ﴾ [2] قائمولو نه پس هم دا حديث د زهری نقل کړې دې او بيا ئې په دې باندې سکوت کړې دې، او خپله د امام ابوداؤد رحمه الله نه منقول دی د خپل دې سنن په باره کښې چه : ﴿ وما لم اذکر فيه شيئا فهو صالح ﴾ لکه چه په مقدمه کښې ددې تفصيل تير

[1] د دې تاويل حاصل دا دې چه د زهری په روايت کښې د خاتم فضة د غورځولو مطلب دا نه دی چه د هميشه دپاره ئې اوغورځوله بلکه د اکثر وختونو په لحاظ سره ئې هغه ترک کړه صرف د مهر لګولو په کار به ئې راوستله هم داسې به ئې نه اچوله)

[2] في ترک الخاتم اي ترک لبس الخاتم لا الترک مطلقا)

شوي دي، هذا والله سبحانه وتعالى اعلم...... فتدبر وتشكر لعلك لا تجد هذا التوضيح في غير هذا الشرح. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي بنحوه مختصرا، قاله المنذري.

د دې نه پس په دويم روايت کښې دا زيادت دې:

زَادَ فَكَانَ فِي يَدِهِ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ عُمَرَ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ عُثْمَانَ فَبَيْنَمَا هُوَ عِنْدَ بِئْرٍ إِذْ سَقَطَ فِي الْبِئْرِ فَأَمَرَ بِهَا فَنُزِحَتْ فَلَمْ يَقْدِرْ عَلَيْهِ.

[۴۲۱۵](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، بِمَعْنَى حَدِيثِ عِيسَى بْنِ يُونُسَ زَادَ فَكَانَ فِي يَدِهِ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ عُمَرَ حَتَّى قُبِضَ وَفِي يَدِ عُثْمَانَ، فَبَيْنَمَا هُوَ عِنْدَ بِئْرٍ إِذْ سَقَطَ فِي الْبِئْرِ، فَأَمَرَ بِهَا فَنُزِحَتْ فَلَمْ يَقْدِرْ عَلَيْهِ.

دانس نه دتير شوي روايت په شان روايت منقول دې مگر په دې روايت کښې دا اضافه ده چه بيا دغه گوتمه دنبی عليه السلام په لاس کښې داخره پورې پاتې شوه تردې چه نبی عليه السلام وفات شو بيا دنبی عليه السلام دوفات نه پس دابوبکر په لاس و تردې چه هغه هم رفات شو بيا دعمرفاروق په لاس کښې پاتې شوه دهغه دوفات نه پس د عثمان غني په لاس کښې وه اودهغه دلاس نه يوکوهي ته وغورزيده حکم ئې اوکړو چه دکوهي نه تولي اوبه اوباسئ ليکن دغه گوتمه ئې پيدا نکړه.

يعنی د چاندئ دا گوتمه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس مبارک کښې تر آخره پورې وه، په لاس کښې د اوسيدو مطلب به د علامه سندی رحمه الله د تاويل مطابق دا وی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د مهر لگولو دپاره، ښکاره خبره ده چه هر وخت ئې په گوتمې اچولو څۀ کول. او بيا هم دغه شان د صديق اکبر او عمر فاروق رضي الله عنهما سره وه او بيا د عثمان رضي الله عنه سره، خو د هغوی نه بير اريس کښې چه کوم په قبا کښې دې هغې ته اوغورځيده، د موصوف په حکم سره د هغې د تلاش دپاره د کوهی اوبه راويستلې شوې او د هغې په لټون کښې ډير کوشش اوکړې شو خو هغه په لاس رانغله معلومه نه ده چه هغه خاتم مبارک څنگه وو آيا په دې کښې راز وو، وئيلې شی چه د هغې د ورکيدو نه پس د عثمان رضي الله عنه په خلافت کښې فتنې شروع شوې.

د بخاری په يو روايت کښې دی چه ﴿ فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ جَلَسَ عَلَى بِئْرِ أَرِيسَ قَالَ : فَأَخْرَجَ الْخَاتَمَ فَجَعَلَ يَعْبَثُ بِهِ فَسَقَطَ قَالَ فَاخْتَلَفْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مَعَ عُثْمَانَ فَنَنْزَحُ الْبِئْرَ فَلَمْ نَجِدْهُ ﴾ يعنی تر درې ورځو پورې مونږ دې کوهی ته د هغې د لټون دپاره راتلو د عثمان رضي الله عنه سره، په دې باندې حافظ رحمه الله په فتح الباری ص ۳۴۲ ج ۱۰ کښې ليکی : قال بعض العلماء كان في خاتمه صلى الله عليه و سلم من السر شيء مما كان في خاتم سليمان عليه السلام لأن سليمان لما فقد خاتمه ذهب ملكه وعثمان لما فقد خاتم النبي صلى الله عليه و سلم انتقض عليه الأمر وخرج عليه الخارجون وكان ذلك مبدأ الفتنة التي أفضت إلى قتله واتصلت إلى آخر الزمان...

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۵) (صحيح الإسناد)

[۴۲۱۶] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَنَسٌ، قَالَ: "كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ وَرِقٍ فَصُّهُ حَبَشِيٌّ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام ګوتمه دسپینو زرونه جوړه شوې وه او ددې غم دحبشي عقیق نه جوړ وو.

﴿عن أَنَسٌ قَالَ كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– مِنْ وَرِقٍ فَصُّهُ حَبَشِيٌّ﴾

او په دویم طریق کښې دی ﴿من فضة كله فصه منه﴾

### (غمې حبشي وو او که ټوله ګوتمه د چاندئ وه؟)

یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم ګوتمه د چاندئ وه، د هغې غمې حبشي وو. یعنی د حبشه د کاڼړو نه یو کاڼړې، خو چونکه په بل روایت کښې راځی چه فصه منه چه د هغې غمې هم د چاندئ وو په دې وجه د حبشی معنی دې دا واخستلې شی علی الوضع الحبشی، یا دا چه صانعه حبشی، او که د حبشی نه مراد کاڼړې واخستلې شی نو بیا به دا په تعدد د خاتم باندې محمول کولې شی. چه یو ګوتمه داسې وه او یو داسې، بلکه یو ګوتمه بله وه یعنی خاتم حدید چه په هغې باندې د چاندئ اوبه وې لکه په خپل محل کښې به راشی.

[۴۲۱۷] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِضَّةٍ كُلُّهُ فَصُّهُ مِنْهُ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه د نبی علیه السلام ګوتمه دسپینو زرونه جوړه شوې وه او ددې غمې هم دسپینو زرو نه جوړ وو.

الطريق الاول اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، والثانی اخرجه البخاری والترمذی والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

[۴۲۱۸] (³) حَدَّثَنَا نُصَيْرُ بْنُ الْفَرَجِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "اتَّخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ، وَجَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ، وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ، فَاتَّخَذَ النَّاسُ خَوَاتِمَ الذَّهَبِ فَلَمَّا رَآهُمْ قَدِ اتَّخَذُوهَا رَمَى بِهِ، وَقَالَ: لَا أَلْبَسُهُ أَبَدًا ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ نَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ ثُمَّ لَبِسَ الْخَاتَمَ بَعْدَهُ أَبُو بَكْرٍ ثُمَّ لَبِسَهُ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ، عُمَرُ ثُمَّ لَبِسَهُ بَعْدَهُ عُثْمَانُ حَتَّى وَقَعَ فِي بِئْرِ أَرِيسَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَخْتَلِفِ النَّاسُ عَلَى عُثْمَانَ حَتَّى سَقَطَ الْخَاتَمُ مِنْ يَدِهِ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله و دسرو زرو ګوتمه جوړه کړې وو او په دې کښې ئې غمې دخپل ورغوي باطني جانب ته ایخودلې وو او په دې غمي کښې ئې

---

¹): صحيح البخاري/ اللباس ٤٧ (٥٨٦٨)، صحيح مسلم/ اللباس ١٢ (٢٠١٢)، سنن الترمذي/ اللباس ١٤ (١٧٣٩)، سنن النسائي/الزينة ٤٥ (٥١٩٩)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٩ (٣٦٤١)، ٤١ (٣٦٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٩/٣، ٢٢٥) (صحيح)

²): سنن الترمذي/اللباس ١٥ (١٧٤٠)، الشمائل ١١ (٨٤)، سنن النسائي/الزينة ٤٥ (٥٢٠٣)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٩ (٣٦٤١)، (تحفة الأشراف: ٦٦٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ٤٨ (٥٨٧٠) (صحيح)

³): صحيح البخاري/اللباس ٤٥ (٥٨٦٦)، الأيمان والنذور ٦ (٦٦٥١)، الاعتصام ٤ (٧٢٩٨)، (تحفة الأشراف: ٧٨٣٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/اللباس ١٢ (٢٠٩٢)، سنن الترمذي/الشمائل ١١ (٨٤)، اللباس ١٦ (١٧٤١)، سنن النسائي/الزينة ٤٥ (٥١٩٩)، سنن ابن ماجه/اللباس ٣٩ (٣٦٣٩) (صحيح)

«محمد رسول الله» ليکي وو نوصحابه کرامو هم دسرو زرونه ګوتي جوړې کړې هرکله چه نبی ﷺ اوليدل چه دوی هم دسرو زرونه ګوتي جوړې کړې نو هغه له خپله ګوتمه وغورځوله او وئې فرمائيل چه اوس به دا هيڅ کله په لاس نکرم بيانبی ﷺ دسپينو زرو نه ګوتمه تيار کړه او دهغه دوفات نه پس ابوبکر صديق له په لاس کړه اودده دوفات نه پس عمر فاروق په لاس کوله اودهغه دوفات نه پس د عثمان ﷺ سره و بيا دهغه نه بير اريس «ديوکوي نوم دې» ته وغورځيدله.

**قوله:**﴿خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ وَجَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ الخ﴾ دا هغه حديث د ابن عمر ﷺ دې د کوم مضمون چه مخکښې تير شوې دې چه په هغې کښې دی چه هغه مطروح خاتم د ذهب وو نه خاتم دفضة، او په دې کښې دا هم دی چه د دې خاتم نقش "محمد رسول الله" (ﷺ) او د دې نه په روستو طريق کښې دی ﴿ لاَ يَنْقُشْ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هَذَا ﴾ چه څوک دې هم په يو ګوتمه باندې زما د ګوتمې والا نقش نه جوړوی ځکه چه د رسول الله ﷺ ګوتمه خو د هغوی مهر وو په مهر کښې خو هم د هغه نوم وی د چا چه هغه مهر دې که نوم وی او که بل څه خاص علامت.

**يو شبه او د هغې توجيه :**

په دې باندې دې دا شبه اونکړې شي چه د رسول الله ﷺ د خاتم په باره کښې خو دا راځی چه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس هغه د صديق اکبر، عمر فاروق او عثمان غنی ﷺ سره وه، نو آيا دې حضراتو به هم دا ګوتمه استعمالوله؟ نو بيا خو به دا عمل د دې حديث خلاف شي، او هسې هم خلاف مصلحت او خلاف عقل خبره ده چه د يو سړی مهر دې بل سړې استعمال کړی ځکه چه د رسول الله ﷺ خاتم دې حضراتو خلفاء ثلاثه سره د مهر لګولو دپاره نه وو بلکه هغه خو د تبرک دپاره وه، او د دې حضراتو د خواتيم نقوش بيل بيل وو، پس منقول دی چه د صديق اکبر ﷺ د خاتم نقش "نعم القادر الله" وو لکه چه په شرح معانی الاثار للطحاوی کښې دی او وئيلې شي چه د هغوی نقش "عبد ذليل لرب جليل" وو، او هم دغه شان د نورو حضراتو نقوش هم مختلف وو.

**(په ګوتمه مبارکه باندې څه نقش وو؟)**

د دې نقش په باره کښې د بخاری په روايت کښې دی : ﴿ **كان نقش الخاتم ثلاثة اسطر، محمد سطر، ورسول سطر، والله سطر** ﴾ په فتح الباری کښې دی چه د بخاری د دې روايت نه ظاهر کښې معلوميږی چه د رسول الله ﷺ د نقش خاتم عبارت صرف دومره وو، خو د انس ﷺ په روايت کښې د کوم تخريج چه ابو الشيخ کړې دې په هغې کښې ﴿ **لا اله الا الله محمد رسول الله** ﴾ دې خو دا زيادت شاذ دې د دې د راوی عرعره بن البرند امام ابن المدينی تضعيف کړې دې. اوس دا چه د دې کلماتو ترتيب کتابت څه وو؟ بعض وائی چه کوم ترتيب د تلفظ دې هم دغه د کتابت وو، او د بعض علماء کرامو نه منقول دی چه د دې کتابت د لاندې نه پورته طرف ته وو، د ټولو نه اول الله او د هغې نه لاندې رسول او د هغې نه لاندې محمد (**فتح الباری ۱۰/۳۲۱**) او دويمه خبره ئې دا ليکلې ده کومه چه په بذل کښې هم ذکر ده چه د بعضو رائې خو دا ده چه نقش کتابت څنګه چه د طباعت دپاره وی هم هغه شان وو يعنی

مقلوب، او وئیلې شوی دی چه د هغې کتابت نیغ وو، خو مهر چه به لګولې شو نو نیغ به لوستلې شو، وهذا من خصائصه ﷺ.

## (غمې دننه تلی طرف ته ګول پکار دی)

په حدیث الباب کښې دی ﴿ وَجَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ ﴾ چه د رسول الله ﷺ د ګوتمې غمې به د لاس د تلی طرف ته وو، دا د ابن عمر رضی الله عنهما روایت دې د دې نه په روستو باب کښې هم دغه شان راځی اوپه هغې کښې یو بل روایت هم د ابن عباس رضی الله عنهما راروان دې په هغې کښې ﴿ وجعل فصه على ظهرها ﴾ دې په مرقاة الصعود کښې دی : قال العلماء حديث الباطن اصح واكثر وهو الافضل وقال ابن رسلان يجوز ان يكون فعل ذلک فی وقت لبیان الجواز، كذا في البذل.([1]) والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

[۴۲۱۹]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، فِي هَذَا الْخَبَرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ، وَقَالَ: لَا يَنْقُشُ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هَذَا، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ.

دابن عمر رضی الله عنهما نه په دې روایت کښې دنبی علیه السلام نه منقول دي چه : «محمد رسول الله» په کښې نقش کړې شوي وو اونبی علیه السلام اوفرمائیل زما دنقش په شان نقش به څوک نه جوړوي، اوباقی حدیث ئې دتیر شوي حدیث په شان بیان کړو.

[۴۲۲۰]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ بِهَذَا الْخَبَرِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَالْتَمَسُوهُ فَلَمْ يَجِدُوهُ، فَاتَّخَذَ عُثْمَانُ خَاتَمًا وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: فَكَانَ يَخْتِمُ بِهِ أَوْ يَتَخَتَّمُ بِهِ.

دابن عمرونه په دې روایت کښې دنبی علیه السلام نه منقول دي فرمائی چه دوی دغه ګوتمه ولټوله خوبیدائې نکره نوعثمانه دځان دپاره یوه ګوتمه تیاره کړه او «محمد رسول الله» په کښې نقش کړو، راوی وائی چه عثمان خون به داګوته په لاس کوله بائې داسې اووئیل چه په دې باندې به ئې مهرلګولو.

..............

[1] فائده: في شرح الشمائل للباجوري وفي مستدرك الحاكم عن وهب لم يبعث الله نبيا الا وعليه شامة النبوة في يده اليمنى الا نبينا فان شامة النبوة كانت بين كتفيه خصوصية له وبه جزم السيوطي في خصائصه وهل ولد به او وضع حين ولد او عند شق صدره او حين نبي ﷺ اقوال: قال الحافظ ابن حجر اثبتها الثالث وبه جزم عياض اهـ

[2]: صحيح مسلم/ اللباس ۱۲ (۲۰۹۱)، سنن الترمذي/ الشمائل (۱۰۱)، سنن النسائي/ الزينة من المجتبى ۲۶ (۵۲۹۰)، سنن ابن ماجه/ اللباس ۳۹ (۳۶۳۹)، ۴۱ (۳۶۴۵)، (تحفة الأشراف: ۷۵۹۹) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الزينة ۵۱ (۵۲۲۰)، (تحفة الأشراف: ۸۴۵۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/اللباس ۴۶ (۵۸۶۶)، صحيح مسلم/اللباس ۱۲ (۵۴۷۶)، حم(۲/۲۲) (ضعيف الإسناد ومنكر المتن)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْخَاتَمِ

### باب د ګوتمې د نه استعمالولو بیان

[٤٢٢١]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ لُوَيْنٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ: "رَأَى فِي يَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ يَوْمًا وَاحِدًا، فَصَنَعَ النَّاسُ، فَلَبِسُوا وَطَرَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَرَحَ النَّاسُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ، زِيَادُ بْنُ سَعْدٍ، وَشُعَيْبٌ، وَابْنُ مُسَافِرٍ كُلُّهُمْ قَالَ: مِنْ وَرِقٍ.

دانس بن مالک ﷛ نه روایت دې فرمائي چه مرادنبی ﷺ په لاس کښې صرف یوه ورځ یوه ګوتمه لیدلې وه چه دسپینو زرونه جوړه شوې وه خلقو چه دا ولیدل نوهر چا : ځان دپاره ګوتې جوړې کړې بیانبی ﷺ دغه ګوتمه وغورځوله اوخلقوهم دخپلو لاسونونه ویستلې ، امام ابوداؤد فرمائي چه دا روایت زیاد او شعیب او ابن مسافر دزهري نه نقل کړې دې او په دې کښې ئې د ورق، ، لفظ ذکر کړې دې.

(عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ رَأَى فِي يَدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ يَوْمًا وَاحِدًا الخ)

دا د امام زهري ﷬ هم هغه روایت دې چه په هغې کښ د خاتم فضة د غورځولو ذکر دې چه په کوم باندې مفصل کلام مخکښ ذکر شو.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي خَاتَمِ الذَّهَبِ

### باب د نارینه دپاره د سرو د ګوتمې اچولو بیان

**(د سرو زرو د ګوتمې حکم):**

خاتم الذهب په حق د سړو کښ د ائمه اربعه په نزد حرام دې خلافا لبعض السلف، ففي الاوجز ۲۹۲/۲ عن المحلى: ورخص فيه طائفة منهم اسحاق بن راهويه وقال مات خمسة من الصحابة وخواتيمهم من ذهب، وقال رواه ابن ابي شيبة، وقال مصعب بن سعد رايت على طلحة وسعد وصهيب خواتيم من ذهب رواه البخاري في تاريخه، وعن حمزة والزبير ابن المنذر انهما نزعا من يد ابي اسد خاتما من ذهب حين مات وكان بدريا، رواه البخاري الى آخر ما في الاوجز.

[٤٢٢٢]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ الرُّكَيْنَ بْنَ الرَّبِيعِ يُحَدِّثُ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَرْمَلَةَ، أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ كَانَ يَقُولُ: "كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ عَشْرَ خِلَالٍ: الصُّفْرَةَ يَعْنِي الْخَلُوقَ، وَتَغْيِيرَ الشَّيْبِ، وَجَرَّ الْإِزَارِ، وَالتَّخَتُّمَ بِالذَّهَبِ، وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحِلِّهَا، وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ، وَالرُّقَى إِلَّا بِالْمُعَوِّذَاتِ، وَعَقْدَ التَّمَائِمِ، وَعَزْلَ الْمَاءِ لِغَيْرِ أَوْ غَيْرِ مَحِلِّهِ أَوْ عَنْ مَحِلِّهِ، وَفَسَادَ الصَّبِيِّ غَيْرَ مُحَرِّمِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: انْفَرَدَ بِإِسْنَادِ هَذَا الْحَدِيثِ أَهْلُ الْبَصْرَةِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ.

دابن مسعود ﷛ نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ به لس عادتونه بدګڼل(۱) زیړوالي یعنی خلوق (۲) دسپینو ویښتورنګ بدلول یعنی ویستل یا تورول (۳) لنګ

---

[1]: صحيح البخاري/اللباس ٤٦ (٥٨٦٨)، صحيح مسلم/اللباس والزينة من المجتبي ٢٧ (٥٢٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٠/٣، ٢٢٣، ٢٢٥) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الزينة ١٧ (٥١٠٣)، (تحفة الأشراف: ٩٣٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٠/٣، ٣٩٧، ٤٣٩) (منكر)

دګیتونه اوږدول (۴) دسرو زرو ګوتمه اچول (۵) دزنانړودپاره په حرامو ځایونوباندې سنګار کول (۶) ضرب بالکعاب یوه مشهوره لوبه ده دغوزانو اوهګوپه شان چه ماشومان ئې کوي (۷) دمعوذاتونه علاوه دبل دم چپ کول (۸) بندونه په غاړه کول (۹) په حرامو ځایونوکښې مني خارجول (۱۰) اودبچي صورت خرابول لیکن نبی کریم ﷺ داحرام نه دی ګنړلي.

﴿ كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَكْرَهُ عَشْرَ خِلاَلٍ الصُّفْرَةَ - يَعْنِي الْخَلُوقَ - وَتَغْيِيرَ الشَّيْبِ وَجَرَّ الإِزَارِ وَالتَّخَتُّمَ بِالذَّهَبِ وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحِلِّهَا وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ وَالرُّقَى إِلاَّ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَعَقْدَ التَّمَائِمِ وَعَزْلَ الْمَاءِ لِغَيْرِ أَوْ غَيْرِ أَوْ عَنْ مَحِلِّهِ وَفَسَادَ الصَّبِيِّ غَيْرَ مُحَرِّمِهِ ﴾

## شرح الحديث :

په دې حدیث کښې د لسو خصلتونو په باره کښې دا دی چه رسول اللهﷺ به دا بد ګنړل.

۱: د سړو دپاره خلوق،
۲: حضاب یعنی بالسواد
۳: جر الازار اسبال الازار
۴: تختم بالذهب
۵: د زنانه خپل زینت ښکاره کول بې محل، یعنی بغیر الزوج
۶: او ضرب بالکعاب. دا یو قسم لوبه ده داسې اوګنړه چه د شطرنج یو قسم دې باره سیا، اتهاره سیاه ورته وائی، په یو تخته وغیره باندې خانې جوړولو سره کولې شی (سمعت هذا التفسير من المفتي محمود الحسن الكنكوهيؒ)
۷: او رقی یعنی غیر اسلامی تعویذات او منتر مګر دا چه د قرآني آیتونو وغیره نه وی.
۸: عقد التمائم تعویذ په غاړه کښې اچول، په دې کښې هم یو استثناء ده کومه چه د نورو احادیثو نه ثابت ده تقدم فی محله...
۹: عزل الماء لغیر محله : د منی ضائع کول بې محل یعنی وطی فی الدبر، هکذا فسره العلامة السندی فی حاشية النسائی، وحمله الشيخ فی البذل العزل المعروف الذی تقدم فی النكاح اعنی اخراج الذكر عن الفرج قبل الانزال، والظاهر هو المعنى الاول لقوله فی غیر محله.
۱۰: فساد الصبی: د دې نه مراد هم هغه غیل دې کوم چه په کتاب الطب کښې تیر شوې دې، د دې آخری خصلت په باره کښې په حدیث کښې دی ﴿ غیر محرمہ ﴾ یعنی دا رسول اللهﷺ مکروہ تنزیهی ګنړلې دې نه تحریمی. والحديث اخرجه النسائی قاله المنذری.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي خَاتَمِ الْحَدِيدِ

## باب د وسپني د ګوتمې اچولو بيان

[۴۲۲۳] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ الْمَعْنَى، أَنَّ زَيْدَ بْنَ حُبَابٍ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ السُّلَمِيِّ الْمَرْوَزِيِّ أَبِي طَيْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ شَبَهٍ، فَقَالَ لَهُ: مَا لِي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الْأَصْنَامِ، فَطَرَحَهُ ثُمَّ جَاءَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ حَدِيدٍ، فَقَالَ: مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ، فَطَرَحَهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ أَتَّخِذُهُ؟ قَالَ: اتَّخِذْهُ

(۱): سنن الترمذي/اللباس ۴۳ (۱۷۸۵)، سنن النسائي/الزينة ۴۴ (۵۱۹۸)، (تحفة الأشراف: ۱۹۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۹/۵) (ضعيف)

مِنْ وَرِقٍ وَلَا تُتِمَّهُ مِثْقَالًا"، وَلَمْ يَقُلْ مُحَمَّدٌ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُسْلِمٍ، وَلَمْ يَقُلِ الْحَسَنُ السُّلَمِيَّ الْمَرْوَزِيَّ.

عبد الله بن بریده دخپل پلار نه روایت بیانوي فرمائي چه یو کس دپیتلو گوته په لاس کړي وه اودنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضرشو، نبي عليه السلام ورته اوفرمائیل څه وجه ده چه په ما باندې ستانه دبتانو بوئي راځي نودغه کس چه داخبره واوریده نوګوته ئې اوغورځوله اوداوسپې یوه بله ګوتمه ئې واچوله او راغې نبي عليه السلام اوفرمائیل څه وجه ده چه زه ستا سره دجهنمیانو زیور وینم نودغه کس چه داخبره واوریده نوګوته ئې اوغورځوله اوعرض ئې وکړواي دالله رسوله زه د څه شي نه ګوتمه تیاره کړم؟داسې ګوتمه جوړه کړه چه دسپینوزرو وي اودیومثقال نه کمه نه وي.

﴿ أَنَّ رَجُلاً جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ شَبَهٍ فَقَالَ لَهُ « مَا لِى أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الأَصْنَامِ » الخ ﴾ د خاتم حدید کراهت او عدم کراهت کښې د ائمه مذاهب په کتاب النکاح، باب الصداق فالتمس ولو خاتم من حدید........ د لاندې تیر شوې دې، او هلته د حدیث الباب حواله هم تیره شوې ده، دا د احنافو بلکه د ائمه ثلاثه دلیل دې.

## مضمون الحدیث:

یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو چا چه د پیتلو ګوتمه په لاس کړې وه. رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل څه اوشو چه زه ستا نه د اصنام بوئی محسوس کوم هغه فورا هغه اوغورځوله. ځکه چه دا بتان به ډیر کرته د پیتلو نه جوړولې شو، بیا یو بل سړې راغلو چه هغه د اوسپنې ګوتمه په لاس کړې وه، رسول الله ﷺ هغې ته د جهنمیانو کالې اوفرمائیلو. یعنی د هغوی د غاړې طوق وغیره کوم چه به د اوسپنې وی. هغه هم دا اوغورځوله. بیا هغه عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ زه د څه څیز ګوتمه جوړه کړم؟ وې فرمائیل: ﴿ اتَّخِذْهُ مِنْ وَرِقٍ وَلاَ تُتِمَّهُ مِثْقَالاً ﴾ چه د چاندئ ګوتمه جوړه کړه او د هغې وزن پوره یو مثقال مه ساته بلکه د هغې نه کم.

## د چاندئ د ګوتمې وزن څومره کیدل پکار دی؟:

په دې کښې د احنافو مسلک هم دا دې او د امام شافعي رحمه الله یو روایت هم دغه شان دې. او د امام احمد رحمه الله په نزد د مثقال قید نشته بلکه په دې باندې زیادت جائز دې او هم دا روایت د امام شافعي رحمه الله نه هم دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد هم په دې باندې زیادت جائز دې، د هغوی په نزد درهمین پورې زیادت جائز دې او په هغې باندې زیادت جائز نه دې. دا حدیث د خاتم حدید په کراهت کښې د ائمه ثلاثه چه احناف پکښې هم داخل دی د مسلک موافق دې او د شوافعو خلاف دې هم په دې وجه امام نووی رحمه الله فرمائیلې دی: والحدیث الوارد فی النهی ضعیف..... یو مثقال تقریبا د پاؤ باندې یو درهم برابر وی. (پنځه ګرامه د احنافو په نزد او ۶-۳ عند غیرهم. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری

[٤٢٢٤] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، وَزِيَادُ بْنُ يَحْيَى، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ حَمَّادٍ أَبُو عَتَّابٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مَكِينٍ نُوحُ بْنُ رَبِيعَةَ، حَدَّثَنِي إِيَاسُ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ الْمُعَيْقِيبِ، وَجَدُّهُ مِنْ قِبَلِ أُمِّهِ أَبُو ذُبَابٍ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حَدِيدٍ مَلْوِيٌّ عَلَيْهِ فِضَّةٌ، قَالَ: فَرُبَّمَا كَانَ فِي يَدِهِ، قَالَ: وَكَانَ الْمُعَيْقِيبُ عَلَى خَاتَمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د ابو ذباب رضي الله عنه نه روایت دي (څوک چه د ایاس بن حارث د مور د طرفه نیکه وو) فرمائی چه دنبی عليه السلام ګوتمه د وسپینې نه جوړه وه لیکن د سپینو زرو اوبه ورکړې شوې وې د دغه ګوتمه ځه وخت زمایه لاس کښې هم پاتې شوې وه او د نبی عليه السلام د دغه ګوتمه به کله کله د معیقیب (دیوسړي نوم دي) سره وه.

﴿حَدَّثَنِي إِيَاسُ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ الْمُعَيْقِيبِ وَجَدُّهُ مِنْ قِبَلِ أُمِّهِ أَبُو ذُبَابٍ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مِنْ حَدِيدٍ مَلْوِيٌّ عَلَيْهِ فِضَّةٌ﴾

## (د سند تشریح)

په دې سند کښې ﴿ وجده من قبل امه ﴾ جمله معترضه ده. لهذا اصل سند داسې دې ﴿حدثنی ایاس عن جده ﴾ یعنی ایاس روایت کوی د خپل نیکه نه د چا نوم چه معیقیب دې، یعنی نوح بن ربیعه هغه وائی چه ما ته بیان اوکړو ایاس د خپل نیکه معیقیب نه روایت کولو سره، او راوی تبعا دا هم بیان کړه چه د ایاس نیکه د مور د طرف نه یعنی د مور پلار چه د هغه کنیت ابوذباب دې. سیدنا معیقیب رضي الله عنه فرمائی چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ګوتمه د اوسپنې وه چه پرې د چاندئ اوبه وې. دا حدیث د احنافو خلاف نه دې داسې د اوسپنې ګوتمه د هغوی په نزد هم جائز ده.

**قوله:** ﴿ وَكَانَ الْمُعَيْقِيبُ عَلَى خَاتَمِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- ﴾

راوی وائی چه دا معیقیب د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ګوتمه باندې امین وو یعنی د هغې محافظ او نګران. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری

[٤٢٢٥] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُلِ اللَّهُمَّ اهْدِنِي وَسَدِّدْنِي وَاذْكُرْ بِالْهِدَايَةِ هِدَايَةَ الطَّرِيقِ وَاذْكُرْ بِالسَّدَادِ تَسْدِيدَكَ السَّهْمَ، قَالَ: وَنَهَانِي أَنْ أَضَعَ الْخَاتَمَ فِي هَذِهِ أَوْ فِي هَذِهِ لِلسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى شَكَّ عَاصِمٌ، وَنَهَانِي عَنِ الْقَسِّيَّةِ وَالْمِيثَرَةِ"، قَالَ أَبُو بُرْدَةَ: فَقُلْنَا لِعَلِيٍّ: مَا الْقَسِّيَّةُ؟ قَالَ: ثِيَابٌ تَأْتِينَا مِنَ الشَّامِ، أَوْ مِنْ مِصْرَ مُضَلَّعَةٌ فِيهَا أَمْثَالُ الْأُتْرُجِّ، قَالَ: وَالْمِيثَرَةُ شَيْءٌ كَانَتْ تَصْنَعُهُ النِّسَاءُ لِبُعُولَتِهِنَّ.

د علی رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی ته دا دعا غواره: «اللَّهُمَّ اهْدِنِي وَسَدِّدْنِي وَاذْكُرْ بِالْهِدَايَةِ هِدَايَةَ الطَّرِيقِ وَاذْكُرْ بِالسَّدَادِ تَسْدِيدَكَ السَّهْمَ» او زه ئې منع کړې یم چه زه ګوتمه واچوم په دې ګوتمه یا په دې ګوتمه کښې یعنی شهادت ګوتمه یا مینځنۍ ګوتمه

¹): سنن النسائي/الزينة ٤٧ (٥٢٠٨)، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٦) (ضعيف)

²): صحيح مسلم/اللباس ١٦ (٢٠٨٧)، سنن الترمذي/اللباس ٤٤ (١٧٨٦)، سنن النسائي/الزينة ٥٠ (٥٢١٤)، الزينة من المجتبى ٢٥ (٥٢٨٨، ٥٢٨٩)، سنن ابن ماجه/اللباس ٤٣ (٣٦٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٣١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٨/١، ١٣٤، ١٣٨) (صحيح)

په دې کښې دعاصم راوي شک دې اونبي ﷺ زه دقصيه اود مضره نه منع کړې يم ابو برده وائي مادعلي : نه تپوس اوکړو چه قصيه څه ته وائي هغه په جواب کښې اووئيل دايوقسم جامې دي کوي چه به دشام يامصرنه راتلي اوددې جامو په کرخو کښې به دترنج شکل جوړ شوې وو، اومصره هغه شي ته وائي کوم چه به زنانو دخپلو خاوندانو دپاره جوړولو.

**قوله:** ﴿عَنْ عَلِيٍّ – رضى الله عنه – قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « قُلِ اللَّهُمَّ اهْدِنِي وَسَدِّدْنِي وَاذْكُرْ بِالْهِدَايَةِ هِدَايَةَ الطَّرِيقِ وَاذْكُرْ بِالسَّدَادِ تَسْدِيدَكَ السَّهْمَ »﴾

د سيدنا علي رضي الله عنه نه روايت دې چه ماته يو ځل رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دا لوله ﴿اللهم اهدني﴾ يا الله ماته هدايت اوکړه، يعني نيغه لاره راته اوښايه او زما حالت صحيح کړه او رسول الله ﷺ د هغې سره دا هم اوفرمائيل چه د ﴿اللهم اهدني﴾ وئيلو په وخت د نيغې لارې تصور کوه، او د ﴿سددني﴾ وئيلو په وخت د غشي د نيغولو او برابرولو خيال کوه.

د دې حاصل دا شو چه دا دعا ډيره په خشوع سره د معنى او مفهوم په لحاظ سره لوله، صرف دا نه بلکه د نيغې لارې تصور ګويا زمونږ مخې ته يوه نيغه لاره ده کومه چه په نظر راځي وعلى هذا القياس د تسديد معنى د خيال کولو په وخت د غشي د نيغولو تصور کوه ځکه چه د نخښې جوړولو په وخت غشى لره ډير په کوشش سره هغې نخښې ته برابرولې شي.

## دشيخ د تصور د جواز دليل :

په دې حديث باندې په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهي رحمه الله د تقرير نه نقل کړې شوې دي چه په دې کښې اشاره ده دشيخ د تصور د جواز طرف ته، ځکه چه د الله پاک په نزد د شيخ مرتبه د غشي او لارې نه کمه نه ده. خصوصا د معتقدين شيخ په نزد[1] ځکه چه په تصور د شيخ کښې د خواطر جمع کول مقصود وي اګر چه د جهت اسفل د طرف نه وي. د هغې جهت په مقابله کښې کوم طرف ته چه قلب متوجه کول پکار دي يعني حق جل وعلى شانه، او بله دا چه د تصور الشيخ په وخت که د هغه محبت په زړه کښې راولي په دې کښې هم هيڅ باک نشته، خو ضرر په دې کښې دې چه خپل شيخ لره د تصور په وخت په امر باطن کښې متصرف اوګڼړي يا ئې خپلې مخې ته حاضر يا موجود يا عالم بحاله اوګڼړي. هم په دې وجه د مشائخو د دې په جواز کښې اختلاف راغلې دې، کيدې شي چه دا نزاع لفظي وي ځکه چه د مجوزينو مراد په تصور سره اول صورت دې او د مانعينو مراد د هغې قسم ثاني دې. خو چونکه په قسم اول کښې هم د عوامو د عقائدو فساد ته د رسيدو ويره ده په دې وجه مطلقا د دې نه منع کولې شي، وهو الحق حسب اقتضاء المقام او هم دا قول حق دې د دې عوارضو په وجه باندې، ځکه چه ډير مستحبات هم د عارض د وجې نه حرام شي پاتې مباح.

کوم تصور د شيخ چه حضرت ليکلى دا د صوفياء په نزد معروف دې دې لره بعض مشائخ د بعض سالکينو دپاره د مراقبې په وخت تلقين او تعليم کوي، د سالک د منتشر خواطر د مجتمع کولو دپاره، ځکه چه د شيخ ذات د هغه د معتقد په نزد د ټولو نه زيات محبوب وي

[1] پس هر کله چه د سهم او طريق تصور جائز دې نو د شيخ به په طريق اولى جائز وي.

نو دهغه تصور کولو سره دهغه خواطرمجتمع کول مقصود وی، ځکه چه د امر محبوب طرف ته د انسان طبیعت ډیر زر مائل کیږی او د هغه نه چه کوم ماسوا وی د هغوی نه معرض کیږی، هم په دې وجه مشائخ د بعض سالکین د حال مناسب د مراقبې په وخت تصور الشیخ علاجا ښائی، او د علی ﷺ د دې حدیث نه د هغې تائید په فهم کښې راځی. خو څنګه چه حضرت لیکلی چه چونکه د عقائدو مسئله ډیره نازکه ده په دې وجه په دې کښې احتیاط ضروری ګڼړی شیخ کامل چه چاته اوائی هغه دې کوی په خپله خوښه دې نه کوی.

﴿ قَالَ وَنَهَانِي أَنْ أَضَعَ الْخَاتَمَ فِي هَذِهِ أَوْ فِي هَذِهِ لِلسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى ﴾

یعنی منع کړم زه رسول الله ﷺ د دې نه چه ګوتمه واچوم په دې کوته کښې اشاره ئې د سبابه طرف ته فرمائیلې وه یا د وسطی طرف ته دا راوی ته یاد نه دی.

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د مسلمانانو اجماع ده خاتم لره په خنصر کښې د اچولو.

﴿ وَنَهَانِي عَنِ الْقَسِّيَّةِ وَالْمِيثَرَةِ الخ ﴾ د قسی تحقیق د کتاب اللباس په اول کښې په باب ما جاء فی لبس الحریر نه پس په باب من کرهه کښې تیر شوی دې د میثره ذکر هم ډیر کرته راغلې دې وړاندې په روایت کښې دی ابوبرده بیان کوی چه مونږ د علی ﷺ نه تپوس اوکړو چه د قسیه نه څه مراد دې نو هغوی اوفرمائیل چه د کپړو یو قسم دې کومې چه به مونږ ته راتلې د شام نه یا د مصر نه. ﴿ مُضَلَّعَةٌ فِيهَا أَمْثَالُ الْأُتْرُجِّ ﴾ چه په هغې کښې به د ریښمو نری نری تارونه (کرښې) وې او په هغې کښې به د اترج په شان ګلونه وو. ﴿ قال المیثرة شئ الخ ﴾ یعنی میثره هغه څیز دې کوم چه زنانه د خپلو خاوندانو دپاره جوړوی، په زین باندې پورته د اچولو دپاره یوه ښکلې او ډولی سره ګدئ. چه کله ریښمینه هم وی.

والحدیث اخرجه البخاری قول ابی بردة الی آخره تعلیقا، واخرج مسلم حدیث وضع الخاتم وما بعده فی اللباس وحدیث الدعاء فی الدعوات، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّخَتُّمِ فِي الْيَمِينِ أَوِ الْيَسَارِ

### باب: ګوتمه په ښی لاس کښې اچول پکار دی او که په ګس لاس کښې؟

### په مسئلة الباب کښې د مذاهب ائمه تحقیق:

دا مسئله مختلف فیه ده د ائمه ترمینځه، او روایات حدیثیه هم مختلف دی چه لبس خاتم په ښی لاس کښې پکار دې او که په ګس کښې، امام شافعی رحمه الله د یمین قائل دې، او جمهور چه پکښې ائمه ثلاثه هم دی د ترجیح یسار قائل دی، او په نسخ الیمین کښې یو حدیث هم راغلې دې چه ضعیف دې. د شوافعو په شان د احنافو یو قول هم د ترجیح یمین دې ځکه چه تختم د باب د زینت نه دې د کوم دپاره چه یمین اولې دې، او یو وجه د ترجیح یمین دا هم بیانولې شی لکه په کوکب الدری کښې هم دغه شان دی چه تختم بالیسار د روافض وغیره شعار دې. خو په درمختار کښې د دې برعکس لیکلې شوی دی یعنی دا چه د روافض شعار تختم بالیمین دې نه بالیسار، امام ترمذی رحمه الله په دې باب کښې ډیر روایات ذکر کړې دی چه په هغې کښې په اکثرو کښې یمین ذکر دې او د یسار ئې صرف یو روایت ذکر کړې دې او هغه هم موقوفا ﴿ کان الحسن والحسین یتختمان فی یسارهما ﴾ او امام ترمذی رحمه الله د تختم فی

اليمين روايت لره ترجيح ورکړې ده كما هو مسلک الشافعي وفي هامش البذل : وحكى القارى في جمع الوسائل : عن مالک استحباب اليسار وكراهة اليمين، وعن الشافعية وجهين، الصحيح ان اليمنى افضل، وقال المناوى اليمنى عن تسعة من الصحابة واليسار عن الثلاثة، وقال الدردير، السنة اليسار قال الدسوقي : لانه اخر الفعلين عنه ﷺ، په کوکب کښې د حضرت گنگوهي رائې هم دا ذکر ده چه دې باره کښې تقريبا يمين او يسار برابر دى اصالة، خو چونکه اتخاذ الخاتم في اليسار د روافضو عادت دې په دې وجه دا زمونږ دپاره مکروه دې، په بذل کښې هم دغه شان دى چه چونکه تختم في اليسار د روافض شعار دې په دې وجه ممنوع دې. (وهذا الوجه لبيان الكراهة ضعيف لانه من فعله ﷺ وفعله ﷺ سنة الى يوم القيامة لا يكره لاجل شعار احد من الكفرة وما تقول في العمامة السوداء اليست هذه شعار الروافض؟)

امام ابوداؤد رحمه الله د دې باب په شروع کښې د علی رضی الله عنه روايت ذکر کړو

[٤٢٢٦] (١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: شَرِيكٌ، وَأَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ".

دعلى رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه شريک وائى ماته ابوسلمه بن عبدالرحمن خبر راکړې دې چه نبى عليه السلام به دښې لاس په گوتمه کښې گوتمه اچولې.

﴿ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ ﴾ او دويم روايت د ابن عمر رضی الله عنهما ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَتَخَتَّمُ فِي يَسَارِهِ ﴾

[٤٢٢٧] (٢)حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يَتَخَتَّمُ فِي يَسَارِهِ، وَكَانَ فَصُّهُ فِي بَاطِنِ كَفِّهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ، وَأُسَامَةُ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، بِإِسْنَادِهِ فِي يَمِينِهِ.

دابن عمرنه روايت دې فرمائى چه نبى كريم و به پخپل گس لاس مبارک کښې گوتمه اچوله او ددې غمې به دورغوي طرف ته وو، امام ابوداؤد فرمائى ابن اسحق وئيلى دى چه اسامه بن زيد دنافع نه په دې سند سره بيان کړيدي چه نبى كريم و به گوتمه په ښى لاس کښې اچوله.

[٤٢٢٨] (٣)حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَلْبَسُ خَاتَمَهُ فِي يَدِهِ الْيُسْرَى".

\ دنافع نه روايت دې فرمائى چه ابن عمربه پخپل گس لاس کښې گوتمه اچوله.

دا مصنف رحمه الله په دوه طرقو سره ذکر کړې دې اول عبدالعزيز بن نافع، په دې کښې خو هم دا ده ﴿ كان يختم في يساره ﴾ او دويم طريق د ﴿ اسامه بن زيد عن نافع ﴾ په دې کښې په ځائې د ﴿ في يساره ﴾ في يمينه دې. د دې نه پس مصنف رحمه الله د اول طريق يعنى د طريق عبدالعزيز په تائيد

(١): سنن الترمذي/الشمائل ١٢ (٩٠)، سنن النسائي/الزينة ٤٦ (٥٢٠٦)، (تحفة الأشراف: ١٠١٨٠) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٧٦٦) (شاذ)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٧٦٦) (صحيح الإسناد)

کښې د عبيد الله عن نافع روايت ذکر کړو چه د ابن عمر رضي الله عنهما خپله عمل د تختم باليسار وو، پس حاصل دا چه دا د باب اول حديث يعنی حديث د علي رضي الله عنه نه د تختم باليمين ثبوت او د حديث ثاني يعنی د حديث ابن عمر رضي الله عنهما نه د تختم في اليسار ثبوت اوشو، د دې نه پس مصنف رحمه الله يو بل روايت ذکر کړو د لبس باليمين چه د هغې راوی ابن عباس رضي الله عنهما دي

[۴۲۲۹] (ا) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: "رَأَيْتُ عَلَى الصَّلْتِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَوْفَلِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ خَاتَمًا فِي خِنْصَرِهِ الْيُمْنَى، فَقُلْتُ: مَا هَذَا؟ قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَلْبَسُ خَاتَمَهُ هَكَذَا وَجَعَلَ فَصَّهُ عَلَى ظَهْرِهَا، قَالَ: وَلَا يَخَالُ ابْنَ عَبَّاسٍ إِلَّا قَدْ كَانَ يَذْكُرُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَانَ يَلْبَسُ خَاتَمَهُ كَذَلِكَ".

دمحمدبن اسحاق نه روايت دي فرمائی چه صلت بن عبد الله بن نوفل بن عبد المطلب مې وليدو چه دښي لاس په کچه ګوتمه کښې ئې ګوتمه اچولې وه ماورته اووئيل داڅه دي؟ هغه اووئيل ماابن عباس ليدلې وو چه ګوتمه به ئې داسې اچولې وه اودګوتې غمې پې دورغوي شاطرف ته کړې وو اوداڅې هم اووئيل چه دابن عباس متعلق داګمان کيدې شي چه هغه ددې خبرې ذکرکولو چه نبی عليه السلام به هم داسې ګوتمه اچوله.

خو په هغه روايت کښې دی ﴿ وجعل فصه على ظهرها ﴾ او د دې نه مخکښې د ابن عمر رضي الله عنهما په روايت کښې تير شوې دی ﴿ وكان فصه في باطن كفه ﴾ او دا مخکښې تير شو قال العلماء حديث الباطن اصح، خو د ظهر کف ممانعت هم په يو روايت کښې نه دې راغلې، فالامر اوسع لكن الاولى هو الباطن للاتباع (حاشية النسائی) حديث علي رضي الله عنه اخرجه الترمذی والنسائی، وحديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْجَلَاجِلِ

### بابه د کونګروګانو اغوستلو بيان

جلاجل د جلجل جمع ده، يعنی الجرس الصغير، والجرس ما يعلق بعنق الدابة او برجل البازی والصبيان (حاشية) يعنی وړوکې جرس او آواز کونکې کالې وهو المراد ههنا.

[۴۲۳۰] (۲) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، أَنَّ عَامِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ ابْنِ الزُّبَيْرِ، "أَخْبَرَهُ أَنَّ مَوْلَاةً لَهُمْ ذَهَبَتْ بِابْنَةِ الزُّبَيْرِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ، فَقَطَعَهَا عُمَرُ ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانًا".

عامر بن عبد الله وائی چه علي بن سهل بن زبير راته وئيلی دی چه زمونږه ازاده کړې وينځه دزبير دلورسره عمر فاروق ته لاړه اودهغې په پښو کښې کنګروګان وو، عمرفاروق له دا ګنګروګان پرې کړل او وئې فرمائيل مادنبی عليه السلام نه اوريدلې دې چه فرمائيل ئې چه ددې دهرې يوې تلۍ سره يو شيطان وې ځکه چه ددينه دساز په شان آواز اوځي.

(۱): سنن الترمذي/اللباس ۱۶ (۱۷۴۲)، (تحفة الأشراف: ۵۶۸۶) (حسن صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۰۶۸۱) (ضعيف)

**قوله:** ﴿ أَنَّ عَامِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ - أَخْبَرَهُ أَنَّ مَوْلَاةً لَهُمْ ذَهَبَتْ بِابْنَةِ الزُّبَيْرِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ فَقَطَعَهَا عُمَرُ الخ ﴾ د عبد الله بن زبیر رضی الله عنهما خوئي عامر رحمه الله فرمائی چه زمونږ یوې وینځې د زبیر رضی الله عنه وړه لور یعنی د عامر ترور عمر رضی الله عنه ته بوتله. چه د هغې په خپو کښې شرنګیدونکې کالې وو عمر رضی الله عنه هغه په خپل لاس باندې مات کړو او وې فرمائیل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی چه د هر جرس سره شیطان وی. ﴿ ان مع كل جرس شيطان ﴾ دا حدیث په کتاب الجهاد کښې تیر شوې دې، د دې حدیث نه معلومه شوه چه هر هغه کالې چه شرنګ کوی په حرکت سره آواز کوی او په هغې کښې آواز پیدا کیږی هغه د جرس په حکم کښې دې لا يجوز لبسها للنساء والباسها للبنات الصغار، او کوم کالې چه د ګونګرو والا نه وی خو د هغې خپل مینځ کښې د یو ځائې کیدو د وجې نه آواز پیدا کیږی په مزه مزه نو هغه په دې کښې داخل نه دې. (بذل)

[۴۲۳۱] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ بُنَانَةَ مَوْلَاةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَسَّانَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: بَيْنَمَا هِيَ عِنْدَهَا إِذْ دُخِلَ عَلَيْهَا بِجَارِيَةٍ وَعَلَيْهَا جَلَاجِلُ يُصَوِّتْنَ، فَقَالَتْ: لَا تُدْخِلْنَهَا عَلَيَّ إِلَّا أَنْ تَقْطَعُوا جَلَاجِلَهَا، وَقَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ جَرَسٌ".

دبنانه څوک چه دعبدالرحمن بن حسان انصاری ازاده کړې وینځه وه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه زه دام المومنین عائشې رضی الله عنها سره وم چه یوه جینۍ دهغې خواته راغله اودهغې په پښوکښې داواز والاګنګروګان وو عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل چه بیا دګنګروګانو کټ کولونه بغیر زما خواته مه رازه ځکه چه ما دنبی علیه السلام نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې په کوم کور کښې چه جرس (ټلۍ) موجوده وي هلته فرښتې نه داخلیږي.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي رَبْطِ الْأَسْنَانِ بِالذَّهَبِ

### باب په سروزرو باندې د غاښونو د پیوند کولو بیان

[۴۲۳۲] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَشْهَبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ، "أَنَّ جَدَّهُ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ قُطِعَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ وَرِقٍ فَأَنْتَنَ عَلَيْهِ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ".

دعبدالرحمن بن طرفه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دده دنیکه عرفجه بن اسعد پوزه دکلاب جنګ په ورځ پریکړې شوې وه نو هغه ځانله دسپینوزرونه پوزه جوړه کړه او په هغې کښې بدبوئي پیدا شوه نونبی علیه السلام ورته اوفرمائیل چه دسروزرونه ئې جوړه کړه ځکه چه په سرو زرو کښې بدبوئي نه وي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ أَنَّ جَدَّهُ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ قُطِعَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۴۲/۶، ۲۴۳) (حسن)

[2]: سنن الترمذي/اللباس ۳۱ (۱۷۷۰)، سنن النسائي/الزينة ۴۱ (۵۱۶۴)، (تحفة الأشراف: ۸۹۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۲/۴، ۲۳/۵) (حسن)

وَرِقٍ فَأَنْتَنَ عَلَيْهِ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ ﴾

یوم الکلاب د جاهلیت د زمانې د یو مشهور جنګ نوم دې. عبدالرحمن بن طرفه رحمه الله فرمائي چه زما د نیکهٔ په دې جنګ کښې پوزه پرې شوې وه نو هغوی د چاندۍ پوزه جوړه کړه، خو ورځې پس په هغې کښې بوئې پیدا شو هغوی د رسول الله ﷺ نه معلومه کړه نو د هغوی په امر باندې هغوی د سرو زرو پوزه جوړه کړه. مصنف رحمه الله په دې حدیث سره ترجمة الباب والا مسئله ربط الاسنان بالذهب په طریقه د قیاس ثابته کړې ده چه صحیح دې. ځکه چه هر کله مستقل اندام د سرو زرو جوړول جائز دی نو غاښونو لره د سرو زرو په تار باندې تړل په طریق اولی جائز شو، هم دغه شان که غاښ د سرو زرو تیار کړې شی هغه به هم جائز وی. (بذل) والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی حسن، قاله المنذری

[٤٢٣٣](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَأَبُو عَاصِمٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَشْهَبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ عَنْ عَرْفَجَةَ بْنِ أَسْعَدَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ يَزِيدُ قُلْتُ لِأَبِي الْأَشْهَبِ: أَدْرَكَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ طَرَفَةَ جَدَّهُ عَرْفَجَةَ؟ قَالَ: نَعَمْ.

عبدالرحمن د عرفجه بن اسعد نه په بل سند سره ددې روایت په شان روایت نقل کړې دې، یزید وئیلی دی چه ما ابو الاشهب ته ووئیل چه ایا د عبدالرحمن ملاقات د عرفجه سره ثابت دې؟ هغه ووئیل هو.

[٤٢٣٤](2) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَبِي الْأَشْهَبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ بْنِ عَرْفَجَةَ بْنِ أَسْعَدَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عَرْفَجَةَ بِمَعْنَاهُ.

عبدالرحمن بن طرفه هم د عرفجه بن اسعد نه ددې روایت هم مثل روایت نقل کړې دې.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الذَّهَبِ لِلنِّسَاءِ

### باب د ښځو دپاره د سرو زرو د استعمال بیان

[٤٢٣٥](3) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِلْيَةٌ مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ أَهْدَاهَا لَهُ فِيهَا خَاتَمٌ مِنْ ذَهَبٍ فِيهِ فَصٌّ حَبَشِيٌّ، قَالَتْ: فَأَخَذَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعُودٍ مُعْرِضًا عَنْهُ أَوْ بِبَعْضِ أَصَابِعِهِ ثُمَّ دَعَا أُمَامَةَ ابْنَةَ أَبِي الْعَاصِ ابْنَةَ ابْنَتِهِ زَيْنَبَ، فَقَالَ: تَحَلَّيْ بِهَذَا يَا بُنَيَّةُ".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائي چه نبی کریم ﷺ ته زیورات راوړلې شول کوم چه ورته د حبشو بادشاه نجاشي په تحفه کښې رالیږلې وو، په دې زیوراتو کښې یوه د سروزرو ګوتمه وه اویمني غمي پکښې لیدلې وو عائشه رضی الله عنها فرمائي چه نبی علیه السلام په یو لرګي باندې راواخستله په داسې حال کښې چه توجه ئې ورته نه کوله اویائې په بعضې ګوتو سره راواخستله او بیا ئې امامة بنت ابی العاص څوک چه د نبی علیه السلام دلور زینب دلور

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٥) (حسن)
(2): انظر حديث رقم: (٤٢٣٢)، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٥) (حسن)
(3): سنن ابن ماجه/اللباس ٤٠ (٣٦٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٦١٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٠١، ١١٩) (حسن الإسناد)

لور وه را اوغوښتله او ورته ئې اوفرمائيل اې بچوړيه داته په لاس کړه.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- حِلْيَةٌ مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ الخ ﴾ يعنې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې نجاشي بادشاه د سرو زرو کالي راوليږل په هغې کښې يو ګوتمه د سرو زرو هم وه رسول الله ﷺ هغه په يو لرګي يا خپلې ګوتې مبارکې سره اوچته کړه ډيره په بې رغبتۍ ښکاره کولو سره، د دې نه پس هغوی خپله وره نمسئ يعنې امامه ﷺ راوغوښتله او ورکولو سره ئې اوفرمائيل : ﴿ تحلى بهذا يا بنية ﴾ چه اې خورې لورې دا واچوه. والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذرى.

[٤٢٣٦]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَسِيدِ بْنِ أَبِي أَسِيدٍ الْبَرَّادِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ حَلْقَةً مِنْ نَارٍ، فَلْيُحَلِّقْهُ حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُطَوِّقَ حَبِيبَهُ طَوْقًا مِنْ نَارٍ، فَلْيُطَوِّقْهُ طَوْقًا مِنْ ذَهَبٍ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُسَوِّرَ حَبِيبَهُ سِوَارًا مِنْ نَارٍ فَلْيُسَوِّرْهُ سِوَارًا مِنْ ذَهَبٍ وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ فَالْعَبُوا بِهَا".

دابوهريره ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: څوک چه خپل محبوب ته د اور حلقه اچول غواړي نو د سرو زرو حلقه دې ورته واچوي، او څوک چه خپل محبوب ته د اور يو طوق ورپه غاړه کول غواړي نو د سرو زرو اميل دې ورپه غاړه کړي، او څوک چه خپل محبوب ته د اور بنګړي اچول غواړي نو د سرو زرو بنګړي دې ورته واچوي، ليکن ستاسو دپاره دسپينو زرو استعمال مناسب دې او په دې باندې لوبې کوئ.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ حَلْقَةً مِنْ نَارٍ فَلْيُحَلِّقْهُ حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ فَالْعَبُوا بِهَا » ﴾

په دې حديث کښې زنانه هم د سرو زرو د کالو نه منع کړې شوې دی او دا چه څوک خپل محبوب ته د اور طوق اچول غواړی نو هغه ته دې د سرو زرو کالي واچوی، او بيا په آخير کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د چاندۍ کالي اختيار کړئ د دې نه چه مو څه خوښه وی کالي جوړ کړئ، په بل روايت کښې دی کوم چه د حذيفه ﷺ د خور نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ يا معشر النساء اما لكن فى الفضة ما تحلين به ﴾ چه اې د زنانو ډلې! آيا ستاسو دپاره په چاندۍ کښې دا ګنجائش نشته چه تاسو د دې نه کالي جوړ کړئ، بيا ئې اوفرمائيل چه په تاسو کښې يو زنانه هم نشته چه هغه د سرو زرو کالي جوړ کړی او هغه ښکاره کړی مګر دا چه هغې ته به عذاب ورکولې شی د هغې په وجه باندې (تحلى ذهبا تظهره) د دې نه پس د اسماء بنت يزيد ﷺ حديث راروان دې، د هغې مضمون هم داسې دې چه کومه زنانه هم د سرو زرو هار جوړولو سره په غاړه کښې اچوی نو هغې ته به په آخرت کښې د اور هار اچولې شی.

## د احاديث الباب د جمهورو د طرف نه جواب او توجيه :

د دې باب احاديث د جمهورو په نزد يا خو منسوخ دی د هغه مشهور حديث د وجې نه په

(): تفرد به أبوداود (تحفة الأشراف: ١٤٦٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٤/٢، ٣٧٨) (حسن).

کوم کښې چه د سرو زرو په سرو باندې حرامیدل او د زنانو دپاره د حلالیدو تصریح ده. او یا به دا محمول کولې شی د هغه سرو زرو کالی باندې کوم چه د شهرت او فخر دپاره واچولې شی د کوم طرف ته چه په دې احادیثو کښې اشاره هم ذکر ده. ﴿تظهره﴾ او یا به د دې نه مراد هغه کالی اخستلې شی د کوم چه زکوة نه وی ورکړې شوې، یا اسوره غلیظه باندې محمول دې، یعنی د سرو زرو ډیر درانهٔ درانهٔ کالی کوم چه بعض د مالدارې کورنئ زنانه اچوی ځکه چه دا قسم کالی، د تکبر علامت وی.

حدیث عـائشة رضي الله عنها اخرجه ابن مـاجه، وحدیث اخت حذیفة رضي الله عنها اخرجه النسـائی، وحدیث اسمـاء بنت یزید رضي الله عنها ایضـا اخرجه النسـائی، قـاله المنذری

[۴۲۳۷] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ امْرَأَتِهِ، عَنْ أُخْتٍ لِحُذَيْفَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ أَمَا لَكُنَّ فِي الْفِضَّةِ مَا تَحَلَّيْنَ بِهِ أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تَحَلَّى ذَهَبًا تُظْهِرُهُ إِلَّا عُذِّبَتْ بِهِ".

دحذیفة رضي الله عنه دخورنه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلي وو: اې دزنانوډلې ایاستاسو دپاره سپین زر کافي نه دی چه زیورات ورنه جوړ کړئ؟، خبردار په تاسو کښې داسې زنانه نشته چه دسروزرو زیورات واچوي او په دې باندې ځان مزین کړي مګرددې په وجه به دې ته دقیامت په ورځ باندې عذاب ورکولی شي.

[۴۲۳۸] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، أَنَّ مَحْمُودَ بْنَ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ يَزِيدَ حَدَّثَتْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ تَقَلَّدَتْ قِلَادَةً مِنْ ذَهَبٍ قُلِّدَتْ فِي عُنُقِهَا مِثْلَهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ جَعَلَتْ فِي أُذُنِهَا خُرْصًا مِنْ ذَهَبٍ جُعِلَ فِي أُذُنِهَا مِثْلُهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

داسماء بنت یزید رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: هرې یوې زنانه چه په غاړه کښې دسروزرو هار واچوونو دقیامت په ورځ به ددې هار په شان داورېو هار ددې په غاړه کښې واچولې شي اوکوې زنانه چه دسرو زرووالې په خپلو غوږونو کښې واچولې نوپه غوږونو کښې به ئې دغه هومره اور واچولی شي د قیامت په ورځ.

[۴۲۳۹] (۳) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ مَيْمُونٍ الْقَنَّادِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ رُكُوبِ النِّمَارِ وَعَنْ لُبْسِ الذَّهَبِ إِلَّا مُقَطَّعًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو قِلَابَةَ لَمْ يَلْقَ مُعَاوِيَةَ.

دمعاویة بن ابی سفیان رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده دنمار (یودرنده ځناور) په څرمن باندې دسورلئ کولونه اودسروزرو د استعمال نه مګرچه لږ وي.

**قوله:** ﴿عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– نَهَى عَنْ رُكُوبِ النِّمَارِ وَعَنْ

---

(۱): سنن النسائي/الزينة ۳۹ (۵۱۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۴۳، ۱۸۳۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۴۵۵، ۳۵۷، ۳۵۸، ۳۶۹)، سنن الدارمي/الاستئذان ۱۷ (۲۶۸۷) (ضعیف)

(۲): سنن النسائي/الزينة ۳۹ (۵۱۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۷۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۴۵۵، ۴۵۷، ۴۶۰) (ضعیف)

(۳): سنن النسائي/الزينة ۴۰ (۵۱۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۶۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۹۲، ۹۳، ۹۵، ۹۸، ۹۹) (صحیح)

لُبْسِ الذَّهَبِ إِلاَّ مُقَطَّعًا ﴾ رسول اللهﷺ د جلود نمار (جلود سباع، د شیر او پړانګ په څرمن باندې د سوریدلو نه منع کړې ده (وقد تقدم) او د سرو زرو د اچولو نه مګر چه پرې کړې شوې وی یعنی په کم مقدار کښې.

دا حدیث که د زنانو په حق کښې محمول کړې شی نو بیا خو به دا حدیث د باب د زهد نه وی او دا هم ممکن ده چه د سړو په حق کښې وی په دې صورت کښې به دا قید د پاره د جواز وی، ځکه چه د سړو د پاره ضرورة د سرو زرو د استعمال جواز ثابت دې. کما تقدم قریبا فی باب ربط الاسنان بالذهب، والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

آخر کتاب الخاتم

......................

# کتاب الفتن والملاحم

## د فتنو بیان

## باب ذِكْرِ الْفِتَنِ وَدَلَائِلِهَا

### باب د هغه فتنو بیان چه نبی علیه السلام ئې پیشنګوئی کړې ده

### (ما قبل سره ربط او مناسبت)

د دې کتاب د ماقبل سره مناسبت په غور کولو سره دا په سمجه کښې راتلې شی، یو لطیف مناسبت دا کیدې شی چه په جامه کښې پرده موندلې شی او د هغې بالمقابل په فتن کښې (انسان) بربنډیږی، خپل مینځ کښې اختلاف او د نورو خلقو عیبونه بیانول او بې عزتی کول نو دا د اضدادو نه شو، او د ضدین خپل مینځ کښې ربط ښکاره دې ځکه چه هغه د وجود ذهنی په اعتبار سره متلازم وی، او داسې هم وئیلې شې چه خپله بعض لباسونه داسې وی کوم چه په فتنه کښې غورځونکې وی لکه د مستوراتو لباس فاخره کښې د کورنه وتل، ونحو ذلک اذا النکات بعد الوقوع.

### (تحقیق ومعانی فتن)

الفتن جمع فتنة کمحن ومحنة لفظا ومعنا، وبمعنی الاختبار والامتحان والضلال، والاثم، واذابة الذهب والفضة، ویطلق علی المال والاولاد، انما اموالکم واولادکم فتنة الایة..وبمعنی اختلاف الآراء.

### (تحقیق ومعانی ملاحم)

والملاحم جمع ملحمة، وهی بمعنی المعرکة وموضع الحرب یعنی میدان جنګ، او الوقعة العظیمة یعنی لوئې قسم جنګ.

### د علم حدیث ابواب ثمانیة :

د دې کتاب په مقدمه کښې دا مضمون تیر شوې دې چه د علم حدیث مضامین په ابواب ثمانیه کښې منحصر دی.

۱: عقائد، ۲: احکام، ۳: تفسیر، ۴، تاریخ، ۵: رقاق، ۶: مناقب، ۷: آداب، ۸: فتن. او دا چه حضرات محدثین په دې ابواب ثمانیه کښې په هر مضمون باندې بیل بیل مستقل

تصنيفات ليکلې دی، او بيا ئې د هر يو څه مثالونه هم ليکلي دی، هلته دا تير شوې دی چه د احاديث الفتن نوم علم الفتن کيخودلې شی، په دې کښ هم ډير تصنيفات دی، يو قديم او اوږد تصنيف د نعيم بن حماد رحمه الله دې او د اشراط الساعة يعنی علامات قيامت په موضوع باندې چه کوم کتابونه ليکلې شوې دی ښکاره خبره ده چه هغه به هم په دې علم الفتن کښ شمار کولې شی لکه الاشاعة لاشراط الساعة..... د سيد شريف محمد البرزنجی کتاب دې او هم دغه شان الاذاعة د نواب صديق حسن خان بهوپالی رحمه الله، او د شاه رفيع الدين صاحب کتاب د علامات قيامت په نوم باندې په اردو کښ، هم دغه شان د حافظ ابن کثير رحمه الله په تاريخ کښ لوئې جامع او مانع معروف او مشهور کتاب "البداية والنهاية" کښ خو د ټول عالم تاريخ ذکر دې کوم چه په يولس جلدونو کښ دې او نهايه د کوم چه دوه جلدونه دی په دې کښ هم دا د فتن او ملاحم او د علامات قيامت مضامين دی.

## د اختلاف النسخ بيان:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه دلته د کتاب نسخې مختلف دی، زمونږ په نسخه کښ خو هم دغه شان دی څنګه چه پورته ليکلې شوې دی، او په اکثر نسخو کښ دلته صرف کتاب الفتن ذکر دې او د کتاب الفتن د ختميدو نه پس چه کوم اته يا لس صفحات دی په هغه نسخو کښ اول کتاب المهدی راځی او بيا د هغې اول باب باب الملاحم دې او زمونږ په موجوده نسخه کښ د کتاب الفتن په ختم باندې آخر کتاب الفتن باب الملاحم راځی. او هم په دې کښ يو باب باب فی ذکر المهدی دې چه په هغې کښ د امام مهدی متعلق څو روايتونه دی او د هغې نه پس بيا اول کتاب الملاحم شروع کيږی. زمونږ د دې موجوده نسخې تقاضه دا ده چه دلته دې صرف "کتاب الفتن وی، ځکه چه کتاب الملاحم وړاندې مستقل راځی.

د کتاب الفتن په احاديثو کښ دا څيز قابل تحقيق وی چه دا کومې فتنې طرف ته اشاره ده، د دې مصداق څه دې آيا هغه تيره شوې ده که نه راروان وخت کښ به راځی، پس شارحين په دې باندې کلام او رائې ورکوی. په بذل المجهود کښ حضرت سهارنپوری رحمه الله هم د بعض فتن تعين په خپلې رائې او قياس سره کړې دې.

د کتاب الفتن د احاديثو نه دا هم مستفاد کيږی چه تر قيامته پورې راتلونکې فتن کښ چه څومره هم لوئې لوئې فتنې دی د ټولو علم رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورکړې شوې وو. خو د هغې فتن د وقوع د زمانې او د تاريخ متعين طور سره رسول الله صلی الله عليه وسلم ته هم علم نه وو پس په ډيرو احاديثو کښ راځی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائيل چه کله دا خبره پيښه شی نو ستاسو به دغه وخت کښ څه حال وی؟ تاسو به هغه وخت څه کوئ، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه څه ستاسو حکم وی هم هغه شان به کوو، خو د هغه صحابی (1) په زمانه حيات کښ هغه خبره يا فتنه پيښه نه شوه، د هغې مثالونه په کتاب

(1) وفيه انه كثير اما يذكر لفظ الخطاب ويراد به العموم اي كل من يصح معه الخطاب دون المخاطب المخصوص فحينئذ لا يحتاج الي هذا القول اي عدم علمه صلی الله عليه وسلم بالتاريخ، من بعض الافاضل)

کښې موجود دی کوم چه به مخې ته راشی.[1]

په الاشاعة لاشراط الساعة د کوم ذکر چه پورته راغلو کوم چه په دې موضوع باندې یو جامع تصنیف دې د کوم چه به حضرت شیخ هم تعریف فرمائیلو او هغوی به مطالعه کولو هم، په خپلو بعضو تصانیفو کښې حضرت د هغې نه حوالې هم ورکړې دی، د حضرت شیخ په هغې باندې اهم حواشی او تعلیقات هم دی چه د هغې په باره کښې د حضرت خواهش وو چه هغه طبع شی نو غوره به وی، عزیز گرامی قدر مولانا حبیب الله مظاهری حفظه الله د هغه کتاب سره د هغه حواشی څو کاله مخکښې طبع کړې ده فجزاه الله تعالی خیر الجزاء....

د دې مطبوعه کتاب په آخر کښې د دې کتاب تکمله او لاندې کوم چه د حضرت شیخ د حواشی یو حصه ده هغه د " ذیل الاشاعة فی الفتن الباقیة" په نوم باندې په موجوده مطبوعه نسخه کښې شامل کړې شوې دې چه په هغې کښې حضرت شیخ د بعض فتن په تعین کښې چه د محدثینو کوم مختلف رائې دی خصوصاً د شاه ولی الله رحمه الله په حجة الله البالغة وغیره کتابونو کښې هغه ئې هم اشارة په طور د حوالې ذکر کړې دی.

[۴۲۴۰]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: "قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمًا فَمَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِي مَقَامِهِ ذَلِكَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا حَدَّثَهُ حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ قَدْ عَلِمَهُ أَصْحَابُهُ هَؤُلَاءِ وَإِنَّهُ لَيَكُونُ مِنْهُ الشَّيْءُ فَأَذْكُرُهُ كَمَا يَذْكُرُ الرَّجُلُ وَجْهَ الرَّجُلِ إِذَا غَابَ عَنْهُ ثُمَّ إِذَا رَآهُ عَرَفَهُ".

د حذیفة بن یمان رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام زمونږ په مینځ کښې اودریدو او هیڅ یو داسې شې یې دبیانولو نه پرې نخودو، کوم چه د قیامته پورې راتلونکې دې مګر بیان ئې کړو، او بیا ئې اوفرمائیل چاچه داخبرې یا دې کړې نو هغه یا دې کړې او چاچه هیرې کړې هغه هیرې کړې او یقینا زما ملګرو دا خبرې ښې وپیژندلې، راوی وائی کله چه به په دې خبر وکښې کومې چه نبی علیه السلام بیان کړې کومه یوه پیښه شوه نو ماته به داسې رایادیدله لکه څرنګه چه څوک دیو کس پیژندګې کوي او هغه ورنه غائب شوې وي او د لیدلو سره ئې شناخت اوکړي.

﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَائِمًا فَمَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِى مَقَامِهِ ذَلِكَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ ..........إِذَا غَابَ عَنْهُ ثُمَّ إِذَا رَآهُ عَرَفَهُ ﴾

**امام بخاری او امام مسلم رحمهما الله وغیرهما د کتاب الفتن ابتداء څنګه فرمائیلې ده؟ :**

امام بخاری رحمه الله د کتاب الفتن ابتداء په دې باب سره کړې ده : باب ما جاء فی قول الله تعالی واتقوا فتنة لاتصیبن الذین ظلموا منکم خاصة.... وما کان النبی صلی الله علیه وسلم یحذر من الفتن.... او د هغې نه روستو ئې بیا هغه حدیث الحوض ذکر فرمائیلې دې چه په هغې کښې دی : لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ وَيَعْرِفُونِي ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فاقول ای رَبِّ أَصْحَابِي فَيُقَالُ إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ﴾ او امام مسلم رحمه الله په کتاب الفتن واشراط الساعة کښې د ټولو نه اول دا حدیث ذکر کړې دې.

[1]: صحيح البخاري/ القدر ٤ (٦٦٠٤)، صحيح مسلم/ الفتن ٦ (٢٨٩١) ، (تحفة الأشراف: ٣٣٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٣/٥، ٣٨٥، ٣٨٩، ٤٠١) (صحيح)

﴿أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- اسْتَيْقَظَ مِنْ نَوْمِهِ وَهُوَ يَقُولُ « لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ الحديث ﴾ او امام ترمذي رحمه الله د كتاب الفتن په شروع كښې د يوم الدار والا حديث ذكر فرمائيلي دې يعنى د عثمان رضي الله عنه د كور چه كله هغه شريانو محاصره كړې وه نو هغوى د كور په چهت باندې پورته ختلو سره هغوى ته مخ كولو سره هغوى ته څو احاديث اوروليې وو.

## مضمون الحديث:

امام ابوداؤد رحمه الله د كتاب الفتن په شروع كښې د حذيفه رضي الله عنه چه د چا په باره كښې مشهوره ده چه هغه صاحب سر رسول الله ﷺ دې. د هغوى دا پورته ذكر كړې شوې حديث ذكر كړې دې چه په هغې كښې كلي طور سره رسول الله ﷺ د قيامته پورې پيښيدونكى ټول فتن په تفصيل سره بيان فرمائيلى دى، د هغې حواله ده، پس هغوى فرمائى چه يوه ورځ رسول الله ﷺ د خطبې وركولو دپاره اودريده نو څومره چه د قيامته پورې راتلونكې واقعات او فتن وو هغه ټول رسول الله ﷺ په دې خطبه كښې بيان كړل. سيدنا حذيفه رضي الله عنه فرمائى چه په مونږ كښې بعضو ته هغه فتنې يادې دى او بعضو نه هغه هيرې دى. بيا هغوى خپله د خپل ځان په باره كښې فرمائى چه د هغې حاصل دا دې چه هغه ټولې خبرې مستحضر خو ماته هم نه دى او مانه هيرې هم نه دى د حفظ په خزانه كښې محفوظ دى، چه كله په هغه څيزونو كښې يو فتنه راپيښه شى نو ماته هم هغه رايادة شي. (چه او رسول الله ﷺ يو خبره دا هم بيان فرمائيلې وه) لكه چه يو سړې بل سړې پيژنى او بيا متعارف سړې چرته لاړ شى، غائب شى او د هغه صورت او شكل د انسان د ذهن نه اوځى خو بيا چه كله څه موده پس دې هغه سړې وينى نو پيژنى ئې چه او دا فلانې سړې دې.

مصنف رحمه الله دا حديث د دې نه پس په بل طريق سره ذكر كړې دې، او په هغې كښې دا زيادت دې ﴿مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ ثَلاَثَمِائَةٍ فَصَاعِدًا إِلاَّ قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ وَاسْمِ قَبِيلَتِهِ ﴾

[۴۲۴۳](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ فَرُّوخَ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، أَخْبَرَنِي ابْنٌ لِقَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ "وَاللَّهِ مَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا وَاللَّهِ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ ثَلَاثَ مِائَةٍ فَصَاعِدًا إِلَّا قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ وَاسْمِ قَبِيلَتِهِ".

د حذيفة بن يمان رضي الله عنه نه روايت دې په الله قسم ماته معلومه نه ده چه ايا دغه خبرې زمادملګرونه هيرې شوې دې اوكه په قصد سره يې هيرې كړې دې ، په الله قسم رسول كريم د ديوې فتنې سربراه ، چه درې سوه كسان يازيات ورسره وي نه دې پريخودلې كوم چه دقيامته پورې راتلونكې وي مګر دهغه بيان ئې كړې دې اودهغه نوم اود پلارنوم اودهغه دقبيلې نوم ئې اخستلې دې تردې چه دنيابه ختمه شي.

يعنى د قيامته پورې چه څومره تحريكونه مونډلې شى نو د هغه ټولو تحريكونو د قائدينو

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۳۷۹) (ضعيف)

نومونه او د هغوی د پلارانو نومونه او د قبیلې نومونه په دې شرط چه د هغه قائد سره د تلونکو کسانو تعداد کم از کم درې سوه وی هغه ټول رسول الله ﷺ زمونږ مخکښې بیان کړل. ﴿ وَاللَّهِ مَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا ﴾ یعنی والله زه نه شم وئیلې چه زمونږ ملګرو د دې قائدینو نوم هیر کړو فی الواقع یا که د څه مصلحت په وجه باندې خپله هیره ښکاره کوی. یعنی په اظهار کښې فتنه ګڼړلو سره. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

[٤٢٤١](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ بَدْرِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَكُونُ فِي هَذِهِ الْأُمَّةِ أَرْبَعُ فِتَنٍ فِي آخِرِهَا الْفَنَاءُ".

دعبدالله ؓ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی په دې امت کښې به څلور لوئې لوئې فتنې پیداشي اوبيادديته پس پناکيدل دي (یعنی قیامت به قائم شي اوهرڅه به ختم شي اوهيڅ به پاتې نه شي).

﴿عَنْ عَامِرٍ عَنْ رَجُلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « يَكُونُ فِي هَذِهِ الأُمَّةِ أَرْبَعُ فِتَنٍ فِي آخِرِهَا الْفَنَاءُ » ﴾

سیدنا عبدالله بن مسعود ؓ د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه په دې امت کښې به څلور فتنې مونډلې شی د هغې نه به په آخری فتنه باندې دنیا فنا شی، یعنی لوئې فتنې به څلور وی، او د فنا نه مراد یا خو د دنیا فنا ده یا د امت اجابت فنا او د هغوی نه پس به څوک هم مسلمان پاتې نه شی.' (بذل)

[٤٢٤٢](٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عُثْمَانَ بْنِ سَعِيدٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَالِمٍ، حَدَّثَنِي الْعَلَاءُ بْنُ عُتْبَةَ، عَنْ عُمَيْرِ بْنِ هَانِئٍ الْعَنْسِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ؟ قَالَ: هِيَ هَرَبٌ وَحَرْبٌ، ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي وَلَيْسَ مِنِّي وَإِنَّمَا أَوْلِيَائِي الْمُتَّقُونَ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلَى ضِلَعٍ ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً فَإِذَا قِيلَ: انْقَضَتْ تَمَادَتْ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا حَتَّى يَصِيرَ النَّاسُ إِلَى فُسْطَاطَيْنِ فُسْطَاطِ إِيمَانٍ لَا نِفَاقَ فِيهِ وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ فَإِذَا كَانَ ذَاكُمْ فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ".

دعبدالله بن عمر ؓ نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی کریم ﷺ سره ناست وواونبی ﷺ دفتنو ذکر کولو او په ډیر تفصیل سره ئې اوفرمائیل تردې چه نبی ﷺ پخپل بیان کښې د احلاس دفتنې ذکر وکړو په دې سلسله کښې یوکس عرض اوکړو اې دالله رسوله داحلاس فتنه کومه یوه ده؟ نبی ﷺ اوفرمائیل تختېدل اولوټ مار کول دي، بیا ددینه پس د سراء فتنه ده ددې لوګر به دداسې دځپو دلاندې نه راوځي کوم چه به دا ګمان کوي چه هغه زما د خاندان نه دې اوحقیقت دادې چه هغه به زمادخاندآن نه نه وي ځکه چه زما دوستان هغه خلق دي څوک چه پرهیزګاري کوي، بیابه خلق په داسې کس باندې اتفاق اوکړي یعنی خپل امیر به ئې جوړ کړي لکه کوناټې په یوې پوهتئ باندې اوددینه پس به د دهیماء فتنه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٣٩) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٣٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٣/٢) (صحيح)

راشي هغه به هيڅوک بغير د مرګ نه نه پريږدي بياچه کله خلق دا وئيل شروع کړي چه فساد شروع شو نوبيابه دسحر په وخت کښې دغه فتنه نوره هم لويه شي په دې کښې به حال داسې وي چه يوکس به دسحر په وخت کښې مومن وي اوماښام به کافر شي تردې پورې چه خلق به ددوه خيموطرف ته راجع شي يوه خيمه به دايماندارو وي په دوی کښې به هيڅوک منافق نه وي اودويمه خيمه به دمنافقانو وي په دوی کښې به څوک ايماندار نه وي کله چه دا فتنه پيدا شي نوپه همدې ورځ يا ددينه دوه ورځې پس د دجال دراتلو انتظار وکړئ.

قوله: ﴿سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الأَحْلاَسِ .....الخ﴾

دا د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث دې چه په هغې کښې لوئې لوئې درې فتنې شمار کړې شوې دی، هغوی فرمائی چه يوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو هغوی په دې مجلس کښې د فتن ذکر اوکړو، ډيرې فتنې رسول الله ﷺ ذکر اوفرمائيلې تر دې چه د هغه فتنو ذکر ئې هم اوکړو (کومې چه وړاندې راوی بيانوی) فتنة الاحلاس، يو سائل تپوس اوکړو يا رسول الله ﷺ فتنة الاحلاس څه ده؟ وې فرمائيل مندې تړې او لوټ مار، هرب او حرب دواړه په فتحتين سره ضبط کړې شوې دی. هرب يعنی د بعضو د بعضو نورو نه تختيدل د دشمنئ د وجې نه، او حرب يعنی ناحق د نورو مال او اولاد باندې قبضه کول.

## د فتنة الاحلاس مصداق:

رسول الله ﷺ د فتنة الاحلاس دا تفسير اوفرمائيلو، احلاس د حلس جمع ده هغه بوريا يا ټاټ کوم چه د قالين وغيره نه لاندې په زمکه باندې خورولې شی کوم چه د ډيرې مودې پورې خور وی، پورته څادر خو بدليږی، په دې کښې ګويا اشاره ده د دې فتنې اوږدوالی او ډيرې مودې پورې کيدو ته، د دې په باره کښې حضرت په بذل کښې ليکلې دی: والذی اظن انها فتنة حدثت فی آخر خلافة عثمان بن عفان رضي الله عنه وثارت بين المسلمين حتى تمادت وبقيت الى زمن خلافة معاوية رضي الله عنه واتفاق الناس عليه بعد صلح الامام حسن بن علی رضي الله عنهما، يعنی د دې نه مراد غالبا د مقتل سيدنا عثمان رضي الله عنه فتنه مراد ده، د سيدنا عثمان رضي الله عنه په آخر د خلافت کښې چه کومو شرونو سر اوچت کړو د مصر بدمعاشانو د عثمان رضي الله عنه په بعض انتظاماتو باندې اعتراضات اوکړو تردې چه د هغوی خلاف ئې محاذ قائم کړو، او دې خلقو په مدينه طيبه کښې د هغوی د کور نه محاصره اوکړه تر دې چه د هغوی قتل او شهادت ته خبره اورسيده. او بيا په دې باندې مرتب کيدونکې دويمه فتنه جنګ جمل او جنګ صفين تر دې چه د حسن رضي الله عنه د معاويه رضي الله عنه سره په صلح کولو باندې واپس سکون پيدا شو.

د دې نه پس دويمه فتنه کومه چه په دې حديث کښې ذکر ده هغې ته ﴿فتنة السراء﴾ وئيلې شی، علامه سندی فرمائی ﴿السراء﴾ النعماء ای فتنة سببها سرور الناس بكثرة النعم او لانها تسر الاعداء لوقوع الخلل فی المسلمين....... يعنی هغه فتنه چه د هغې سبب وقوع کثرت د فتوحات او د مال و دولت کثرت، او د خلقو سرور او د عيش ژوند کښې مست کيدل دی، او يا دې ته سراء په دې وجه وئيلې شوې ده چه په مسلمانانو کښې به د نقص او

خلل پیدا کیدو د وجې نه د هغوی د دشمنانو دپاره د خوشحالئ سبب وی.

﴿ دخنها ﴾ یعنی د دې فتنې ابتداء او اشتعال به د داسې سړی د قدمونو لاندې وی کوم چه به زما د اهل بیت نه وی چه د هغه به دعوی وی د اهل بیت نه د کیدو حال دا چه حقیقة به هغه زما نه نه وی، یعنی د خپل کردار او احوال په اعتبار سره اگر چه نسبا زما نه وی، ځکه چه زما کور والا او زما ملگری خو په اصل کښې هغه خلق دی چه متقیان وی، بیا به د هغه سړی په دور کښې خلق (هغه لره لرې کولو سره) صلح اوکړی په یو نا اهل باندې. چه د هغه په نا اهلئ باندې رسول الله ﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم په تشبیه سره پوهه کړل، ﴿ کورک علی ضلع ﴾ لکه کوناتې چه کیخودلې شی (یعنی وزنی څیز) په پختئ باندې، ښکاره خبره ده چه پختئ اودرولې شی او په هغې باندې وزنی څیز کیخودلې شی نو هغه به ئې برداشت نه کړې شی، او هغه به خوزی.

د فتنة السراء په باره کښې د حضرت سهارنپوری (رح) رائې:

اوس دا چه دا کومې خاص فتنې ته اشاره ده؟ په دې باره کښې د حضرت سهارنپوری رحمه الله رائې کومه چه حضرت په بذل المجهود کښې لیکلې ده چه د دې نه مراد د شریف حسین فتنه مراد ده کومه چه په رمضان ۱۳۳٤ هجری کښې په مکه مکرمه کښې پیښه شوې وه، یعنی په کومه زمانه کښې چه په حجاز کښې د ترکیانو حکومت وو نو هغه وخت د مکه مکرمه امیر شریف حسین وو هغه سره انگریزانو تعلق جوړ کړو په لکهونو اشرفئ ئې ورله رشوت ورکړو او د ترکیانو خلاف ئې بغاوت ته تیار کړو. پس هغه بدوانو ته لالچ ورکړو او ترک فوج کوم چه په مکه مکرمه کښې مقیم وو هغوی ئې د بدو په ذریعه اوژل او د خپلې خود مختارئ اعلان کولو سره ئې حکومت شروع کړو او خپل ځان ته ئې ملک الحجاز وئیلو. د هغه دا حکومت تقریبا لس کاله وو او د هغه په دور کښې بدامنی وه، بیا د هغه نه روستو د حسین په خوی علی باندې صلح اوشوه خو د هغه نه د حکومت نظام او نه چلیدې شو، ﴿ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلَى ضِلَعٍ ﴾ په هغه باندې صادق راغلو. (بذل) په هغه وخت کښې چه کله دا فتنه شروع شوه، حضرت سهارنپوری رحمه الله په حجاز کښې تشریف فرما وو.

(د حضرت خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله درې مقبول دعاگانې)

په تذکرة الخلیل کښې لیکلې دی چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په ملتزم شریف باندې درې دعاگانې کړې وې یو دا چه دلته په حجاز کښې امن قائم شی، دویم دا چه زما تصنیف بذل المجهود پوره شی، دریمه دا چه ماته د مدینې طیبې خاوره نصیب شی یعنی د هغه ځائې وفات، پس د بذل المجهود په مدینه طیبه کښې تکمیل هم اوشو او د حضرت په حیاة کښې په حجاز کښې امن قائم شو، حضرت به فرمائیل چه د دریمې دعا د قبلیدو د الله پاک نه توقع ده، پس د حضرت دریمه دعا هم بحمد الله قبوله شوه او په مدینه طیبه کښې هم هلته وفات کیدو سره په بقیع کښې د قبه اهل بیت سره د څو قدمو په فاصله باندې نزدې مدفون شو. د دې نه پس په حدیث کښې دریمه فتنه د فتنة الدهیماء په نوم سره مذکور ده، دهیماء تصغیر دې د دهماء په معنی د سوداء یعنی توره تیارهٔ فتنه، او تصغیر په دې کښې د تعظیم

دپاره دي او وئيلې شي چه د مذمت دپاره دې، د کوم په باره کښې چه رسول اللهﷺ فرمائی: ﴿لاَ تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَٰذِهِ الأُمَّةِ﴾ چه دا فتنه به د دې امت په افرادو کښې يو هم پرينږدی بغير د سپيړې ورکولو نه، يعنی هر سړې به د هغې د ضرر نه متاثر کيږی،. په دې فتنه کښې بعض ورځو کښې سکون ليدو سره بعض خلق وائی ﴿انقضت﴾ چه بس اوس ختم شوه خو ناڅاپه به بيا اودريږی. او هم دا سلسله به روانه وی. د خلقو په احوالو کښې به ډير په سرعت سره انقلاب پيدا کيږی، که سحر يو سړې مسلمان وی او د ايمان په حالت کښې هغه صبا کړې دې نو هم هغه سړې به په داسې حال کښې ماښام کړی چه هغه به کافر شوې وی. د مومن کيدو نه مراد د خپل مسلمان رور ناحق قتل لره حرام ګڼړل دی، او د کفر نه مراد د هغه قتل لره حلال ګڼړل دی. د خلقو په احوالو کښې به اختلاف او تغير پيدا کيدو کيدو سره دا صورت پيښ شی چه خلق به په دوه فرقو کښې تقسيم شی، يو به د ايمان والو وی خالص بغير د نفاق نه، او يو فرقه به د خالص نفاق وی چه په هغې کښې به د ايمان لړه حصه هم نه وی د دې په باره کښې رسول اللهﷺ فرمائی چه کله احوال دې حده پورې اورسيږی نو بيا هم په دغه ورځ يا د هغې نه په بله ورځ باندې د خروج دجال انتظار کول پکار دی.

## د فتنة الدهيماء مصداق:

د دې فتنة الدهيماء په باره کښې حضرت شيخ دا ليکلی دی چه شاه ولی اللهؒ دا فتنه د چنګيز خان په فتنه باندې محمول کړې ده، د چنګيز خان فتنه په تاريخ کښې ډيره مشهوره ده، د تاريخ طرف ته دې رجوع اوکړې شی. [1]

---

[1] **د چنګيزخان فتنه**: د تاريخ د يو کتاب نه مونږ لږ شان رانقل کوو: د محمد خوارزم شاه په زمانه کښې د منګوليا نه تر چين پورې يو سړی چنګيزخان (۱۲۰۲ء نه تر ۱۲۲۷ء) پورې يو زبردست حکومت قائم کړې وو او چين ئې هم فتح کړې وو، دا د منګوليانو حکومت وو کوم چه د منګوليا اوسيدونکی وو، دا منګول کافر ډير وحشی بدمعاش او خونخوار وو، چنګيزخان د ښه ښه جامو شوقی وو او دا جامې چونکه په اسلامی دنيا کښې جوړيدې په دې وجه هغه يو ځل څه تاجران خوارزم ته اوليږل، محمد خوارزم شاه هغوی لره جاسوس ګڼړلو سره قتل کړل. په دې باندې چنګيزخان سخت غصه شو خبره وه هم د غصې سوداګرو لره بغير د څه ګناه نه قتل کول د انصاف خبره نه ده. چنګيز خان د دې جواب طلب کړو خو خوارزم شاه د هغه قاصد هم قتل کړو. بس اوس څه وو چنګيز خان د وحشی منګوليانو زبردست فوج واخستلو او د خوارزم شاه په بادشاهت باندې ئې حمله اوکړه. دغه شان د خوارزم شاه په وجه باندې اسلامی دنيا د يوې لوئې تباهۍ سره مخ شو که خوارزم شاه داسې ظلم نه وې کړې نو وحشی منګوليانو به حمله نه وې کړې. د هغه په لږه شان غلطۍ سره په لکهونو انسانانو ته نقصان اورسيدو خو د ټولو نه بده خبره دا اوشوه چه محمد خوارزم شاه د چنګيز خان سره جنګ خو شروع کړو خو چه کله هغه حمله اوکړه نو يو ځائې کښې ئې هم ميدان ته راتلو سره د هغه مقابله اونکړه هغه داسې په ويره اخته شو چه چرته ئې هم مقابله اونکړه، چنګيزخان پرله پسې ښهرونه فتح کړل، او هغه ترې نه وراندې منډې وهلې، ترڅو چه د بحر خضر په يو جزيره ابسکون کښې ئې پناه واخستله او هم هلته په ۶۱۷ هجری ۱۲۲۰ء کښې مړ شو. د محمد خوارزم نه پس د هغه خوئې جلال الدين خوارزم شاه چه ډير بهادر وو. د مقابلې کولو کوشش اوکړو هغه تر خو کلونو پورې د منګوليانو سره جنګيدلو خو هغه هم کامياب نه شو، د منګوليانو دې حملې ډيره تباهی راوړه، سمرقند، بخارا، خوارزم، بلخ او نيشاپور نه غرض د اسلامی دنيا هغه ټول ښهرونه کوم چه په وسط ايشيا او ايران کښې وو هغوی برباد کړل. د خلقو قتل عام ئې اوکړو په ښهرونو کښې ئې اور......له

او حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د دې فتنې په باره کښې دا لیکلې دی چه دا فتنه به د ظهور مهدی نه لږه مخکښې موندلې شی او د عیسی علیه السلام د نزول پورې به روانه وی. او یعنی بیا به عیسی علیه السلام چه د هغوی سره به امام مهدی رحمه الله هم شامل وی په دجال پسې شی تر دې چه هغه به قتل کړی. حضرت چه څه لیکلې دی چه د دې فتنې وقوع به په آخر زمانه کښې وی د هغې طرف ته د دې حدیث د دې لفظ نه هم اشاره ملاویږی. ﴿ فاذا كان ذلك فانتظروا الدجال من يومه او من غده ﴾

[٤٢٤٤] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ نَصْرِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ سُبَيْعِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: أَتَيْتُ الْكُوفَةَ فِي زَمَنٍ فُتِحَتْ تُسْتَرُ أَجْلُبُ مِنْهَا بِغَالًا، فَدَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا صَدْعٌ مِنَ الرِّجَالِ وَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ تَعْرِفُ إِذَا رَأَيْتَهُ أَنَّهُ مِنْ رِجَالِ أَهْلِ الْحِجَازِ، قَالَ: قُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ فَتَجَهَّمَنِي الْقَوْمُ، وَقَالُوا: أَمَا تَعْرِفُ هَذَا؟ هَذَا حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ حُذَيْفَةُ: إِنَّ النَّاسَ كَانُوا يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَيْرِ، وَكُنْتُ أَسْأَلُهُ عَنِ الشَّرِّ، فَأَحْدَقَهُ الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ، فَقَالَ: إِنِّي قَدْ أَرَى الَّذِي تُنْكِرُونَ، إِنِّي قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ هَذَا الْخَيْرَ الَّذِي أَعْطَانَا اللَّهُ أَيَكُونُ بَعْدَهُ شَرٌّ كَمَا كَانَ قَبْلَهُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قُلْتُ: فَمَا الْعِصْمَةُ مِنْ ذَلِكَ؟ قَالَ: السَّيْفُ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ثُمَّ مَاذَا يَكُونُ، قَالَ: إِنْ كَانَ لِلَّهِ خَلِيفَةٌ فِي الْأَرْضِ، فَضَرَبَ ظَهْرَكَ وَأَخَذَ مَالَكَ فَأَطِعْهُ وَإِلَّا فَمُتْ وَأَنْتَ عَاضٌّ بِجِذْلِ شَجَرَةٍ، قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: ثُمَّ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ مَعَهُ نَهْرٌ وَنَارٌ فَمَنْ وَقَعَ فِي نَارِهِ وَجَبَ أَجْرُهُ وَحُطَّ وِزْرُهُ، وَمَنْ وَقَعَ فِي نَهْرِهِ وَجَبَ وِزْرُهُ وَحُطَّ أَجْرُهُ، قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: ثُمَّ هِيَ قِيَامُ السَّاعَةِ".

د سبیع بن خالد رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه دلستر مقام دفتح په وخت کښې کوفې ته راغلم اود دغه ځای نه مې قچرې بوتلې زه جومات ته داخل شوم او اوې کتل چه څه خلق در میانه قد والا اوخه حبشیان را جمع شوی دې او ناست دې او یوکس ددوی په مینځ کښې ناست دې دهغه په لیدلوسره به دامعلومیده چه دې د حجاز باشینده دې، مادخلقونه تپوس اوکړو داڅوک دی؟ په دې تپوس سره خلق برګ برګ شول او وئې وئیل آیا ته د نه پیژنې داخوحذیفه بن یمان دې اودنبی علیه السلام صحابي دې، حذیفه بن یمان د اووئیل خلقو به دنبی علیه السلام نه دخیر دخبرو تپوسونه کول اومابه ورنه دشر په باره کښې معلوماتونه حاصلول په دې اوریدوسره خلقوده ته په غور اوکتل هغه اووئیل زه په دې خبر یم چه په څه وجه باندې تاسو داخبرې ښې نه ګنړئ، ماعرض اوکړو ای دالله رسوله الله تعالی چه مونږ ته کوم خیر اوکامیابي راکړې ده ایا ددینه پس به شر وي لکه څنګه چه ددینه مخکښې شر وو؟ نبی علیه السلام

←... اولګولو، د ښهرونو ابادئ نې اوسیزلې او په لږه موده کښې د اسلامی دنیا یو لویه حصه وررانه او تباه شوه. مسجدونه، کتب خانې او مدرسې تولې بربادې کړې شوې، د بخارا او سمرقند چه د هغې د آبادئ اندازه د لسو لاکهو پورې کیدلې شی بالکل تباه کړې شو، په خوارزم کښې د قتل عام نه پس منګولیانو د دریائې جیحون بند مات کړو چه په هغې سره پوره ښهر په اوبو کښې دوب شو، چنګیزخان د خوارزم شاه د بادشاهت د تباه کولو سره سره د همدان او د آذربائیجان تولو ښهرون لږه تباه کولو سره منګولیا ته واپس لاړو او څه موده پس مړ شو، خو پنځوس کاله پس د هغه نمسی هلاکو خان یو قدم زیات راوچت کړو هغه په بغداد باندې د قبضې کولو اراده اوکړه کوم چه د اسلامی دنیا د تولو نه لوئې ښهر وو. ملت اسلامیه کې مختصر تاریخ ٣٦٧/١)

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٣٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المناقب ٢٥ (٣٦٠٦)، صحيح مسلم/الإمارة ١٣ (١٨٤٧)، سنن ابن ماجه/الفتن ١٣ (٢٩٨١)، مسند احمد (٣٨٦/٥، ٤٠٣، ٤٠٤، ٤٠٦) (حسن)

اوفرمائیل هو. مابیاعرض اوکړو ددې شرنه به بچ کیدل څنګه وي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل په توره باندې، مابیاعرض اوکړو اې دالله رسوله ددینه پس به څه کیږي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې دالله تعالی کوم خلیفه ستاملا ماتوي اوستامال لوټ کوي نوبیابه هم دهغه فرمانبرداري کوي اوکه چرې هیڅوک خلیفه نه وي نو په ځنګل کښې دیوې وڼې لاندې پټ شه او مړ شه، ماعرض اوکړو ددینه پس به څه وي یعنی څه به پیښیږي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل بیابه دجال راشي دهغه سره به نهرهم وي او اور به هم وي څوک چه دده اورته داخل شي نودالله په نزد دده دپاره ثواب اولیکلې شو اوګناه ئې معاف شوه او څوک چه ددجال خبره اومني اودهغه نهرته داخل شي نودهغه ګناه ثابته شوه اوثواب ئې برباد شو ما بیاعرض اوکړو اې دالله رسوله ددینه پس به څه پیښیږي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل بیابه قیامت قائم شي.

**قوله:** ﴿ عَنْ سُبَيْعِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ أَتَيْتُ الْكُوفَةَ فِي زَمَنٍ فُتِحَتْ تُسْتَرُ أَجْلُبُ مِنْهَا بِغَالاً فَدَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا صَدْعٌ مِنَ الرِّجَالِ وَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ تَعْرِفُ إِذَا رَأَيْتَهُ أَنَّهُ مِنْ رِجَالِ أَهْلِ الْحِجَازِ قَالَ قُلْتُ مَنْ هَذَا فَتَجَهَّمَنِي الْقَوْمُ وَقَالُوا أَمَا تَعْرِفُ هٰذَا؟ هَذَا حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم ﴾

دسبیع بن خالد یشکری نه روایت دې هغوی وائی چه په کومه زمانه کښې تستر ښهر فتح شو نو زه کوفې ته راغلم هلته نه د خچرو د بوتلو دپاره. تستر معرب دې د شوستر کوم چه د کاخوزستان یو لوئې ښهر دې په خلافت فاروقی کښې فتح شو د چه فاتح ئې ابوموسی اشعری رضی الله عنه دې. هغوی فرمائی چه زه د کوفې یو مسجد ته داخل شوم نو هلته مې د خلقو یو جماعت اولیدو، او د هغوی په مینځ کښې مې یو سړې ناست اولیدو چه د هغه په لیدو باندې دا اندازه کیده چه هغه د اهل حجاز نه دې، ما دغه مجلس ته رسیدو سره دا تپوس اوکړو چه دا صاحب څوک دې؟ یعنی د چا نه چه ګیر چاپیره خلق ناست دی، خلقو ماته په کړو سترګو اوکتل او وې وئیل دوی نه پیژنې دا حذیفه بن الیمان صحابی رسول ﷺ دې.

**قوله:** ﴿ فَقَالَ حُذَيْفَةُ إِنَّ النَّاسَ كَانُوا يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– عَنِ الْخَيْرِ وَكُنْتُ أَسْأَلُهُ عَنِ الشَّرِّ فَأَحْدَقَهُ الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ فَقَالَ إِنِّي قَدْ أَرَى الَّذِي تُنْكِرُونَ ﴾

## مضمون حدیث او د اوږد حدیث شرح :

سبیع وائی چه زه هم په دغه مجلس کښې شریک شوم (د حذیفه رضی الله عنه د خبرو اوریدلو دپاره نو په دې کښې ما د هغوی نه واوریدل چه) نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم خو به د رسول الله ﷺ نه د خیر په باره کښې تپوس کولو او زما عادت دا وو چه ما به د هغوی نه د شر د خبرو تپوسونه کول، یعنی د راپیښیدونکې فتنو په باره کښې، د حذیفه رضی الله عنه په دې جمله باندې ټول خلق د هغوی طرف ته متوجه شو او د ټولو سترګې د هغوی په طرف شوې په طور د تعجب، په دې باندې حذیفه رضی الله عنه اوفرمائیل چه زه ستاسو د طرف نه لږ شان تعجب محسوس کوم (که تعجب کوئ او که هر څه کوئ زما حال خو هم دا وو او بیا ئې هم دا قسم حدیث بیانول شروع کړل)

**قوله:** ﴿ إِنِّي قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ هَذَا الْخَيْرَ الَّذِي أَعْطَانَا اللَّهُ أَيَكُونُ بَعْدَهُ شَرٌّ كَمَا كَانَ قَبْلَهُ قَالَ

« نَعَمْ »﴾ چه یو ځل ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ ماته خبر راکړئ چه دا خیر او عافیت او امن او نیکی وغیره کومه چه الله پاک مونږ ته راکړې ده آیا د دې نه پس به بیا شر راځی څنګه چه د دې نه مخکښ وو، یعنی فسق وفجور او فتنه او فساد؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: او وی به.......

**قوله:**قُلْتُ فَمَا الْعِصْمَةُ مِنْ ذَلِكَ قَالَ « السَّيْفُ ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ثُمَّ مَاذَا يَكُونُ قَالَ « إِنْ كَانَ لِلَّهِ خَلِيفَةٌ فِي الأَرْضِ فَضَرَبَ ظَهْرَكَ وَأَخَذَ مَالَكَ فَأَطِعْهُ وَإِلاَّ فَمُتْ وَأَنْتَ عَاضٌّ بِجِذْلِ شَجَرَةٍ »﴾

ما تپوس اوکړو چه بیا به د دې فتنې نه د بچ کیدو څه صورت وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : توره.... یعنی قتال بالسیف او جهاد، ما بیا د هغوی نه تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ بیا به څه وی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دوه صورتونه دی که په دغه وخت کښ د مسلمانانو څوک خلیفه اوموندلې شی نو تاسو د هغوی اطاعت کولو سره د ښهر ژوند اختیاروئ اګر که هغه خلیفه په تاسو باندې هر څومره ظلم او زیاتې کوی او که ددې نه علاوه بل حالت وی یعنی په دنیا کښ د مسلمانانو څوک خلیفه پاتې نه شی او مسلسل فتنې موندلې شی نو تاسو په داسې حال کښ ژوند تیروئ چه د ښهر اوسیدل پریخودلو سره د ځنګل د یوې اونې جرړې مضبوطې اونیسه او هلته اوسیږه، یعنی په فتنه کښ د شرکت کولو په ځائې د ښهر اوسیدل هم پریږده، چرته چه فتنې دی، او ځانله کیدو سره د صحرا استوګنه اختیار کړه او ترمرګه پورې هلته اوسیږه.

**قوله:**﴿ قُلْتُ ثُمَّ مَاذَا قَالَ « ثُمَّ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ مَعَهُ نَهْرٌ وَنَارٌ فَمَنْ وَقَعَ فِي نَارِهِ وَجَبَ أَجْرُهُ وَحُطَّ وِزْرُهُ وَمَنْ وَقَعَ فِي نَهْرِهِ وَجَبَ وِزْرُهُ وَحُطَّ أَجْرُهُ »﴾

ما تپوس اوکړو بیا به څه وی؟ وې فرمائیل چه بیا به دجال راوځی چا سره به چه دوه نهرونه وی یو د اوبو او دویم د اور، یعنی د اوبو نهر او د اور خندق، پس څوک چه د هغه اور ته غورځیدل اختیار کړی د هغه اجر به د الله پاک په نزد ثابت شی او ګناه به ئې معاف شی او څوک چه د هغه د اوبو نهر اختیار کړی نو د هغه ګناه به ثابت شی او نیکیانې به ئې ټولې بربادې شی، یعنی د دجال چه کله خروج اوشی نو چونکه هغه به د خپل اولوهیت دعوی کوی او بیا به هغه عجیب عجیب خرق عادت امور ښودلو سره د خلقو مخکښ ثابتوی، او د هغوی مخې ته به دا خبره ږدی چه کوم سړې زما اولوهیت منی نو د هغه دپاره خو د اوبو نهر دې او څوک چه نه تسلیم کوی زما خدائی نو د هغه دپاره دا د اور خندق دې چه په دې کښ به ئې واچوم.

په یو بل حدیث کښ دی چه تاسو دا اور اختیار کړئ ځکه چه کوم اور لره دجال (او نور خلق) اور ګنړی هغه اور نه دې بلکه اوبه دی او کوم چه هغوی اوبه ګنړی هغه اوبه نه دی بلکه اور دې، ﴿ فَأَمَّا الَّذِي يَرَى النَّاسُ أَنَّهَا النَّارُ فَمَاءٌ بَارِدٌ وَأَمَّا الَّذِي يَرَى النَّاسُ أَنَّهُ مَاءٌ بَارِدٌ فَنَارٌ تُحْرِقُ فَمَنْ أَدْرَكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي الَّذِي يَرَى أَنَّهَا نَارٌ فَإِنَّهُ عَذْبٌ بَارِدٌ ﴾ او په یو روایت کښ دی ﴿لأَنَا بِمَا مَعَ الدَّجَّالِ أَعْلَمُ مِنْهُ الخ﴾ یعنی دجال سره چه کوم څیزونه دی سیدنا حذیفه رضی الله عنه د هغې په باره کښ فرمائی چه د هغه څیزونو حقیقت باندې څومره زه پوهیږم دومره پرې هغه

خپله هم نه پوهيږي.

**قوله:** ﴿ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ مَاذَا قَالَ « ثُمَّ هِيَ قِيَامُ السَّاعَةِ » ﴾ يعنى د خروج الدجال او د هغه د قتل نه پس به کوم چه به په نزول د عيسى عليه السلام سره اوشى، بيا به قيامت راشى، د اشراط الساعة احاديث وړاندې مستقل راروان دى، په دې حديث کښې لکه څنګه چه تاسو وينئ، حذيفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه د راتلونکى حالاتو په باره کښې مسلسل تپوس کړې دې او رسول الله ﷺ هم دغه شان مسلسل جواب ورکړې دې او په دې کثرت سوال سره رسول الله ﷺ کله هم خفه شوې نه دې بلکه په خپل کامل جواب سره ئې هغه مطمئن کولو، يقينا دا څيز بغير د کمال شفقت او همدردئ نه نه شي کيدې. رسول الله ﷺ د خپل ځان په باره کښې خپله فرمائى :

**قوله:** ﴿ انما انا لكم بمنزلة الوالد اعلمكم دينكم ﴾ الله پاک دې مونږ ته د رسول الله ﷺ حق پيژندګلو رانصيب کړى. جزى الله سيدنا ومولانا محمدا عنا بما هو اهله.

[٤٢٤٥] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ نَصْرِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ خَالِدٍ الْيَشْكُرِيِّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: قُلْتُ بَعْدَ السَّيْفِ، قَالَ: بَقِيَّةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ: وَكَانَ قَتَادَةُ يَضَعُهُ عَلَى الرِّدَّةِ الَّتِي فِي زَمَنِ أَبِي بَكْرٍ عَلَى أَقْذَاءٍ يَقُولُ قَذًى وَهُدْنَةٌ يَقُولُ: صُلْحٌ عَلَى دَخَنٍ عَلَى ضَغَائِنَ.

همدا حديث دخالد يشکرى نه هم منقول دې ليکن په دې روايت کښې داسې دى چه : حذيفه عرض اوکړو اې دالله رسوله بيابه دتورې نه پس څه وي يعنى څه به پيښيږي؟ نبى عليه السلام اوفرمائيل انسانان به وي ليکن ددوى په زړونو کښې به فتنه او فساد وي اوددينه پس ئې حديث تر آخره پورې بيان کړو، قتاده و به توره په هغه فتنه باندې حمل کوله کومه فتنه چه دابوبکر صديق په زمانه کښې راغلې وه کله چه دعربو څه قبيلې ددين نه ګرځيدلې وي اودزکات ورکولونه ئې انکار کړې وو بيا دغه خلق دتورې په سبب تابعدار جوړ شول او دروعلى اقذاء،، نه مراد دادې چه په ګندګئ باندې به وي اودهدنة نه مراد صلح ده اود دخن نه مراد کينه ده.

**قوله:** ﴿ عن خالد بن خالد اليشكرى بهذا الحديث ﴾

دا د حديث مذکور دويم طريق دې په اول سند کښې ابوعوانه عن قتاده وو، او په دې کښې معمر عن قتاده دې او دا خالد بن خالد هم هغه سبيع بن خالد دې کوم چه په اول سند کښې تير شو د نصر بن عاصم استاد، هم دغه شان په کتب رجال «تقريب وغيره» کښې دى چه سبيع بن خالد ته خالد بن خالد هم وئيلې شي.

**قوله:** ﴿ قَالَ قُلْتُ بَعْدَ السَّيْفِ قَالَ « بَقِيَّةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ » ﴾

يعنى سيدنا حذيفه رضي الله عنه فرمائى چه ما تپوس اوکړو چه د سيف نه پس به څه وى؟ نو رسول الله ﷺ دا جواب اوفرمائيلو او په رومبى روايت کښې چه کله د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د سيف نه پس به څه وى نو هغوى فرمائيلې وو: ﴿ ان كان لله تعالى خليفة فى

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٠٧) (حسن)

الارض الخ ﴾ او د دې جملې مطلب کوم چه دلته ذکر دې دا دې چه د سيف نه پس به په دنيا کښې څه خير باقي وی خو هغه به خالص نه وی بلکه د خس و خشاک سره به وی، يعنی مکدر او غير خالص.

**قوله**: الاقذاء هو جمع قذى وهو ما يقع فى العين والشراب من غبار.

**قوله**:﴿ وهدنة على دخن ﴾ يعنی څه صلح به باقی پاتې شی. دخن يعنی ضغن په معنی د کينې، يعنی په ظاهر کښې به صلح او صفائی شوې وی خو دننه به پکښې کينه وی،

**قوله**:﴿ قَالَ كَانَ قَتَادَةُ يَضَعُهُ عَلَى الرِّدَّةِ الَّتِي فِي زَمَنِ أَبِي بَكْرٍ رضى الله عنه﴾

د يضعه.... ضمير هغه شر طرف ته راجع دې کوم چه په اول حديث کښې ذکر دې په دې قول کښې چه ﴿ ارايت هذا الخير الذى اعطانا الله تعالى ايكون بعده شر ﴾ راوی وائی چه زمونږ استاد قتاده به دا شر محمول کولو په هغه فتنة د ارتداد باندې کومه چه د ابوبکرصديق رضی الله عنه په زمانه کښې پيښه شوې وه چه د هغې علاج هغوی په سيف باندې کړې وو، پس ابوبکرصديق رضی الله عنه په دې موقع باندې صرف سيف استعمال کړې وو، خو په دې کښې دا اشکال دې چه په حديث کښې دا دی چه کله د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه تپوس اوکړې شو چه د سيف نه پس به څه وی نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه لږ شان خير به باقی پاتې شی او هغه هم غير خالص، خړ شان، حال دا چه د خلفاء راشدينو زمانه خصوصا د شيخين رضی الله عنهما هغه خو خالص د خير زمانه وه. د دې دوه جوابونه کيدې شی : الاول ان يقال ان هذا بالنسبة الى زمن النبی صلی الله عليه وسلم....... يعنی وو خو خالص خير خو د رسول الله صلی الله عليه وسلم د زمانې په اعتبار سره داسې وو څنګه چه انس رضی الله عنه فرمائی چه ﴿ ما نفضنا ايدينا حتى انكرنا قلوبنا ﴾ چه لا مونږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم د دفن کولو نه پس لاسونه هم نه وو صفا کړې چه په خپلو زړونو کښې مو تغير بيا موندلو، او يا دې دا تاويل اوکړې شی چه بعد دې په بعديت فصليه باندې حمل کړې شی نه په متصله باندې، يعنی فورا پس مراد نه دې بلکه په راروانه زمانه کښې.

### د حديث په شرح کښې د ګنګوهی رحمه الله رائې :

خو د ګنګوهی رحمه الله رائی د قتاده رحمه الله د رائې په مقابله کښې داده چه دا شر دې په ځائې د ردة محمول کړې شی په قتل عثمان رضی الله عنه باندې.او په دې صورت کښې به د سيف نه مراد د قاتلين عثمان رضی الله عنه سره قتال مراد کړې شی. [1] حضرت سهارنپوری رحمه الله هم په بذل کښې د دې رائې تائيد فرمائيلې دې.

﴿ يَقُولُ قَذًى ﴾ راوی وائی چه اقذاء کوم چه پورته ذکر شوې دې بقية على اقذاء دا د قذى جمع ده. او قذى وائی هغه بسری وغيره ته کوم چه په سترګه کښې پريوځی.

﴿ وَهُدْنَةٌ يَقُولُ صُلْحٌ ﴾ يعنی د هدنة معنی د صلح ده. ﴿ عَلَى دَخَنٍ عَلَى ضَغَائِنَ ﴾ يعنی د دخن معنی ضغينه ده يعنی کينه، چه د هغې جمع ضغائن راځی.

---

[1] کوم چه اختيار نه کړې شو حال دا چه حل د دې هم هغه وو د دې حديث په رڼړا کښې، ماشاء الله كان وما لم يشاء لم يكن)

[۴۲۴۶] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ نَصْرِ بْنِ عَاصِمٍ اللَّيْثِيِّ، قَالَ: أَتَيْنَا الْيَشْكُرِيَّ فِي رَهْطٍ مِنْ بَنِي لَيْثٍ، فَقَالَ: مَنِ الْقَوْمُ؟ قُلْنَا: بَنُو لَيْثٍ أَتَيْنَاكَ نَسْأَلُكَ عَنْ حَدِيثِ حُذَيْفَةَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ شَرٌّ؟ قَالَ: فِتْنَةٌ وَشَرٌّ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ بَعْدَ هَذَا الشَّرِّ خَيْرٌ؟ قَالَ: يَا حُذَيْفَةُ تَعَلَّمْ كِتَابَ اللَّهِ وَاتَّبِعْ مَا فِيهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ بَعْدَ هَذَا الشَّرِّ خَيْرٌ؟ قَالَ: هُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ وَجَمَاعَةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ فِيهَا أَوْ فِيهِمْ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ الْهُدْنَةُ عَلَى الدَّخَنِ مَا هِيَ؟ قَالَ: لَا تَرْجِعُ قُلُوبُ أَقْوَامٍ عَلَى الَّذِي كَانَتْ عَلَيْهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَبَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ شَرٌّ؟ قَالَ: فِتْنَةٌ عَمْيَاءُ صَمَّاءُ عَلَيْهَا دُعَاةٌ عَلَى أَبْوَابِ النَّارِ فَإِنْ تَمُتْ يَا حُذَيْفَةُ وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلَى جِذْلٍ خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ تَتَّبِعَ أَحَدًا مِنْهُمْ.

دنصر بن عاصم لليثي ﷫ نه روايت دي فرمائي چه مونږ دليث قبيلې يوځوکسانوسره يشکري ته راغلو هغه تپوس اوکړو څوک يئ؟ مونږ اووئيل مونږ بني ليث يو، مونږ تاته دحذيفه بن يمان، د روايت دمعلومات حاصلولو په باره کښې راغلې يو هغه حديث بيانول شروع کړل ترديې چه دائې اووئيل حذيفه بن يمان اووئيل ماعرض اوکړواي دالله رسوله ايادديې شرنه پس به خير وي؟ نبي ﷺ اوفرمائيل فتني به وي او شرونه به وي مابياعرض اوکړو اي دالله رسوله ايادغه فتنو اوشرونونه پس به دخير دور راځي نبي ﷺ اوفرمائيل اې حذيفه دالله تعالى کتاب و يادکړه او په دې کښې چه څه دي دديې تابعداري وکړه اوداخبره ئې درې ځله اوفرمائيله، ددينه پس مابياعرض اوکړو ايادديې شرنه پس به بل خير وي؟ نبي ﷺ اوفرمائيل زړونه به دکينونه ډک شي مګرظاهري صلح به وي، اوبائې داسې اوفرمائيل چه په درې کښې به يوجماعت په شر بانديې وي ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ددې جملې څه مفهوم دې؟ نبي ﷺ اوفرمائيل دقوم زړونه به دې کيفيت طرف ته نه راځي په کوم بانديې چه مخکښې وو، راوي وائي مابياعرض اوکړو اې دالله رسوله ايادداسې قسم خيرد دور نه پس به شر وي نبي ﷺ اوفرمائيل رنده اوګنړه فتنه به راځي په دې کښې به داور دروازونه رابلونکي وي، اې حذيفه که چرې ته مري نوپداسې حالت کښې مړ شه چه ديوي وفي زيلي په ځنګل کښې جويوه اوخوره ئې دا ستادپاره بهترديې ددينه چه ته ددغه خلقو تابعداري وکړې.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَتَيْنَا الْيَشْكُرِيَّ فِي رَهْطٍ مِنْ بَنِي لَيْثٍ ﴾ دا يشکري هم هغه دې کوم چه پورته راغلې دې يعني خالد بن خالد.

**قوله:** ﴿ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَبَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ شَرٌّ قَالَ: فِتْنَةٌ عَمْيَاءُ صَمَّاءُ عَلَيْهَا دُعَاةٌ عَلَى أَبْوَابِ النَّارِ ﴾ په دې طريق کښې دا زيادت دې چه ﴿ بقية على اقذاء وهدنة على دخن ﴾ نه پس صحابي تپوس اوکړو چه د دې خير نه پس به بيا شر وي؟ نو رسول الله ﷺ جواب اوفرمائيلو: ﴿ فتنة عمياء الى اخره ﴾ يعني داسې فتنه چه رنده او کنړه به وي، د فتنې صفت عمياء او صماء اشاره ده د هغې سخت والي او تيرې ته. چه هغه فتنه به داسې وي چه انسان ته به حق په نظر نه راځي چه هغه په کوم کښې دې، او په دې فتنه کښې غورځيدونکې به بالکل کاڼره وي نصيحت او کلمة د حق به بالکل نه اوري.

¹): انظر حديث رقم: (۴۲۴۵)، (تحفة الأشراف: ۳۳۰۷) (حسن)

د (علیها دعاة) مطلب دا دې چه څو دې فتنې لره قائمونکې وی او نورو ته به هم دعوت ورکوی په دې کښې د شرکت حال دا چه هغه دعوت ورکونکې به د جهنم په دروازو باندې ولاړ وی، یعنی په اعتبار د انجام، یعنی خلقو ته به د داسې څيز طرف ته دعوت ورکوی کوم چه به هغوی لره د جهنم طرف ته بوځی.

د دې نه پس رسول الله ﷺ سیدنا حذیفه رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه اې حذیفه دا به هغه زمانه وی چه په هغې کښې به د انسان عزلت او ګوټ کښې کیناستل اولی وی په نسبت د دې چه په دې فتنه کښې د شرکت کونکو ډلو نه د یوې اتباع اوکړی. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[٤٢٤٧] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَبُو التَّيَّاحِ، عَنْ صَخْرِ بْنِ بَدْرٍ الْعِجْلِيِّ، عَنْ سُبَيْعِ بْنِ خَالِدٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ حُذَيْفَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ يَوْمَئِذٍ خَلِيفَةً فَاهْرُبْ حَتَّى تَمُوتَ فَإِنْ تَمُتْ وَأَنْتَ عَاضٌّ، وَقَالَ فِي آخِرِهِ، قَالَ: قُلْتُ: فَمَا يَكُونُ بَعْدَ ذَلِكَ؟ قَالَ: لَوْ أَنَّ رَجُلًا نَتَجَ فَرَسًا لَمْ تُنْتَجْ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ.

دحذيفة بن یمان رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی که چرې په دغه ورځو کښې تاته خلیفه ملاو نه شي نو لرې لاړ شه او اوتښته تردې چه تاته مرګ راشي که چرې تاته په داسې حالت کښې مرګ راشي چه ته درنو ونو پانړې خورې نو دا ستا دپاره بهتردې ، ددې روایت په آخر کښې دې فرمائی چه ماعرض اوکړو بیابه ددینه پس څه وي؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل که چرې یو کس دخپل اس بچې پیدا کول او غواړي نو دخپل اس بچې به ئې پیدا کړې نه وي او قیامت به راشي.

**قوله:** (وَقَالَ فِي آخِرِهِ قَالَ قُلْتُ فَمَا يَكُونُ بَعْدَ ذَلِكَ ؟قَالَ « لَوْ أَنَّ رَجُلاً نَتَجَ فَرَسًا لَمْ تُنْتَجْ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ ») د حدیث حذیفه رضی الله عنه په دې طریق کښې یو بل زیادت دې کوم چه په رومبو طرقو کښې نه وو هغه دا چه هغوی تپوس اوکړو چه د دې نه پس به بیا څه وی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دې وخت کښې به قیامت دومره رانزدې شوې وی چه که یو سړې د خپلې اسپې د بچې زیږولو دپاره اودریږی نو او به ئې نه زیږولې شی چه قیامت راشي.

[٤٢٤٨] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ رَبِّ الْكَعْبَةِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ بَايَعَ إِمَامًا فَأَعْطَاهُ صَفْقَةَ يَدِهِ وَثَمَرَةَ قَلْبِهِ فَلْيُطِعْهُ مَا اسْتَطَاعَ، فَإِنْ جَاءَ آخَرُ يُنَازِعُهُ فَاضْرِبُوا رَقَبَةَ الْآخَرِ، قُلْتُ: أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي، قُلْتُ: هَذَا ابْنُ عَمِّكَ مُعَاوِيَةُ يَأْمُرُنَا أَنْ نَفْعَلَ وَنَفْعَلَ، قَالَ: أَطِعْهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ وَاعْصِهِ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ".

دعبدالله بن عمرو نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چاچه دیو امام سره بیعت اوکړو اودهغه په لاس کښې ئې خپل لاس کیخودو، اودهغه سره ئې دزړه په صدق اقرار وکړو نو څومره چه کیدې شي دهغه تابعداری دې وکړي، خوکه چرې بل کس دهغه نه امام

---

(١): انظر حديث رقم: ٤٢٤٤، (تحفة الأشراف: ٣٣٣٢) (حسن)

(٢): صحيح مسلم/الإماره ١٠ (١٨٤٤)، سنن النسائي/البيعة ٢٥ (٤١٩٦)، سنن ابن ماجه/الفتن ٩ (٣٩٥٦)، (تحفة الأشراف: ٨٨٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٦١، ١٩١، ١٩٣) (صحيح)

جوړ کړي او ددغه امام سره جګړه کوي نوده لره قتل کړئ، عبدالرحمن وائی ما دعبدالله نه تپوس اوکړو چه ایا تا دا دنبی ﷺ نه آوریدلی دی هغه اووئیل یقینا زما دواړه غوږونو آوریدلی دی او زما زړه دا یاد کړي دي ماعرض اوکړو ستا د تره ځوي معاویه مونږ ته حکم کوي چه مونږ فلانې فلانې کار وکړو عبدالله اووئیل په هغه کار کښې دده تابعداری وکړئ په کومو کښې چه دالله تعالی تابعداری کیږی او په کومو کارونوکښې چه دالله تعالی نافرمانئی کیږی په هغې کښې دده تابعداری مه کوئ.

دا د مثال په طور ده او مطلب دا دې چه هغه وخت به قیامت دومره رانزدې شوې وی چه کوم سړي په کوم کار کښې هم لګیدلې وی هغه به پوره نه کړي شی چه قیامت به راشی.

**قوله:**﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِىَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ بَايَعَ إِمَامًا فَأَعْطَاهُ صَفْقَةَ يَدِهِ وَثَمَرَةَ قَلْبِهِ فَلْيُطِعْهُ مَا اسْتَطَاعَ فَإِنْ جَاءَ آخَرُ يُنَازِعُهُ فَاضْرِبُوا رَقَبَةَ الآخَرِ »﴾

یعنی رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه کوم انسان د یو امام سره بیعت اوکړو، وړاندې د بیعت مفهوم ذکر دې چه خپل لاس ئې د هغه په لاس کښې ورکړو او د خپل قلب ثمره ئې هغه ته ورکړه یعنی په اخلاص سره ئې هغه سره بیعت اوکړو نو اوس هغه له پکار دی چه د خپل وس مناسب دې د هغه امام اطاعت کوی (فی غیر معصیة الله تعالی) پس که په داسې حال کښې دویم انسان راشی او د خلافت په باره کښې د دې امام اول سره جنګ شروع کړی نو د هغه سټ اوهئ. عبدالرحمن بن عبد وائی چه ما تپوس اوکړو چه آیا واقعی تاسو دا حدیث د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې؟ نو هغوی اوفرمائیل چه زما غوږونو دا حدیث د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې (او بله دا چه) زما قلب محفوظ کړې دې. عبدالرحمن وائی چه بیا ما د هغوی نه تپوس اوکړو چه دا ستاسو د تره ځوئې معاویه ﷺ مونږ ته د دې حکم کوی چه مونږ داسې اوکړو او هغه شان اوکړو، یعنی د علی ﷺ سره منازعت او مقاتله، حال دا چه علی ﷺ مصداق دې د ﴿ من بایع اماما ﴾ او معاویه ﷺ مصداق دې د ﴿ فان جاء اخر ینازعه﴾؟ دا سوال داسې ګران وو چه د هغې جواب هم ګران دې چه دواړو طرفونو ته صحابه دی. خو عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ هم ډیر هوښیار وو، هغوی څه فیصله او نه فرمائیله بلکه د قاعده کلیه په طور ئې اوفرمائیل ﴿ اطعه فی طاعة الله واعصه فی معصیة الله ﴾ چه د هغې حاصل دا دې چه که معاویه وی یا بل څوک اصلی خبره هم دا ده چه په حق خبره کښې د یو حکم کونکی د حکم اطاعت کول دی او په معصیت او ناحق امر کښې عدم اطاعت.

**په مشاجرات صحابه ﷺ باندې د ګنګوهی ﷫ تقریر:**

دلته په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه د بعض مشاجرات صحابه لکه د علی او معاویه ﷺ ترمینځه او هم دغه شان د یزید او د عبدالله بن زبیر ﷺ ترمینځه، هم دغه شان د سیدنا حسین ﷺ په طرز عمل باندې یو مختصر او جامع بیان دې چه په هغې کښې د دې اختلافاتو په اسباب ومناشی باندې د خلاصې په طور رڼا اچولې شوې ده چه د هغې مطالعه د دې مشاجراتو نه د خبریدو دپاره ډیره مفید ده.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه مطولا ومختصرا، قاله المنذری.

[۴۲۴۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ شَيْبَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ أَفْلَحَ مَنْ كَفَّ يَدَهُ".

ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت بيانوي چه فرمائيلي ئې دي: بربادي دي وي دعربو دپاره دهغه فتنې نه کومه چه رانزدې شوي ده ، يقينا کامياب به شي هغه څوک چه ددې نه خان بچ اوساتي.

**قوله:**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ أَفْلَحَ مَنْ كَفَّ يَدَهُ »﴾ يعنی خرابی او خساره ده د عربو دپاره د هغه شر او فتنې د وجې نه کومه چه نزدې راتلونکې ده، هغه سړې به کامياب وی کوم چه خپل ځان په هغې کښې د شرکت کولو نه منع کړی.

علامه طيبی فرمائی چه يا خو په دې حديث کښې اشاره ده قتل د عثمان (رض) طرف ته او څه چه د هغې نه پس پيښ شول د علی او معاويه رضی الله عنهما ترمينځه، يا د دې نه مراد قضيه د يزيد ده کومه چه د حسين رضی الله عنه سره راپيښه شوې ده.

الشطر الاول من الحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی من حديث زينب بنت جحش رضی الله عنها مطولا، منذری مختصرا.

[۴۲۵۰] (۲) قَالَ أَبُو دَاوُد: حُدِّثْتُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحِ".

امام ابوداؤد فرمائی چه ماته دابن وهب نه حديث بيان شوي دي هغه دجرير نه هغه دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه فرمائی چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم فرمائيلی دی هغه وخت وين رافردي شوي دي چه مسلمانان به مدينه منوره محاصره کړي شي تردې چه دټولونه زياته فاصله به دصلاح مقام پورې وي يعنی دکوم ځائې پورې په دوی اثر در مسير هغه به سلاح مقام وي (سلاح د خيبر مره ذره ديو مقام نوم دي).

**قوله:**﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ حُدِّثْتُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ « يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلاَحَ »﴾

دا مستقل حديث دې کوم چه وړاندې په "باب المعقل من الفتنة " کښې راروان دې او هم د دې مقام مناسب هم دې د هغې تشريح به هم هلته کولې شي.

[۴۲۵۲] (۳) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ زَوَى لِي الْأَرْضَ، أَوْ قَالَ: إِنَّ رَبِّي

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۱۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/ الفتن ۱ (۲۸۸۰)، سنن ابن ماجه/ الفتن ۹ (۳۹۵۳)، مسند احمد (۲/۳۹۰، ۳۹۱، ۴۴۱، ۵۳۶، ۵۴۱) (صحيح)

[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۸۱۸) وأعاده المؤلف في الملاحم (۴۲۹۹) (صحيح)

[۳]: صحيح مسلم/الإمارة ۵۳ (۱۹۲۰)، والفتن ۵ (۲۸۸۹)، سنن الترمذي/الفتن ۱۴ (۲۱۷۶)، سنن ابن ماجه/الفتن ۹ (۳۹۵۲)، (تحفة الأشراف: ۲۱۰۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲۷۸، ۲۸۴) سنن الدارمي/المقدمة ۲۲ (۲۰۵) (صحيح)

زَوَي لِيَ الْأَرْضَ فَرَأَيْتُ مَشَارِقَهَا وَمَغَارِبَهَا وَإِنَّ مُلْكَ أُمَّتِي سَيَبْلُغُ مَا زُوِيَ لِي مِنْهَا وَأُعْطِيتُ الْكَنْزَيْنِ الْأَحْمَرَ وَالْأَبْيَضَ، وَإِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي أَنْ لَا يُهْلِكَهَا بِسَنَةٍ بِعَامَّةٍ وَلَا يُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحَ بَيْضَتَهُمْ؟ وَإِنَّ رَبِّي قَالَ لِي: يَا مُحَمَّدُ إِنِّي إِذَا قَضَيْتُ قَضَاءً فَإِنَّهُ لَا يُرَدُّ وَلَا أُهْلِكُهُمْ بِسَنَةٍ بِعَامَّةٍ وَلَا أُسَلِّطُ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحَ بَيْضَتَهُمْ وَلَوِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِ أَقْطَارِهَا، أَوْ قَالَ: بِأَقْطَارِهَا حَتَّى يَكُونَ بَعْضُهُمْ يُهْلِكُ بَعْضًا، وَحَتَّى يَكُونَ بَعْضُهُمْ يَسْبِي بَعْضًا، وَإِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الْأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ وَحَتَّى تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الْأَوْثَانَ وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لَا نَبِيَّ بَعْدِي وَلَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي عَلَى الْحَقِّ"، قَالَ ابْنُ عِيسَى: ظَاهِرِينَ ثُمَّ اتَّفَقَا لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ.

دثوبان ﷺ نه روايت دي فرمائي چه رسول الله بن فرمائيلي دی الله تعالى زما دپاره زمکه راټوله کړي ده او ماته ددې مشرق اومغرب وښودني شول او يقينا زمادامت حکومت به دهغه ځايونو پورې ورسيږي کوم چه ماته دجمع کولونه راوښودلې شول او ماته سپيني اوسرې خزاني راکړې شوي دي د سپين زر اوسره زر، ماخپل پروردګارته عرض اوکړو چه زما امت به په يوعام قحط باندې نه هلاکوي او په دوی به داسې دشمن نه مسلط کوي کوم چه ددوينه نه وي اوددوی جرړي اوباسي (يعنی بالکل دين اسلام برباد کړي اوځوک مسلمان پاتې نه شي زمارب ماته اوفرمائيل اې محمد زه چه کله حکم وکړم نوهغه نه واپس کيږي اوزه به ستا امتيان په يو عام قحط باندې نه هلاکوم او په دوی به داسې دشمن نه مسلط کوم کوم چه به ددوينه نه وي چه ددوی جرړي اوباسي اګر که په دوی باندې دټولې دنياکافران حمله وکړي خوستا امتيان به پخپل مينځ کښې يو بل لره هلاکوي اوقيد کوي به ئې اوزه پخپل امت کښې دګمراه کونکو حاکمانو اواماتونه ډير يريږم کله چه زماپه امت کښې توره چليږي نوددوی نه به دقيامته پورې توره پورته نکړې شي اودهغه وخته پورې به قيامت نه راځي ترڅوچه زمادامت خلق د مشرانوسره يوځای شوي نه وي اوترڅ پورې چه زمادامت خلقو دبتانو عبادت نوي شروع کړې او نزدې ده چه زماپه امت کښې به ديرش دروغژنان پيداشي په دوی کښې به هريوکس دا دعوې کوي چه زه نبی يم حالانکه زه دانبياو سلسلې لره ختمونکې يم زمانه پس بل نبی نشته او زما په امت کښې به يوه ډله هميشه په حق باندې وي ، ابن عيسی وئيلی دی چه هميشه به غالبه وي څوک چه ددوی مخالفت کوي هغه به دوی ته هيڅ نقصان نشي رسولې تردې پورې چه دالله تعالى حکم يعنی قيامت قائم شي.

**قوله**: ﴿ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ اللَّهَ زَوَى لِيَ الْأَرْضَ » أَوْ قَالَ « إِنَّ رَبِّي زَوَى لِيَ الْأَرْضَ فَرَأَيْتُ مَشَارِقَهَا وَمَغَارِبَهَا وَإِنَّ مُلْكَ أُمَّتِي سَيَبْلُغُ مَا زُوِيَ لِي مِنْهَا وَأُعْطِيتُ الْكَنْزَيْنِ الْأَحْمَرَ وَالْأَبْيَضَ ﴾

## شرح الحديث:

د رسول الله ﷺ ارشاد دي چه الله پاک ټوله زمکه راټوله کړه او زما مخې ته ئې کړه پس ما ددې په مشرقونو او مغربونو کښې هر څه اوليدل.

د راټولولو نه مراد، که دا په حقیقت باندې محمول کړې شي نو مختصر کول دي، لکه چه د غټې آبادئ نقشه په یو وړوکي کاغذ باندې جوړه کړې شي او یا د دې نه مراد خلق او ادراک دې یعني د دې علم راته راکړې شو. وړاندې رسول اللهﷺ فرمائي چه زما د امت حکومت او بادشاهي به هغه ځائې ته رسیږي د کوم ځائې پورې چه دا زمکه زما مخې ته کړې شوې ده، د امت نه مراد امت اجابت دې یعني مسلمان، او د ملک نه مراد یا خو حکومت دې او یا آبادي او د مسلمانانو خوریدل، او د حکومت مطلب دا نه دې چه په یو وخت کښې ئې په پوره مکه باندې حکومت شي بلکه په مختلفو وختونو کښې تر قیامته پورې. او ماته دوه خزانې راکړې شوې دي سره او سپینه، یعني مقدر کړې شوې دي زما د امت دپاره کومې چه به نزدې هغوی ته ملاؤ شي، په سور او سپین سره یا خو اشاره فارس او روم ته ده او یا شام او فارس طرف ته ده، پس په مظاهر حق ۴/۵۰۰ کښې دي: یعني د سرو او سپینو زرو، یعني یو خو د کسری خزانه چه بادشاه دې د فارس هلته سرهٔ زر ډیر زیات دي او یو د قیصر خزانه چه بادشاه دې د روم او هلته چاندي ډیره ده، او په اشعة اللمعات کښې په دې باندې اضافه ده چه د بعض علماء کرامو رائې دا ده چه د احمر نه مراد ملک شام دې ځکه چه د هغه ځائې د خلقو رنګونه سرهٔ دي او د ابیض نه مراد ملک فارس دې ځکه چه د هغه ځائې د خلقو رنګونه سپین دي.[1] او لیکلې ئې دي چه اول معنی زیاته ظاهره ده. بله دا چه په دې دواړو کتابونو کښې د ملک تفسیر په بادشاهئ سره کړې شوې دې، د پوره حدیث ترجمه دا ده:

رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه بیشکه الله پاک راټوله کړه زما دپاره زمکه، یعني د تلې په شان ئې راته اوښودله پس اولیدل په دې کښې ما د هغې مشرقونه او مغربونه، یعني ټوله زمکه مې اولیده، او بیشکه زما امت نزدې دې چه اورسیږي د هغوی بادشاهي هغه فاصلې ته چه یو ځائې کړې شوې ده زما دپاره د زمکې نه، یعني په مغرب او مشرق کښې به بادشاهان شي او نصرت به اوکړي، او راکړې شوې دي ماته دوه خزانې سره او سپینه، او بیشکه ما اوغوښتل د خپل رب نه چه هلاک ئې نه کړي په قحط عام سره، یعني داسې قحط دې رانشي چه ټول امت هلاک کړي، او دا چه مسلط دې نه کړي په دوی باندې دشمن سوا د مسلمانانو نه، یعني کافر، چه مباح اوګڼړي او واخلي ځائې د هغوی د جمع کیدو او د بادشاهئ یعني داسې اونشي چه دشمن د هغوی د استوګنې ځائې واخلي، او ټول اوژني یعني د هغوی جمعیت او اکثریت ختم کړي او بیشکه فرمائیلي دي زما رب چه اې محمدﷺ یقینا چه کله زه حکم اوکړم د یو امر پس بیشکه هغه نه ستنیږي، او یقینا ما درکړو تاته خپل عهد ستا د امت دپاره، یعني د امت اجابت دپاره چه نه به هلاکوم هغوی په قحط عام سره او نه دا چه مسلط کړم په دوی باندې څوک دشمن سوا د مسلمانانو نه چه

[1] پس حاصل داچه کوم شارحینو داحمر او ابیض نه سره زر اوسپین زر مراد اخستې دي هغوی د احمر مصدار فارس اود ابیض مصداق روم ګرځولې دې، اوچا چه د احمر او ابیض نه دهغه ځائې د اوسیدونکو رنګ مراد اخستې دي هغوی داحمر مصداق ملک شام او د ابیض مصداق فارس ګرځولې دې.

هغه مباح اوګڼړي هغه ځائې کوم چه د هغوی د استوګنې وی اګر چه راجمع شی په هغوی باندې هغه خلق کوم چه د زمکې په ټولو طرفونو کښې دی، یعنی اګر چه کافر د ټول جهان راجمع شی هغوی سره د جنګ کولو دپاره، تر دې چه ستا په امت کښې بعضو لره هلاک کړی او بعضو لره قید کړی، یعنی کافر به په هغوی باندې غلبه او تسلط نه شی حاصلولې، او ټول ملک د اسلام به نه شی اخستلې، خو که ستا امت خپل مینځ کښې جنګ اوکړی او بعضې به بعضو لره قید کړی، هم دغه شان د الله پاک قضاء او تقدیر الهی مقرر شو، هرګز به پکښې تغیر او تبدل بیا نه مومې. (مظاهرحق)

**قوله:** ﴿وَإِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ﴾

**د رسول الله ﷺ د اهل بدعت نه د دینی ضرر سخته ویره:**

او بله دا چه زما د خپل امت په باره کښې زیاته ویره د هغه مشرانو نه ده کوم چه به خلقو لره ګمراه کونکی وی، یعنی بدعت چلونکی او د اهل بدعت مشران کوم چه به خپله هم ګمراهان وی او نور خلق به هم ګمراه کوی د دین په نوم باندې.

**قوله:** ﴿وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ او کله چه زما په امت کښې یو ځل توره اوچلیږی یعنی د مسلمانانو خپل مینځ کښې خانه جنګی نو بیا به د دې سلسله ترقیامته پورې ختم نه شی، پس د عمرفاروق رضی الله عنه د ژونده پورې خپل مینځ کښې د جنګ سلسله نه وه شروع شوې، د دې نه پس ناخوښه آثار پیدا کیدل شروع شو او سیدنا عثمان رضی الله عنه په قتل سره د هغې په ښه طریقه باندې ظهور اوشو.

**قوله:** ﴿وَلاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ وَحَتَّى تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الأَوْثَانَ﴾

او قیامت به قائم نه شی تر دې چه شامل به شی زما د امت ډیر قبائل د مشرکینو سره یا خو په دې کښې اشاره ده د هغوی ارتداد ته کومه چه په خلافت صدیقی کښې بیا موندلې شوه او یا کوم چه د مغرب په ممالکو کښې په اندلس کښې اوشو [1] چه کله هلته د نصاراو غلبه مکمل شوه نو ډیرو مسلمانانو د هغه ځائې نه هجرت اوکړو او ډیر کوم چه هلته پاتې شو د هغوی نه جبرا نصاری جوړ کړې شو، او تر دې چه زما د امت بعض قبائل به د بتانو عبادت اوکړی، د بتانو د عبادت نه یا خو اشاره ده قبرپرستئ طرف ته کوم چه مبتدعین کوی او یا اشاره ده هغه حقیقی بت پرستئ ته کومه چه به په آخر زمانه کښې واقع کیږی چه د هغې طرف ته په یو بل حدیث کښې رسول الله ﷺ اشاره فرمائیلې ده: ﴿لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَضْطَرِبَ أَلَيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ عَلَى ذِي الْخَلَصَةِ﴾ رواه البخاری ومسلم، یعنی قیامت به نه قائمیږی ترڅو چه د قبیله دوس د زنانو کوناتی حرکت اونه کړی په ذوالخلصه باندې،

[1] د تاریخ اسلام دا ډیره افسوسناکه واقعه شوې ده چه چرته د مسلمانانو تقریبا تر د اتو سوو کلونو پورې حکومت وو خو خپل مینځ کښې د اختلاف په وجه باندې دا ورځ هم اولیدې شوه په مزه مزه ټول مسلمانان جلا وطن کړې شو، چرته چه لوئې لوئې ائمه ابن حزم، ابن عبدالبر، ابو الولید الباجی، قاضی عیاض وغیره پیدا شول او د علومو مناره ئې روښانه کړه، او لوئې لوئې ښهرونه قرطبه، اشبیلیه، سبته، ملیله وغیرها ئې په علوم او فنون سره آباد کړل هغه ټول د مسلمانانو د لاس نه اوتل، اعادها الله بالسلامة والعافیة الی المسلمین. حبیب الله)

ذوالخلصه د یو مشهور بت کدې نوم دی، او د اضطراب سرین نه مراد د هغه زنانو د دې بت نه ګیرچاپیره تاویدل دی او طواف کول مراد دی، یعنی ترڅو چه دوباره بت پرستی شروع نه شی (بذل، بتصرف) د ذوالخلصه ذکر په (درمنضود کښې) کتاب الجهاد کښې په باب فی بعثة البشراء کښې تیر شوې دې.

**قوله:** ﴿ وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلاَثُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لاَ نَبِيَّ بَعْدِي ﴾

او یقینا زما په امت کښې به دیرش دروغژن موندلې شی کوم چه به د خپل نبوت دعوی کوی، حال دا چه زه خاتم النبیین یم زما نه پس به هیڅ نبی نه راځی. په ترمذی کښې د ابوهریره رضی الله عنه په روایت باندې د ﴿ قریب من ثلاثین ﴾ لفظ راغلې دې.

## لعین قادیان غلام احمد:

حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه تر دې زمانې پورې ډیر په هغوی کښې ښکاره شوې هم دی، لکه چه په موجوده زمانه کښې د غلام احمد قادیانی ظهور شوې دې د پنجاب په اړخونو کښې په قادیان ښهر کښې کوم چه د امرتسر په مضافاتو کښې دې ﴿ فادعی انه مهدی، وانه المسیح وانکر نزول المسیح، وادعی ان عیسی بن مریم علیهما السلام توفی وقبره فی کشمیر ﴾ وړاندې حضرت فرمائی چه کیدې شی بعض د دې دیرشو نه باقی وی، او که په دیرشو باندې د دې عدد زائد هم شی نو د دې حدیث خلاف به نه وی ﴿ لان مفهوم العدد لا یعتبر وفی هامش الترمذی عن اللمعات والدجال الاکبر خارج عن هذا العدد لانه یدعی الالوهیة وبه فارق الدجالین اهـ ﴾ [1]

**قوله:** ﴿ وَلاَ تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ لاَ يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ ﴾

دحدیث پاک دا آخری ټکړه په کتاب الجهاد باب دوام الجهاد کښې تیره شوې ده، ددې شرح

---

[1] په دې حدیث شریف کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم وصف خاص خاتم النبیین کیدل ذکر دی کومه چه د عقائد اسلامیه یو بنیادی عقیده ده چه په هغې باندې د اعتقاد او یقین نه بغیر د چا اسلام بالکل غیر معتبر دې کوم چه د نص قطعی (قران کریم) او احادیث صحیحه متواتره نه ثابت دې چه د هغې دپاره د یو مستقل تصنیف کولو هرګز ضرورت نشته، خو د بعض بددین او جاهل ګمراهانو خلقو د اصلاح دپاره په دې مسئله باندې علماء حق مستقل تالیفات اوکړل او مناظرو ته خبره اورسیده. حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله په معارف القرآن کښې ۱۶۳/۷ په آیت کریمه ﴿ ما کان محمدا ابا احد من رجالکم ولکن رسول الله وخاتم النبیین ﴾ د لاندې لیکلې دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم خاتم النبیین کیدل او د هغوی آخری پیغمبر کیدل او د هغوی نه پس د بل پیغمبر دنیا ته نه مبعوث کیدل او د هر مدعی نبوت کاذب او کافر کیدل داسې مسئله ده چه په هغې باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه ترنن ورځې پورې د هر دور د مسلمانانو اتفاق او اجماع ده، په دې وجه ضرورت نه وو چه په دې باندې څه تفصیلی بحث کړې شوې وې، خو قادیانی ډلې په دې مسئله کښې د مسلمانانو په زړونو کښې د شکوک او شبهاتو د پیدا کولو دپاره ډیر زور لګولې دې، په سوونو واړه او لوئې کتابونه شائع کولو سره ئې د کم علمه خلقو د ګمراه کولو کوشش کړې دې په دې وجه احقر په دې مسئله باندې د پوره تفصیل دپاره یو مستقل کتاب، ختم نبوت لیکلې دې چه په هغې کښې د سلو آیتونو او د دوه سوه نه زیات احادیثو او اقوال او آثار سلف وخلف سره دا مسئله واضحه کړې شوې ده او د قادیانی شبهې تفصیلی جواب ورکړې شوې دې اهـ

دي هلته او کتلي شي. والحديث اخرجه مسلم والترمذي مختصرا وابن ماجه بتمامه، قاله المنذري.

[٤٢٥٣] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ ابْنُ عَوْفٍ، وَقَرَأْتُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ، عَنْ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ يَعْنِي الْأَشْعَرِيَّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ أَجَارَكُمْ مِنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ: أَنْ لَا يَدْعُوَ عَلَيْكُمْ نَبِيُّكُمْ فَتَهْلَكُوا جَمِيعًا، وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ، وَأَنْ لَا تَجْتَمِعُوا عَلَى ضَلَالَةٍ".

دابو مالک اشعری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی الله تعالی تاسو د درې قسمه افتونونه محفوظ کړي يئ يو ددينه چه دالله تعالی ئي تاسوته خيرې وکړي اوبيا تاسو ددې خبروپه وجه باندې هلاک شئ دويم داچه باطل فرست به هيڅ کله په حق فرستونه غالب کيږي دريم داچه تاسوبه ټول نه ګمراه کيږي.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ – قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « إِنَّ اللَّهَ أَجَارَكُمْ مِنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ أَنْ لَا يَدْعُوَ عَلَيْكُمْ نَبِيُّكُمْ فَتَهْلِكُوا جَمِيعًا وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ وَأَنْ لَا تَجْتَمِعُوا عَلَى ضَلَالَةٍ »﴾

## مضمون الحديث :

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه الله پاک تاسو يعنی امت محمديه د درې څيزونو نه محفوظ ساتلی ئي يو دا چه ستاسو نبی ﷺ به ستاسو دپاره داسې بددعاء نه کوی چه په هغې سره تاسو ټول تباه شئ (په خلاف د تيرو امتونو کوم چه د خپل طغيان او سرکشئ په وجه باندې او د خپل نبی په بدعاء سره تباه او برباد شو) دويم څيز دا چه هرګز به داسې نه وی چه اهل باطل دې په اهل حق باندې غالب راشی، يعنی بالعموم په ټول اهل حق باندې او که په يو خاص موقع باندې اهل باطل په بعض اهل حق باندې غالب راشی نو د هغې نفی نه ده.او دريم دا چه تاسو به ټول په ټول په ضلالت باندې نه متفق کيږئ، دا ضلالت عام دې علی الظاهر. که هغه د عقيدې په لحاظ وی او که د مسائل فرعيه په لحاظ پس دا مشهوره ده چه دا حديث د اجماع امت د حجت شرعيه کيدو دليل دې.

[٤٢٥٤] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ نَاجِيَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تَدُورُ رَحَى الْإِسْلَامِ لِخَمْسٍ وَثَلَاثِينَ أَوْ سِتٍّ وَثَلَاثِينَ أَوْ سَبْعٍ وَثَلَاثِينَ فَإِنْ يَهْلَكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ وَإِنْ يَقُمْ لَهُمْ دِينُهُمْ يَقُمْ لَهُمْ سَبْعِينَ عَامًا، قَالَ: قُلْتُ: أَمِمَّا بَقِيَ أَوْ مِمَّا مَضَى، قَالَ: مِمَّا مَضَى"، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَنْ قَالَ خِرَاشٍ فَقَدْ أَخْطَأَ.

دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی داسلام جرنده به پنځه دريش کاله يا شپږ ديرش کاله يا اوه ديرش کاله ګرځي بياکه چرې خلق هلاک شي نوددې لار به ددوينه دمخکنوخلقو په شان وي اوکه چرې ددوی دپاره ددوی دين قايم کړې شو نوددوی دپاره به تر اويا کالوپورې قائم وي، راوی وائی ما عرض اوکړو ايا دراتلونکي زمانې په نسبت که دتيرې شوي زمانې په نسبت نبی ﷺ اوفرمائيل دتير شوي زمانې په

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٥٥) (ضعيف) حديث كا آخري جمله (وأن لا تجتمعوا الخ) صحيح.
(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩١٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٠/١، ٣٩٣، ٣٩٥) (صحيح)

نسبت، ابوداؤدفرمائی که چرې څوک د حراش په ځائې باندې خراش اووائی نودا خطاده.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « تَدُورُ رَحَى الإِسْلاَمِ لِخَمْسٍ وَثَلاَثِينَ أَوْ سِتٍّ وَثَلاَثِينَ أَوْ سَبْعٍ وَثَلاَثِينَ فَإِنْ يَهْلِكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ وَإِنْ يَقُمْ لَهُمْ دِينُهُمْ يَقُمْ لَهُمْ سَبْعِينَ عَامًا » ﴾

## شرح الحديث :

د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د اسلام میچن به روانه وی تر د پنځو دیرشو کالو پورې یا د شپږ دیرشو کالو پورې یا د اووۀ دیرشو کالو پورې، د دوران رحی دوه مطلبه کیدې شی یو خو دا چه د اسلام میچن به صحیح روانه وی یعنی د دې نظام به صحیح قائم وی، یو معنی خو دا شوه یعنی قیام الاسلام علی حسن النظام. دویم مطلب ئې دا کیدې شی چه د رحی نه مراد واخستلې شی رحی الحرب، یعنی په اسلام کښې د جنګ میچن تاویدل، په اول صورت کښې به مطلب دا وی چه د اسلام قیام به په حسن نظام سره تر د پنځه دیرشو کالو پورې باقی وی، او په دویم صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه په اسلام کښې به د جنګ د میچن ګرځیدو سلسله د پنځو دیرشو کالو نه پس شروع کیږی، یعنی په اول صورت کښې به بقاء مراد وی او په دویم صورت کښې به ابتداء. کوم کلونه چه په دې حدیث کښې ذکر دی د هغې نه مراد د نبوت کلونه هم کیدې شی او د هجرت کلونه هم، که سنه هجری مراد کړې شی نو په ۳۵ هجری کښې مقتل عثمان ﷺ دې یعنی د هغوی د شهادت واقعه او د نبوت کال مراد کیدو په صورت ۳۵ کاله پس د خلافت عمر ﷺ انقضاء ده، ځکه چه ۳۵ کاله مطابق کیږی د ۲۳هجری سره په کوم چه د عمر ﷺ شهادت اوشو، لهذا وئیلې کیدې شی د اول مطلب په اعتبار سره چه د خلافت عمری ﷺ پورې هغه روښانه دور مونډلې شوې دې، او د دویمې معنی په اعتبار سره به دا وئیلې شی چه په ۳۵ هجرۍ سره به په اسلام کښې د جنګ سلسله شروع شی ځکه چه مقتل عثمان ﷺ په ۳۵ هجرۍ کښې دې. دریم قول د دې حدیث په شرح کښې دا هم دې چه په دې حدیث کښې اشاره د خلافت راشده طرف ته ده د کوم په باره کښې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وو ﴿ الخلافة بعدی ثلاثون سنة ﴾ چه خلافت راشده به زما نه روستو تر دیرشو کالو پورې باقی وی، دا دیرش کاله د علی ﷺ د خلافت په اختتام باندې پوره کیږی ځکه چه د علی ﷺ شهادت په ۴۰ هجرۍ کښې دې او د رسول الله ﷺ وفات د ۱۰ هجری نه پس د یولسمې هجرۍ په شروع کښې او چونکه رسول الله ﷺ ﴿ بعدی ﴾ فرمائیلې وو نو په دې وجه د دې دیرشو کالو ابتداء به د ۱۱ هجرۍ نه وی. مجموعه د لسو او دیرشو څلویښت کاله شو، په کوم چه د علی ﷺ وفات دې.

وراندې په حدیث کښې دوه کلونه نور ذکر دی شپږدیرش او اووۀ دیرش، پس په ۳۶ هجری کښې جنګ جمل دې او په ۳۷ هجری کښې جنګ صفین پیښ شوې دې. د دې نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ فان یهلکوا الخ ﴾ په دې مذکوره موده کښې دوه احتماله دی یو خو به د خلقو دین قائم وی یا به نه وی که دین ئې قائم نه وی د کوم نه چه په حدیث کښې په

هلاکت سره تعبیر کړې شوې دې، ﴿ فَإِنْ يَهْلِكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ ﴾ چه د هغوی نه پس به د خلقو هم هغه انجام وی کوم چه د مخکښې هلاک شوې یعنی د کفارو شو، او که دین باقی وی نو د اویا کالو نه زیات به باقی نه پاتې کیږی. ﴿ قُلْتُ أَمِمَّا بَقِيَ أَوْ مِمَّا مَضَى قَالَ « مِمَّا مَضَى »﴾ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه راوی حدیث د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه دا اویا کاله به د ذکر کړې شوې پنځه دیرشو کالو نه علاوه وی یا که د هغې سره؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د هغې نه علاوه نه د هغې سره، لهذا مطلب دا شو چه په شروع کښې چه رسول الله ﷺ د کومو پنځه دیرشو کالو ذکر فرمائیلی وو په هغې باندې ئې صرف د پنځه دیرشو کالو نوره اضافه اوکړه، د پنځو دیرشو دوچند اویا شو.

دا مطلب د ﴿ فَإِنْ يَهْلِكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ ﴾ هغه دې کوم چه عام شارحینو اختیار کړې دې چه د هغې مبنی دا ده چه دې حضراتو شارحینو د هلاکت معنی لغوی یعنی د دین په تباهئ او بربادئ باندې محمول کړې ده په دې وجه د ﴿من هلك﴾ مصداق شارحینو تیر کفار گرزولی دی. او د حضرت گنگوهی رحمه الله د تقریر نه معلومیږی چه هغوی دا هلاکت په هلاکت حسیه باندې محمول کړې دې یعنی فناء او مرگ یعنی که د پنځه دیرشو یا اووۀ دیرشو کلونو تیریدو باندې ټول خلق ختم شو نو بیا به د هغوی انجام هم د هغه خلقو په شان وی کوم چه د دوی نه مخکښې وفات شوې دی، یعنی کبراء صحابه.

[٤٢٥٥] ()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعِلْمُ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيَّةُ هُوَ؟ قَالَ: الْقَتْلُ الْقَتْلُ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زمانه رانزدې کیږی (یعنی دقیامت نه مخکښې اوعلم به کم کړې شي اوفتنې به ظاهرې شي اوپه خلقو کښې به بخل راپیداشي اوهرج به زیات شي صحابه کرامو عرض وکړوچه هرج څه شي دې اې دالله رسوله نبی ﷺ اوفرمائیل مرگ مرگ.

**قوله:**﴿ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعِلْمُ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ »..........قَالَ « الْقَتْلُ الْقَتْلُ »﴾

**شرح الحديث:**

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زمانه به ورته واره نزدې کیږی. د دې درې بلکه څلور مطلبه شهور دی.

۱: د قیامت قرب مراد دې چه روزانه به د قیامت قرب رانزدې کیږی،

۲: د اهل زمان د بعضو د بعض نورو سره نزدې کیدل په شر او فتنه کښې چه ټول به تقریبا یو شان شي.

۳: د عمرونو کمیدل یعنی قصر اعمار اهل الزمان....

[1]: صحيح البخاري/العلم ٢٤ (٨٥)، والفتنة ٢٥ (٧٠٦١)، صحيح مسلم/الزكاة ١٨ (١٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٨٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الفتن ٢٥ (٤٠٤٥)، ٢٦ (٤٠٥١)، مسند احمد (٢/٢٣٣، ٤١٧، ٥٢٥) (صحيح)

۴: د ايام او لیالی د مودې نږدې کیدل یعنی د زمانې بې برکتی لکه چه په روایت کښې راځی ﴿حتی تکون السنة كالشهر والشهر كالجمعة والجمعة كاليوم واليوم كالساعة﴾
او علم به هم کم شی د اهل علم د دنیا نه د رخصتیدو په وجه باندې، او فتنې به په کثرت سره ښکاره شی او د شدت بخل خصلت به په خلقو کښې واچولې شی، او د هرج کثرت به شی، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ هرج څه څیز دې؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: قتل...... والحديث اخرجه البخاري ومسلم، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ السَّعْيِ فِي الْفِتْنَةِ

### باب: په فتنه کښې د کوشش کولو د ممانعت بيان

د فتنې اطلاق په هغه جهګړه او فساد باندې کیږی کومه چه د مسلمانانو خپل مینځ کښې موندلې شی په دوه مختلفو جماعتونو کښې، او د سعی نه مراد دې په هغې کښې شرکت، یعنی د یوې ډلې ملګرتیا کول.

دا اهم مسئله ده او په علماء دین کښې اختلافی ده، امام نووی رحمه الله په دې کښې د اهل علم درې مسلکونه لیکلې دی،

۱: عدم التعرض مطلقا یعنی قطعا په دې کښې حصه نه اخستل، دا مسلک د صحابه کرامو ﷺ د یو جماعت دې لکه ابوبکره او بعض نور حضرات صحابه کرام ﷺ......

۲: جواز المدافعة: یعنی د مدافعت د حده پورې د حصه اخستلو ګنجائش شته، یعنی په فریقینو کښې یو داسې ډله چه په مونږ باندې حمله اوکړی نو صرف د هغوی دفاع کولې شې، دا مسلک دې د ابن عمر او عمران بن حصين ﷺ.....

۳: نصرة د اهل حق یعنی اول دې د دې تحقیق اوکړې شی چه په فریقین کښې اقرب الی الحق څوک دې بیا د هغې مطابق چه څوک په حق باندې ګڼړی هغه سره دې تعاون اوکړې شی، د جمهور صحابه کرامو او تابعینو او اکثر اهل علم مسلک هم دا دې،

لقوله تعالى ﴿ وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ ﴾

### يو نازک اشکال او د هغې حل:

دلته به د جمهورو په مسلک باندې هم یو اشکال وی هغه دا چه په حدیث کښې په دخول فی الفتنة باندې وعید راغلې دې او دا چه ﴿ ان قتلاها فی النار ﴾ (قتيل فتنه جهنمی دې) وفی رواية: القاتل والمقتول فی النار، كما سياتی فی هذا الكتاب، د دې جواب دا دې کوم چه حضرت په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه نقل کړې دې: وكتب مولانا يحيى المرحوم من تقرير شيخه: قوله ﴿ قتلاها ﴾ ای الفتنة ﴿ كلهم فی النار ﴾ وقد عرفت ان الفتنة فتنة مالم تعلم ای الحق من الباطل، فمن قتل فيها من غير ان يقصد احقاق الحق كان كذلك، واما من قتل فی تائيد الحق، او قتل ظلما لا يريد قتل احد فليس هو قتيل فتنة، فاغتنم فانه غريب.... یعنی فتنه تر هغه وخته پورې فتنه ده چه ترڅو پورې تحقیق نه وی شوې چه په دې مسئله کښې حق څه دې او

غير حق څه دي، نو په دې صورت کښې چه کوم سړې څه حصه اخلي په دې فتنه کښې حال دا چه د هغه مقصود احقاق حق نه وي او بيا هغه سړې په دې کښې قتل کړې شو نو دې سړې ته به قتيل فتنه وئيلې شي او دا وعيد به په هغه باندې صادقيږي، او کوم سړې چه په حق او باطل کښې د تميز او تحقيق کولو نه پس په دې فتنه کښې د تائيد حق په نيت باندې حصه واخستله او شرکت ئې اوکړو او مړ شو نو دا سړې قتيل فتنه نه دې لهذا په وعيد کښې به هم داخل نه وي، اهـ پس کوم صحابه کرامو رضي الله عنهم چه په دې مشاجراتو کښې حصه واخستله هغه ئې د تحقيق حق نه پس واخستله د چا په نزد چه څه حق وو هغه هم د هغې ملګرتيا اوکړه د حق په حمايت او د هغې په تائيد کښې. والله الهادی وهو الملهم للصدق والصواب.

[٤٢٥٦] [1] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عُثْمَانَ الشَّحَّامِ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُسْلِمُ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ يَكُونُ الْمُضْطَجِعُ فِيهَا خَيْرًا مِنَ الْجَالِسِ، وَالْجَالِسُ خَيْرًا مِنَ الْقَائِمِ، وَالْقَائِمُ خَيْرًا مِنَ الْمَاشِي، وَالْمَاشِي خَيْرًا مِنَ السَّاعِي، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: مَنْ كَانَتْ لَهُ إِبِلٌ فَلْيَلْحَقْ بِإِبِلِهِ، وَمَنْ كَانَتْ لَهُ غَنَمٌ فَلْيَلْحَقْ بِغَنَمِهِ، وَمَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَلْحَقْ بِأَرْضِهِ، قَالَ: فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ شَيْءٌ مِنْ ذَلِكَ؟ قَالَ: فَلْيَعْمِدْ إِلَى سَيْفِهِ فَلْيَضْرِبْ بِحَدِّهِ عَلَى حَرَّةٍ، ثُمَّ لِيَنْجُ مَا اسْتَطَاعَ النَّجَاءَ".

مسلم بن ابی بکره دخپل پلار نه روايت کوی فرمائی چه رسول الله فرمائيلی دی ډيره نردې ده چه داسې فتنه به پيدا شي چه په دې کښې به پروت کس دناست نه بهتروي اوناست کس به دولاړ نه بهتروي او ولاړ به دروان نه بهتروي او روان به د منډې والانه بهتروي ماعرض اوکړو انې دالله رسوله زمادباره په دغه وخت کښې څه حکم دې؟ نبی ﷺ اوفرمائيل دچاسره چه اوښ موجود وي نوهغه تره پکاردي چه خپل بال بچ نه ورشي او دهغوی سره شامل شي اودچاسره چه چيلئ وي نوهغه دې دخپلو چيلوسره يوځای شي اودچاچه زمکه ربې هغ، دې خپلې زمکې ته لاړ شي اوهلته دې د سنې (يعني د فساد د ځائې نه دې لرې لاړ شي). صحابه کرامو بيا تپوس اوکړو د چاسره چه دا څيزونه موجود نه وي نوهغه لره مخه کول پکاردي نبی ﷺ وفر ماشين هغه لره پکاردي چه خسرانه وره په کاڼړي تيره کړي اوبيادې دفسادي خلقونه په تلو کښې توندي وکړي.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنِي مُسْلِمُ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ يَكُونُ الْمُضْطَجِعُ فِيهَا خَيْرًا مِنَ الْجَالِسِ وَالْجَالِسُ خَيْرًا مِنَ الْقَائِمِ وَالْقَائِمُ خَيْرًا مِنَ الْمَاشِي وَالْمَاشِي خَيْرًا مِنَ السَّاعِي ﴾

## مضمون الحديث:

سيدنا ابوبکره رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه فتنې به بيا موندلې شی نو د دې فتنې په زمانه کښې به سملاستونکې انسان غوره وی د ناسته کونکی نه، او ناسته کونکې انسان به غوره وی د اودريدونکی نه، او هغه به غوره وی د تلونکی نه، او ماشی به غوره وی د منډه وهونکی نه. غرض دا چه کوم انسان د فتنې نه څومره لرې وی هغه به د خپل مقابل نه غوره وی، د دې حديث اوريدلو نه پس ابوبکره رضي الله عنه عرض اوکړو چه د فتنې په زمانه کښې

[1]: صحيح مسلم/الفتن ٣ (٢٨٨٧)، (تحفة الأشراف: ١١٧٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩/٥، ٤٨) (صحيح)

تاسو مونږ ته څه حکم کوئ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل د اوښانو والا دې په خپلو اوښانو کښې مصروف شي او د ګډو بيزو والا دې په هغې کښې مصروف شي او د زمکې والا دې په خپل پټي او زمکه کښې مشغول شي، هغوی عرض اوکړو چه د کوم سړي دپاره په هغې کښې يو څيز نه وی هغه څه اوکړی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه له پکار دی چه خپله توره دې واخلی او د هغې مخ دې يو کانړي ته اوهی (چه د جنګ د استعمال قابله پاتې نه شي او پسه شي) او د هغې نه پس دې د جنګ نه اوتختي څومره چه لرې تختيدلې شي.

د دې حديث راوی ابوبکره رضی الله عنه دې د چا مسلک چه پورته مطلقاً عدم التعرض تير شوې دې. والحديث اخرجه مسلم، واخرجه البخاري ومسلم من حديث ابن المسيب وابي سلمة عن ابي هريرة رضی الله عنه بنحوه، قاله المنذري.

[٤٢٥٧] (١) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُفَضَّلٌ، عَنْ عَيَّاشٍ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الأَشْجَعِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ دَخَلَ عَلَيَّ بَيْتِي وَبَسَطَ يَدَهُ لِيَقْتُلَنِي؟ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُنْ كَابْنَيْ آدَمَ" وَتَلَا يَزِيدُ لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ سورة المائدة آية ٢٨ الْآيَةَ.

سعيد بن عبد الرحمن اشجعي وائی چه ما د سعد بن ابی وقاص ، نه اوريدلی دی چه نبی عليه السلام په مذکوره حديث کښې فرمائيلي دي ما عرض اوکړو اي د الله رسوله که چرې څوک زما کور ته داخل شي او زما د مرګ دپاره په ما باندې لاس اوچت کړي نو ماله څه کول پکار دي فرمائی چه نبی عليه السلام اوفرمائيل ته د آدم په ځامنو کښې بهترځوي يعنی هابيل په شان شه او يزيد دا ايت کريمه تلاوت کړو : (لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ) ايت تر آخره پوري.

**قوله:** ﴿أَنَّهُ سَمِعَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي هَذَا الْحَدِيثِ قَالَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ دَخَلَ عَلَيَّ بَيْتِي وَبَسَطَ يَدَهُ لِيَقْتُلَنِي الخ ﴾

دا جمله کومه چه د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په روايت کښې ده ﴿ قلت يا رسول الله ﷺ ﴾ دا په حديث سابق يعنی حديث ابی بکرة رضی الله عنه کښې نشته. د ﴿ في هذا الحديث ﴾ مطلب هم دا دې چه کوم مضمون د حديث سابق يعنی په حديث ابی بکره رضی الله عنه کښې ذکر دې هم هغه مضمون د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په حديث کښې هم دې. او په دې کښې زيادت دا هم دې چه کله کله د يو حديث د بعضو طرقو زيادت بيانولې شي او کله داسې کيږي څنګه چه دلته دی چه په يو مستقل حديث کښې د تير شوی حديث حواله ورکولو سره په هغه بل حديث کښې چه کوم زيادت دې هغه بيانولې شي.

د دې جملې زائدې مضمون دا دې چه ما دا عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! خبر راکړئ چه که هغه مفسدان زما په کور باندې راوخيژي او زما د قتل کولو دپاره لاسونه راوږدهٔ کړی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ كُنْ كَابْنَيْ آدَمَ ﴾ او په يو نسخه کښې دی ﴿ كن كخير ابنی ادم ﴾ چه د آدم عليه السلام په ځامنو کښې چه کوم يو غوره وو د هغه په شان شه يعنی د

(١): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٣٨٤٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الفتن ٢٩ (٢١٩٤) (صحيح)

هابیل په شان چه کله هغه لره د هغه رور قابیل د ناحق قتل کولو اراده اوکړه نو هغه مدافعت هم اونکړو بلکه د هغه په لاس باندې قتل شو.

[٤٢٥٨] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ خِرَاشٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ غَزْوَانَ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ رَاشِدٍ الْجَزَرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ وَابِصَةَ الْأَسَدِيُّ، عَنْ أَبِيهِ وَابِصَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: فَذَكَرَ بَعْضَ حَدِيثِ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: قَتْلَاهَا كُلُّهُمْ فِي النَّارِ، قَالَ فِيهِ: قُلْتُ: مَتَى ذَلِكَ يَا ابْنَ مَسْعُودٍ؟ قَالَ: تِلْكَ أَيَّامُ الْهَرْجِ حَيْثُ لَا يَأْمَنُ الرَّجُلُ جَلِيسَهُ، قُلْتُ: فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذَلِكَ الزَّمَانُ؟ قَالَ: تَكُفُّ لِسَانَكَ وَيَدَكَ وَتَكُونُ حِلْسًا مِنْ أَحْلَاسِ بَيْتِكَ، فَلَمَّا قُتِلَ عُثْمَانُ طَارَ قَلْبِي مَطَارَهُ، فَرَكِبْتُ حَتَّى أَتَيْتُ دِمَشْقَ، فَلَقِيتُ خُرَيْمَ بْنَ فَاتِكٍ فَحَدَّثْتُهُ، فَحَلَفَ بِاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَسَمِعَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا حَدَّثَنِيهِ ابْنُ مَسْعُودٍ.

دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي: اودابوبکره د حديث په شان حديث ئې بيان کړو، البته په دې روايت کښې دا اضافه ده چه: په دې فتنه کښې چه به کوم خلق مړه شي هغوی به دوزخ ته لاړشي دابن مسعود نه وابصه روايت کوی چه دافتنه به کله وي هغه په جواب کښې ووئيل هغه لړي ده او په مسلمانانو کښې به داسې قتل شروع شي چه دچا به په خپل دوست هم اعتماد پاتې نشي ماعرض وکړوکه چرې زه په دغه دورکښې موجوديم نوماله څه کول پکاردي هغه ووئيل خپله ژبه اولاسونه په قابوکښې اوساته او په خپل کورکښې دپروت زين دکپړوپه شان شه کله چه عثمان شهيد شو نواچانک زما په زړه کښې داخبره راغله کيدي شي چه داهغه فتنه وي کومه چه ابن مسعود وئيلي وهنوزه په اوښ سورشوم اودمشق ته لاړم اوهلته مې دخريم بن فاتک رضی الله عنه سره ملاقات آوشواودا ماجري مې هغه ته بيان کړه هغه ووئيل په هغه الله قسم چه دهغه نه علاوه بل څوک حقدار د بندګۍ نشته ماهم دنبي ﷺ نه آوريدلی دی لکه دابن مسعود دحديث پشان.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ فَذَكَرَ بَعْضَ حَدِيثِ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ « قَتْلَاهَا كُلُّهُمْ فِي النَّارِ » قَالَ فِيهِ قُلْتُ مَتَى ذَلِكَ يَا ابْنَ مَسْعُودٍ ؟ قَالَ تِلْكَ أَيَّامُ الْهَرْجِ حَيْثُ لَا يَأْمَنُ الرَّجُلُ جَلِيسَهُ. قُلْتُ فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذَلِكَ الزَّمَانُ قَالَ تَكُفُّ لِسَانَكَ وَيَدَكَ وَتَكُونُ حِلْسًا مِنْ أَحْلَاسِ بَيْتِكَ ﴾

## شرح الحديث:

د ﴿ قتلاها ﴾ ضمير د "فتنة" طرف ته راجع دې يعني د فتنې ټول مقتولين به په اور کښې وی. وابصه وائی چه ما تپوس اوکړو د ابن مسعود رضی الله عنه نه چه دا حالت به کله پيښيږی نو هغوی اوفرمائيل چه په ايام هرج کښې چه د خلقو حال به دا وی چه د سړی به خوا کښې ناست سړی باندې هم اطمينان نه وی، ما تپوس اوکړو که دا زمانه زه بيا مومم نو تاسو ماته څۀ هدايت کوئ د هغې په باره کښې، هغوی اوفرمائيل چه خپله ژبه او لاس بند ساته او د خپل کور په بورو کښې يو بورئ جوړه شوه او بهر مه اوځه. ﴿ فَلَمَّا قُتِلَ عُثْمَانُ طَارَ قَلْبِي مَطَارَهُ ﴾ يعني چه کله

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٥٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٤٨، ٤٤٩) (ضعف الإسناد)

د سيدنا عثمان رضي الله عنه د قتل حادثه عظمى راغله نو زما زړه په خپل مطار کښې الوتل شروع کړل يعنى مختلف خيالات به مې ذهن ته راتلل، کله څه او کله څۀ... چه آيا زه په دې واقعاتو کښې شريک شم او په دې جنګ کښې حصه واخلم، يا که وانخلم، خو د ابن مسعود رضي الله عنه حديث مې هم ذهن کښې وو کوم چه د شرکت نه مانع وو بيا چه کله خريم هم هغه حديث واورولو نو هم دې جهت تقويت اوخوړلو. (كذا في البذل عن المجمع بزيادة) حضرت سهارنپورى رحمه الله فرمائى چه ممکنه ده چه دا مطلب وى چه د دې حادثه عظمى په وجه باندې زما زړه بې صبره شو. لکه چه وئيلې شى چه زما زړه بې صبره شو. په دې صورت کښې به مطار مصدر وى.

**قوله:** ﴿ فَرَكِبْتُ حَتَّى أَتَيْتُ دِمَشْقَ فَلَقِيتُ خُرَيْمَ بْنَ فَاتِكٍ رضى الله تعالى عنه ﴾ وابصه فرمائى چه د دې نه پس زه سور شوم او دمشق ته راغلم او هلته مې د سيدنا خريم بن فاتک رضي الله عنه سره ملاقات اوکړو او هغوى ته مې هغه حديث بيان کړو کوم چه مې د ابن مسعود رضي الله عنه نه اوريدلې وو نو هغوى قسم خوړلو سره اوفرمائيل چه ما هم دا حديث د رسول الله ﷺ نه اوريدلې وو څنګه چه دا حديث بيان کړو وو ماته يعنى وابصه ته ابن مسعود رضي الله عنه.....

[٤٢٥٩](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَرْوَانَ، عَنْ هُزَيْلٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا، وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا، الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ، وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي، فَكَسِّرُوا قِسِيَّكُمْ وَقَطِّعُوا أَوْتَارَكُمْ وَاضْرِبُوا سُيُوفَكُمْ بِالْحِجَارَةِ، فَإِنْ دُخِلَ يَعْنِي عَلَى أَحَدٍ مِنْكُمْ فَلْيَكُنْ كَخَيْرِ ابْنَيْ آدَمَ".

دابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى دقيامت نه مخکښې داسې فتنې راروانې دې لکه دتيارې شپې په شان ددې فتنوپه وخت کښې به سرې سحر مسلمان وې اومابنام به کافرشې اومابنام به مسلمان وې اوسحربه کافرشې ناست په دې کښې غوره دې دولاړنه اوروان په دې کښې غوره دې دمندې وهونکې نه تاسوددې فتنې په وخت کښې خپلې ليندې ماتې کړئ اودخپلو ليندو مزې کټ کړئ اوخپلې تورې په ګټوباندې ووهئ بياکه چرې په تاسو باندې څوک حمله وکړې نو دادم دغوره څوي په شان شئ.

﴿ إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا ﴾ يعنى د قيامت نه مخکښې به د شپې د ټکړو په شان تيارۀ فتنې راځى.

﴿ فَكَسِّرُوا قِسِيَّكُمْ وَقَطِّعُوا أَوْتَارَكُمْ وَاضْرِبُوا سُيُوفَكُمْ بِالْحِجَارَةِ فَإِنْ دُخِلَ - يَعْنِي عَلَى أَحَدٍ مِنْكُمْ - فَلْيَكُنْ كَخَيْرِ ابْنَيْ آدَمَ ﴾ يعنى د فتنو په زمانه کښې خپلې ليندې ماتې کړئ، او د هغې نه ربړونه (تيلئ) جدا کړئ، او خپلې تورې کانړو ته اوهئ چه پسې شى، پس که په تاسو کښې د چا په کور باندې څوک راوخيژى نو هغه دې د هابيل په شان شى، په دې حديث کښې ﴿ يصبح ويمسى ﴾ نه خاص د سحر او مابنام وخت نه دې مراد بلکه مطلق زمان او سرعت

(١): سنن الترمذي/الفتن ٣٣ (٢٢٠٤)، سنن ابن ماجه/الفتن ١٠ (٣٩٦١)، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٢)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٤٠٨/٤، ٤١٦) (صحيح)

انقلاب، لکه چه وئیلې شی په لړ شان وخت کښې یو شان او په لړ شان وخت کښې بل شان،
والحدیث اخرجه الترمذی، وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۲۶۰] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ رَقَبَةَ بْنِ مَصْقَلَةَ، عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ سَمُرَةَ، قَالَ: "كُنْتُ آخِذًا بِيَدِ ابْنِ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ مِنْ طُرُقِ الْمَدِينَةِ إِذْ أَتَى عَلَى رَأْسٍ مَنْصُوبٍ فَقَالَ: شَقِيَ قَاتِلُ هَذَا فَلَمَّا مَضَى، قَالَ: وَمَا أُرَى هَذَا إِلَّا قَدْ شَقِيَ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ مَشَى إِلَى رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي لِيَقْتُلَهُ فَلْيَقُلْ هَكَذَا فَالْقَاتِلُ فِي النَّارِ وَالْمَقْتُولُ فِي الْجَنَّةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَوْنٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سُمَيْرٍ أَوْ سُمَيْرَةَ، وَرَوَاهُ لَيْثُ بْنُ أَبِي سُلَيْمٍ، عَنْ عَوْنٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سُمَيْرَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ لِي الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ يَعْنِي بِهَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ، وَقَالَ: هُوَ فِي كِتَابِي ابْنُ سَبْرَةَ، وَقَالُوا سَمُرَةَ، وَقَالُوا سُمَيْرَةَ، هَذَا كَلَامُ أَبِي الْوَلِيدِ.

دعبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه ما یوځل د مدینې په یوه کوڅه کښې دابن عمر ر لاس نیولې وو او ورسره روان وم نو اچانک دیوزوړند کړې شوې سرطرف ته ورغې او وئې فرمائیل چه دده قاتل ډیربدبخت دي بیا مخکښې لاړو نو اوئې فرمائیل چه زه دابد بخت پیژنم مادنبی علیه السلام نه اوریدلی دی چه فرمائیل ئې څوک چه زماپه امت کښې دیوکس دمرګ دپاره روان شي نوهغه ته همداسې وئیل پکاردي چه قاتل دوزخ ته داخل شواوڅوک چه قتل کړې شوهغه جنت ته داخل شو. امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت عون بن عبدالرحمن بن سمیر یاسمیره بیان کړې دې اولیث بن ابی سلیم دعون بن سمیرنه روایت بیان کړې دي. امام ابوداؤد فرمائی چه ماته دا روایت حسن بن علی دابو الولید نه دابوعوانه په واسطه نقل کړې دي اووئیلي ئې دي چه دعبدالرحمن دپلار په نوم کښې اختلاف دي، زما په کتاب کښې دابن سبره لفظ دي اونور وعالمانوسمره سمیره بیان کړې دي.

**قوله:** ﴿عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ - قَالَ كُنْتُ آخِذًا بِيَدِ ابْنِ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ مِنْ طُرُقِ الْمَدِينَةِ إِذْ أَتَى عَلَى رَأْسٍ مَنْصُوبٍ فَقَالَ شَقِيَ قَاتِلُ هَذَا. فَلَمَّا مَضَى قَالَ وَمَا أُرَى هَذَا إِلَّا قَدْ شَقِيَ﴾

عبدالرحمن بن سمره فرمائی چه زه د ابن عمر رضی الله عنهما لاس نیولو سره د مدینې طیبې په یو لاره کښې روان اوم چه ناڅاپه هغوی په یو رازوړند سر باندې اوشو نو هغوی اوفرمائیل چه د دې مقتول قاتل نامراد شو، بیا لږ شان مخکښې تلو سره هغوی اوفرمائیل چه د دې مقتول په باره کښې هم زما رائې هم دا ده، ځکه چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي وو هغوی به فرمائیل چه کوم سړې زما د یو امتی د قتل کولو پسې لاړ شی نو هغه امتی له پکار دی چه خپل ځان دغه شان کړی لکه هابیل، یعنی خپل ځان دې د قتل پاره پیش کړی، (که هغه هم دغه شان اوکړل زمونږ د هدایت مطابق) نو بیا به قاتل جهنم ته او مقتول جنت ته ځی.

د دې کلام مقابل شق مقدر دې کوم چه خپله د مقام نه په فهم کښې راځی، یعنی که هغه داسې اونه کړل بلکه د هغه مقابله ئې اوکړه نو بیا به دواړه جهنم ته ځی.

**تنبیه** : په علی راس منصوب باندې بعض شارحینو لیکلې دی : لعله راس ابن الزبیر..... حضرت په بذل کښې د دې تردید فرمائیلې دې ځکه چه د قتل ابن الزبیر واقعه په مکه

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۷۲۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/ ۹۶، ۱۰۰) (ضعیف)

مکرمه کښ پیښه شوې وه نه په مدینه طیبه کښ، او دا هم نه شي وئیلې کیدې چه مراد دا دې چه هغه لاره چه کومه مدینې ته تلله ځکه چه دلته په روایت کښ ﴿ فی طریق من طرق المدینة ﴾ دې نه ﴿فی طریق المدینة ١هـ﴾ من البذل... بلکه دا چه په روایت کښ د دواړو په باره کښ د شقاوت حکم لګولې شوې دې کوم چه په عبد الله بن زبیر ﷺ باندې صادق نه راځي.

[٤٢٦١]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنِ الْمُشَعَّثِ بْنِ طَرِيفٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ، قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ قَالَ فِيهِ: كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ يَعْنِي الْقَبْرَ، قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، أَوْ قَالَ: مَا خَارَ اللَّهُ لِي وَرَسُولُهُ، قَالَ: عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ، أَوْ قَالَ تَصْبِرُ، ثُمَّ قَالَ لِي: يَا أَبَا ذَرٍّ، قُلْتُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ، قَالَ: كَيْفَ أَنْتَ إِذَا رَأَيْتَ أَحْجَارَ الزَّيْتِ قَدْ غَرِقَتْ بِالدَّمِ، قُلْتُ: مَا خَارَ اللَّهُ لِي وَرَسُولُهُ، قَالَ: عَلَيْكَ بِمَنْ أَنْتَ مِنْهُ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا آخُذُ سَيْفِي وَأَضَعُهُ عَلَى عَاتِقِي، قَالَ: شَارَكْتَ الْقَوْمَ إِذَنْ، قُلْتُ: فَمَا تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: تَلْزَمُ بَيْتَكَ، قُلْتُ: فَإِنْ دُخِلَ عَلَيَّ بَيْتِي، قَالَ: فَإِنْ خَشِيتَ أَنْ يَبْهَرَكَ شُعَاعُ السَّيْفِ فَأَلْقِ ثَوْبَكَ عَلَى وَجْهِكَ يَبُوءُ بِإِثْمِكَ وَإِثْمِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرِ الْمُشَعَّثَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ غَيْرُ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ.

دابوذر ﷺ نه روایت دې فرمائی چه نبی کریم ﷺ ماته اوفرمائیل اې ابوذر ماعرض اوکړو اې دالله رسوله حاضر یم ستاد حکم پوره کولو دپاره بیانبی ﷺ حدیث بیان کړو او په دې حدیث کښې داسې دی اې ابوذره ستابه په هغه زمانه کښې څه حالت وي کله چه په مدینه کښې دومره خلق اوسیږي چه قبر به دیوغلام په عوض کښې میشرشي ماعرض اوکړو اې دالله رسوله الله تعالی اودالله تعالی رسول ښه پوهیږي نبی ﷺ اوفرمائیل دصبرنه به کار اخلې او بیا ئې اوفرمائیل اې ابوذره ماعرض اوکړو ستاسو په خدمت کښې حاضر او موجود یم رهې فرمائیل چه ستاسوبه څه حالت وي کله چه تاسو احجار الزیت په وینوباندې لړل شوي اووینئ؟ ماعرض اوکړو الله اودهغه رسول چه څه حکم کوي نبی ﷺ اوفرمائیل ته چه دکوم ځائې یې هم هغلته لاړ شه ماعرض اوکړو اې دالله رسوله ایازه خپله توره راواخلم او پخپلو اوږوباندې ئې کینږدم؟ نبی ﷺ اوفرمائیل په داسې کولوخوبه ته ددوی سره شریک شې ماعرض اوکړو نوبیازمادپاره څه حکم دې؟ راته ئې اوفرمائیل پخپل کور کښې ناست اوسه، ماعرض اوکړو که چرې دوی په ماپسې زما کورته راشي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې ته دتورو دپړ قیدونه پریږې نو خپل څادر پخپل مخ باندې واچوه ددوی په لاسونو ځان مړ کړه، نودغه قاتلان به ستاوخپله ګناه دځان سره یوسي. امام ابوداؤد فرمائی په دې حدیث کښې دحماد نه علاوه بل چا دمشعث ذکرندې کړې.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يَا أَبَا ذَرٍّ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ. فَذَكَرَ الْحَدِيثَ قَالَ فِيهِ « كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ الخ ﴾

سیدنا ابوذر ﷺ فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه ستاسو به څه حال وی

---

[1]: سنن ابن ماجه/الفتن ١٠ (٣٩٥٨)، (تحفة الأشراف: ١١٩٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٩/٥، ١٦٣)، وأعاده المؤلف في الحدود (٤٤٠٩) (صحيح)

هغه وخت چه کله به دومره په کثرت سره مړی کیږی چه په هغې کښ به د یو قبر ځائې د یو غلام په بدل کښ ملاویږی. یا مطلب دا دې چه د قبر د کنستلو اجرت به دا وی یعنی د کثرت مقتولین د وجې نه به د دفن دپاره زمکه په بیع اخستلې شي. نو په دې باندې هغوی عرض اوکړو چه الله پاک او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږی. یعنی هم تاسو بیان کړئ چه څه کول پکار دی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ ﴾ چه صبر اختیار کړه. ﴿ ثُمَّ قَالَ لِي « يَا أَبَا ذَرٍّ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ. قَالَ « كَيْفَ أَنْتَ إِذَا رَأَيْتَ أَحْجَارَ الزَّيْتِ قَدْ غَرِقَتْ بِالدَّمِ » ﴾ د دې نه پس رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه اې ابوذرا ستا به هغه وخت څه حال وی چه کله ته اوګورئ چه احجاز الزیت به لت پت شي په وینو سره؟ نو هغوی عرض اوکړو چه څه الله پاک او د هغه رسول ﷺ زما دپاره غوره کوی هم هغه به کوم ﴿عَلَيْكَ بِمَنْ أَنْتَ مِنْهُ ﴾ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: هغه وخت ته لازم اونیسه هغه خلق د چا نه چه ته ئې. یعنی خپل کور او قبیله، او یا دا مطلب دې چه د کوم امام سره ستاسو د بیعت تعلق دې د هغوی سره اوسیږه، هغوی عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ آیا هغه وخت زه خپله توره اخستلو سره په خپلو اوږو باندې کینږدم؟ نو هغوی اوفرمائیل چه په دې صورت کښ خو به ته د هغه فتنه کونکو سره شرکت کونکې شې. ﴿ قُلْتُ فَإِنْ دُخِلَ عَلَيَّ بَيْتِي قَالَ « فَإِنْ خَشِيتَ أَنْ يَبْهَرَكَ شُعَاعُ السَّيْفِ فَأَلْقِ ثَوْبَكَ عَلَى وَجْهِكَ يَبُوءُ بِإِثْمِكَ وَإِثْمِهِ » ﴾ هغوی عرض اوکړو چه که هغه وخت یو فتنین زما کور ته داخل شی نو بیا څه اوکړم؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که د دشمن د تورې په باره کښ تاته خطره پیدا شی چه د هغې شعاع به په تاباندې غالب شی نو په دې وخت کښ ته د خپلې دفاع په ځائې خپله کپړه په خپل مخ باندې واچوه (چه پته او نه لګی چه څوک ما سره څه کوی پس په دې صورت کښ به هغه ستا قاتل ستا اودخپل ځان دواړو ګناهونو سره واپس شي. ﴿بائمک﴾ نه مراد ای باثم قتلک الذی ارتکبه القاتل او یا مراد د ﴿باثمک ﴾ نه خپله د مقتول ګناهونه دی کوم چه هغه د دې نه مخکښ کړی دی، او په دې صورت کښ به د رجوع نه مراد دا نه وی چه ستا ګناهونه به په هغه باندې اچولې شی بلکه مطلب به دا وی چه ستا سابقه ګناهونه به ستا په مقتول او شهید کیدو په وجه باندې معاف کولې شی.(1)

په دې حدیث کښ چه د کومې فتنې ذکر دې د دې په باره کښ په حاشیه د بذل کښ دی حضرت شیخ لیکلې دی: وفی اشراط الساعة انها وقعة الحرة اهـ (2) او د وقعة الحرة ذکر په

---

(1) مقصد زمونږ دا دی چه د حدیث شریف مطلب دا نه دې چه د قتل ناحق په وجه باندې به د مقتول ټول ګناهونه په قاتل باندې اچولې شي، د اهل السنة والجماعت دا مسلک نه دې د الله پاک د قول د وجې نه چه ﴿الا تزر وازرة وزر اخرى ﴾ بلکه صرف د مقتول دقتل ګناه به پرې وی. او که د ټولو ګناهونو معافی مراد کړې شی نو هغه هم صحیح ده په دې لحاظ سره چه دې قتل ناحق په وجه باندې مقتول شهید شو او د شهادت په وجه باندې تیر ټول ګناهونه معاف کیږی. والله تعالى اعلم)

(2) **وقعة الحرة** : په مظاهر حق ۳۲۱/٤ کښ دی : چه احجاز الزیت نوم د یو ځائې دی د مدینې غربی طرف ته چه په هغې کښ کانړی تور دی ګویا په هغې باندې د زیتون تیل لګیدلې دی او رسول الله ﷺ دا خبر ورکړې دی د واقعه حره او دا ډیره لویه واقعه ده چه ژبه او غوږونه د هغې ......له

کتاب الجهاد باب في التفريق بين السبي د امام ابوداؤد په کلام کښې ضمنا تير شوی دی چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَمَيْمُونٌ لَمْ يُدْرِكْ عَلِيًّا قُتِلَ بِالْجَمَاجِمِ وَالْجَمَاجِمُ سَنَةُ ثَلَاثٍ وَثَمَانِينَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَالْحَرَّةُ سَنَةُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ وَقُتِلَ ابْنُ الزُّبَيْرِ سَنَةَ ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ ﴾ دا واقعه د سيدنا حسين رضي الله عنه د شهادت نه دوه کاله پس پيښنه شوې وه، ځکه چه د شهادت حسين رضي الله عنه واقعه په ۶۱ هجرى کښې پيښنه شوې وه او دا وقعة الحرة په ۶۳ هجرى کښې چه په هغې کښې په زرګونو صحابه کرام او تابعين قتل کړې شو، خو ابوذر رضي الله عنه د دې جنګ زمانه نه ده بيا موندلې ځکه چه د هغوی وفات په ۳۲ هجرى کښې شوې دې، هم په دې وجه علماء کرامو ليکلې دی چه د دې فتن د وقوع زمانه او د کال د تعين علم رسول الله صلى الله عليه وسلم ته هم نه وو. (دلته يو احتمال بل هم دې او هغه دا چه ډير کرته داسې کيږي چه په مقام د خطاب کښې اګر چه مخاطب خاص وی خو مراد تري نه عموم وی نه مخصوص مخاطب، فلا يحتاج حينئذ الى نفي علمه بالتعيين اى بتعين الزمان والوقت اهـ)

قوله: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ لَمْ يَذْكُرِ الْمُشَعَّثَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ غَيْرُ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ ﴾

يعنى اکثر راويانو دا حديث عن ابى عمران الجونى عن عبدالله بن الصامت نقل کړې دې. د مشعث د واسطې نه بغير، پس حافظ فرمائي وقد رواه جعفر بن سليمان وغير واحد عن ابى عمران عن عبدالله بن الصامت نفسه ولم يذكر المشعث، وذكر حماد بن زيد فقط (كذا في المنهل) والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۲۶۲] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مُوسَى، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا، وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا، الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ، وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِي، وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي، قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ قَالَ: كُونُوا أَحْلَاسَ بُيُوتِكُمْ".

دابوموسى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی ستاسو په وړاندې ډيرې فتنې ظاهريدونکې دي داسې لکه دتورو شپو دتړو ددې فتنو په وخت کښې به انسان دسحر په وخت کښې مومن وي اوماښام به کافرشي اوماښام به مومن وي سحربه کافرشي او په دې زمانه کښې دتلونکی کس نه ناست بهتردې اوتلونکې د منډې وهونکې نه به تردې، صحابه کرام ومرض اوکړې ربيا زمونږ دپاره څه حکم دې؟ نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل تاسو دخپل

←.....د وينا او د اوريدلو تحمل نه شي کولې او وقوع د هغې په مينځ د هغه زمانې د بدبختۍ کښې ده کومه چه د يزيد بن معاويه رحمه الله ده چه پس د قتل د امام حسين رضي الله عنه نه ئې ډير لوئې لښکر مدينې طيبې ته اوليږلو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مسجد او د دې حرمت والا ښهر بې حرمتى اوشوه. او د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعينو جماعت کثيره ئې قتل کړو او ډيرې خرابيانې ئې اوکړې چه د بيان نه بهر دی، او پس د خرابولو د مدينې طيبې نه ئې مکې مکرمې ته هم لښکر اوليږلو او هم په دغه کښې کال هغه بدبخته جهنم ته لاړو.

¹: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۴۲۵۹)، (تحفة الأشراف: ۹۱۴۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۰۸) (صحيح)

ځان نه د خپلو کورونو ټاټ جوړ کړئ (یعنی ځانونه پټ کړئ).

﴿قَالَ سَمِعْتُ أَبَا مُوسَى يَقُولُ الحديث﴾ دا حدیث نزدې تیر شوې دې.

[٤٢٦٣](1)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ جُبَيْرٍ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ، قَالَ: ايْمُ اللَّهِ لَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنِ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ وَلَمَنِ ابْتُلِيَ، فَصَبَرَ فَوَاهًا".

د مقداد بن اسود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه په الله قسم د نبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائيل فينيقينانیک بخت هغه څوک دې چه د فتنونه بچ پاتې شي او يقينانيک بخت هغه څوک دي چه دفتنونه بچ پاتې شي او يقينانيک بخت هغه څوک دي چه دفتنونه بچ پاتې شي او څوک چه په دې کښې مبتلا شو يعنى په ازمائش کښې صابر وموندې شونو دهغه به څه وو ايو.

**قوله:** ﴿إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ وَلَمَنِ ابْتُلِيَ فَصَبَرَ فَوَاهًا﴾ سعيد هغه دې چه د فتنو نه محفوظ وی په داسې طريقه چه يا خو ئې هغه زمانه نه وی موندلې يا زمانه ئې خو موندلې وی خو د هغې نه لرې وی دا خبره رسول الله ﷺ درې کرته اوفرمائيله. او کوم انسان چه اخته شو په فتنو کښې او بغير د قصد نه د هغې په ضد کښې راغلو او هغه په دې باندې صبر اوکړو نو هغه سړې قابل افسوس او قلق دې. يا مطلب دا چه هغه سړې قابل داد دې چه هغه ډير ښه اوکړل چه صبر ئې اوکړو، دا دوه معنى ځکه چه علماء کرامو ليکلې دی کلمه واها په باره کښې: ﴿هی كلمة معناها التهلف والتاسف وقد توضع ايضا موضع الاعجاب بالشئ﴾ كما فی مرقاة الصعود للسيوطی.

# بَابٌ فِي كَفِّ اللِّسَانِ

## باب د فتنو په وخت کښې د ژبې د بند ساتلو د بهترئ بيان

[٤٢٦٤](2)حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ خَالِدُ بْنُ أَبِي عِمْرَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْبَيْلَمَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ بَكْمَاءُ عَمْيَاءُ مَنْ أَشْرَفَ لَهَا اسْتَشْرَفَتْ لَهُ وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا كَوُقُوعِ السَّيْفِ".

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: ډيره نزدې چه کڼه ګونګه او ړنده فتنه به راپيداشي هرهغه کس چه ورته متوجه شي نودافتنه به هم ورته متوجه شي او په دې فتنه کښې ژبه استعمالول داسې دی لکه د تورې چلول.

**قوله:** ﴿سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ بَكْمَاءُ عَمْيَاءُ مَنْ أَشْرَفَ لَهَا اسْتَشْرَفَتْ لَهُ﴾ فتنه عمياء او صماء مخکښې په يو حديث کښې تيره شوه کوم انسان چه دې فتنې ته ښکاره شو يعنى ورته ئې

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٥٤٢) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٩٤٤) (ضعيف)

اوکتل نو دا فتنه به ئې خپل طرف ته راکاږي (لهذا فتنې ته د لرې نه کتل هم نه دي پکار پاتې لا دا چه په هغې کښې شرکت اوکړې شي) ﴿ وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا كَوُقُوعِ السَّيْفِ ﴾ او د دې نه روستو روايت کښې دی ﴿ اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنْ وَقُوعِ السَّيْفِ ﴾

## شرح الحديث :

په کوکب کښې د دې جملې دوه معنې ليکلې شوې دی،[1] او په شروع کښې ليکلې دی چه د لسان نه مراد کلمه ده يعنی د فتنې په زمانه کښې حق خبره د خولې نه راويستل ډير گران کار وی د تورو د ضرب برداشت کولو نه هم زيات ځکه چه هغه اهل فتنه به په باطل باندې ولاړ وی او دويم دا چه د کلمې نه مراد کلمه باطل ده، يعنی کوم فريق چه په باطل دې د هغې تائيد کول په گناه کيدو کښې د تورې چلولو نه زيات سخت دی اهـ... او دريمه معنی په هامش کوکب کښې د دې دا ليکلې ده چه د مسلمانانو په دوه ډلو کښې چه کله فتنه او جنگ وی نو په دې صورت کښې بغير د تحقيق نه د يوې ډلې مذمت کول هم دغه شان حرام دی لکه په مسلمانانو کښې توره چلول، ځکه چه هغه جنگ د مسلمانانو ترمينځه دې د چا چه غيبت حرام دې.

او په مظاهر حق کښې دی: او ژبه اوږدل په دې فتنه کښې د تورې د چلولو په شان دی يعنی په تاثير کښې بلکه زيات دی د دې نه لکه چه وئيلې شوې دی بيت !

جراحات السنان لها التيام :: ولا يلتام ما جرح اللسان

هم په دې وجه اول روايت کښې وئيلې شوی دی چه زيات سخت د تورې چلولو نه اهـ د مظاهر حق والا معنی عام ده چه د فتنې او اختلاف په زمانه کښې ښکاره خبره کول په فريقينو کښې د يوې ډلې په حمايت کښې يا مذمت کولو کښې دا ډير زيات موثر وی خو د دې دپاره د ډير جراءت او همت ضرروت دې. والله تعالی اعلم.

[٤٢٦٥](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ رَجُلٍ يُقَالُ لَهُ: زِيَادٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ تَسْتَنْظِفُ الْعَرَبَ قَتْلَاهَا فِي النَّارِ اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنْ وَقْعِ السَّيْفِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ الْأَعْجَمِ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: ډيره نزدې ده چه داسې فتنه به راپيداشي چه په عربوبه احاطه وکړي ځوک چه پکښې مړه شي اورته به داخل شي دژې کردار پکښې دتورې د چلولونه ډير سخت دي. امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت ثوري دليث نه هغه دطاوس نه اوهغه دالاعجم نه نقل کړي دي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ تَسْتَنْظِفُ الْعَرَبَ قَتْلَاهَا فِي النَّارِ ﴾

نزدې يو داسې فتنه راتلونکې ده چه د ټول عرب استيعاب به اوکړی په اعتبار د هلاکيدلو او د دې فتنې مقتولين به جهنم ته ځی.

---

[1]: سنن الترمذي/الفتن ١٦ (٢١٧٨)، سنن ابن ماجه/الفتن ٢١ (٣٩٦٧)، (تحفة الأشراف: ٨٦٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١١/٢، ٢١٢) (ضعيف)

## شرح الحديث :

په مظاهر حق کښې ليکلې دی: نزدې ده چه لويه فتنه پيدا شی چه په عربو غالبه وی او شر ئې ټولو ته اورسيږی، چه څوک په کښې قتل کړې شی هغه به اور کښې وی، د دې فتنې نه مراد دا ده چه کومې دوه ډلې د مال او عزت دپاره جنګ کوی، او مقصود په دې کښې د حق ثابتول او د الله پاک د دين اوچتول نه وی، لکه څنګه چه د خانه جنګی کونکو حال وی چه بغير د تحقيق نه يو بل سره په جنګ شی. اهـ

او په کوکب کښې دی چه هغه خبره چه ظاهره ده او د تکلفاتو نه لرې ده هغه دا چه مونږ ته معلومه نه ده چه د دې نه مراد کومه فتنه ده اګر چه بعض حواشی والا وئيلې دی چه د دې نه مراد د علی او معاويه رضی الله عنهما فتنه ده، پس که دا تسليم کړې شی نو د ﴿ قتلاها فی النار﴾ معنی به دا وی چه کوم خلق په دې فتنه کښې قتل کړې شو نه هغه خلق چه د چا په وجه دا فتنه جوړه شوې وه، لهذا د جهنمی کيدو د حکم نه به سيدنا عثمان او طلحه او زبير رضی الله عنهم اوځی کوم چه شهيد کړې شوې وو، ځکه چه دا حضرات خو هغه دی چه د چا د قتل په وجه باندې فتنه اوچته شوې ده نه دا چه دا حضرات په دې کښې قتل کړې شوې دی. اهـ او په حاشيه د کوکب کښې دی چه دا توجيه غوره ده د هغه توجيه نه کومه چه په بعض حواشی کښې ذکر ده يعنی دا چه دا حديث په توبيخ او تغليظ باندې محمول دې، ځکه چه مجتهد مخطئ شرعا معذور دې او دلته دواړه ډلې مجتهدين وو. اهـ

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ عَنْ لَيْثٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ الأَعْجَمِ ﴾ يعنی ثفيان الثوری رحمه الله چه کله دا حديث روايت کړو، عن ليث عن طاؤس نو په ځائې د عن رجل يقال له زياد ئې عن الاعجم اووې او دا اعجم هم هغه دې يعنی زياد سِيمِين کُوش، لکه څنګه چه وړاندې راغی.

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۲۶۶] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى بْنِ الطَّبَّاعِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْقُدُّوسِ، قَالَ زِيَادٌ: سِيمِينُ كُوشٍ.

دعبدالله بن عبد القدوس رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه زياد سيمين کوش (پيرو يا سپينو غوږونو والا) وو.

## بَابُ مَا يُرَخَّصُ فِيهِ مِنَ الْبَدَاوَةِ فِي الْفِتْنَةِ

### باب: د فتنې په وخت کښې ځنګل ته د تلو د جواز بيان

يعنی د فتنو په زمانه کښې د تبدی اجازت او رخصت، تبدی يعنی خروج الی البادية، د ښهرونو او آباديانو استوګنه پريخودلو سره د ځنګل طرف ته تلل.

[۴۲۶۷] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ

(¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۶۳۱)

(²): صحيح البخاري/الإيمان ۱۲ (۱۹)، بدء الخلق ۱۵ (۳۳۰۰)، المناقب ۲۵ (۳۶۰۰)، الرقاق ۳۴ (۶۴۹۵)، سنن النسائي/الإيمان ۳۰ (۵۰۳۹)، سنن ابن ماجه/الفتن ۱۳ (۳۹۸۰)، (تحفة الأشراف: ۴۱۰۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستئذان ٦ (١٦)، مسند احمد (٣/٦، ٣٠، ٤٣، ٥٧) (صحيح)

مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمًا يَتَّبِعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ".

دابو سعيد خدری ﷛ نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. ډيره نزدې چه دمسلمانانو غوره مال به چيلی وي په کومو پسې چه انسان دغره په غونډو اودباران دوريدو په ځايونو ګرځي دفتنو په وجه ئې خپل دين هلته تختولی وي.

**قوله:**﴿ يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرُ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمًا يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْمَطَرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه نزدې ده داسې زمانه به راشی چه په هغې کښې به د مسلمان بهترين مال ګډې بيزې وی چه د څرولو دپاره هغه د غرونو څوکو ته بوځی او د بارانونو علاقو ته لاړ شی خپل دين لره د فتنو نه د محفوظ کولو دپاره.

د دې حديث د ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې دا خبره چه اختلاط افضل دې يا اعتزال په کتاب الجهاد کښې په باب فی ثواب الجهاد د لاندې راغلې دې. والحديث اخرجه البخاری والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

# باب فِي النَّهْيِ عَنِ الْقِتَالِ فِي الْفِتْنَةِ

## باب د فتنې په وخت کښې د قتال کولو د ممانعت بيان

[٤٢٦٨] ([1]) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، وَيُونُسَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: خَرَجْتُ وَأَنَا أُرِيدُ يَعْنِي فِي الْقِتَالِ، فَلَقِيَنِي أَبُو بَكْرَةَ، فَقَالَ: ارْجِعْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا تَوَاجَهَ الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا، فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ؟ قَالَ: إِنَّهُ أَرَادَ قَتْلَ صَاحِبِهِ".

داحنف بن قيس ﷛ نه روايت دې فرمائی چه زه دجنګ په اراده باندې اووتلم په لار کښې راسره ابوبکره مخامخ شو هغه اووئيل واپس لاړشه ما دنبی ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې کله چه دوه مسلمانان پخپل مينځ کښې ديوبل دقتل کولودپاره توری راپورته کړي نو قتل کونکي اوقتل کړې شوي دواړه به دوزخ ته ځي ، په دې وخت کښې يوکس عرض اوکړو اې دالله رسوله قتل کونکي خوبه دوزخ ته لاړ شي ليکن څوک چه قتل شوې د هغه دوزخ ته په څه وجه ځي؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل ځکه چه دې دخپل ملګري دقتل کولو دپاره راپاڅيدلې ووخو پخپله هلاک شو(يعنی موقعه ورته ملاو نه شوه).

**قوله:**﴿ عَنِ الأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ خَرَجْتُ وَأَنَا أُرِيدُ - يَعْنِى فِى الْقِتَالِ - فَلَقِيَنِى أَبُو بَكْرَةَ فَقَالَ ارْجِعْ فَإِنِّى سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِذَا تَوَاجَهَ الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِى النَّارِ »﴾

احنف بن قيس وائی چه زه د خپل کور نه اوتلم په جنګ جمل کښې د شرکت په اراده باندې، په لاره کښې راسره ابوبکره ﷛ ملاؤ شو نو هغوی ماته اوفرمائيل واپس شه ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی چه کله دوه مسلمانان خپلو کښې په تورو سره مقابله کوی

[1]: صحيح البخاري/الإيمان ٢٢، (٣١)، والديات ٢ (٦٨٧٥)، والفتن ١٠ (٧٠٨٢)، صحيح مسلم/الفتن ٤ (٢٨٨٨)، سنن النسائي/المحاربة ٢٥ (٤١٢٧)، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣/٥، ٤٧، ٥١) (صحيح)

نو قاتل او مقتول به دواړه په اور کښې وی.

﴿ النهي عن السعي في الفتنة ﴾ چه کومه يو ترجمه تيره شوه، په هغې کښې د ابوبکره رضي الله عنه مسلک تير شوې دې چه هغوی د هغه خلقو نه دی څوک چه په فتنه کښې مطلق د عدم شرکت قائل دی. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري.

[٤٢٦٩](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ الْحَسَنِ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ مُخْتَصَرًا.

دحسن نه هم ددې روايت پشا روايت منقول دې ليکن اختصار شره.

## بَابٌ فِي تَعْظِيمِ قَتْلِ الْمُؤْمِنِ

### باب د مومن قتل کولو د وعيد بيان

تعظيم يعنی تغليظ، يعنی قتل مومن لره لويه ګناه ګنړل.

[٤٢٧٠](²)حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ دِهْقَانَ، قَالَ: كُنَّا فِي غَزْوَةِ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ بِذُلُقْيَةَ، فَأَقْبَلَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ فِلَسْطِينَ مِنْ أَشْرَافِهِمْ وَخِيَارِهِمْ يَعْرِفُونَ ذَلِكَ لَهُ يُقَالُ لَهُ: هَانِئُ بْنُ كُلْثُومِ بْنِ شَرِيكٍ الْكِنَانِيُّ، فَسَلَّمَ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي زَكَرِيَّا وَكَانَ يَعْرِفُ لَهُ حَقَّهُ قَالَ لَنَا خَالِدٌ، فَحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زَكَرِيَّا، قَالَ: سَمِعْتُ أُمَّ الدَّرْدَاءِ، تَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "كُلُّ ذَنْبٍ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَغْفِرَهُ إِلَّا مَنْ مَاتَ مُشْرِكًا أَوْ مُؤْمِنٌ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا، فَقَالَ هَانِئُ بْنُ كُلْثُومٍ، سَمِعْتُ مَحْمُودَ بْنَ الرَّبِيعِ يُحَدِّثُ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: مَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا فَاعْتَبَطَ بِقَتْلِهِ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ مِنْهُ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا، قَالَ لَنَا خَالِدٌ، ثُمَّ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي زَكَرِيَّا، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ"، وَحَدَّثَ هَانِئُ بْنُ كُلْثُومٍ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ سَوَاءً.

دخالد بن دهقان رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه مونږ دقسطنطنيه په جنګ کښې دزلقيه په مقام کښې وو په دې دوران کښې يو کس څوک چه دفلسطين په معززينو کښې وو رامخامخ شو، خلق دده دمرتبې نه خبر رو دې په هاني بن کلثوم بن شريک الکناني باندې مشهور وو ، د عبدالله بن ابو زکريا ته سلام اوکړو اوهغه دده دمقام اومرتبې نه واقف وو ، خالد وائې بيا مونږ ته عبدالله بن ابوزکريا حديث بيان کړو وئيل ئې چه ماد ام الدرداء رضي الله عنها نه اوريدلی دی هغې وئيل چه ماد ابو الدرداء نه اوريدلی دی هغه وئيل ما د نبی صلی الله عليه وسلم نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې دهرې يوې ګناه متعلق دا اميد شته چه الله تعالى ئې معاف کړي مګرڅوک چه دشرک په حال کښې مړ شي يا څوک چه يو مسلمان په قصد سره مړ کړي (ددې دمعاف کيدو هيڅ اميد نشته) ، هاني بن کلثوم اووئيل ما د محمود بن ربيع نه اوريدلی دی هغه دعباده بن الصامت لا نه آوريدلی دی هغه د نبی صلی الله عليه وسلم نه اوريدلي وو چه فرمائيل ئې څوک چه يو مسلمان په ناحقه په ظلم سره مړ کړي اوقاتل پدې باندې راضی هم وي الله تعالى به

(¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٥)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥١٠٥، ٥١١٢، ١٠٩٨٩، ١٠٩٩٠) (صحيح)

ددې کس هیڅ یوعمل نه قبلوي نه فرض عمل اونه نفل عمل ، ابن ابوزکریا بیا دام الدرداء په حواله باندې حدیث بیان کړو چه هغې د ابوالدرداء نه اوهغه دنبی ﷺ نه روایت بیان کړو چه نبی ﷺ اوفرمائیل مومن به همیشه بیغمه وي او نیک به وي ترڅوچه هغه په ناحقه څوک قتل نکړي کله چه هغه په ناحقه څوک قتل کړي نودې دګناهونوپه وجه دروند اوسست شي.

﴿عَنْ خَالِدِ بْنِ دِهْقَانَ قَالَ كُنَّا فِى غَزْوَةِ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ بِذُلُقْيَةَ ........سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « كُلُّ ذَنْبٍ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَغْفِرَهُ إِلاَّ مَنْ مَاتَ مُشْرِكًا أَوْ مُؤْمِنٌ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا »﴾

خالد بن دهقان فرمائی چه مونږ د غزوه قسطنطیه په موقع باندې په مقام ذلقیه کښې وو (دا هم د روم یو ښهر دې) نو یو فلسطینی سړی کوم چه د هغوی په اشرافو کښې وو یعنی هانی بن کلثوم هغه راغلو هغوی راتلو سره عبدالله بن ابی زکریا ته سلام اوکړو، دا عبدالله بن ابی زکریا د خالد بن دهقان په استاذانو کښې دی. خالد وائی چه مونږ ته زمونږ استاد عبدالله بن ابی زکریا د دې راتلونکی سړی یعنی هانی بن کلثوم په موجودګئ کښې د ابوالدرداء ؓ دا حدیث واورولو چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د هرې ګناه په باره کښې د بخښنې امید کیدې شی سوا د هغه سړی نه چه د شرک په حالت کښې مړ شی او سوا د هغه مومن نه کوم چه بل مومن لره قتل کړی. هانی بن کلثوم چه هلته موجود وو په دې حدیث اوریدلو سره ئې په خپل سند سره یو بل حدیث د دې په تائید کښې بیان کړو هغه دا دې ﴿مَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا فَاعْتَبَطَ بِقَتْلِهِ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ مِنْهُ صَرْفًا وَلاَ عَدْلاً "فاغتبط"﴾ کښې دوه نسخې دی یو په عین مهمله سره او دویم په غین معجمه سره (ماخوذ من الغبطة) د عین مهمله په صورت کښې د حدیث مطلب دا دې: کوم سړی چه یو مومن ظلما بغیر د قصاص نه، او د غین معجمه په صورت کښې به د حدیث معنی دا وی چه کوم سړی یو مومن قتل کړو او د هغه په قتل کولو باندې خوشحاله شو. یعنی په ځائې د پښیمانتیا او خفګان چه هغه ئې کړې وې نور هم خوشحاله شی، بهر صورت وړاندې په حدیث کښې دی چه د داسې سړی لله پاک نه نفلی عبادت قبلوی او نه فرض.

﴿قَالَ لَنَا خَالِدٌ ثُمَّ حَدَّثَنِى ابْنُ أَبِى زَكَرِيَّا﴾ خالد بن دهقان وائی چه زمونږ استاد عبدالله بن ابی زکریا د هانی بن کلثوم د حدیث نه پس یو بل حدیث واورولو او هغه دا دې ﴿لاَ يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ﴾ معنق یعنی خفیف الظهر، سریع السیر دا د عنق نه اخستلې شوې دې لکه چه په کتاب الحج کښې تیر شوې دی. ﴿کان یسیر العنق فاذا اوجد فجوة نص﴾ د پوره حدیث مطلب دا دې چه مسلمان سړې په تیزئ سره مخکښې ځی په صلاح او توفیق دنیکئ سره، ګویا ترقی کوی تر څو چه ناحق وینه توئې نه کړی، خو چه کله د چا ناحقه وینه توئې کړی نو پوهه شه چه هغه ستړې شو او د هر خیر نه بند شو او ترقی د هغه ختمه شوه. وړاندې دا دی په روایت کښې چه هانی بن کلثوم هم د دې حدیث اوریدلو نه پس هم دا حدیث په خپل سند سره بیان کړو.

**قوله**: دا ټول څلور احاديث شو دوه د عبدالله بن ابى زكريا روايت كړې شوې، او دوه د هانى بن كلثوم روايت كړې شوى، اول دواړه احاديث د ابوالدارداء رضي الله عنه نه روايت كړې شوې دى او باقى دواړه د عباده بن الصامت رضي الله عنه نه، او په ټولو كښې تعظيم د قتل مومن موندلې شى كوم چه ترجمة الباب دې.ج

[٤٢٧١](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُبَارَكٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ أَوْ غَيْرُهُ، قَالَ: قَالَ خَالِدُ بْنُ دِهْقَانَ، سَأَلْتُ يَحْيَى بْنَ يَحْيَى الْغَسَّانِيَّ عَنْ، قَوْلِهِ: اعْتَبَطَ بِقَتْلِهِ، قَالَ: الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي الْفِتْنَةِ فَيَقْتُلُ أَحَدُهُمْ فَيَرَى أَنَّهُ عَلَى هُدًى لَا يَسْتَغْفِرُ اللَّهَ يَعْنِي مِنْ ذَلِكَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: فَاعْتَبَطَ يَصُبُّ دَمَهُ صَبًّا.

دخالد بن دهقان رحمه الله نه روايت دې فرمائى چه ماديحى بن يحي عصاني نه تپوس اوكړو چه په ذكر شوي حديث كښې چه «واعتبط بقتله» كوم الفاظ دي ددې څه مفهوم دې؟ هغه په جواب كښې اووئيل ددينه هغه خلق مراد دي څوک چه دفتنې په دور كښې يوبل په دې خيال مړ كړي چه مونږ په هدايت باندې يو او بياهغه ددې قتل په باره كښې معافي هم اونه غواړى.

[٤٢٧٢](2) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُجَالِدِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّ خَارِجَةَ بْنَ زَيْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فِي هَذَا الْمَكَانِ يَقُولُ: أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: "وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا سورة النساء آية ٩٣ بَعْدَ الَّتِي فِي الْفُرْقَانِ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ سورة الفرقان آية ٦٨ بِسِتَّةِ أَشْهُرٍ".

د خارجه بن زيد رحمه الله نه روايت دې فرمائى چه دزيد بن ثابت نه مې په دې كوركښې اوريدلى دى چه وئيل ئې دا ايت: «وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا» ددې ايت: «وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ» نه شپږ مياشتې پس نازل شوې دې.

**قوله**: ﴿أَنَّ خَارِجَةَ بْنَ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فِي هَذَا الْمَكَانِ يَقُولُ أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةُ (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا) بَعْدَ الَّتِي فِي الْفُرْقَانِ (وَالَّذِينَ لاَ يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلاَ يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ) بِسِتَّةِ أَشْهُرٍ﴾

### د ناحق قتل مومن په باره كښې د ابن عباس رضي الله عنهما وغيره مسلک :

دا دوه آيتونه دى اول د سورة النساء چه د هغې مضمون دا دې چه كوم مسلمان بل مسلمان لره قصدا قتل كړى د هغه دائمى سزا جهنم دې، او بل آيت كريمه د سورة الفرقان دې، په دې آيت كښې د قتل مومن سزا خلود فى النار بيانولو نه پس د ﴿ من تاب ﴾ استثناء بيان كړې شوې ده. ﴿ويخلد فيه مهانا الا من تاب وامن وعمل صالحا ﴾ د دې استثناء په وجه باندې د دواړو آيتونو په ظاهر كښې تعارض شو ، د دې په باره كښې زيد بن ثابت رضي الله عنه دا فرمائى چه د سورة نساء والا آيت د سورة فرقان د آيت د نزول نه شپږ مياشتې پس شوې دې، يعنى د سورة نساء آيت محكم او غير منسوخ دې، او د سورة فرقان د آيت حكم منسوخ دې. (منسوخ الحكم غير منسوخ التلاوة)

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٥٤٤) (صحيح)
(2): سنن النسائي/المحاربة ٢ (٤٠١١)، (تحفة الأشراف: ٣٧٠٦) (منكر)

د دي نه په روستو روايت كښې دا راځي: سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي چه ما د ابن عباس رضي الله عنهما نه د دي تعارض په باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى چه د دې كوم جواب راكړو د هغې حاصل دا دې چه د سورة فرقان د آيت تعلق د مشركين سره دې، لهذا مطلب به دا وى چه كه يو مشرك يو مسلمان لره قتل كړى يا د هغې نه علاوه بله چه هر څه گناه كوى هغه به ټول په ايمان راوړلو سره معاف شى، او د سورة نساء والا آيت تعلق د مسلمانانو سره دې چه كله يو مسلمان بل لره قصدا قتل كړى نو د هغې سزا به خلود فى النار وى. لهذا د دواړو آيتونو محمل بيل بيل دې او هيڅ تعارض نشته دواړه حكمونه په خپل خپل ځائې محفوظ دى.

[٤٢٧٣]()حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ أَوْ حَدَّثَنِي الْحَكَمُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ: "لَمَّا نَزَلَتِ الَّتِي فِي الْفُرْقَانِ وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ سورة الفرقان آية ٦٨ قَالَ مُشْرِكُو أَهْلِ مَكَّةَ: قَدْ قَتَلْنَا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ وَدَعَوْنَا مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَأَتَيْنَا الْفَوَاحِشَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ إِلا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلا صَالِحًا فَأُولَئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ سورة الفرقان آية ٧٠، فَهَذِهِ لأُولَئِكَ، قَالَ: وَأَمَّا الَّتِي فِي النِّسَاءِ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ سورة النساء آية ٩٣ الآيَةَ، قَالَ الرَّجُلُ: إِذَا عَرَفَ شَرَائِعَ الإِسْلامِ ثُمَّ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ لا تَوْبَةَ لَهُ، فَذَكَرْتُ هَذَا لِمُجَاهِدٍ فَقَالَ: إِلا مَنْ نَدِمَ".

دسعيد بن جبير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دابن عباس نه مې تپوس اوكړو هغه اووئيل چه دسورة فرقان دا ايت كريمه: «وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ» په هغه وخت كښې نازل شو كله چه مشركانو وئيل مونږ خوهغه نفس قتل كړو دكوم قتل ګول چه الله تعالى حرام كړي دي او مونږ دالله تعالى نه علاوه نورو معبودانو ته چغه هم وهلي ده او مونږ دبدو مرتكب هم يو نويدي وخت كښې الله تعالى دا ايت كريمه: «إِلا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلا صَالِحًا فَأُولَئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ» نازل كړو، ليكن په سورة نساء كښې چه كوم ايت كريمه: «وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ» موجود در دا ايت دهغه كس په باره كښې د څوك چه مسلمان وي اودشريعت نه واقف، وي اوددې باوجود هغه بل صاحب ايمان لره په قصد سره مړ كړي نوداسې كس سزا دوزخ دي اودده توبه به هم نه قبليږي، سعيد وئيلي وي چه داخبره ما مجاهد ته بيان كړه هغه په جواب كښې اووئيل كه چرې قاتل پښيمانه وي اودزړه په صدق سره توبه اوباسي نودده توبه به قبوله كړې شي.

**قوله:**( فَذَكَرْتُ هَذَا لِمُجَاهِدٍ فَقَالَ إِلاَّ مَنْ نَدِمَ )

سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي چه ما د ابن عباس رضي الله عنهما دا رائې اوريدلو سره چه كله مجاهد ته بيان كړه نو هغوى اوفرمائيل: الا من ندم.

د مجاهد دا قول په ظاهر كښې د ابن عباس رضي الله عنهما د رائې خلاف دي د هغوى رائې دا ده چه د ناحق قتل مومن نه پس د قاتل توبه چه په ندامت سره وى هغه قبليدې شى، د جمهور

(): صحيح البخاري/مناقب الأنصار ٢٩ (٣٨٥٥)، التفسير ١٦ (٤٥٩٠)، تفسير سورة الفرقان ٢ (٤٧٦٤)، صحيح مسلم/التفسير ح ١٦ (٣٠٢٣)، سنن النسائي/المحاربة ٢ (٤٠٠٧)، (تحفة الأشراف: ٥٦٢٤) (صحيح)

اهل السنة والجماعت رائې هم دا ده.
دباب د دې دواړو احاديثو نه ښکاره دا ثابتيږي چه په دې مسئله کښې زيد بن ثابت او ابن عباس رضي الله عنهما دواړه متفق دی د قاتل مومن په خلود فی النار کيدو باندې، خو د زيد بن ثابت رضي الله عنه رائې د دې دواړو آيتونو په باره کښې د نسخ ده چه يو ناسخ او بل منسوخ دې او د ابن عباس رضي الله عنه رائې په ځائې د نسخ په اختلاف باندې محمول ده چه د دواړو آيتونو محمل بيل بيل دې، منسوخ په دې کښې يو هم نه دې، خو د بعض رواياتو نه معلوميږي چه ابن عباس رضي الله عنهما به کله خو د دې دواړو آيتونو په باره کښې هم دا فرمائيل يعنی اختلاف محمل، او کله به ئې هم هغه فرمائيل کوم چه زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمائيلې دی يعنی نسخ، پس د بخاری په يو روايت کښې دی کما فی عون المعبود.

﴿ فَقَالَ أَيْ اِبْن عَبَّاس هَذِهِ مَكِّيَّة أَرَاهُ نَسَخَتْهَا آيَة مَدَنِيَّة الَّتِي فِي سُورَة النِّسَاء قَالَ الْحَافِظ فِي الْفَتْح : إِنَّ اِبْن عَبَّاس كَانَ تَارَة يَجْعَل الْآيَتَيْنِ فِي مَحَلّ وَاحِد فَلِذَلِكَ يَجْزِم بِنَسْخِ إِحْدَاهُمَا وَتَارَة يَجْعَل مَحَلّهمَا مُخْتَلِفًا ، وَيُمْكِن الْجَمْع بَيْن كَلَامَيْهِ بِأَنَّ عُمُوم الَّتِي فِي الْفُرْقَان خُصَّ مِنْهَا مُبَاشَرَة الْمُؤْمِن الْقَتْل مُتَعَمِّدًا ، وَكَثِير مِنْ السَّلَف يُطْلِقُونَ النَّسْخ عَلَى التَّخْصِيص وَهَذَا أَوْلَى مِنْ حَمْل كَلَامه عَلَى التَّنَاقُض وَأَوْلَى مِنْ دَعْوَى أَنَّهُ قَالَ بِالنَّسْخِ ثُمَّ رَجَعَ عَنْهُ اه ﴾ (عون)

د ابن عباس رضي الله عنهما د مسلک په باره کښې امام نووی رحمه الله فرمائی چه د هغوی مشهور مسلک هم دا دې، او دويم روايت د هغوی نه دا هم دې چه د قاتل مومن دپاره توبه شته لقوله تعالی : ﴿ وَمَنْ يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَحِيمًا ﴾ او بيا فرمائی چه د ابن عباس رضي الله عنهما چه کوم روايت ثانيه دې ﴿ هي مذهب جميع أهل السنة والصحابة والتابعين ومن بعدهم وما روى عن بعض السلف مما يخالف هذا محمول على التغليظ والتحذير من القتل وليس في هذه الآية التي احتج بها ابن عباس تصريح بأنه يخلد وانما فيها أنه جزاءه ولايلزم منه أنه يجازى اهـ ﴾ دا چه کومه آخری خبره د امام نووی رحمه الله په کلام کښې تيره شوه چه په دې آيت کريمه کښې د خلود تصريح نشته بلکه په آيت کريمه کښې خو دا دی چه د داسې سړی په قاعده او ضابطه کښې دا ده او د سزا کيدو نه دا نه لازميږی چه هغه ته دې سزا هم ورکړې شی، دا خبره دلته په کتاب کښې د ابو مجلز نه روستو راروانه ده.

[۴۲۷۴] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي يَعْلَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ فِي وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ سورة الفرقان آية ٦٨ أَهْلِ الشِّرْكِ، قَالَ: وَنَزَلَ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ سورة الزمر آية ٥٣.

دسعيد بن جبير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دابن عباس ل نه مې همدا تپوس او کړو چه ايت کريمه : «وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ» نه مراد هغه خلق دي چاچه شرک کړې وي او واتی چه بيا دا ايت کريمه : «يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لا تقنطوا من رحمة الله» نازل شو.

[1]): صحيح البخاري/ التفسير (زمر) ۱ (۴۸۱۰)، صحيح مسلم/ الإيمان ۵۴ (۱۲۲)، سنن النسائي/ المحاربة ۲ (۴۰۰۹)، (تحفة الأشراف: ۵۶۵۲) (صحيح)

[٤٢٧٥]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا، قَالَ: مَا نَسَخَهَا شَيْءٌ".

دسعيد بن جبير رحمه الله نه روايت دې فرمائي چه ابن عباس نه وئيلى دي چه آيت كريمه: ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا﴾ په هيڅ يو ايت باندې نه دې منسوخ شوې

[٤٢٧٦]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ فِي قَوْلِهِ: "وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ سورة النساء آية ٩٣، قَالَ: هِيَ جَزَاؤُهُ فَإِنْ شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَتَجَاوَزَ عَنْهُ فَعَلَ".

دابومجلز نه دالله تعالى ددې قول: ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ﴾ په باره كښې منقول دي چه څوک يومومن په قصد سره مړ كړي نو دده سزا همدا ده كوم چه الله تعالى فرمائيلي دي چه دغه كس به هميشه په دوزخ كښې سوزيږي اوكه چرې الله تعالى اوغواړي نو مغفرت به ورته وكړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ فِي قَوْلِهِ (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ) قَالَ هِيَ جَزَاؤُهُ فَإِنْ شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَتَجَاوَزَ عَنْهُ فَعَلَ ﴾ يعنى سزا خو د داسې سړي هم دا ده خو الله پاک كه اوغواړي نو معاف به ئې كړي. حديث زيد بن ثابت رضي الله عنه اخرجه النسائي، واثر سعيد بن جبير اخرجه البخاري ومسلم بنحوه، قاله المنذري.

# بَابُ مَا يُرْجَى فِي الْقَتْلِ

## باب: (په فتنه كښې) دقتل كيدو نه پس (د مغفرت) د اميد ساتلو بيان

په ظاهره دا "القتل" مصدر مبنى للمفعول دې يعنى په فتنه كښې په ځائې ددې چه په قتال كښې حصه واخستلې شي په خپله په مقتول كيدو كښې چه دكوم اجر او ثواب اميد كيدې شي دهغې ذكر.

[٤٢٧٧]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ سَلَّامُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: "كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ فِتْنَةً فَعَظَّمَ أَمْرَهَا فَقُلْنَا، أَوْ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَئِنْ أَدْرَكَتْنَا هَذِهِ لَتُهْلِكَنَّا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَلَّا إِنَّ بِحَسْبِكُمُ الْقَتْلُ" قَالَ: سَعِيدٌ فَرَأَيْتُ إِخْوَانِي قُتِلُوا.

دسعيد بن زيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه مونږ دنبى عليه السلام سره موجود ووچه ديوي فتنې ذكرني وكړواونبى عليه السلام ددې فتنې ډير مذمت اوشدت بيان كړو مونږ ووئيل اې دالله رسوله كه چرې دافتنه په مونږ راشي. نو مونږ خوبه هلاک كړي نبى عليه السلام اوفرمائيل هيڅكله نه ستاسوقتل كيدل كافي دي. سعيد وائى چه ماخپل ورونړه قتل كړي شوي اوليدل.

**قوله:** ﴿ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– فَذَكَرَ فِتْنَةً فَعَظَّمَ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه

---

[1]: صحيح البخاري/ التفسير (سورة النساء) صحيح البخاري/ التفسير ١٦ (٤٥٩٠)، وتفسير سورة الفرقان ٢ (٤٧٦٣)، صحيح مسلم/ التفسير ١٦ (٣٠٢٣)، سنن النسائي/ المحاربة ٢ (٤٠٠٥)، (تحفة الأشراف: ٥٦٢١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٥٢٧) (حسن)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٦٩) (صحيح)

وسلم- « كَلاَّ إِنَّ بِحَسْبِكُمُ الْقَتْلُ » ﴾ سعيد بن زيد ﷺ فرمائي چه يوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ په مجلس کښې وو نو هغوی د يوې فتنې ذکر اوفرمائيلو او د هغې غټيدل ئې ثابت کړل، په دې باندې مونږ عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ چه که مونږ دا فتنه بيا مونده (ففى رواية ان ادركنا هذا لنهلكن) نو مونږ ټول به هلاک شو؟ نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه داسې نه ده بلکه ستاسو دپاره مقتول کيدل کافي دي يعنی خطره او ضرر خو په هغه صورت کښې دې چه کله تاسو په دې کښې شريکيدلو سره قتال کوئ، او که د قتال په خائې د هابيل په شان مقتول جوړ شئ نو بيا څه ضرر دې.

**قوله:** ﴿ قَالَ سَعِيدٌ فَرَأَيْتُ إِخْوَانِي قُتِلُوا ﴾ سيدنا سعيد بن زيد ﷺ راوی حديث فرمائي چه ما خپل رونړه اوليدل چه هغوی (د رسول الله ﷺ د وينا مطابق) قتل کړې شو. لهذا د هغه فتنې د ضرر نه محفوظ شو.

[٤٢٧٨]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُمَّتِي هَذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُومَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ، عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا الْفِتَنُ وَالزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ".

د ابوموسی ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبی ﷺ فرمائيلی دی زما دا امت، امت مرحومه دې ددوی دپاره په آخرت کښې دائې عذاب نشته ليکن ددوی دپاره عذاب په دنياکښې فتنې اوزلزلې اوقتليدل دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أُمَّتِي هَذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُومَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الآخِرَةِ عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا الْفِتَنُ وَالزَّلاَزِلُ وَالْقَتْلُ » ﴾ دا حديث ډير د اميدونو او د تسلئ دې، رسول الله ﷺ فرمائي چه زما امت امت مرحومه دې، او بيا د دې تفصيل هغوی پخپله اوفرمائيلو چه په آخرت کښې به په دوی باندې څه خاص عذاب نه وی (که لږ شان وی نو وی به) د دې امت عذاب خو په دنيا کښې د فتنو راتلل او زلزلې او قتل دې.

يعنی دنيا ته چه کومې فتنې راځي او د ګناهونو په وجه چه کوم آسمانی آفتونه بيا موندلې شی په زلزلو او قحط سالئ وغيره سره او نورو مصيبتونو او قتل وغارت وغيره هم دا ځيزونه به د دې امت دپاره کفاره شی، په آخرت کښې به ان شاء الله څۀ خاص عذاب نه وی، معافی به اوکړې شی. ﴿ما يفعل الله بعذابكم ان شكرتم وامنتم وكان الله عليما حكيما ﴾

د دې حديث په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ امتى هذه ﴾ يعنی رسول الله ﷺ خپل طرف ته نسبت کولو سره اوفرمائيل چه دا امت يعنی امت محمديه، په دې کښې اشاره ده دې طرف ته چه دا کوم ځيز چه د رسول الله ﷺ دې امت ته حاصل دې دا هم د دې نسبت اثر دې او هم د هغوی فيض او برکت دې. صلى الله عليه وسلم تسليما كثيرا كثيرا.....

جزى الله عنا مولانا محمدا ما هو اهله، لله در المصنف ماشاء الله د کتاب الفتن په آخر کښې ئې ډير ښه حديث راوړلې دې، الحمد لله الذى بنعمته تتم الصالحات.........آخر کتاب الفتن.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٠٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٠/٤، ٤١٨) (صحيح)

# كِتَابُ الْمَلَاحِمِ
## د لويو جنګونو بيان
# كِتَابُ الْمَهْدِي
## د مهدي متعلق بيان

**(د نسخو اختلاف):**

او په يو نسخه کښې دی ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ اول كتاب المهدی... د اختلاف النسخ نور تفصيل د کتاب الفتن په شروع کښې تير شوې دې.

او په بعضو نسخو کښې دی کتاب الملاحم... ملاحم د ملحمه جمع ده يعنی موضع قتال يا واقعه عظيمه يعنی لوئې جنګ، دا يا خو د لحمة نه اخستلې شوې دې يعنی د لحمة الثوب نه لكثرة الاختلاف والاختلاط كما يختلط السداد واللحمة (ځکه چه په جنګ کښې اختلاف او اختلاط وی) او يا د لحم نه اخستلې شوې دې لكثرة لحوم القتلى فيها..... ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ په نومونو مبارکو کښې يو نوم نبی الملحمة هم دې لکه څنګه چه د هغوی په نومونو مبارکو کښې يو نوم نبی الرحمة دې. چونکه هغوی آخری نبی خاتم النبيين دی او د هغوی امت اخر الامم دې، څنګه چه د هغوی نه پس بل نبی نشته هم دغه شان بل امت هم نشته لهذا قيامت او د هغې ټول متعلقات او لوازمات فتن وغيره د رسول الله ﷺ په امت کښې راپيښيد ونکې دی هم په دې لحاظ سره رسول الله ﷺ نبی الملحمة شو.

[۴۲۷۹] ([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَزَالُ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا حَتَّى يَكُونَ عَلَيْكُمْ اثْنَا عَشَرَ خَلِيفَةً كُلُّهُمْ تَجْتَمِعُ عَلَيْهِ الْأُمَّةُ، فَسَمِعْتُ كَلَامًا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ أَفْهَمْهُ، قُلْتُ لِأَبِي مَا يَقُولُ؟ قَالَ: كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ".

جابر بن سمره رضي الله عنه وائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واؤريدل چه: دا دين به برابر قائم وی تردې چه په تاسو به دولس خليفه ګان وی، په هغوی کښې به هر يو باندې امت اتفاق کوی، بيا ما د نبی کريم ﷺ نه يوه داسې خبره واؤريده چه په هغې زه پوهه نه شوم، ما دخپل پلار نه تپوس اوکړو: چه نبی کريم ﷺ څه اوفرمائيل: هغوی راته اووئيل چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: دا ټول خلفاء به د قريشو وی.

### تخريج الحديث واختلاف الفاظه:

قوله: ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « لاَ يَزَالُ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا حَتَّى يَكُونَ عَلَيْكُمُ اثْنَا عَشَرَ خَلِيفَةً ....الخ﴾

دا حديث د ابوداؤد نه علاوه په ترمذی او مسلم شريف کښې هم دې، په الفاظو کښې څه اندازه اختلاف دې په ترمذی کښې دا الفاظ دی: ﴿عن جابر بن سمرة قال : قال رسول الله صلى الله عليه

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٣٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأحكام ٥١ (٧٢٢٢)، صحيح مسلم/الإمارة ١ (١٨٢١)، سنن الترمذي/الفتن ٤٦ (٢٢٢٤)، مسند احمد (٨٦٧٥، ٨٨، ٩٦، ١٠٥) (صحيح)

و سلم يكون من بعدي اثنا عشر أميرا قال ثم تكلم بشيء لم أفهمه فسألت الذي يليني فقال قال كلهم من قريش. قال أبو عيسى هذا حديث حسن صحيح، وقدروى من غير وجه عن جابر بن سمرة، وفي الباب عن ابن مسعود و عبد الله بن عمرو ﴾ او په صحيح مسلم كښې په يو طريق كښې دى ﴿ إِنَّ هَذَا الأَمْرَ لاَ يَنْقَضِي حَتَّى يَمْضِيَ فِيهِمُ اثْنَا عَشَرَ خَلِيفَةً، كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ وفى رواية لاَ يَزَالُ أَمْرُ النَّاسِ مَاضِيًا مَا وَلِيَهُمُ اثْنَا عَشَرَ رَجُلاً، كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ﴾ او په يو روايت كښې دى ﴿ لاَ يَزَالُ هَذَا الدِّينُ عَزِيزًا مَنِيعًا إِلَى اثْنَىْ عَشَرَ خَلِيفَةً ﴾ او په صحيح بخارى كښې هم دا حديث اگر چه دې خو مختصرا ، ولفظ في كتاب الاحكام فى باب بلا ترجمة من حديث جابر بن سمرة رضي الله عنه سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ يَكُونُ اثْنَا عَشَرَ أَمِيرًا - فَقَالَ كَلِمَةً لَمْ أَسْمَعْهَا فَقَالَ أَبِي إِنَّهُ قَالَ - كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ ﴾

**د حديث مطلب او په هغې باندې اشكال او جواب :**

جابر بن سمره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد نقل كوى چه دا دين يعنى اسلام به قائم او محفوظ وى تر د دولسو خليفه گانو پورې كوم چه به داسې وى چه امت به د هغوى په خلافت باندې متفق وى او هغه ټول به د قريشو نه وى.

په دې حديث باندې امام نووى رحمه الله وغيره شارحينو دوه اشكالونه نقل كړى دى اول دا چه دا حديث د هغه حديث خلاف دې چه په هغې كښې دى چه ﴿ الخلافة بعدى ثلاثون سنة ثم بعد ذلک ملک ﴾ ځكه چه د ديرشو كالو پورې خو صرف څلور خليفه گان تير شوې دى او په دې حديث كښې د دولسو خليفه گانو ذكر دې، جواب دا دې چه د ثلاثونه سنة والا حديث نه مطلق خلافت نه دې مراد بلكه خلافت راشده او خلافت على منهاج النبوة مراد دې، كوم چه په على رضي الله عنه باندې پوره كيږى[1] پس په بعض رواياتو كښې تصريح ده، ﴿ خلافة النبوة بعدى ثلاثون سنة ثم تكون ملكا ﴾ او په دې دويم حديث كښې د دولسو خليفه گانو ذكر دې د خلافت نه مراد مطلق خلافت مراد دې.

دويم اشكال دا كولې شى چه په دې حديث كښې چه كوم عدد ذكر دې يعنى دولس دغه شان خو ډير خلفاء تير شوې دى، [2] جواب ظاهر دې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مراد دا دې چه دا دين به ان شاء الله تر د دولسو خلفاء پورې باقى وى، په دې كښې د زائد نفى كوم ده، لكه چه هم د دې كتاب الملاحم په آخرى حديث كښې دى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو : إِنِّي لأَرْجُو أَنْ لاَ تَعْجِزَ أُمَّتِي عِنْدَ رَبِّهَا أَنْ يُؤَخِّرَهُمْ نِصْفَ ». قِيلَ لِسَعْدٍ وَكَمْ نِصْفُ يَوْمٍ قَالَ خَمْسُمِائَةِ سَنَةٍ﴾ يعنى د الله پاک نه اميد ساتم د دې خبرې چه زما امت به كم از كم د نيمې ورځې پورې باقى وى يعنى پنځه سوه كاله.

[1] موده د خلافت د خلفاء راشدينو لاندې ليكلې شى، صديق اكبر دوه كاله او درې مياشتې عمر فاروق لس كاله او شپږ مياشتې او عثمان ذوالنورين يولس كاله او يولس مياشتې او على (رض) څلور كاله او نهه مياشتې او د دې نه پس د خلافت حسن شپږ مياشتې يو ځائې كولو سره ديرش كلونه پوره كيږى رضي الله تعالي عنهم)

[2] ځكه چه صرف د خلفاء بنو اميه تعداد د معاويه رضي الله عنه نه پس ديارلس دې او خلفاء عباسيه د دوى نه هم زيات يعنى پنځوس دى)

## الكلام على شرح الحديث وبيان معانيه :

دلته سوال دا واردیږی چه د رسول الله ﷺ نه روستو چه کوم دولس خلفاء بیا موندلې شو چه په هغوی کښې خلفاء اربعه یعنی خلفاء راشدین، او باقی خلفاء د بنو امیه چه په هغوی کښې ډیر غیر عادل وو، مثلا مروان بن یزید وغیره بیا هغوی د دې حدیث مصداق څنګه کیدې شی؟ د دې جواب دا دې چه د رسول الله ﷺ مراد په دې حدیث کښې دا نه دې چه هغه خلفاء به ټول په ټوله عادلان وی بلکه هغوی که هرڅنګه وی نو د هغوی په زمانه کښې به د اسلام عزت او طاقت باقی وی. پس هم دغه شان اوشوه چه د دې زمانې پورې د اسلام طاقت او حسن نظام باقی وو او بیا دیارلسم خلیفه یعنی ولید بن یزید بن عبدالملک نه نظام سلطنت قائم پاتې نه شو او هغه د خلافت په څلورم کال باندې قتل کړې شو خو صرف په دې توجیه سره هم د اشکال نه خلاصیدل ګران دی ځکه چه د دریم او څلورم خلیفه په دور کښې جنګونه اوشو جنګ جمل او جنګ صفین وغیره، د هغې جواب دا کیدې شی چه دا اختلافات په مسئله د خلافت باندې نه وو بلکه د بادشاهئ په نورو امورو یعنی انتظامی امور سره د هغې اصل تعلق وو، او ولید بن یزید ته چه مونږ دیارلسم خلیفه اووې هغه داسې چه د مینځ نه معاویه بن یزید (بن معاویه) او مروان او عبدالله بن الزبیر ﷺ مستثنی کړې شی لعدم اجتماع الناس على ولايتهم... پس د هشام بن عبدالملک پورې د دولسو عدد پوره شو د دې نه پس د خلافت په مسئله کښې د خلقو اجتماع او اتفاق پاتې نه شو كذا قال القاضی عیاض وابن تيمية وغيرهما هذا هو المعنى الاول من المعانی المذكورة لهذا الحديث فی حاشية اللامع... دویم قول دلته دا دې چه په حدیث کښې د امراء نه امراء عدل مراد دی خو دا مطلب نه دې چه دا دولس امراء به مسلسل على التوالی موندلې شی بلکه متفرق طریقې سره به تر د قیامت د قیام پورې وی او آخری به په هغوی کښې امام مهدی ﷺ وی حضرت سهارنپوری په بذل کښې هم دا مطلب راجح کړې دې او دا ئې لیکلې دی : والتفصيل فی ذلک ذكره السيوطی فی تاريخ الخلفاء (مولانا الشیخ ولی الله الدهلوی فی قرة العینین فی تفضیل الشیخین) اهـ دې دویم قول تفصیل او تشریح وړاندې زمونږ په حاشیه کښې راځی او شیعه حضرات خصوصا فرقه اثناء عشریه دا وائی چه د دې نه زمونږ دولس امامان مراد دی د رسول الله ﷺ نه پس اولهم علی [1] واخرهم محمد بن الحسن العسكری المهدی المنتظر، کوم چه په غار سر من رای کښې پټ دې چه د الله پاک په حکم سره به د قیامت نه مخکښې ښکاره کیږی او په دنیا کښې به عدل او انصاف قائموی، او د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی، اختلفوا فی معنى الحديث على اقوال كثيرة كما بسطه المحشی والحافظ والعينی والقاری والبسط من الكل فی هامش اللامع ۳/۲۱۹. (فی کتاب الاحکام)

---

[1] او د هغوی نه روستو حسن بن علی بیا حسین بن علی بیا علی بن حسین المشهور به امام زید العابدین بیا محمد باقر بیا جعفر الصادق بیا موسی کاظم بیا علی رضا بیا محمد بن علی التقی بیا علی بن محمد النقی او بیا حسن بن علی العسکری

دا حدیث په بخاری کښې په کتاب الاحکام کښې هم شته لکه چه په شروع کښې تیر شو، حضرت شیخ هلته په لامع الدراری کښې په حاشیه باندې ډیر په تفصیل سره کلام فرمائیلې دې چه څوک غواړی هلته دې اوګوری.[1]

[۴۲۸۰](2)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَزَالُ هَذَا الدِّينُ عَزِيزًا إِلَى اثْنَيْ عَشَرَ خَلِيفَةً، قَالَ: فَكَبَّرَ النَّاسُ وَضَجُّوا، ثُمَّ قَالَ: كَلِمَةً خَفِيفَةً، قُلْتُ لِأَبِي: يَا أَبَتِ مَا قَالَ: قَالَ: كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ".

دجابر بن سمرة رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې: دا دین به هیشه قائم وي تردې په تاسوباندې به ددولس خلیفه ګانودور راشي

---

[1] په حاشیه د لامع الدراری کښې ئې د دې حدیث په شرح کښې دولس اقوال ذکر کړې دی چه د هغې نه دوه درې اقوال خو مونږ پورته په شرح کښې ذکر کړې دی دوه اقوال دلته نور نقل کوو کوم چه زیات مشهور دی:

۱: په حدیث کښې چه کوم لفظ د بعدی راغلې دې هغه دې په بعدیة حقیقیة متصله باندې محمول کړې شي او په دې صورت کښې به د رسول الله ﷺ نه پس د صدیق اکبر نه تر د عمر بن عبدالعزیز پورې مسلسل څورالس خلفاء برابر شی چه په هغې کښې خو د دوه کسانو خلافت صحیح او منعقد شوې هم نه دې او نه ئې څه وخت شوې دې یعنی معاویه بن یزید بن معاویه او مروان. لهذا اوس په هغه څوارلسو خلفاء کښې د دوو د اخراج نه پس د عمر بن عبدالعزیز د زمانې پورې دولس خلفاء باقی پاتې کیږی، د موصوف وفات په ۱۰۱ هجری کښې شوې دې یعنی قرن اول کوم چه خیر القرون دې د دې په ختمیدو باندې چونکه د دې نه پس په دې احوالو کښې مسلسل تغیر او انقلاب راتلو. او په دې باندې دا اشکال هم دې چه په حدیث کښې خو دی ﴿ یجتمع الناس علیهم ﴾ او دا صفت په دې دولسو کښې په حسن بن علی او عبدالله بن الزبیر رضي الله عنه کښې نه دې موندلې شوې، د دې جواب دا کیدې شی چه ﴿ یجتمع علیهم ﴾ د اکثرو په اعتبار سره فرمائیلې شوې دی چه دا دولس خلفاء به داسې وی چه په هغوی باندې به اکثر خلق متفق او مجتمع شی.

۲: د رسول الله ﷺ مراد دا دې چه زما نه روستو به په تولو موده د اسلام کښې تر قیامته پورې دولس خلفاء داسې موندلې شي چه د هغوی عمل به د هدایت او دین حق مطابق وی چه په هغوی کښې به دوه د آل بیت محمد نه وی لکه چه د مسند د مسدد په روایت کښې د دې تصریح ده، علامه سیوطی رحمه الله د دې معنی تشریح کولو سره فرمائی چه په هغه دولسو کښې خلفاء اربعه او حسن، معاویه او ابن الزبیر او عمر بن عبدالعزیز خو تیر شوې دی او احتمال دې چه په دې کښې د خلفاء عباسیه نه مهتدی بالله هم شمار کړې شی ځکه چه هغه په خلفاء عباسیه کښې داسې دې لکه په امراء د بنو امیه کښې عمر بن عبدالعزیز هم دغه شا ن الظاهر عباسی چه ډیر زیات عادل وو، وړاندې د آل محمد نه دوه باقی پاتې شو چه په هغوی کښې یو خو حضرت مهدی دې یو بل څوک د هغوی نه علاوه، والله تعالي اعلم. حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې هم دا قول غوره کړې دې چه د دې دولسو خلفاء نه مراد هغه دی کوم چه د خلفاء راشدینو په سیرت باندې وی او ترقیامته پورې به په مختلفو زمانو کښې موندلې شی او په آخر کښې به حضرت مهدی وی حافظ ابن کثیر رحمه الله هم په خپل تفسیر کښې دا قول اختیار کړې دې د آیت کریمه ﴿ وعد الله الذین امنوا منکم وعملوا الصالحات لیستخلفنهم الایة ﴾ د لاندې اهـ من هامش اللامع.... دا معنی ثانی پورته په شرح کښې مختصرا تیره شوې ده، یو قول دلته دا هم دې چه دا حدیث دې هم دغه شان مبهم پریخودلې شی، قال الشیخ ابن تیمیه في المنهاج ومنهم من قال لا افهم بمعناه کابي بکر بن العربي اهـ (حاشیة اللامع)

[2]: صحیح مسلم/ الإمارة ۱ (۱۸۲۱)، (تحفة الأشراف: ۲۲۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۸۷، ۸۸، ۹۰، ۹۳، ۹۶، ۱۰۱، ۱۰۶) (صحیح)

پدرې کي به په هر يوخليف، با نه دی امت اتفاق کوي بيا نبی ﷺ يوه داسې خبره اوفرمائيله په کومه چه زه پوهه نشوم نومادخپل پلارنه تپوس وکړوچه څه مراد ئي دې؟هغه راته اووئيل چه دنبی ﷺ مراد دادې چه داټول خلفاء به دقريشونه وي.

[٤٢٨١]() حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ خَيْثَمَةَ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ زَادَ فَلَمَّا رَجَعَ إِلَى مَنْزِلِهِ أَتَتْهُ قُرَيْشٌ فَقَالُوا: ثُمَّ يَكُونُ مَاذَا؟ قَالَ: ثُمَّ يَكُونُ الْهَرْجُ.

په دې سند سره هم د جابر بن سمره رضی الله عنه نه هم دغه حديث روايت دې، په دې کښې دومره اضافه ده چه بيا نبی کريم ﷺ خپل کور ته واپس لاړو نو د قريشو خلق هغوی ته راغلل او عرض ئي اوکړو چه: بيا به څه وی؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: بيا به قتل وی.

# بَابٌ فِي ذِكْرِ الْمَهْدِي

## باب: د امام مهدی متعلق بيان

کتاب الفتن شروع دې فتنې چه څومره هم دی د هغې شمير د علامات قيامت نه دې او په علامات قيامت باندې مستقل کتابونه علماء کرامو ليکلې دی "الاشاعة لاشراط الساعة" د علامه برزنجی مشهور تصنيف د کوم ذکر چه د کتاب الفتن په شروع کښې راغلې دې د دې سلسلې ډير جامع او تحقيقی تصنيف دې.

## د علامات قيامت تقسيم:

په دې کتاب کښې د دې مصنف رحمه الله درې ابواب قائم کړی دی: الباب الاول فی الامارات البعيدة التی ظهرت وانقرضت..... يعنی د قيامت هغه علامات د کومو چه ظهور شوې دې او تير شوې دی لکه د رسول الله ﷺ وفات او د امير المومنين سيدنا عمر رضی الله عنه قتل، او جنګ جمل او صفين او جنګ نهروان وغيره وغيره، او دويم باب ﴿ الباب الثانی فی الامارات المتوسطة التی ظهرت ولم تنقض ﴾ يعنی هغه علامات کوم چه په مينځ کښې موندلې کيدونکی دی چه د هغې ظهور د قسم اول نه پس شوې دې او ظهور ئي قائم دې د هغې انقراض نه دې شوې بلکه جاری دی، او قسم ثالث کوم چه راتلونکی دی هغې سره به ملاؤ شی، مثلا په حديث کښې دی ﴿ لا تقوم الساعة حتی يکون اسعد الناس لکع بن لکع ﴾ او لکه ﴿ لا تقوم الساعة حتی يتباهی الناس فی المساجد ﴾ او لکه ﴿ من اقتراب الساعة انتفاخ الاهلة ﴾ او لکه ﴿ ان تتخذ المساجد طرقا ﴾ وغيره وغيره او دريم باب الباب الثالث فی الاشراط العظام والامارات القريبة التی تعقبها الساعة... يعنی هغه علامات کوم چه به بالکل په آخر کښې قيامت ته نزدې راځی، او دا اوګڼړئ چه بس د هغې نه روستو به قيامت وی.

په دې کتاب مذکوره کښې ئي چه د علامات د قسم ثالث نه اول کوم علامت شمار کړې دې هغه د امام مهدی ظهور دې، پس هغوی ليکی: فمنها المهدی وهو اولها واعلم ان الاحاديث الواردة فيه علی اختلاف رواياتها لا تکاد تنحصر، فقد قال محمد بن الحسن الاسنوی فی

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٢/٥) (صحيح)

کتاب مناقب الشافعی : قد تواترت الاخبار عن رسول اللهﷺ بذکر المهدی وانه من اهل بيتهﷺ او د دې په حاشيه باندې حضرت شيخ ليکلي دي : وبسط فی الروايات ابن حجر فی الفتاوی الحديثية اهـ هم دغه شان د علامه سيوطی رساله العرف الوردی فی اخبار المهدی ډيره مشهوره ده [1] کومه چه په الحاوی للفتاوی کښې شامله ده، په دې رساله کښې هغوی لس کم سل (نوی) احاديث مرفوعه ذکر فرمائيلي دی د آثارو نه علاوه چه په هغې کښې شپږ ديرش رواياتو کښې د امام مهدی تصريح ده او په باقی کښې الخليفة العادل سره ذکر دي.

په التعليق الصبيح علی مشکوة المصابيح صفحه ۱۹۲ (ازمولانا محمد ادريس کاندهلوی) کښې هم په دې باندې تفصيلی کلام دې وفيه وقد اخرج احاديث المهدی ائمة الحديث فی دواوين السنة کالامام احمد والترمذی والبزار وابن ماجه والحاکم والطبرانی وابويعلی الموصلی ونعيم بن حماد شيخ البخاری وغيرهم اهـ د دې سلسلې ډير روايات خپله کتاب کښې راروان دی.

## د امام مهدی په باره کښې عقيده

په تحفة الاحوذی کښې ﴿ باب ما جاء فی المهدی ﴾ په شروع کښې ليکلي دی چه د ټولو اهل اسلام ترمينځه د هميشه نه دا خبره مشهوره راروانه ده چه داسې به ضرور کيږي چه په اخره زمانه کښې په يو سړي د اهل بيت نه ښکاره کيږي چه د دين حمايت به کوی او په دنيا کښې به عدل وانصاف قائموی او مسلمانان به د هغه اتباع کوی، او ټول اسلامی ملکونه به د هغه د حکم نه لاندې وی، د چا نوم چه به مهدی وی (يعنی لقب به ئې دا وی په کوم سره چه به هغوی مشهور وی ګينې نوم خو به د هغوی محمد بن عبدالله وی لکه چه په احاديثو کښې تصريح ده) او دا چه خروج الدجال او د هغې نه روستو علامات قيامت به د هغوی نه روستو موندلې شی، او هم د هغوی په زمانه کښې به د عيسیؑ د آسمان نه نزول کيږي او بيا به هغوی د امام مهدی ملګری کيدلو سره دجال قتل کړی، او په شروع کښې به هغوی يو مونځ هم د امام مهدی په اقتداء کښې ادا کوی (چه دا ظاهره شی چه د عيسیؑ نزول په حيثيت د يو نبی نه دې) او د دې احاديث مهدی تخريج ډيرو اصحاب السنن ابوداؤد ترمذی ابن ماجه وغيرهم کړې دې. چه د هغوی احاديث صحيح حسن او ضعيف درې واړه قسمه دی.

او بيا وړاندې ليکی چه مشهور مورخ ابن خلدون مغربی په خپل تاريخ کښې د ټولو احاديث مهدی تضعيف په طريقه د مبالغې کړې دې چه په هغې کښې هغوی حق ته نه دی رسيدلې بلکه خطاء شوې دی. او بعض منکرين مهدی په خپله دعوی باندې د دې حديث مرفوع نه استدلال کړې دې چه د رسول اللهﷺ ارشاد دې : ﴿ لا مهدی الا عيسی ابن مريم ﴾ والحديث ضعفه البيهقی و الحاکم،وفيه ابان بن صالح وهو متروک الحديث، والله تعالی اعلم کذا فی عون المعبود اهـ ﴿ لا مهدی الا عيسی ابن مريم ﴾ په ابن ماجه کښې دې، د ابن ماجه په حاشيه باندې په دې باندې تفصيلی کلام کړې شوې دې.

[1] عزيز قدرمند مولوی محمد ارشد کاندهلوی سلمه دا رساله ډير په اهتمام سره شائع کړې ده مختلفو نسخو لره مخې ته ږدلو سره فجزاه الله خيرا الجزاء)

د ابن خلدون د اشکالاتو جوابونه حضرت تهانوی رحمه الله تفصیلا ذکر کړي دي کوم چه مستقل د یو رسالې په شکل کښې دی کومه چه د امداد الفتاوی شپږم جلد په آخره کښې ملحق ده، حضرت په دې رساله کښې د دې حدیث ﴿ لا مهدی الا عیسی ابن مریم ﴾ هم ځواب ورکړي دی، د دې رسالې په باره کښې حضرت لیکلي دي چه د دې رسالې چه څنګه د بحث عقائده قدیمه سره تعلق دې لکه چه ظاهر دې دغه شان ئې د عقائد جدیده سره هم تعلق دې چه نوی تعلیم یافته هم د دې عقیده مهدی نافي دی، پس د دواړو مباحث نه پس د دې الحاق ډیر مناسب دې اهـ. د دې نه مخکښې په دې کښې (امداد الفتاوی هم په دې جلد کښې) دوه بحثونه نور ذکر دی کوم چه د عام عقائدو سره مناسبت لري هم په دې وجه حضرت داسې فرمائیلې دی.

څنګه چه د ختم نبوت مسئله په مسئله اعتقادیه کښې ده چه په هغې باندې د انسان د ایمان او اسلام صحت موقوف دې، هم دغه شان د دې سلسلې یو کړئ د خروج مهدی مسئله ده چه د هغې په باره کښې بعض فرق باطله مستقل رائې لري لکه شیعه حضراتو کښې فرقه اثنا عشریه هغوی د امام مهدی په باره کښې خپله مستقل رائې لري لکه چه اوس مخکښې حدیث ﴿ لا یزال هذا الدین قائما ﴾ په شرح کښې تیر شو، بلکه دا چه په مختلفو زمانو کښې مختلفو خلقو د خپل ځان باره کښې د مهدی کیدو دعوی اوکړه، دې لعین قادیان هم د خپل ځان په باره کښې د مسیح موعود کیدو دعوی کوله او کله ئې د مهدی موعود، هم په دې وجه علماء کرامو دا بحث د عقائدو په بحث کښې شامل کړې دې، نور هم بعض داسې مسائل دی چه د عقائدو په بحث کښې شامل کړې شوې دی مثلا د شرب نبیذ مسئله او هم دغه شان د مسح علی الخفین مسئله، شرح عقائد کښې د ظهور مهدی مسئله د مسئله امامت د لاندې ذکر کړې شوې ده : ﴿ والمسلمون لا بدلهم من امام یقوم بتنفیذ احکامهم واقامة حدودهم وسد ثغورهم وتجهیز جیوشهم – الی ان قال – ثم ینبغي ان یکون الامام ظاهرا لا مختفیا ولا منتظرا خروجه عند صلاح الزمان، لا کما زعمت الشیعة خصوصا الامامیة منهم الی آخره ([1]) د دې نه پس اوس احادیث الباب اوګورئ:

---

[1] د امام مهدی په باره کښې د مودودی صاحب نظریه : هم دغه شان په موجوده زمانه کښې د ائمه تلبیس نه مودودی صاحب هم د امام مهدی انکار کړې دې د کوم جواب چه زمونږ حضرت شیخ په فتنه مودودیت کښې ورکړې دې، حضرت دا هم لیکلې دی : اصل خبره دا ده چه مودودی صاحب د زړه نه مهدی جوړیدل غواړي او د مقتدایانه سیرت نه د خپلې لیډرئ د وجې نه عاجز دې په دې وجه هغه په خانې د دې چه خپله ئې دا بابرکت تمدن اختیار کړې وې هر ځائې کښې بې محل هم د دې کوشش کوی چه انبیاء کرام او معروف اولیاء کرامو لره د لیډر لیډر په عنوان سره تعبیر کولو سره د دې تمدن نه د خلقو ذهنونه اړوی کوم چه د مقتدایانه تمدن مناسب دې اهـ د دې نه مخکښې حضرت شیخ رحمه الله د مودودی صاحب خیالات د امام مهدی په باره کښې د هغوی په الفاظو کښې د تجدید احیاء دین نه داسې نقل کړې دی : خلق دا ګنړی چه امام مهدی به د پخوانئ زمانې دمولویانه یا صوفیانه وضع قطع سرې وی تسبیح په لاس به ناڅاپه د یوې مدرسې یا خانقاه نه راوځی او د راتلو سره به د انا المهدی اعلان اوکړی. الی آخره)

[۴۲۸۲](¹)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عُبَيْدٍ حَدَّثَهُمْ. ح وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ. ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ. ح وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا زَائِدَةُ. ح وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ فِطْرٍ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ كُلُّهُمْ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا يَوْمٌ" قَالَ: زَائِدَةُ فِي حَدِيثِهِ لَطَوَّلَ اللَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ، ثُمَّ اتَّفَقُوا: حَتَّى يَبْعَثَ فِيهِ رَجُلًا مِنِّي أَوْ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي وَاسْمُ أَبِيهِ اسْمَ أَبِي زَادَ فِي حَدِيثِ فِطْرٍ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا، وَقَالَ فِي حَدِيثِ سُفْيَانَ: لَا تَذْهَبُ أَوْ لَا تَنْقَضِي الدُّنْيَا حَتَّى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَفْظُ عُمَرَ، وَأَبِي بَكْرٍ بِمَعْنَى سُفْيَانَ.

دجابر بن سمرة رضي الله عنه نه د تیر شوی روایت په شان روایت منقول دي مګرددئ اضافي سره فرمائی چه بیا رسول الله ﷺ دخپل کورطرف ته واپس روان شونودقریشوخلق ئې په خدمت کښې حاضرشول اوعرض ئې وکړوچه بیا ددې نه پس څه نشي پیښیدونکي دي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل قتل وقتال به شروع شي.

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ يَوْمٌ لَطَوَّلَ اللَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ حَتَّى يَبْعَثَ فِيهِ رَجُلاً مِنِّى أَوْ مِنْ أَهْلِ بَيْتِى يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِى وَاسْمُ أَبِيهِ اسْمَ أَبِى يَمْلأُ الأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلاً كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا »﴾

## خروج مهدی یقینی امر دې:

سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوی چه هغوی اوفرمائیل چه که د دنیا ټولې ورځې تیرېدو سره صرف یو ورځ باقی پاتې شی (او بالفرض تر هغه وخته پورې د مهدی ظهور نه وی شوې) نو الله پاک به دا یوه ورځ دومره اوږده کړی تر دې چه یو داسې سړې به دنیا ته راولیږی چه زما نه به وی. یا ئې دا اوفرمائیل چه زما د اهل بیت نه به وی، د هغه نوم به زما د نوم په شان او د هغه د پلار نوم به زما د پلار د نوم په شان وی، (یعنی محمد بن عبدالله) چه د خپل راتلو نه پس به زمکه د عدل او انصاب نه ډکه کړی څنګه چه به هغه د دې نه مخکښې د ظلم نه ډکه وی.

په بذل کښې لیکلي دی: وحاصل معنی الحدیث ان بعثه موکد یقینی لا بد ان یکون ذلک، یعنی د دې قسم سړی ظهور به په آخر زمانه کښې ضرور کیږی، او په دې حدیث کښې په فرقه امامیه باندې رد دې څوک چه د مهدی موعود په باره کښې داسې وائی چه هغه محمد بن الحسن العسکری دې. اهـ والحدیث اخرجه الترمذی وقال حسن صحیح، قاله المنذری.

[۴۲۸۳](²)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا فِطْرٌ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ أَبِي بَزَّةَ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدَّهْرِ إِلَّا يَوْمٌ لَبَعَثَ اللَّهُ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَمْلَؤُهَا عَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا".

---

¹): سنن الترمذي/الفتن ٥٢ (٢٢٣٠)، (تحفة الأشراف: ٩٢٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٦/١، ٣٧٧، ٤٣٠، ٤٤٨) (حسن صحيح)

²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠١٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٩/١) (صحيح)

د عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي کريم ﷺ فرمائيلي دی : که چرې باقي پاتې نشي ددنيانه مګر يوه ورځ زائده وئيلی دی چه الله تعالی به دا ورځ دومره اوږده کړي چه په دې ورځ کښې به يو کس زمانه اوکه داسې ئې اوفرمائيل چه زما اهل بيت نه وليږلي شي ، دده نوم به زما نوم په شان وي اودپلارنوم به دهغه زما دپلا دنوم په شان وي ، مګر دفطرراوی په روايت کښې دومره اضافه ده چه دغه کس به زمکه دانصاف نه ډکه کړي يعنی دزمکې په مخ به انصاف غالب شي لکه څنګه چه دغه زمکه دجور او ظلم نه ډکه شوې وه ، دسفيان راوی په روايت کښې دومره اضافه ده چه دزمې ميعادبه دهغه وخته پورې نه پوره کيږی ترڅوچه دجزيرة العرب مالک به زما د اهل نه داسې کس شی چه نوم به ئې زما دنوم په شان وي، امام ابوداؤد وئيلی دی چه د عمر اوبکر الفاظ د سفيان د الفاظويشان دي.

[٤٢٨٤]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمَلِيحِ الْحَسَنُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ بَيَانٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ نُفَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ وَلَدِ فَاطِمَةَ"، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، وَسَمِعْتُ أَبَا الْمَلِيحِ، يُثْنِي عَلَى عَلِيِّ بْنِ نُفَيْلٍ وَيَذْكُرُ مِنْهُ صَلَاحًا.

دعلی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول کريم ﷺ فرمائيلي دی کله چه پاتې نشي درمانې ته مګر يوه ورځ، نو يقينا الله پاک به زما داهل بيت نه يوداسې دی راوليږي څوک چه به زمکه دانصاف نه ډکه کړي (يعنی دزمکې په مخ به انصاف غالب شي لکه څنګه چه دغه زمکه دجور اوظلم نه ډکه شوې وه.

**قوله:** ﴿عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ: الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ وَلَدِ فَاطِمَةَ﴾

رسول الله ﷺ فرمائي چه مهدي به د اولاد فاطمه رضي الله عنها نه وي. اوس دا چه د حسن رضي الله عنه د اولاد نه به وی او که د حسين رضي الله عنه په دې کښې دواړه اقوال دی او دريم قول دا دې چه د والد د طرف نه به حسنی وی او د مور د طرف نه به حسينی، او هم دا اولی ده. (بذل) والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٢٨٥]([2])حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ تَمَّامِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَهْدِيُّ مِنِّي أَجْلَى الْجَبْهَةِ أَقْنَى الْأَنْفِ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ".

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه د رسول الله ﷺ نه مې اوريدلی دی چه فرمائيل ئې: مهدي به زما دنسل نه يعنی د فاطمې رضي الله عنها د اولاد نه وي ، عبدالله بن جعفر دابوالمليح نه دعلی بن نفيل تعريف او توصيف دبيانولونه پس اوريدلي دي.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « الْمَهْدِيُّ من أَجْلَى

---

[1]: سنن ابن ماجه/الفتن ٣٤(٤٠٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٣) (حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٣٧٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الفتن ٥٣ (٢٢٣٢)، سنن ابن ماجه/الفتن ٣٤ (٤٠٨٦) (حسن)

الْجَبْهَةِ أَقْنَى الأَنْفِ يَمْلأُ الأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلاً كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا و يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ »

په دې حديث کښې د حضرت مهدی حليه ذکر ده چه د هغوی به فراخه تندې وی او لوړه پوزه به ئې وی په دنيا کښې به عدل او انصاف قائموی او د هغوی حکومت به تر اووه کلونو پورې وی، او د دې نه په روستو روايت کښې کوم چه د ام سلمه رضي الله عنها نه دې په هغې کښې راځی، « قال بعضهم تسع سنين وقال بعضهم سبع سنين »

[٤٢٨٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ صَالِحٍ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ صَاحِبٍ لَهُ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَكُونُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ فَيَأْتِيهِ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ فَيُخْرِجُونَهُ وَهُوَ كَارِهٌ، فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ فَإِذَا رَأَى النَّاسُ ذَلِكَ أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ، فَيَبْعَثُ إِلَيْهِمْ بَعْثًا فَيَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ وَذَلِكَ بَعْثُ كَلْبٍ وَالْخَيْبَةُ لِمَنْ لَمْ يَشْهَدْ غَنِيمَةَ كَلْبٍ فَيَقْسِمُ الْمَالَ وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيُلْقِي الْإِسْلَامُ بِجِرَانِهِ إِلَى الْأَرْضِ فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِينَ ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ بَعْضُهُمْ: عَنْ هِشَامٍ تِسْعَ سِنِينَ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ سَبْعَ سِنِينَ.

دابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی: مهدي زما داولاد نه دې دهغه حليه او اوصاف به داسې وي پراخه تندې لوړه پوزه اوزمکه به دانصاف نه ډکوي لکه څنګه چه به دظلم اوجورنه ډکه شوي وي او په زمکه به اوه کاله حکومت کوي. دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه مې آوريدلی دی چه فرمائيل فيديوخليفه دوفات په وخت کښې به په خلقوکښې اختلاف پيداشي اودمديني نه به يوکس مکې ته په تيختنه روان شي هغه ته به دمې والا خلق راشي اوخلق به دده سره دحجر اسود او مقام ابراهيم په مينځ کښې بيعت وکړي بيابه دده طرف ته دشام يولښکر وليږلې شي بيابه دغه لښکر په بيداء مقام کښې په زمکه راښکلی شي کوم چه دمې اومدينې په مينځ کښې واقع دې، بياچه کله خلق داحالت ووينې چه دشام ابدال اودعراق جماعتونه دده خواته راغلې دي اودده سره بيعت کوي نوددې نه پس به په قريشوکښې يوکس پيداشي دده ماماخيل به دقبيله بنی کلب نه وي اوهغه به دې خلقوته يولښکر راوليږي او په دې لښکرباندې دمهدي منونکي غالب شي، اوهمدا د کلب لښکردې بيا په هغه کس باندې افسوس دې چه دکلب دجنګ غنيمت حاصل نکړي بيابه مهدي په خلقو باندې غنيمت تقسيم کړي او په خلقو کښې به دهغوی دنبی سنت ژوندي کړي اودين اسلام به په خپله غاړه کښې واچوي اوبيابه داوه کالونه پس وفات شي اوتول مسلمانان به په ده باندې جنازه وکړي. امام ابوداؤد فرمائی بعضو دهشام نه نهه کاله نقل کړي دي اوبعضو وئيلی دی چه اوه کاله به ژوندي وي اوحکومت به کوي.

## خروج د مهدی به څنګه او کله وی:

قوله: « عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ «

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٧٠، ١٨٢٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٥٩، ٣١٦) (ضعيف)

يَكُونُ اخْتِلاَفٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ فَيَأْتِيهِ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ فَيُخْرِجُونَهُ وَهُوَ كَارِهٌ فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ ﴾

ام سلمه ﷞ د رسول الله ﷺ نه روايت کوی (چه په هغې کښ دا بيان کړې شوې دی چه خروج مهدی به څنګه وی د هغې به څه صورت وی) چه په آخيره زمانه کښ به د هغه وخت خليفه وفات شی نو يو سړې به د اهل مدينه نه د مدينې طيبې نه اوځی او د مکې مکرمې طرف ته به اوتختی په دې خيال چه خلق هغه خليفه نه کړی، خو داسې به اوشی چه دې سړی ته به د اهل مکه نه ډير خلق راشی او په هغه باندې به زور راوړی د هغه د رائې خلاف هغه به د خپل قيام د ځائې نه مسجد حرام ته راوستلې شی د حجر اسود او مقام ابراهيم ترمينځه او د هغه په لاس باندې به بيعت کوی.

﴿ وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنَ الشَّامِ فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ ﴾ يعنی د هغوی د بيعت د انعقاد نه پس به د هغوی د مخالفينو يوه ډله د شام د ملک نه راوچته شی پس الله پاک به هغوی په لاره کښ په مقام بيداء کښ کوم چه د مکې او مدينې طيبې ترمينځه دې په زمکه باندې ننباسی (د دې جماعت نه په بعث الخسف سره تعبير کيدلې شی) ﴿ فَإِذَا رَأَى النَّاسُ ذَلِكَ أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَيُبَايِعُونَهُ ﴾ پس چه کله خلق دا قصه وينی (يعنی د الله پاک د طرف نه د امام مهدی نصرت او حمايت) نو هغوی ته به د ملک شام نه ابدال او د عراق منتخب جماعتونه راشی او هغوی به هم دوی سره بيعت اوکړی. ﴿ ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ فَيَبْعَثُ إِلَيْهِمْ بَعْثًا فَيَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ وَذَلِكَ بَعْثُ كَلْبٍ ﴾ بيا به يو قريشی سړې په حسد کښ پاسی چه د هغه قبيله به کلب وی، او دا قريشی سړې به دې بيعت کونکو سره د قتال دپاره يو لښکر راوليږی، خو د الله پاک په امداد سره به دا بيعت کونکی په هغوی باندې غالب شی، او دې لښکر ته به بعث کلب [۴۲۸۶] دواړه لښکرې به د امام مهدی او د هغه د متبعينو دشمنان وی دواړه به الله پاک ذليله او مغلوب کړی.

﴿ وَالْخَيْبَةُ لِمَنْ لَمْ يَشْهَدْ غَنِيمَةَ كَلْبٍ ﴾ او په خساره کښ به وی هغه خلق کوم چه په غنيمت د کلب کښ شريک نه شی، ګويا رسول الله ﷺ ترغيب ورکوی مسلمانانو ته د دې خبرې چه هغوی له پکار دی چه هغوی دې د امام مهدی په تائيد کښ جيش کلب سره قتال کښ شريک شی او بيا دې د هغوی مال غنيمت لوټ کړی. ﴿ فَيَقْسِمُ الْمَالَ وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ -صلى الله عليه وسلم ﴾ پس هغه مهدی به مال تقسيم کړی يعنی مال غنيمت لره او د خلافت امور به انجام ته اورسوی په خلقو کښ د رسول الله ﷺ د طريقې مطابق ﴿ وَيُلْقِي الإِسْلاَمُ بِجِرَانِهِ إِلَى الأَرْضِ ﴾ او اسلام به خپل سټ په زمکه باندې خورکړی يعنی د اسلام به ښه استحکام وی په دغه زمانه کښ او امن و امان، اوښ چه کله ښه په مستئ کښ راشی د سکون په وخت نو په ناسته ناسته خپل سټ په زمکه باندې اوغزوی. لهذا دا استعاره دهٔ د مسلمانانو د اطمينان او سکون نه.

## د مهدي د خلافت موده :

**قوله**: ﴿ فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِينَ ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ ﴾

تر د اووۀ كالو پورې به د هغوی خلافت وی بيا به وفات کيږی او مسلمانان به د هغه د جنازې مونځ کوی. بعض راويانو د اووۀ په ځائې نهه کاله وئيلي دي، ممکنه ده چه دوه کاله هغوی په قتال کښې مشغول وی چا چه نهه شمار کړل هغوی پکښې دوه هم شامل کړل او چا چه اووۀ بيان کړل هغوی دوه ساقط کړل. (بذل)

[۴۲۸۷] (¹) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ قَتَادَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالَ تِسْعَ سِنِينَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ غَيْرُ مُعَاذٍ، عَنْ هِشَامٍ تِسْعَ سِنِينَ.

همام دقتاده رحمه الله نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دي مګرددې اضافي سره مهدي به نهه کاله حکومت کوي. امام ابوداؤد وئيلی دی چه دمعاذ نه علاوه نورو راويانودهشام نه تسع سنين لفظ نقل کړي دي يعنی مهدي به نهه کاله حکومت کوي.

[۴۲۸۸] (²) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْعَوَّامِ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَحَدِيثُ مُعَاذٍ أَتَمُّ.

ام سلمه رضی الله عنها دنبی صلی الله علیه وسلم نه دپورتني روايت په شان روايت بيان کړي ليکن دمعاذ کی حديث زيات کامل دي.

[۴۲۸۹] (³) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ ابْنِ الْقِبْطِيَّةِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقِصَّةِ جَيْشِ الْخَسْفِ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَيْفَ بِمَنْ كَانَ كَارِهًا؟ قَالَ: "يُخْسَفُ بِهِمْ وَلَكِنْ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى نِيَّتِهِ".

ام سلمه رضی الله عنها دنبی صلی الله علیه وسلم نه دجيش الخسف په قصه کښې روايت بيانوي فرمائی چه ماعرض وکړو اې دالله رسوله دهغه چا انجام به څه وي څوک چه دا بدګنړي؟نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل دوی به په زمکه کښې غرق کړي شي ليکن د قيامت په ورځ به دخپلو نيتونو مطابق راپورته کيږي.

**قوله**: ﴿ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَيْفَ بِمَنْ كَانَ كَارِهًا الخ ﴾ د ام سلمه رضی الله عنها په روايت کښې دا زيادت دې هغه فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو د جيش الخسف په باره کښې چه ممکنه ده په هغې کښې بعض خلق داسې هم وی چه هغوی په دې جنګ کښې شريکيدل نه غواړی او په زبردستئ سره خلقو شريک کړې وی نو د داسې خلقو به څه انجام وی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل : چه دغه وخت کښې خو به هغوی د خلقو سره په عمومی عذاب کښې شامل شی خو د قيامت په ورځ باندې به هغوی په خپل نيت باندې پاسی، او هغوی سره به د نيت مطابق معامله کولې شی.

---

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۷۰) (ضعيف)

²): انظر حديث رقم: (۴۲۸۶)، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۷۰) (ضعيف)

³): صحيح مسلم/الفتن ۲ (۲۸۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۱۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۹۰) (صحيح)

[٤٢٩٠] (¹) قَالَ أَبُو دَاوُد: حُدِّثْتُ عَنْ هَارُونَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ، فَقَالَ: إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ، ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةً يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا.

امام ابوداؤد فرمائي چه عمروبن شعيب په واسطه دهارون سره دابواسحاق نه نقل کوي هغه وئيلي دي چه علی ﷺ خپل ځوي حسن ته وکتل او وئې وئيل چه زما داځوي به سردار وي لکه څنګه چه نبی ﷺ دده دپاره دانوم تجويز کړي دي اوديره نزدې ده چه دده په نسل کښې به يوداسې کس پيداشي چه هغه به ستاسودنې په نوم باندې مسې وي او په اخلاقو اوعاداتو کښې به هم دهغه سره مشابه ري ليکن په شکل اوصورت کښې به دنبی ﷺ سره مشابه نه وي، اوبيائې دهغه قصه ذکرکړه چه په زمکه کښې به انصاف خورکړي، (حديث نبوي ته اشاره)، دعبدالله په روايت کښې هارون دقيس نه نقل کړي دي هغه دمطرف اوهغه دحسن ﷺ نه روايت بيان کړې دي اوهغه دهلال بن عمرونه روايت کوی چه ماد علی ﷺ نه آوريدلی دی اوهغه دنبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې په ما وراء النهر کښې به يوکس پيداشي اونوم به ئې حارث بن حارث وي اودده نه به مخکښې يوبل کس وي خلق به ورته منصور وائی هغه به دنبی ﷺ په اولادې باندې قبضه يابه ورته دپناه دپاره ځائې ورکړي لکه چه قريشونبی ﷺ ته دپناه دپاره ځائې ورکړي وو په هريو مسلمان باندې ددغه کس سره تعاون کول ضروری دی ياداچه نبی ﷺ اوفرمائيل په مسلمانانوباندې دده تابعداری کول لازمي دي.

**قوله:** ﴿ قَالَ عَلِيٌّ – رضى الله عنه – وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ الخ ﴾ يعنی يو ورځ سيدنا علی ﷺ خپل ځوی سيدنا حسن ﷺ ته اوکتل او وې فرمائيل : زما دا ځوئې به سيد وی لکه څنګه چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی يعنی معزز، چه د سيادت او خلافت د حصول باوجود به مصلحة د هغې نه لاس واخلی چه په هغې سره به د بعض دنيادارو په نظر کښې خو ذليل شي خو د الله پاک په نزد به عزيز وی، او بيا اوفرمائيل علی ﷺ چه د دۀ د شا نه به يو سړې پيدا کيږی چه د هغه نوم به محمد وی، ﴿ يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ ﴾ چه په سيرت کښې به د رسول الله ﷺ مشابه وی نه په صورت کښې، ﴿ سَمِعْتُ عَلِيًّا – كرم الله وجهه– يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– « يَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ وَرَاءِ النَّهْرِ يُقَالُ لَهُ الْحَارِثُ حَرَّاثٌ ﴾ علی ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلي وو چه په آخره زمانه کښې به يو سړې راوځی د نهر د بل طرف نه يعنی د نهر جيحون بل طرف ته چه کوم ښهرونه دی يعنی بخارا او سمرقند وغيره، د چا نوم چه به حارث وی او دهقان به وی، ﴿ عَلَى مُقَدِّمَتِهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ مَنْصُورٌ يُوَطِّئُ أَوْ يُمَكِّنُ لِآلِ مُحَمَّدٍ ﷺ ﴾ يعنی کوم نيک سړې چه به د ماوراء النهر نه راوځی د هغه په مقدمة الجيش باندې به يو سړې امير وی چه د هغه نوم به منصور وی چه د رسول الله ﷺ د آل نه به

---

¹): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٠٢٥٣، ١٠٣٠٩) (ضعيف)

وي يعنى د امام مهدي په تائيد او حمايت کښ به ولاړ وي لکه چه مومنين قريش د رسول الله ﷺ تائيد کړې وو، د هغه وخت په هر مسلمان باندې به د هغه نصرت واجب وي.

د امام مهدي رضي الله عنه ذکر دلته په کتاب الفتن والملاحم کښ په دې حيثيت سره دې چه د هغوی ظهور به په آخر کښ په داسې زمانه کښ وي چه د فتنو زمانه به وي ګينې د مهدي وجود خو خير محض دې او هم دغه شان د نزول عيسى عليه السلام ذکر کوم چه بعض محدثين مصنفين هم په دې مقام باندې ذکر کوی. [1]

بيا خان پوهه کړه چه ډير داسې علامات دی چه د هغې د موندلې کيدو نه پس به د هغوی ظهور وی، د دې سلسلې روايات په "الاشاعة لاشراط الساعة" کښ ډير ذکر شوې دی، د نسخه مجتبائيه په حاشيه باندې ليکلې دی چه: د هغوی خروج به د بلاد مشرق نه وی او خلق به د هغوی په لاس باندې بيعت کوی په مسجد حرام کښ، او په دار قطنی کښ د هغوی د ظهور يو علامت ذکر دې هغه دا چه په کوم کال باندې د هغوی ظهور وی نو په هغه کال باندې به په يکم رمضان باندې کسوف شمسی وی او په نصف رمضان کښ خسوف قمر، قلت ورواية ابی داؤد صريحة فی انه المهدی يخرج من المدينة بعد موت خليفة هاربا الی مکة فتقع المبايعة فی المسجد الحرام.

په بعضو نسخو کښ دلته دی: آخر کتاب المهدی.

# كتاب الملاحم

## د جنګونو بيان

## بَاب مَا يُذْكَرُ فِي قَرْنِ الْمِائَةِ

### د هرې يوې صدۍ بيان

[٤٢٩١] [2] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ شَرَاحِيلَ بْنِ يَزِيدَ الْمُعَافِرِيِّ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِيمَا أَعْلَمُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ لِهَذِهِ الْأُمَّةِ عَلَى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِينَهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ لَمْ يَجُزْ بِهِ شَرَاحِيلَ.

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زما د علم مطابق نبی ﷺ فرمائيلې دې: الله تعالی به په دې امت کښې هر سل کاله پس په دوی کښې يو داسې کس پيدا کوي چه دوی ته به د دوی د دين تجديد کوي. امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت عبدا الرحمن بن شريح اسکندراني نقل کړې دې او د شراحيل نه مخکښې نه دې تلې يعنی د شراحيل پورې ئې نوموړنه ذکر کړې دې.

---

[1] کما في جامع الترمذي وسنن ابن ماجه: او په صحيح مسلم کښ د نزول عيسى عليه السلام باب په کتاب الايمان کښ دې ګويا په اول حصه د کتاب کښ او په صحيح بخاری کښ کتاب الانبياء يو مستقل کتاب دې ابواب المناقب سره متصل، امام بخاری دا باب په هغې کښ ذکر فرمائيلې دې، زموږ امام ابوداؤد رحمه الله په هغوی باندې هيڅ مستقل باب نه دې تړلې

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٥٢) (صحيح)

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِيمَا أَعْلَمُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « إِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ لِهَذِهِ الأُمَّةِ عَلَى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِينَهَا » ﴾

د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې. وړاندې د سند په راویانوکښې یو راوی وائی چه زما گمان دې چه د ابوهریره رضی الله عنه نه پس په دې سند کښې ﴿ عن رسول الله ﷺ ﴾ هم دې، یعنی ظن غالب دا دې چه دا حدیث مرفوع دې.

مضمون د حدیث دا دې چه الله پاک به په دې امت کښې د اصلاح او د دین محمدی د ترقئ او د بقاء دپاره د هرې صدئ په پوره کیدو باندې یو داسې سړې یا یو داسې جماعت پیدا کوی کوم چه د دې امت دپاره د دوی د دین تجدید اوکړی، یعنی چه د سنت احیاء او د بدعاتو خلاف ښکاره کار اوکړی، گویا په دې حدیث کښې د رسول الله ﷺ د طرف نه بشارت دې د دین اسلام د بقاء او د ترقئ چه الله پاک د دې دین د حفاظت دپاره هره صدئ کښې او د سلو کالو د پوره کیدو نه پس یو داسې سړې یا جماعت پیدا کوی چه د دې دین تجدید به کوی، حق لره د باطل نه او سنت لره د بدعت نه ممتاز کونکی به وی او د خلقو دپاره به نیغې لارې ته د راتلو ذریعه وی. په شروح حدیث او د تاریخ په کتابونو کښې علماء کرامو د خپلې خپلې زمانې د مجددینو تعیین هم فرمائیلې دې، مشهوره ده چه د اولې صدئ مجدد عمر بن عبدالعزیز دې چه د تدوین حدیث مجدد او گویا بانی دې. (۱)

په اصل کښې چه کومه یو صدی ده هغه یو معتد به زمانه او موده ده چه په هغې کښې تقریبا د یوې زمانې خلق ټول ختمیږی. (۲) او نور خلق پیدا کیږی، نو څنگه چه د هرې صدئ خلق بیل وی صدئ تیریږی او نوی خلق دنیا ته راځی، او بدلیږی رابدلیږی هم دغه شان الله پاک په دې راتلونکی انسانانو کښې د دین ښکاره خدمات سر ته رسونکی هم پیدا فرمائی، د خدمت دین شعبې مختلف دی وعظ او تذکیر، تصنیف او تالیف (نشر علوم دینیه) بیا په علوم دینیه کښې یو فن حدیث دې یو فن فقه ده یو فن تفسیر دې، یو فن تزکیه او سلوک دې، لهذا دا ضروری نه ده چه مجدد دې صرف یو سړې وی بلکه د هر شاخ مجدد بیل بیل کیدې شی، او دا هم ممکن ده چه په اختلاف د ممالک او اقالیم سره دې کښې تعدد وی، پس دا ضروری نه شوه چه کوم مجدد وی هغه دې د ټولو عالم په اعتبار سره وی. والله اعلم بالصواب (بذل)

علماء کرامو د تیرو صدو نه د هرې هرې صدئ مجددین د خپل خپل معلومات او رجحان په اعتبار سره متعین کړې دی علامه طیبی هم د مشکوة په شرح کښې د ابوداؤد د دې حدیث د شرح نه پس د هغې حضرات تعین د صاحبِ جامع الاصول نه نقل کړې دې (۳)

---

(۱) لکه چه د الدرر المنضود په مقدمه کښې د مدون حدیث په بحث کښې تیر شوې دی، هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی.

(۲) لکه چه مشهورحدیث دې ﴿ اریتم لیلتکم هذه فان علي راس مائة سنة منها لا يبقي ممن هو علي ظهر الارض احد الحديث ﴾

(۳) **د مجددینو شمار** : مونږ د هغوی عبارت بعینه دلته نقل کوو، هغوی په شروع کښې دا لیکلې دی چه ډیرو علماء کرامو داسې کړې دی چه هغوی د حدیث په شرح کښې د مجدد تعیین په هغه سړی سره کړې دې چا چه د هغوی د مسلک سره تعلق لرلو او حدیث ئې هم په هغوی باندې محمول...... لـه

←..... کړي دي حال دا چه دا خلاف اولی ده، اولی دا ده چه حدیث دې په عموم باندې محمول کړې شی، د هغوی الفاظ دا دی: او كل واحد أشار إلي القائم الذي هو من مذهبه وحمل الحديث عليه والاولي الحمل علي العموم فان لفظة من يقع علي الواحد الجمع ولا يخص ايضا بالفقهاء فان انتفاع الامة بهم وان كان كثيرا اذ حفظ الدين وقوانين السياسة وبسط العدل وظيفة اولي الامر وكذا القراء واصحاب الحديث ينفعون بضبط التنزيل والاحاديث التي هي اصول الشرع وادلته والزهاد ينفعون بالمواعظ والحيث علي لزوم التقوي والزهد في الدنيا لكن المبعوث ينبغي ان يكون مشارا اليه مشهورا في كل فن من هذه الفنون. ..الخ، والأولي أن يحمل الحديث علي العموم، فإن قوله -صلي الله عليه وسلم- :؟إن الله يبعث لهذه الأمة علي رأس كل مائة سنة من يجدد لها دينها؟ ولا يلزم منه أن يكون المبعوث علي رأس المائة رجلا واحدا، وإنما قد يكون واحدا، وقد يكون أكثر منه فإن لفظه ؟من؟ تقع علي الواحد والجمع، وكذلك لا يلزم منه أن يكون أراد بالمبعوث : الفقهاء خاصة، كما ذهب إليه بعض العلماء ، فإن انتفاع الأمة بالفقهاء، وإن كان نفعا عاما في أمور الدين، فان انتفاعهم بغيرهم أيضا كثير مثل أولي الأمر، وأصحاب الحديث والقراء و الوعاظ، وأصحاب الطبقات من الزهاد، فإن كل قوم ينفعون بفن لا ينفع به الأخر، إذ الأصل في حفظ الدين حفظ قانون السياسة، وبث العدل والتناصف الذي به تحقن الدماء-[۳۲۱]- ويتمكن من إقامة قوانين الشرع، وهذا وظيفة أولي الأمر، وكذلك أصحاب الحديث : ينفعون بضبط الأحاديث التي هي أدلة الشرع، والقراء ينفعون بحفظ القراءات وضبط الروايات، والزهاد ينفعون بالمواعظ والحث علي لزوم التقوي والزهد في الدنيا، فكل واحد ينفع بغير ما ينفع به الأخر، لكن الذي ينبغي أن يكون المبعوث علي رأس المائة : رجلا مشهورا معروفا، مشارا إليه في كل فن من هذه الفنون، فإذا حمل تأويل الحديث علي هذا الوجه كان أولي، وأبعد من التهمة، وأشبه بالحكمة، فإن اختلاف الأئمة رحمة، وتقرير أقوال المجتهدين متعين، فإذا ذهبنا إلي تخصيص القول علي أحد المذاهب، وأولنا الحديث عليه، بقيت المذاهب الأخري خارجة عن احتمال الحديث لها، وكان ذلك طعنا فيها.

فالأحسن والأجدر أن يكون ذلك إشارة إلي حدوث جماعة من الأكابر المشهورين علي رأس كل مائة سنة يجددون للناس دينهم، ويحفظون مذاهبهم التي قلدوا فيها مجتهديهم وأعمتهم.

ونحن نذكر الأن المذاهب المشهورة في الإسلام التي عليها مدار المسلمين في أقطار الأرض، وهي مذهب الشافعي، وأبي حنيفة، ومالك، وأحمد ومذهب الإمامية، ومن كان المشار إليه من هؤلاء علي رأس كل مائة سنة وكذلك من كان المشار إليه من باقي الطبقات.

۱: وأما من كان قبل هذه المذاهب المذكورة، فلم يكن الناس مجتمعين علي مذهب إمام بعينه، ولم يكن قبل ذلك إلا المائة الأولي، كان علي رأسها من أولي الأمر : عمر بن عبد العزيز، ويكفي الأمة في هذه المائة وجوده خاصة، فإنه فعل في الإسلام ما ليس بخاف. وكان من الفقهاء بالمدينة : محمد بن علي الباقر، والقاسم بن محمد بن أبي بكر الصديق، وسالم بن عبد الله بن عمر.وكان بمكة منهم: مجاهد بن جبر، وعكرمة مولي ابن عباس، وعطاء بن أبي رباح. وكان باليمن : طاووس، وبالشام : مكحول، وبالكوفة :عامر بن شراحل الشعبي، وبالبصرة: الحسن البصري، ومحمد بن سيرين. وأما القراء علي رأس المائة الأولي، فكان القائم بها عبد الله بن كثير. وأما المحدثون :فمحمد بن شهاب الزهري، وجماعة كثيرة مشهورون من التابعين وتابع التابعين.

۲: وأما من كان علي رأس المائة الثانية، فمن أولي الأمر : المأمون بن الرشيد. ومن الفقهاء : الشافعي، والحسن بن زياد اللؤلؤي من أصحاب أبي حنيفة، وأشهب بن عبد العزيز من أصحاب مالك، وأما أحمد : فلم يكن يومئذ مشهورا، فإنه مات سنة إحدي وأربعين ومائتين. ومن الإمامية : علي بن موسي الرضي : ومن القراء: يعقوب الحضرمي، ومن المحدثين :يحيي بن معين، ومن الزهاد : معروف الكرخي.

۳: وأما من كان علي رأس المائة الثالثة، فمن أولي الأمر:المقتدر بأمر الله، ومن الفقهاء :أبو العباس بن سريج من أصحاب الشافعي، وأبو جعفر أحمد بن محمد بن سلامة الطحاوي من أصحاب أبي حنيفة... من أصحاب مالك وأبو بكر بن هارون الخلال من أصحاب أحمد، وأبو جعفر محمد بن يعقوب الرازي بن الإمامية. ومن المتكلمين : أبو الحسن علي بن إسماعيل الأشعري. ومن القراء : أبو بكر أحمد بن موسي بن مجاهد. ومن المحدثين : أبو عبد الرحمن بن شعيب النسائي.

۴: وأما من كان علي رأس المائة الرابعة، فمن أولي الأمر : القادر بالله، ومن الفقهاء : أبو حامد أحمد بن طاهر الأسفراييني من أصحاب الشافعي ، وأبو بكر محمد بن موسي الخوارزمي من أصحاب أبي حنيفة وأبو محمد عبد الوهاب بن علي بن نصر من أصحاب مالك، وأبو عبد الله الحسين بن علي بن حامد من أصحاب أحمد. ومن الإمامية : ......←

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ الإِسْكَنْدَرَانِيُّ لَمْ يَجُزْ بِهِ شَرَاحِيلَ ﴾

یعني عبدالرحمن بن شریح چه کله دا د شراحیل نه روایت کړو نو په سند کښې د دې نه مخکښې نه شو، سند ئې هم په دې باندې اودرولو او د آخیرې دوه راویان ابوعلقمه او ابوهریره رضی الله عنه ئې ذکر نه کړل، لهذا د هغوی د سند په اعتبار سره دا حدیث معضل شو.

## د حدیث المجددین مرتبه من حیث الثبوت والصحة :

هسې د مجددین والا حدیث صحیح او ثابت دې، په عون المعبود کښې د دې ثبوت او صحت د ډیرو کتابونو نه نقل کړې شوې دې : قال السیوطی فی مرقاة الصعود: اتفق الحفاظ علی تصحیحه منهم الحاکم فی المستدرک والبیهقی فی المدخل وممن نص علی صحته من المتاخرین الحافظ ابن حجر اهـ وقال المناوی فی فتح القدیر : اخرجه ابوداؤد فی الملاحم والحاکم فی الفتن وصححه، والبیهقی فی کتاب المعرفة کلهم عن ابی هریرة، قال الزین العراقی وغیره سنده صحیح، ۱هـ د دې نه معلومه شوه چه دا حدیث د صحاح سته نه صرف په سنن ابوداؤد کښې دې.

---

←..... المرتضي الموسوي أخو الرضي الشاعر. ومن المتكلمين: القاضي أبو بكر محمد بن الطيب الباقلاني، والأستاذ أبو بكر محمد بن الحسن بن فورك. ومن المحدثين : أبو عبد الله محمد بن عبد الله النيسابوري المعروف بالحاكم بن البيع. ومن القراء : أبو الحسن علي بن أحمد الحمامي. ومن الزهاد : أبو بكر محمد بن علي الدينوري.

۵: وأما من كان علي رأس المائة الخامسة، فمن أولي الأمر : المستظهر بالله.

ومن الفقهاء : الإمام أبو حامد محمد بن محمد الغزالي من أصحاب الشافعي، والقاضي فخر الدين محمد بن علي الأرسابندي المروزي من أصحاب أبي حنيفة... من أصحاب مالك، وأبو الحسن علي بن عبيد الله الزاغوني من أصحاب أحمد. ومن المحدثين : رزين بن معاوية العبدري. ومن القراء : أبو العز محمد بن الحسين بن بندار القلانسي. هؤلاء كانوا المشهورين في هذه الأزمنة المذكورة.اهـ)

صاحب د جامع الاصول د دریمې صدۍ په مجددینو کښې ابوجعفر الامامی او د څلورمې صدۍ مرتضی امام شیعی شمار کړې دې چه دا صحیح نه ده پس پس دې باندې صاحب د عون المعبود اظهار د تعجب کړې دې چه دا دواړه خو شیعه ګان علماء دی او مجدد خو هغه سړې کیدې شی چه د سنت احیاء اوکړی او بدعت ختم کړی، او کوم سړي چه خپله مبتدع وی نو که هغه هر څومره لوئې عالم وی هغه د دې قابل نه دې چه په مجددینو کښې شمیر کړې شی، کَيْفَ وَهُمْ يُخَرِّبُونَ الدِّيْنَ فَكَيْفَ يُجَدِّدُوْنَ ، وَيُمِيتُونَ السُّنَن فَكَيْفَ يُحْيُوْنَهَا ، وَيُرَوِّجُونَ الْبِدَع فَكَيْفَ يَمْحُوْنَهَا الي اخره وقد ذكره العلامة محمد طاهر في مجمع البحار ولم يعترض بذكر مسامحته ولم ينبه علي خطئه، صاحب د جامع الاصول خو تر پنځمې صدۍ پورې مجددین شمار کړې دی، صاحب د عون المعبود په دې حدیث باندې ډیر اوږد کلام کړې دې او د پنځمې صدۍ نه پس ئې تر د دیارلسمې صدۍ پورې د مجددینو ذکر کړې دې. په هغې کښې دا هم لیکلې شوې دی چه علماء کرامو د خپلې زمانې نه مخکښې مجددین ذکر کړې دی علامه سیوطی رحمه الله هم په دې باندې هغوی لره په اشعارو کښې بیان کړې دی او د هغې نوم ئې ایخودلې دې: تحفة المهتدين باخبار المجددين چه په هغې کښې هغوی د نهمې صدۍ پورې مجددینو لره د خپلې رائې مطابق بیان کړی دی او په آخر کښې فرمائی:

وهذه تاسعة المئين قد :: اتت ولا يخلف ما الهادي وعد

وقد رجوت انني المجدد :: فيها ففضل الله ليس يجحد

هغوی فرمائی چه نهمه صدی راغلې ده او الله پاک وعده خلافی نه فرمائی، زما د الله پاک نه امید دې چه د دې صدۍ مجدد زه یم.)

# بَابُ مَا يُذْكَرُ مِنْ مَلَاحِمِ الرُّومِ

## د روم د جنګونو بیان

[٤٢٩٢]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، قَالَ: مَالَ مَكْحُولٌ، وابْنُ أَبِي زَكَرِيَّا إِلَى خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ وَمِلْتُ مَعَهُمْ فَحَدَّثَنَا، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنِ الْهُدْنَةِ، قَالَ: قَالَ جُبَيْرٌ: انْطَلِقْ بِنَا إِلَى ذِي مِخْبَرٍ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْنَاهُ فَسَأَلَهُ جُبَيْرٌ عَنِ الْهُدْنَةِ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ فَتُنْصَرُونَ وَتَغْنَمُونَ وَتَسْلَمُونَ ثُمَّ تَرْجِعُونَ، حَتَّى تَنْزِلُوا بِمَرْجٍ ذِي تُلُولٍ فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيبَ فَيَقُولُ: غَلَبَ الصَّلِيبُ فَيَغْضَبُ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَيَدُقُّهُ فَعِنْدَ ذَلِكَ تَغْدِرُ الرُّومُ وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ".

د حسان بن عطیه نه روایت دې فرمائي چه مکحول او ابن ابی زکریا خالد بن معدان ته لاړل اوزه هم ورسره لاړم هغه مونږ ته دجبیر بن نفیر نه حدیث بیان کړو او وئي وئیل چه مونږ دنبی ﷺ صحابي ذي مخبرته بوځه مونږ چه ورغلونوجبیر ورنه دصلح متعلق تپوس وکړوهغه ووئیل چه مادنبی ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې تاسوبه درومیانوسره صلح وکړئ اوبیابه تاسو او رومیان په شریکه دیوبل دشمن سره وجنګیږئ اوبیابه فتح بیاموميء اوددشمن مال به دلوټ کولونه پس راوړئ اوپه خیر خیریت سره به واپس راشئ، تردې چه تاسوبه یومیدان ته راشئ او بیا به یونصراني صلیب پورته کړي او اعلان به وکړي چه صلیب غالب شو نوپه مسلمانانوکښې به یوغصه ناک کس ددوی سره جنګ وکړي او په دې وخت کښې به رومیان معاهده ماته کړي اوخلق به دجنګ کولو دپاره راجمع کړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ قَالَ مَالَ مَكْحُولٌ وَابْنُ أَبِي زَكَرِيَّا إِلَى خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ وَمِلْتُ مَعَهُمْ فَحَدَّثَنَا عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ عَنِ الْهُدْنَةِ قَالَ قَالَ جُبَيْرٌ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى ذِي مِخْبَرٍ - رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم- - فَأَتَيْنَاهُ فَسَأَلَهُ جُبَيْرٌ عَنِ الْهُدْنَةِ ﴾

حسان بن عطیه فرمائی چه یو ځل مکحول او ابن ابی زکریا خالد بن معدالن ته لاړل، زه هم هغوی سره لاړم، زمونږ په رسیدو باندې هغوی یعنی خالد بن معدان د جبیر بن نفیر دا حدیث واورولو د هدنه یعنی د صلح په باره کښې او د هغې د سند په طور ئې اووئیل چه یو ځل داسې اوشو چه ماته (یعنی خالد بن معدان ته) جبیر بن نفیر اووې چه ماسره لاړ شه ذومخبر ﷺ صحابی ته، یعنی د هغوی د زیارت وغیره دپاره، پس مونږ هغوی ته لاړو، خالد فرمائی چه هلته زما په موجودګئ کښې جبیر د هغوی نه یعنی ذی مخبر ﷺ نه د هدنه په باره کښې تپوس اوکړو یعنی دا تپوس ئې اوکړو چه د هدنة متعلق چه کوم حدیث تاسو بیانوئ هغه راته واوروئ نو د هغوی په فرمائش باندې هغوی هغه حدیث واورولو:

﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ فَتُنْصَرُونَ وَتَغْنَمُونَ وَتَسْلَمُونَ ثُمَّ تَرْجِعُونَ الخ ﴾

[1]: انظر حديث رقم: (٢٧٦٧)، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٧) (صحيح)

**مضمون الحديث:**

ما د رسول اللهﷺ نه واوريدل هغوی اوفرمائيل چه يو وخت به داسې راشی چه تاسو به د روم د نصاری سره مصالحت اوکړئ او بيا به دواړه يو ځائې کيدو سره د يو دشمن سره جنګ کوئ چه په هغې کښې به تاسو ته فتح حاصله شی او مال غنيمت به حاصل شی، بيا چه کله د هغه ځائې نه واپس شئ نو په واپسئ کښې به په لاره کښې تاسو يو سبزه زار کښې کوز شئ چه په هغې کښې به غونډئ وی، نو هلته به دا خبره پيښه شی چه په نصاری کښې به يو سړې صليب لره اوچت کړی او وائی به ﴿ غلب الصليب ﴾ يعنی صليب والا نصاری غالب شو، په دې باندې به يو مسلمان له غصه ورشی او هغه به دا نصرانی اوهی، په دې باندې به ټوله صلح ختم شی او ټول روميان به په غدارئ باندې تيار شی او مسلمانانو سره به د جنګ دپاره تيار شی.

دا حديث مختصرا په کتاب الجهاد باب فی صلح العدو کښې هم تير شوې دې.

**قوله:** ﴿ فعند ذلک تعذر الروم وتجمع للملحمة ﴾ د دې ملحمه نه مراد هم هغه ملحمه دې کوم چه په باب امارات الملاحم کښې را روانه ده ﴿ وخراب يثرب خروج الملحمة وخروج الملحمة فتح القسطنطنية ﴾ او د هغې نه په روستو باب کښې راځی ﴿ الملحمة الكبرى وفتح القسطنطنية وخروج الدجال فی سبعة اشهر ﴾ والحديث اخرجه ابن ماجه وقد تقدم فی الجهاد، قاله المنذری.

[٤٢٩٣](1) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَزَادَ فِيهِ وَيَثُورُ الْمُسْلِمُونَ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ، فَيَقْتَتِلُونَ، فَيُكْرِمُ اللَّهُ تِلْكَ الْعِصَابَةَ بِالشَّهَادَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِلَّا أَنَّ الْوَلِيدَ جَعَلَ الْحَدِيثَ عَنْ جُبَيْرٍ، عَنْ ذِي مِخْبَرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ رَوْحٌ، وَيَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، وَبِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، كَمَا قَالَ عِيسَى.

دا روايت هم دحسان بن عطيه نه منقول دې ليکن په دې کښې دا اضافه ده چه مسلمانان به په تيزئ سره دخپلې اصلحې طرف ته ورشي اوجنګ به شروع کړي الله تعالی به دې ډلې ته دشهادت عزت ورکړي. ليکن وليد دا روايت دجبيرنه بيان کړې دې اوهغه دذي مخبرنه اوهغه دنبی عليه السلام نه. امام ابوداؤد فرمائی دا روايت روح ديحي نه اوهغه دبشرنه اوهغه داوزاعي نه په دې سند سره بيان کړې دې يعنی په کوم سند سره چه عيسی بيان کړې دې.

## بَابٌ فِي أَمَارَاتِ الْمَلَاحِمِ

### باب د جنګونو د علاماتو بيان

[٤٢٩٤](2) حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ ثَابِتِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ يَخَامِرَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ، وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ، وَخُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ فَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ، وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ خُرُوجُ الدَّجَّالِ، ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى فَخِذِ الَّذِي حَدَّثَ أَوْ مَنْكِبِهِ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ هَذَا

---

(1): انظر حديث رقم: (٢٧٦٧)، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٧) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٦١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الفتن ٥٨ (٢٢٣٩)، مسند احمد (٥/٢٣٢، ٢٤٥) (حسن)

لَحَقٌّ كَمَا أَنَّكَ هَاهُنَا أَوْكَمَا أَنَّكَ قَاعِدٌ يَعْنِي مُعَاذَبْنَ جَبَلٍ".

دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی دبیت المقدس آبادیدل دمدینې دخرابیدو باعث دې اودمدینې خرابیدل په فتنه برپاکیدل دي اوپه خلقو کښې فتنه برپاکیدل د قسطنطنیه دفتح کیدو باعث دې اودقسطنطنیه فتح کیدل ددجال دراتلو باعث دې اوبیانبی علیه السلام دمعاذبن جبل ورون یا اوږه باندې ووهله اوونې فرمائیل یقینا داخامخا داسې حق دي لکه ته چه دلته موجود ئې یاناست ئې یعنی معاذ بن جبل.

**قوله:** ﴿ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ وَخُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ فَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ خُرُوجُ الدَّجَّالِ ». ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى فَخِذِ الَّذِى حَدَّثَ أَوْ مَنْكِبِهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ هَذَا لَحَقٌّ كَمَا أَنَّكَ هَا هُنَا ﴾

رسول الله ﷺ فرمائي چه په آخر زمانه کښې به د بیت المقدس آبادیدل ګویا د یثرب خرابیدل دی، او د یثرب خرابیدل ګویا د محلمة او د جنګ ظهور دې او د ملحمه کبری فتح د قسطنطنیه فتح ده (کوم چه به امام مهدی رضي الله عنه فتح کوی) او هم دا فتح د قسطنطنیه خروج الدجال دې، یعنی په دې امور مذکوره اربعه کښې هر یو د خپل مابعد دپاره علامت دې، د بیت المقدس آبادیدل دا علامت دې د مدینې طیبې د تباه کیدو، ځکه چه عمران بیت المقدس به د نصاری د غلبې د وجې نه وی، او د یثرب د خراب او تباه کیدو نه پس به هغه جنګ اوملحمه کبری شروع شی چه د اهل شام او د روم ترمینځه به وی چه د هغې منتهی او نتیجه به فتح د قسطنطنیه وی، لهذا خروج ملحمه علامت شو د فتح قسطنطنیه دپاره، او چونکه خروج الدجال به د فتح قسطنطنیه نه پس وی لهذا د هغې فتح موندلې کیدل علامت شو د خروج الدجال دپاره، د دې مضمون بیانولو نه پس رسول الله ﷺ خپل لاس مبارک د هغه سړی په پتون یا اوږه باندې کیخودلو چاته چه رسول الله ﷺ حدیث بیانولو یعنی معاذ بن جبل رضي الله عنه، دا ئې اوفرمائیل چه کوم علامات ما بیان کړی دی دا داسې برحق او یقینی دی لکه ستا دلته موجود کیدل چه یو امر یقینی او ناقابل تردید خبره ده.

د فتح قسطنطنیه ذکر مونږ سره په کتاب الجهاد ﴿ باب فی قوله عزوجل : ولا تلقوا بایدیکم الی التهلکة ﴾ کښې تیر شوي دي.

## بَابٌ فِي تَوَاتُرِ الْمَلَاحِمِ

### باب یو بل پسې د فتنو راتلو بیان

[۴۲۹۵](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ سُفْيَانَ الْغَسَّانِيِّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ قُطَيْبٍ السَّكُونِيِّ، عَنْ أَبِي بَحْرِيَّةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَلْحَمَةُ الْكُبْرَى وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ".

دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی لوبه فتنه راتلل او د قسطنطنیه فتح کیدل او ددجال ښکاره کیدل به په شپږ میاشتو کښې دننه وي.

(1): سنن الترمذي/الفتن ٥٨ (٢٢٣٨)، سنن ابن ماجه/الفتن ٣٥ (٤٠٩٢)، (تحفة الأشراف: ١١٣٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٣٤) (ضعيف)

**قوله:** ﴿ الْمَلْحَمَةُ الْكُبْرَى وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ ﴾
په اول حديث کښې دا تير شو چه ملحمه کبری علامت دې د فتح قسطنطنيه او فتح قسطنطنيه علامت دی د خروج الدجال دپاره او په دې حديث کښې دا فرمائی چه د دې جنګ نه پس فتح راتلل او د هغې نه پس بيا خروج الدجال دا به په اووۀ مياشتو کښې دننه دننه کيږی، او د هغې نه په روستو روايت کښې دی چه دا جنګ او فتح به په شپږو کالو کښې دننه مونډلې شی او خروج الدجال به په اووم کال باندې وی،

[۴۲۹۶] (¹) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ بَحِيرٍ، عَنْ خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي بِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "بَيْنَ الْمَلْحَمَةِ وَفَتْحِ الْمَدِينَةِ سِتُّ سِنِينَ وَيَخْرُجُ الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ فِي السَّابِعَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عِيسَى.

دعبدالله بن بسر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي په مينځ دفتنې اودفتح دمدينه کښې به شپږ کاله وخت تيريږي اودجال به په اوم کال باندې را اوځي. امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت دعيسی د روايت نه زيات صحيح دې.

**(رفع تعارض بين الحديثين)**

حاصل دا چه اول حديث کښې مياشتې ذکر دی او په دويم کښې کلونه، د دې تعارض په باره کښې وړاندې راځی: قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عِيسَى.... مصنف رحمه الله روايت ثانيه لره چه په هغې کښې کلونه ذکر دی هغه روايت لره ترجيح ورکوی په اول روايت باندې يعنی د کال ذکر صحيح دې او د مياشتې وهم، خو د دې تعارض توجيه دا هم کيدې شی هغه دا چه په اول روايت کښې په کوم کښې اووۀ مياشتې ذکر دی په هغې کښې دې دا بيان کړې شی چه د جنګ اختتام ترې نه مراد دې چه د جنګ په ختميدو او د قسطنطنيه په فتح کيدو کښې به اووۀ مياشتې اولګی يعنی د شپږو مياشتو فصل به وی او په اوومه مياشت به د فتح تکميل کولې شی، او د حضرت شيخ په حاشيه کښې دی چه ملا علی قاری رحمه الله په دې دواړو احاديثو کښې جمع په يو بله طريقه کړې ده هغه دا چه د ملحمه مصداق په دې دواړو احاديثو کښې ځانله ځانله دې په اول حديث کښې د ملحمة نه مراد ملحمة الکبری ده لکه چه په هغې کښې تصريح ده، او په دويم حديث کښې د ملحمه نه بله يوه ملحمه مراد ده.

په دې حديث کښې د حوادثو او ملاحم تواتر او تسلسل ذکر دې، هم په دې وجه مصنف رحمه الله په دې باندې ترجمه هم دا قائم کړې ده. اعاذنا الله تعالی منها، والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه وقال الترمذی غريب، قاله المنذری.

---

¹: سنن ابن ماجه/الفتن ۳۵ (۵۱۹۴)، (تحفة الأشراف: ۵۱۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۹/۴) (ضعيف)

# بَاب فِي تَدَاعِي الأُمَمِ عَلَى الإِسْلَامِ

## په عالم اسلام باندې د عالمي دنيا د حملې کولو بيان

[٤٢٩٧]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو عَبْدِ السَّلَامِ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُوشِكُ الأُمَمُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا، فَقَالَ قَائِلٌ: وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيرٌ وَلَكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ وَلَيَنْزَعَنَّ اللَّهُ مِنْ صُدُورِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ وَلَيَقْذِفَنَّ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمُ الْوَهْنَ، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا الْوَهْنُ؟ قَالَ: حُبُّ الدُّنْيَا وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ".

د ثوبان رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی کيدې شي چه نور امتونه په تاسو باندې حمله وکړي لکه څنګه چه خلق دخوراک دپاره کاسې ته راځي نو په دې وخت کښې يو ويونکي ووئيل ايا زمونږ د کموالي په وجه به داسې کيږي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل نه بلکه ستاسو تعداد به په دغه ورځ زيات وي ليکن تاسو به دزګ په شان يئ لکه څنګه چه ددرياب زګ وي، ستاسو رعب اودبدبه ددشمن دزړونو نه اوباسي اوستاسو په زړونو کښې به وهن واچوي يو کس عرض وکړو اې دالله رسوله وهن څه شي وي؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل محبت کول ددنيا سره اوويره کول اوبد ګڼړل دمرګ.

**قوله**: ﴿ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يُوشِكُ الأُمَمُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا » ﴾

تداعي که د باب تفاعل نه وی نو تا به مفتوح وی کوم چه په اصل کښې ﴿ تتداعي ﴾ وو او که دا د باب مفاعله نه اومنلې شي نو تداعي په ضمې سره دې، په صيغه د مضارع واحد مونث غائب، تداعي د ملګرو يو بل لره رابلل په يو کار باندې د جمع کيدو دپاره، لکه څنګه چه دسترخوان خور شي نو يو بل رابللې شي د خوراک دپاره.

رسول الله ﷺ فرمائي چه يو داسې زمانه راروانه ده چه ټولې دشمنان اسلام فرقې به يو بل راغواړي د مسلمانانو خلاف د جنګ کولو دپاره په دې باندې يو صحابي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه هغه وخت به مسلمانان لږ وی يعنی د هغوی د قلت په وجه باندې به کفار په هغوی باندې راجمع کيږی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيرٌ وَلَكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه وخت به مسلمانان لږ نه وی بلکه ډير به وی خو د هغوی حال به داسې وی لکه چه په اوبو باندې زګ راشي چه په هغې کښې خشاک او ډکی وغيره وی، مراد ترې نه ارذال الناس دی، يعنی مسلمانان به اګر چه ډير وی خو د ايمان او اخلاقو په اعتبار سره به خراب او کمزوري او کم حيثيت والا وی، هم په دې وجه به کفار په هغوی باندې زړور شي.

**قوله**: ﴿ وَلَيَنْزِعَنَّ اللَّهُ مِنْ صُدُورِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ وَلَيَقْذِفَنَّ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمُ الْوَهْنَ ﴾ الله پاک به د مسلمانانو رعب او د هغوی هيبت د دشمنانانو د سينو نه اوباسی او د مسلمانانو په

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٠٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٨/٥) (صحيح)

زړونو کښې به وهن یعنی کمزوري واچوی، یو صحابي تپوس اوکړو چه د کمزورئ نه څه مراد دي. ﴿ قال حب الدنيا وكراهية الموت ﴾ یعنی د کمزورئ نه مراد د ایمان کمزوري چه د هغې مقصد به حب دنیا وی، په زړه کښې د دنیا او د متاع دنیا رغبت او مینه، چه د هغې اثر دا وی چه سړې د مرګ نه ویریږی،

**﴿د الله والؤ رعب﴾**

ما په یو کتاب کښې لوستلې وو چه د حضرت ګنګوهی په ژوند کښې په ګنګوه شریف کښې یو واقعه پیښه شوې وه چه د هغې د تفتیش او تحقیق دپاره لوئې حکام د کلکټر وغیره خلقوسره ملاویدل او معلومات ئې کول. د حضرت د خانقاه په دروازه باندې هم راورسیدل د کلکټر د حضرت سره خبره اوشوه، او تپوس کولو نه پس لاړو، په لاره کښې هغه دهغه خلقو نه تپوس اوکړو کوم چه دهغه سره وو، چه دا مشر سړې څوک وو؟ خلقو اووې دا د مسلمانانو غټ عالم او بزرګ دې، وې وئیل ښه هم دا خبره ده، چه زمونږ زړه دهغه نه ویریدلو، حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه د اهل الله دا رعب د حق دمعیت د وجې نه وی.

## بَابٌ فِي الْمَعْقِلِ مِنَ الْمَلَاحِمِ

### باب: دجنګ په ورځ د اهل اسلام د پړاؤ کولو بیان

معقل یعنی ملجاء او د پناه ځائې، عقل يعقل عقولا پناه اخستل، او ټکانه جوړول.[1]

[٤٢٩٨]([2])حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَرْطَاةَ، قَالَ: سَمِعْتُ جُبَيْرَ بْنَ نُفَيْرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ بِالْغُوطَةِ إِلَى جَانِبِ مَدِينَةٍ يُقَالُ لَهَا: دِمَشْقُ مِنْ خَيْرِ مَدَائِنِ الشَّامِ".

دابو الدرداء رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: ددجال سره د مسلمانانو دجنګ کولو په ورځ باندې به دمسلمانانو پړاو مقام غوطه وې کوم چه د دمشق سره نزدې دې اودمشق دشام په ملک کښې واقع دې. اودشام دبهترینو علاقونه دې.

﴿ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ بِالْغُوطَةِ إِلَى جَانِبِ مَدِينَةٍ يُقَالُ لَهَا دِمَشْقُ مِنْ خَيْرِ مَدَائِنِ الشَّامِ » ﴾ ([3])

رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیل چه د مسلمانانو خیمه او د پناه ځائې به د جنګ په ورځ په مقام غوطه کښې وی د دمشق ښهر په یو طرف کښې هغه دمشق کوم چه د شام په بهترین ښهرونو کښې دې.

---

[1]) كما في الحديث وليعقلن الدين في الحجاز الاروية من راس الجبل (ترمذي كتاب الايمان) یعنی په اخیر زمانه کښې به دین په حجاز مقدس کښې خپله استوګنه جوړه کړی لکه غریزه بیزه د غر په اوچتوالی باندې

[2]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٧/٥) (صحيح)

[3]) حدثت عن ابن وهب هكذا في الاصول والحديث رواه الحاكم من طريق احمد بن عبدالرحمن بن وهب وهو ابن اخي عبدالله بن وهب وهو ابن اخي عبدالله ابن وهب عن عمر عبدالله عن جرير به وصححه علي شرط مسلم ووافقه الذهبي فلعل محدث ابي داود هنا هو احمد هذا وانما لم يسمه ابوداود لما قيل من اختلاطه ورواية مسلم عنه كانت قبل ذلك (محمد عوامه)

په ظاهر کښې د ملحمه نه مراد هم هغه ملحمه مراد ده چه د هغې په پورته احاديثو کښې ذکر راغلې دې، چه د هغې نه پس به د قسطنطنيه فتح وی.

[۴۲۹۹] (١) قَالَ أَبُو دَاوُدَ حُدِّثْتُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحِ.

امام ابوداؤد فرمائی چه ماته د ابن وهب نه حديث بيان شوی دې هغه د جرير بن حازم رحمه الله نه روايت بيانوي او هغه د عبيدالله بن عمر نه هغه د نافع نه او هغه د ابن عمر رضي الله عنه نه، فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: نزدې ده چه په مدينه کښې مسلمانان محاصره کړې شي تردې چه د دوی لرې سرحد به سلاح مقام وي.

قوله: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ حُدِّثْتُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِى جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلاَحُ » ﴾

### شرح الحديث:

رسول الله ﷺ فرمائی چه نزدې دې هغه وخت چه مسلمانان به ګير کړې شی د مدينې طرف ته يعنی مسلمانان به بچ کيدو سره په هجرت کولو باندې مدينې طيبې ته راشی او دشمن به د هغوی محاصره کړې وی د مدينې نه ګير چاپيره، او دشمن به دومره نزدې راورسی چه هغه وخت به د مدينې طيبې بعيد تر سرحد موضع سلاح وی، يعنی د هغه ځائې پورې به دشمن راورسيږی، په وړاندې روايت کښې دی، راوی وائی چه سلاح يو ځائې دې خيبر ته نزدې، حال دا چه خپله خيبر د مدينې طيبې نه زيات لرې نه دې، نو ګويا اهل مدينه به د دشمن د حصار د وجې نه کافی تنګ وی، په بذل کښې ليکلي دی: ﴿وهذا يدل على كمال التضيق عليهم واحاطة الكفار حواليهم ﴾

دا حديث بعينه هم په دې سند سره د کتاب الفتن په آخر کښې تير شوی دې، د باب د اول حديث نه د غوطې معقل کيدل او د حديث ثانی نه د مدينې طيبې معقل کيدل ثابت شو.

[۴۳۰۰] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ عَنْ عَنْبَسَةَ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ وَسَلَاحِ قَرِيبٌ مِنْ خَيْبَرَ.

ترجمه: يونس د زهری رحمه الله نه روايت بيانوي چه فرمائيلي ئې وو سلاح خيبر ته نزدې ديو ځائې نوم دې.

## بَابُ ارْتِفَاعِ الْفِتْنَةِ فِي الْمَلَاحِمِ

### باب د جنګونو نه د فتنو پيدا کيدو بيان

د فتنې اطلاق زيات تر په هغه جنګ باندې کيږی کوم چه خپل مينځ کښې د مسلمانانو ترمينځه وی، او ملحمه هغه جنګ ته وائی چه د مسلمانانو او کفارو ترمينځه وی.

[١]: انظر حديث رقم: (۴۲۵۰)، (تحفة الأشراف: ۷۸۱۸) (صحيح)
[٢]: انظر حديث رقم: ۴۲۵۱ (صحيح)

[٤٣٠١]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ. ح وحَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ سَوَّارٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ جَابِرٍ الطَّائِيِّ، قَالَ هَارُونُ فِي حَدِيثِهِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَنْ يَجْمَعَ اللَّهُ عَلَى هَذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ سَيْفًا مِنْهَا وَسَيْفًا مِنْ عَدُوِّهَا".

دعوف بن مالک رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: الله تعالی په دې امت باندې دوه مصیبتونه په یوځائې باندې نه راولي چه په یووخت کښې په خپل مینځ کښې هم جنګ کوي اود دشمن سره هم جنګ کوي.

**قوله:** ﴿ لَنْ يَجْمَعَ اللَّهُ عَلَى هَذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ سَيْفًا مِنْهَا وَسَيْفًا مِنْ عَدُوِّهَا ﴾ د دې حدیث مضمون هم هغه دې کوم چه د ترجمة الباب دې، یعنی الله پاک به په امت محمدیه کښې په یو وخت دوه تورې نه جمع کوي چه خپل مینځ کښې دې هم جنګیږي، او هم په دې حال او وخت کښې دشمن هم په هغوی باندې حمله اوکړي بلکه دشمن سره د جنګ په وخت که په مسلمانانو کښې خپل مینځ کښې قتال کیږي نو د دشمن د جنګ په وخت به د هغې نه بند شي.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنْ تَهْيِيجِ التُّرْكِ، وَالْحَبَشَةِ

### باب: د ترکو او د حبشو سره د چیړچاړ د ممانعت بیان

[٤٣٠٢]()حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ضَمْرَةُ، عَنِ السَّيْبَانِيِّ، عَنْ أَبِي سُكَيْنَةَ رَجُلٍ مِنَ الْمُحَرَّرِينَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "دَعُوا الْحَبَشَةَ مَا وَدَعُوكُمْ، وَاتْرُكُوا التُّرْكَ مَا تَرَكُوكُمْ".

ابوسکینه دنبی علیه السلام په صحابه کرامو کښې دیوکس رضي الله عنه نه روایت کوی فرمائی رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: د ترکیانو اوحبشرسره کارمه لرئ ترڅوچه دوی ستاسو سره چیړچاړ نه وي کړي.

**قوله:** ﴿ دَعُوا الْحَبَشَةَ مَا وَدَعُوكُمْ وَاتْرُكُوا التُّرْكَ مَا تَرَكُوكُمْ ﴾ د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه اهل حبشه پریږدئ، یعنی هغوی سره قتال مه کوئ تر څو پورې ئې چه تاسو پریخودلی یئ، یعنی تاسو هغوی سره په قتال کښې مه رومبی کیږئ، او هم دغه شان دا حکم رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د ترکیانو په باره کښې ورکوی، او دا امر بالترک د اباحت او رخصت دپاره دې د وجوب دپاره نه دې بلکه په طور د مشورې دې.

### په حدیث باندې یو اشکال او د هغې جواب :

په مظاهر حق ٣٣٩/٤ کښې دی چه پریږدئ تاسو حبشیانو لره تر څو چه تاسو هغوی پریخودلی یئ، او پریږدئ تاسو ترکیان ترڅو چه ئې تاسو پریخودلی یئ، وړاندې په دې کښې دی.

**فائده** : که چرته په قرآن کریم کښې حکم دې ﴿ قاتلوا المشرکین کافة ﴾ علی العموم ئې فرمائیلي

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٦) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الجهاد ٤٢ (٣١٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٩) (حسن)

دی چه د مشرکانو سره قتال کوئ چرته چه هم وی. نو رسول اللهﷺ داسې ولې اوفرمائیل چه دوی پریږدئ؟

**جواب** د دې دا دې چه حبشه او ترک د دې آیت د عموم نه خارج دی ځکه چه ښهرونه د هغوی بعید دی، د هغوی په ښهرونو کښې او د اسلام په ښهرونو کښې دشت او بیابانونه ډیر دی، ترڅو چه هغوی تعرض نه وی کړې او د اسلام په ښهرونو باندې نه وی راغلې تعرض د هغوی نه کول پکار دی خو که هغوی سبقت اوکړی او د اسلام ښهرونو ته په قهر او غلبې سره راشي نو بیا به هغوی سره قتال فرض وی، یا دا اوایئ چه آیت کریمه ناسخ د دې حدیث دې او حکم د دې حدیث په شروع د اسلام کښې وو په سبب د ضعف د اسلام، او کله چه اسلام قوی شو نو حکم عام شو. والحدیث اخرجه النسائی،اتم منه، قاله المنذری.

دا حدیث د یو اوږد حدیث آخری ټکړه ده، چه د هغې نه معلومیږی چه دا حدیث رسول اللهﷺ د خندق د کنستلو په موقع فرمائیلې وو، اصل حدیث دې په دې کښې اوکتلې شی، کتاب الجهاد باب غزوة الترک والحبشة، کښې.

## بَابٌ فِي قِتَالِ التُّرْكِ

### باب د ترکیانو سره د جنګ کولو بیان

ترک د نوحعلیه السلام د ځوی یافث په اولاد کښې دی، او حبشه په اولاد د حام کښې دی او عرب په اولاد د سام کښې.....

[٤٣٠٣](1)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي الْإِسْكَنْدَرَانِيَّ، عَنْ سُهَيْلٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُقَاتِلَ الْمُسْلِمُونَ التُّرْكَ قَوْمًا وُجُوهُهُمْ كَالْمَجَانِّ الْمُطْرَقَةِ يَلْبَسُونَ الشَّعْرَ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول اللهﷺ فرمائیلي دي: قیامت دهغه وخته پورې نه قائمیږي ترڅوچه مسلمانانو دترې کافرانوسره جنګ نه وي کړي ددوی مخونه دډالونو په شان دي اودوری نه جوړ شوي لباس به استعمالوي.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يُقَاتِلَ الْمُسْلِمُونَ التُّرْكَ قَوْمًا وُجُوهُهُمْ كَالْمَجَانِّ الْمُطْرَقَةِ يَلْبَسُونَ الشَّعْرَ »﴾ او په بل روایت کښې دی. ﴿ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ و تُقَاتِلُوا قَوْمًا صِغَارَ الأَعْيُنِ ذُلْفَ الآنُوفِ ﴾

[٤٣٠٤](2)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَابْنُ السَّرْحِ وَغَيْرُهُمَا، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ، وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا قَوْمًا صِغَارَ الْأَعْيُنِ ذُلْفَ الْأَنْفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ".

---

[1]: صحيح مسلم/الفتن ١٨ (٢٩١٢)، سنن النسائي/الجهاد ٤٢ (٣١٧٩)، سنن ابن ماجه/الفتن ٣٦ (٤٠٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٧٦٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ٩٥ (٢٩٢٨)، ٩٦ (٢٩٢٩)، المناقب ٢٥ (٣٥٩٠)، مسند أحمد (٢/٢٣٩، ٢٧١، ٣٠٠، ٣١٩، ٣٣٨، ٤٧٥، ٤٩٣، ٥٣٠) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/ الجهاد ٩٦ (٢٩٢٩)، صحيح مسلم/الإمارة ١٢ (٢٩١٢)، سنن الترمذي/ الفتن ٤٠ (٢٢١٥)، سنن ابن ماجه/الفتن ٣٦ (٤٠٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٣١٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٩) (صحيح)

دابوهریره ﷺ نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: قیامت دهغه وخته پورې نه قائمیږي ترڅوچه تاسودداسې قوم سره جنګیدلي نه يئ دچاچه پیزار دګرودورئ نه جوړدي او قیامت به دهغه وخته پورې نه قائمیږي ترڅوچه تاسودداسې قوم سره جنګیدلي نه يئ څوک چه وړو وړوسترګو والادي اوپیت پوزي دي او مخونه ئې دډالونوپه شان دي.

د کوم قتال د ترک نه چه په اول حدیث کښ منع کړې شوې ده، په دې حدیث کښ هغوی سره د وقوع قتال پیشنګوئی ده چه د قیامت راتلو نه مخکښ به د مسلمانانو ته ترکو سره د جنګ کولو یقینا حاجت راځی، او په دې کښ د هغه خلقو نقشه او د هغوی شکل او صورت هم بیان شوې دې د هغوی مخونه به د هغه ډهال په شان وی چه پیړ او ډبل وی. دا تشبیه په تدویر او څرب کیدو کښ ده یعنی د هغوی مخونه به په ګول کیدو کښ د ډهال په شان وی او ډهال هم هغه چه ډبل وی. دا د هغوی د مخونو د غتیدو طرف ته اشاره ده، ﴿ یلبسون الشعر ﴾ یعنی د وړئ نه جوړې جامې به اغوندی د خپل ملک د یخیدو د وجې نه او ﴿ نعالهم الشعر ﴾ یعنی د هغوی څپلئ به هم د د ویښتو والا وی او ﴿صغار الاعین ﴾ سترګې به ئې وړې وی ﴿ ذلف الانوف ﴾ د ملاستو پوزو والا، ذلف جمع د اذلف ده چه اخستلې شوې دې د ذلف نه یعنی د پوزې د وړیدو سره سره د هغې خوریدل، صغر الانف واستواء الارنبة...

## (د تُرک نه مراد تاتار دی)

د دې ترک نه مراد هغه دی چاته چه تاتار وائی او کوم چه په صحرائی ګوبی او د هغې د شمال په علاقو قازاخستان وغیره کښ اوسیږی ځکه چه کوم صفتونه په حدیث کښ بیان کړې شوې دی هغه هم په هغوی باندې صادق راځی، او کوم چه په ترکی کښ اوسیدونکی دی د هغوی صورت دا نه دې هغوی خو ډیر ښکلې شکل والا دی.

امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښ فرمائی چه دا ټول د رسول الله ﷺ معجزات دی، هغوی فرمائی چه زمونږ په دې زمانه کښ هم د ترکیانو سره قتال شروع دې کوم چه هم د دې صفاتو والا دی کوم چه رسول الله ﷺ په حدیث کښ ذکر فرمائیلې دی یعنی صغار الاعین او ذلف الانوف وغیره، او د دې نه مخکښ هم مسلمانانو د دوی سره قتال کړې دې، مونږ د الله پاک نه د مسلمانانو په حق کښ د حسن انجام دعاء کوو. اهـ (بذل) امام نووی رحمه الله د اوومې صدئ دې د هغوی وفات ۶۷۶ء کښ دې.

الحدیث الاول اخرجه مسلم والنسائی، والحدیث الثانی اخرجه البخاری ومسلم، والترمذی وابن ماجه، قاله النووی.

[٤٣٠٥]()حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا بَشِيرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَدِيثٍ، يُقَاتِلُكُمْ قَوْمٌ صِغَارُ الْأَعْيُنِ يَعْنِي التُّرْكَ، قَالَ: "تَسُوقُونَهُمْ ثَلَاثَ مِرَارٍ حَتَّى تُلْحِقُوهُمْ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ فَأَمَّا فِي السِّيَاقَةِ الْأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ، وَأَمَّا فِي الثَّانِيَةِ فَيَنْجُو بَعْضٌ وَيَهْلِكُ بَعْضٌ، وَأَمَّا فِي الثَّالِثَةِ فَيُصْطَلَمُونَ أَوْ كَمَا قَالَ".

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٨/٥) (ضعيف)

دعبدالله بن بریده رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ په هغه حدیث کښې فرمائيلي دي په کوم کښې چه داجمله ده چه ستاسو سره به وړو وړو سترګو والا جنګ کوي، یعنی ترکیان اوبیائي اوفرمائیل چه تاسو به دوی لره درې پیرې په شاه وتمبوئ تردې چه دجزیرة العرب کنارې ته به ئې اورسوئ نو په اولنی مرحله کښې چه څوک ددوی نه وتختي نودي به نجات بیاموي اوپه دویمه مرحله کښې به بعضې خلق بچ شي او بعضې به هلاک شي او په دریمه مرحله کښې به د تماموخلقوجرړې وویستلې شي.

**قوله:** ﴿قَالَ « تَسُوقُونَهُمْ ثَلاَثَ مِرَارٍ حَتَّى تُلْحِقُوهُمْ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ فَأَمَّا فِى السِّيَاقَةِ الأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ وَأَمَّا فِى الثَّانِيَةِ فَيَنْجُو بَعْضٌ وَيَهْلِكُ بَعْضٌ وَأَمَّا فِى الثَّالِثَةِ فَيُصْطَلَمُونَ ». الخ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو به راکاږئ دوی لره درې کرته، په مظاهر حق کښې دي : راکاږئ به تاسو دوی درې کرته یعنی یعنی هغوی به مغلوب او مقهور شی او ستاسو په تختولو سره به په تیخته شی تردې چه تاسو به ئې راورسوئ جزیره عرب ته اهـ پس بهر حال په اول ځل راښکلو سره یعنی اول حمله کښې چه کوم خلق د ترکیانو نه اوتختی هغوی به خلاصې بیا مومی، اوبهرحال په دویمه حمله کښې به بعض ترکیان هلاک شی، اوبعض به نجات بیا مومی، او بهر حال په دریمه حمله کښې به د هغوی استیصال اوکړې شی، په مظاهر حق کښې دی او هم په دې باندې (بهرحال) په دریم ځل راښکلو باندې به پرې کړې شی او د جرړې نه به ختم شی.

**د حدیث الباب او د مسند احمد په روایت کښې تخالف :**

**تنبیه :** حضرت په بذل کښې صاحب د عون المعبود نه نقل کړې دی چه د ابوداؤد په دې حدیث کښې او د مسند احمد په حدیث کښې تخالف دې ښکاره، ځکه چه د مسند احمد د روایت سیاق هغه په دې باندې دلالت کوی چه راښکونکی به ترک وی، مسلمانان چه کوم هغوی لره درې کرته راکاږی تردې چه هغوی به د جزیره عرب سره لاحق کړی، او امام قرطبی رحمه الله د مسند احمد د حدیث په باره کښې فرمائی اسناده صحیح..... صاحب د عون فرمائی چه زما په نزد د مسند احمد روایت صحیح دې او د ابوداؤد روایت په ظاهر کښې وهم دې، د یو راوی نه په دې کښې وهم واقع شوې دې.

**تعریف د صاحب البذل رحمه الله په باره د عون المعبود کښې :**

د دې نه پس صاحب د عون د مسند احمد د روایت مضمون لره په مختلفو وجوه سره موید کړې دې : منها وقوع قصه فتنة التتار علی حسب ما وقع فی حدیث احمد مفصلا : فجزاه الله تعالی خیر الجزاء وهذا عندی کما قال، والله تعالی اعلم ومن شاء التفصیل فلینظر عون المعبود اهـ [1] دا د حضرت سهارنپوری حق پرستی او انصاف خوښول دی والحق احق ان یتبع..... ګینې زمونږ حضرت د صاحب عون نه الله پاک دې په هغوی رحم اوکړی خفه شان وو د هغوی د ژبې د اوږدوالي او د ائمه احناف سره د ګستاخانه معاملې د وجې نه، الله پاک دې مونږ ته هم خپلو اکابرینو په نقش قدم باندې د تلو توفیق راکړی.

[1] د ابوداؤد د دې روایت په آخر کښې دی : او کما قال په دې باندې صاحب د عون المعبود لیکلي دی : وهذا یدل علی ان الراوي لم یضبط لفظ الحدیث ولذا رجحت روایة احمد اهـ

# بَابٌ فِي ذِكْرِ الْبَصْرَةِ

## باب د بصرې د ښار بیان

[۴۳۰۶] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ جُمْهَانَ، حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَنْزِلُ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي بِغَائِطٍ يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ عِنْدَ نَهْرٍ يُقَالُ لَهُ: دِجْلَةُ يَكُونُ عَلَيْهِ جِسْرٌ يَكْثُرُ أَهْلُهَا وَتَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُهَاجِرِينَ"، قَالَ ابْنُ يَحْيَى: قَالَ أَبُو مَعْمَرٍ: وَتَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ فَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ جَاءَ بَنُو قَنْطُورَاءَ عِرَاضُ الْوُجُوهِ صِغَارُ الْأَعْيُنِ حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى شَطِّ النَّهْرِ، فَيَتَفَرَّقُ أَهْلُهَا ثَلَاثَ فِرَقٍ فِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَالْبَرِّيَّةِ وَهَلَكُوا، وَفِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ لِأَنْفُسِهِمْ وَكَفَرُوا، وَفِرْقَةٌ يَجْعَلُونَ ذَرَارِيَّهُمْ خَلْفَ ظُهُورِهِمْ وَيُقَاتِلُونَهُمْ وَهُمُ الشُّهَدَاءُ.

مسلم بن ابی بکره دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی زمادامت څه کسان به جوړي زمکي ته لاړ شي کوي ته چه بصره وئیلې شي اوديوداسې درياب خواته به ورشي کوم چه په دجله باندې يادېږي او په دې باندې به پوپل وي اوددې آبادي به زياته وي ، ابن يحي وائی ابومعمر وئيلی دی چه دغه ابادي به دمسلمانانو دعلاقتي دښارونو وي اوکله چه آخره زمانه شي نوهلته به د ترکیانو دنیکه قنطورا اولاد راشي کوم چه به د پلنومخونو او وړو سترګو والا وي تردې پورې چه دغه خلق به ددې نهر غاړې ته راورسيږي اوددې ځائې خلق به جداجداشي اودرې ډلې به شي په دوی کښې به يوې ډلې دغوا لکۍ نیولي وي اودمیدان نه به وتښتي او هلاک به شي اوبله ډله به د خپل ځان دبچ کولو دپاره کافره شي اوددغه خلقونه به يوه بله ډله دخپل ځان نه شاته خپل اولاد پريږدی اوجنګ به کوي اودغه دشهيدانوډله ده.

﴿ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « يَنْزِلُ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي بِغَائِطٍ يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ عِنْدَ نَهْرٍ يُقَالُ لَهُ دِجْلَةُ يَكُونُ عَلَيْهِ جِسْرٌ يَكْثُرُ أَهْلُهَا وَتَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُهَاجِرِينَ وَتَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ فَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ جَاءَ بَنُو قَنْطُورَاءَ عِرَاضُ الْوُجُوهِ صِغَارُ الأَعْيُنِ حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى شَطِّ النَّهْرِ ﴾

### شرح الحديث الطويل :

د دې باب په اول حدیث کښې د بغداد او په دويم حديث کښې د بصرې حال ذکر شوې دې، په اول حديث کښې په بغداد کښې په شروع کښې د مسلمانانو د آباديدلو او د هغوی د کثرت، اوپه آخر زمانه کښې دهغې دتباهۍ او بربادۍ ذکر دې، دحديث ترجمه دا ده سيدنا ابوبکره ﷺ فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل هغوی اوفرمائيل چه زما د امت څه خلق به يوې ښکته زمکې ته کوز شي چه د هغې نوم به بصره وي د يو نهر په غاړه چه هغې ته دجله وائي (دجله چونکه په بغداد کښې ده نه په بصره کښې لهذا په دې حديث کښې به دا وئيلې شي چه د بصرې نه مراد معروف بصره نه ده بلکه باب بصره چه په بغداد کښې ده) په

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۴۰، ۴۵) (حسن)

دې نهر باندې به يو پل وي، د دې ښهر آبادي به ډيره زياته وي، يعني مسلمانان، او هغه ښهر به د مهاجرينو د ښهرونو نه وي، او دويم راوي اووې چه د مسلمانانو د ښهرونو نه به وي، وړاندې چه به په هغوي باندې به انقلاب راشي د هغې ذکر دې او دا پوره حديث د پيشن ګويئ او د اخبار بالغيب د قبيل نه دې) چه کله روستو زمانه راشي نو په دې باندې به بنو قنطنوراء راشي يعني تاتار د مقابلې دپاره د پلنو مخونو او وړو سترګو والا تردې چه هغوي به کوز شي او پړاؤ به واچوي د نهر دجله په غاړه باندې.

**قوله:** ﴿ فَيَتَفَرَّقُ أَهْلُهَا ثَلَاثَ فِرَقٍ فِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَالْبَرِّيَّةِ وَهَلَكُوا وَفِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ لِأَنْفُسِهِمْ وَكَفَرُوا وَفِرْقَةٌ يَجْعَلُونَ ذَرَارِيَّهُمْ خَلْفَ ظُهُورِهِمْ وَيُقَاتِلُونَهُمْ وَهُمُ الشُّهَدَاءُ ﴾

يعني کله چه بني قنطوراء د مقابلې دپاره راشي نو د دې ښهر مسلمانان به په درې فرقو کښې تقسيم شي، يو جماعت خو به داسې وي چه د غويانو په لکو پسې به شي او ځنګل ته به لاړ شي، يعني د جهاد او مقابلې نه بچ کيدو سره به زميندارو کښې مشغول شي او هلاک به شي، يعني په خپل مقصد کښې به کامياب نه شي، او يوه ډله د چا په تقدير کښې چه الله پاک ليکلې دى هغوي به واخلي يعني کفر او ارتداد لره، والعياذ بالله تعالى.... او يوه ډله به هغه وي کوم چه به خپلو زنانو لره په کورونو کښې پريخودلو سره هغوي سره (بنو قنطوراء) سره قتال کوي او هم دا خلق به شهيدان وي.

په مظاهر حق کښې دى : بنو قنطورا يعني ترک دا نوم دې د هغوي د نيکه، چه ټول ترک د هغه د اولاد نه دى او په هغې کښې دا هم دى : په دې قضيه کښې کومه چه په حديث کښې ښکاره ذکر ده نوم د بصرې دې، او علماء کرامو وئيلې دى چه مراد د دې نه بغداد دې په دې دليل سره چه دجله او پل په بغداد کښې دى، نه په بصره کښې، او د بغداد ښهر د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په دې هيئت باندې چه اوس دې نه وو بلکه کلې وو، متعدد و متفرق د مضافاتو د بصرې نه او منسوب دهغې طرف ته، او رسول الله ﷺ د هغې نه د معجزې په طور خبر ورکړو د هغې د جوړيدو په دې وجه ئې اوفرمائيل په لفظ د استقبال سره، چه وى به هغه ډير لوئې ښهر د مسلمانانو په ښهرونو کښې، او ډير به وى د هغې اوسيدونکى، او دا هم ده چه چترک بصرې د جنګ او قتل دپاره په دې مخصوص کيفيت سره چه ذکر شو نه دې راغلى او اهل تواريخ هغه نه دى نقل کړې، خو بغداد ته به يقينى راغلى دى لکه چه معروف او مشهور دى.

[۴۳۰۷] (¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا مُوسَى الْحَنَّاطُ، لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا ذَكَرَهُ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: "يَا أَنَسُ إِنَّ النَّاسَ يُمَصِّرُونَ أَمْصَارًا وَإِنَّ مِصْرًا مِنْهَا يُقَالُ لَهُ: الْبَصْرَةُ أَوِ الْبُصَيْرَةُ فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا أَوْ دَخَلْتَهَا فَإِيَّاكَ وَسِبَاخَهَا وَكِلَاءَهَا وَسُوقَهَا وَبَابَ أُمَرَائِهَا وَعَلَيْكَ بِضَوَاحِيهَا فَإِنَّهُ يَكُونُ بِهَا خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَرَجْفٌ وَقَوْمٌ يَبِيتُونَ يُصْبِحُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى اې انس خلق به

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦١٦) (صحيح)

ښارونه جوړوي اوهم ددې ښارونونه يوښار کوم ته چه بصره وئيلې شي پس که چرې ته ددې ښارته تير شي يا دې ښارته لاړ شي نوددې ښاردښوره زمکې نه اودکلاء مقام نه اوددې دبازارنه اوددې ښار ددولت مندوخلقود دروازونه اوته ددې ښار روښانه ځايونه اختيارکړه ځکه چه په دې ښارکښې دننه په ځمکه کښې دښخيدلو او د کاڼو وريدل او دزلزلې غذاب به وي، اويوقوم به شپه تيره کړي يعنی په صحيح حالت کښې به اوده شي مگرسحر به هغوی خنزيران اوشادوگان شوي وي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لَهُ « يَا أَنَسُ إِنَّ النَّاسَ يُمَصِّرُونَ أَمْصَارًا وَإِنَّ مِصْرًا مِنْهَا يُقَالُ لَهُ الْبَصْرَةُ أَوِ الْبُصَيْرَةُ فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا أَوْ دَخَلْتَهَا فَإِيَّاكَ وَسِبَاخَهَا وَكِلاَءَهَا وَسُوقَهَا وَبَابَ أُمَرَائِهَا وَعَلَيْكَ بِضَوَاحِيهَا فَإِنَّهُ يَكُونُ بِهَا خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَرَجْفٌ وَقَوْمٌ يَبِيتُونَ يُصْبِحُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ » ﴾

انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه يو ځل رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه خلق به ډير ښهرونه جوړ کړی او په هغې کښ به يو ښهر داسې وی چه هغې ته بصره وئيلې شی پس که ته په هغې باندې ورتير شې نو ځان بچ کوه د هغه زمکې د شور نه او د هغې د مقام کلاء نه. کلاء په تشديد او تخفيف دواړو طريقو سره منقول دې يعنی کلاء په وزن د کتان، او کلاء په وزن د کتاب، کلاء گودی (بندرگاه) ته وئيلې شی او په بصره کښ د يو ځائې نوم هم دې. او ځان بچ کړه د هغې د بازار نه او د هغه ځائې د اميرانو د دروازې نه، ضواحی د ضاحية جمع ده، د ښهر نه بهر د هغې فراخه حصه، او ليکلې ئې دی چه په بصره کښ د يو خاص ځائې نوم هم دې په مظاهر حق کښ دی ﴿ وعليک بضواحيها ﴾ او لازم اونيسئ د هغې غاړو لره چه نوم د هغې ضواحی دې، ضواحی جمع د ضاحية ده په معنی د غاړې د زمکې چه ښکاره او فراخه وی د نمر دپاره او ضاحية البصرة نوم د يو ځائې دې په هغې کښ او بعضو وئيلې دی چه مراد د دې نه د هغه ځائې غرونه دی او امر دې په گوټ کښ د کيناستلو. (وړاندې رسول الله ﷺ د دې مواضع مذکوره نه د بچ کيدو وجه دا بيان فرمائيلې ده چه) هلته به خسف او قذف يعنی د اسمان نه د کاڼو وريدل، او رجف يعنی زلزلې واقع کيږی او مسخ هم، خلق به شپه تيروی او صبا کوی به په داسې حال کښ چه د بيزوگانو او خنزيرانو په شکل کښ به وی يعنی ځوانان به ئې بيزوگان شی او بوډاکان به ئې خنزيران، په دې حديث کښ د مغروفې بصرې ذکر دې چه مسلمانان به دې لره جوړوی او آبادوی به ئې، بصر ښهر چه کوم ځائې کښ آباد دې هغه حضرت عتبه به غزوان په خلافت فاروقی کښ فتح کولو سره ښهر جوړ کړې وو د هغې د فتح کولو ذکر د شمائل ترمذی په يو روايت کښ ضمنا راغلې دې [1] په دې حديث کښ د خسف او مسخ ذکر دې چونکه د نورو احاديثو نه معلوميږی چه خسف او مسخ به په قدريه کښ وی چه د هغې نه گڼرلې شی چه دلته به په بصره کښ هغه وخت قدريه وی، په مظاهر حق کښ دی چه په دې ځايونو کښ به خسف

[1] په آخر د شمائل کښ باب ما جاء فی عيش النبی ﷺ کښ په روايت د خالد بن عمير وشويس ابوالرقاد د دې رواية مضمون په خصائل نبوی کښ کتلې شی.

وغیره کیدې شي چه وی، په سبب د خباثت د هغوی او په بازارونو کښې به وی په سبب د غفلت یا د وجې د کثرت لغو نه یا فساد د عقود او د بادشاهانو وغیره په دروازو باندې په سبب د کثرت ظلم.

[۴۳۰۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ صَالِحِ بْنِ دِرْهَمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، يَقُولُ: انْطَلَقْنَا حَاجِّينَ فَإِذَا رَجُلٌ فَقَالَ لَنَا: إِلَى جَنْبِكُمْ قَرْيَةٌ يُقَالُ لَهَا الْأُبُلَّةُ؟ قُلْنَا: نَعَمْ، قَالَ: مَنْ يَضْمَنُ لِي مِنْكُمْ أَنْ يُصَلِّيَ لِي فِي مَسْجِدِ الْعَشَّارِ رَكْعَتَيْنِ أَوْ أَرْبَعًا وَيَقُولَ: هَذِهِ لِأَبِي هُرَيْرَةَ، سَمِعْتُ خَلِيلِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ مِنْ مَسْجِدِ الْعَشَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُهَدَاءَ لَا يَقُومُ مَعَ شُهَدَاءِ بَدْرٍ غَيْرُهُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْمَسْجِدُ مِمَّا يَلِي النَّهَرَ.

دصالح بن درهم رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ دحج په نیت باندې روان شوې وونو هلته زمونږ سره اچانک یوکس ملاو شو اومونږ ته ئې ووئیل چه ستاسو طرف ته یوکلي دې ابله ورته وئیلې شي مونږ ورته ووئیل هونوده ووئیل چه په تاسو کښې به ماته څوک ددې خبرې ذمه واري وکړي چه هغه زما دپاره په مسجد عشار کښې دوه یا څلور رکعته مونځ وکړي اوداسې اووائی چه ددې ثواب دابوهریره رضی الله عنه دپاره دې ځکه چه مادخپل دوست محمد صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه فرمائیل ئې یقینا دقیامت په ورځ به الله تعالی دمسجد عشارنه خپل شهیدان راپورته کړي په داسې حال کښې چه ددوی نه به علاوه دبدرشهیدانو سره به هیڅ څوک راپوته نکړې شي. امام ابوداؤد فرمائی چه دا مسجد نهرته نژدې دې.

**مضمون الحدیث او د عبادت بدنیه د وصول ثواب دلیل:**

**قوله:** ﴿قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ انْطَلَقْنَا حَاجِّينَ فَإِذَا رَجُلٌ فَقَالَ لَنَا إِلَى جَنْبِكُمْ قَرْيَةٌ يُقَالُ لَهَا الْأُبُلَّةُ قُلْنَا نَعَمْ. ....الخ﴾

د دې حدیث ترجمه مونږ د مظاهر حق نه کوو په هغې کښې دی : او روایت دې د صالح بن دینار تابعی نه هغوی فرمائی چه مونږ د حج کولو دپاره د بصرې نه مکې معظمې ته لاړو پس ناګهانه هلته یو سړې ولاړ وو یعنی سیدنا ابوهریره رضی الله عنه، پس هغوی مونږ ته اووې چه آیا ستاسو د ښهر په طرف کښې یو کلې شته چه هغې ته ابله (د همزه او باء په پیش او په تشدید د لام سره دا د یوې قریې نوم دې چه مشهوره ده او بصرې ته نژې ده) مونږ اووې او شته، هغوی اوفرمائیل په تاسو کښې څوک متکفل کیږی زما دپاره چه زما دپاره مونځ اوکړی یعنی زما نیت پکښې اوکړی (مسجد عشار) کښې دوه رکعته یا څلور رکعته او دا اوائی چه د دې مونځ ثواب زه بخښم ابوهریره رضی الله عنه ته (عشار نوم دې د مسجد چه په آبله کښې دی په هغې کښې د برکت د حصول دپاره مونځ کولې شی) واوریدل ما د خپل حبیب نه چه ابوالقاسم صلی الله علیه وسلم دې چه یقینا الله پاک به اوچت کړی د مسجد عشار نه د قیامت په ورځ شهید، نه به پاسی یعنی د قبرونو نه یا په مرتبه کښې د بدر د شهیدانو سره نه غیر د دوی نه، او دا لوئې تعریف دې ددې جماعت چه د بدر د شهیدانو برابر دی، او دا نه ده معلومه چه هغوی به د دې امت په شهیدانو کښې وی یا که د نورو امتونو د شهیدانو نه به وی، پس

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۰۱) (ضعيف)

چه هر کله دا مسجد داسې فضیلت او شرف لري نو په هغې کښې مونځ ادا کول فضیلت عظیم او ثواب عظیم لري.

**په مقام مقدس کښې د مونځ وغیره عباداتو فضیلت :**

او د دې نه معلومیږي چه مونځ ادا کول په مقدس مقاماتو کښې او په هغې کښې دیني عبادت کول لوئې فضیلت لري او بخښل چاته د عبادت بدني که هغه ژوندي ته وي او که مړ ته جائز دي او رسیږي او اکثر علماء په دې باندې دي، او د عبادت مالیه بخښل په اتفاق سره جائز دي. اهـ

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا الْمَسْجِدُ مِمَّا يَلِي النَّهْرَ ﴾ مصنف رحمه الله فرمائي چه دا مسجد العشار د نهر فرات کوم چه بصرهٔ کښې دې متصل واقع دې.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ تَهْيِيجِ الْحَبَشَةِ

### بابه د حبشیانو بیان

[۴۳۰۹] (۱) حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ أَحْمَدَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، عَنْ زُهَيْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ مَا تَرَكُوكُمْ فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ إِلَّا ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبي ﷺ فرمائیلي دي په حبشیانو باندې تعارض مه کوئ ترڅوچه دوی ستاسو سره جنګ نه وي کړي ځکه چه دبیت الله شریف خزانې ددې حبشیانو نه علاوه بل څوک نشي ویستلي کوم چه دوړوپندړ والاوي.

﴿ اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ مَا تَرَكُوكُمْ فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ إِلَّا ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ ﴾

**شرح الحديث :**

عبدالله بن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوي چه هغوی اوفرمائیل چه تاسو حبشیان پریږدئ او هغوی سره کار مه ساتئ ترڅو چه تاسو سره کار نه ساتي او تعرض نه کوي تاسو سره ځکه په تحقیق سره شان دا دې چه نه به اوباسي د کعبې خزانه مګر یو سړې صاحب د دوه نرو پنډو والا، چه دحبشو نه به وي، دغه امیر به د حبشې وي، یا ددې نه مراد د حبش لښکر دې، او سویقه تصغیر دې د ساق، ددې معنی ده پنډئ، او پنډئ د حبشو اکثر نرئ او باریک وي.

**(د کعبې د خزانې نه مراد)**

او مراد د ګنج (خزانې) نه هغه ګنج دې کوم چه د کعبې نه لاندې ښخ دې، بعضو وئیلې دي چه مخلوق دې په هغې کښې، او بعضو وئیلې دي چه د دې نه مراد هغه مال دې کوم چه د نذرانې په طور راځي خادم ئې هلته جمع کوي.

**(حرم خو د امن ځائې دې نودا واقعه څنګه راپیښیدې شي؟)**

او په حدیث کښې چه دا راځي چه خرابوي به کعبې لره ذوالسویقتین دا د الله پاک د قول سره

---

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸۶۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷۱/۵) (حسن)

معارض نه دي چه ﴿ حرما امنا ﴾ ځکه چه دا به قيامت ته نزدې وی هغه وخت چه پاتې به نه شی هيڅوک الله الله وئيلو والا، او ظاهره دا ده چه الله پاک دا حرم بامن شميرلې دې په اعتبار د غالب احوالو لکه چه دلالت کوی په دې باندې قضيه د ابن الزبير ﷺ...... او د قرامطه او ددې په شان، يا مردا د حرام د بامن ګرځولو نه دا دې چه الله پاک حکم فرمائيلې دې چه هغوی دې په امن باندې ساتی خلقو لره او تعرض دې نه کوی د چا سره په دې کښې پس منقول دی چه رئيس د زنادقه يعنی د قرامطه نه په داسې حال کښې چه کله هغه فساد اوکړو په قتل کولو د خلقو او په خرابولو د ښهرونو (يعنی چه د قتل او فساد کولو نه فارغ شو نو هغه اووې) چه چرته دې د الله پاک کلام چه ﴿ من دخله کان امنا ﴾ پس بعض اهل توفيق ورته اووې چه د دې معنی دا ده چه امن ورکړئ په دې کښې هغه چاته چه داخل شی دې ته د قتل او لوټ دپاره او د هغه سره تعرض مه کوئ.

## باب أمارات الساعة

### بابه د قيامت د علاماتو بيان

امارات جمع د امارة ده په فتح د همزې سره لکه علامة لفظا او معنا او امارة په کسرې د همزې سره يعنی امامت لفظا او معنا.

[۴۳۱۰]() حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، قَالَ: جَاءَ نَفَرٌ إِلَى مَرْوَانَ بِالْمَدِينَةِ فَسَمِعُوهُ يُحَدِّثُ، فِي الْآيَاتِ أَنَّ أَوَّلَهَا الدَّجَّالُ قَالَ فَانْصَرَفْتُ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو فَحَدَّثْتُهُ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: لَمْ يَقُلْ شَيْئًا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ أَوَّلَ الْآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا أَوِ الدَّابَّةُ عَلَى النَّاسِ ضُحًى فَأَيَّتُهُمَا كَانَتْ قَبْلَ صَاحِبَتِهَا فَالْأُخْرَى عَلَى أَثَرِهَا"، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: وَكَانَ يَقْرَأُ الْكُتُبَ وَأَظُنُّ أَوَّلَهُمَا خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا.

دابوزرعه نه روايت دې فرمائی چه په مدينه کښې مروان ته يوڅو کسان راغلل هغوی دمروان يوحديث واوريدر کوم چه هغه بيانولو چه دقيامت دټولونه مخکښې مخه د دجال راوتل دي ماچه دا واوريدل نوعبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ ته لارم او ماورته ددې خبرې بيان وکړو عبدالله اووئيل هيڅ ئې نه دي وئيلي مادنبی ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې يقينا اوله علامه دقيامت په ښکاره کيدوکښې دمغرب دطرف نه دنمر راختل دي يا دخلقو په نمر کښې دودريدو په وخت کښې د دابة الارض راوتل دي په دې دواړوکښې چه هر يوشي مخکښې شي نوبل به ورپسې ډير نزدې وي اوعبدالله به تورات او انجيل لوستلو هغه أووئيل زماخيال دې چه دقيامت دراتلو دټولونه مخکښې نخه دمغرب دطرف نه دنمر راختل دي.

**قوله:** ﴿ جَاءَ نَفَرٌ إِلَى مَرْوَانَ بِالْمَدِينَةِ فَسَمِعُوهُ يُحَدِّثُ فِي الْآيَاتِ أَنَّ أَوَّلَهَا الدَّجَّالُ قَالَ فَانْصَرَفْتُ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ لَمْ يَقُلْ شَيْئًا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِنَّ أَوَّلَ الْآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا أَوِ الدَّابَّةُ عَلَى النَّاسِ ضُحًى فَأَيَّتُهُمَا كَانَتْ

[1]: صحيح مسلم/الفتن ۲۳ (۲۹۴۱)، سنن ابن ماجه/الفتن ۳۲ (۴۰۶۹)، (تحفة الأشراف: ۸۹۵۹)، وقد أخرجه: مسند أحمد (۱۶۴/۲، ۲۰۱) (صحيح)

قَبْلَ صَاحِبَتِهَا فَالأُخْرَى عَلَى أَثَرِهَا ». قَالَ عَبْدُ اللهِ ....الخ﴾

**مضمون الحديث :**

ابوزرعه فرمائی چه څه خلق مدينې طيبې ته د مروان خوا له راغلل نو هغوی د هغه نه واوريدل چه هغه د علامات قيامت په باره کښې بيانول چه په هغه علاماتو کښې اول علامت خروج الدجال دې، ابوزرعه فرمائی چه د دې نه روستو زه عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما ته لاړم ما هغوی ته د دې ذکر اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه مروان چه څۀ اووې هغه هيڅ هم نه دی، يعنی غير معتبر دی، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی چه اولنۍ علامه راختل د نمر دی د مغرب نه يا خروج الدابة چه د چاشت په وخت باندې به وی او په دواړو کښې چه کوم يو علامت هم اول اوموندلې شی دويم به د هغې نه روستو وی.

سيدنا عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما خپله رائې بيانوی چه زما دا ګمان دې چه اول به طلوعُ الشمس من المغرب وی د دې نه پس به خروج الدابه وی، ﴿ وكان يقراء الكتب ﴾ دا جمله معترضه ده چه د هغې قائل ابوزرعه دې هغوی دا بيانوی چه چونکه عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما به مخکښې کتابونه تورات او انجيل وغيره لوستل نو کيدې شی چه دهغوی دا رائې دهغې مطابق وی.

حاصل د حديث دا شو مروان اول الايات خروج الدجال ته اووې، او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما د دې په ځائې طلوع الشمس من مغربها ته اووې. او علماء کرامو فرمائيلې دی چه دواړه خبرې په خپل ځائې باندې صحيح دی.

په اصل کښې علامات قيامت په دوه قسمه دی، يو آيات قرب الساعة، او دويم آيات وقوع الساعة، د مروان مراد اول قسم د علامت نه دې او هغه صحيح دې او د صحابی سيدنا عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما مراد دويم قسم دې او هغه واقعی طلوع الشمس من مغربها دې، د دې نور وضاحت په بذل کښې ذکر دې هغه دې اوکتلې شی. والحديث اخرجه مسلم وابن ماجه، وليس في حديث ابن ماجه قصة مروان يتحدث، قاله المنذری.

[۴۳۱۱](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَهَنَّادٌ، المعنى، قَالَ مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا فُرَاتٌ الْقَزَّازُ، عَنْ عَامِرِ بْنِ وَاثِلَةَ، وَقَالَ هَنَّادٌ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ أَسِيدٍ الْغِفَارِيِّ، قَالَ: كُنَّا قُعُودًا نَتَحَدَّثُ فِي ظِلِّ غُرْفَةٍ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرْنَا السَّاعَةَ، فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَنْ تَكُونَ أَوْلَنْ تَقُومَ السَّاعَةُ حَتَّى يَكُونَ قَبْلَهَا عَشْرُ آيَاتٍ طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ وَخُرُوجُ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَالدَّجَّالُ وَعِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَالدُّخَانُ وَثَلَاثَةُ خُسُوفٍ: خَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ، وَخَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ، وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَآخِرُ ذَلِكَ تَخْرُجُ نَارٌ مِنَ الْيَمَنِ مِنْ قَعْرِ عَدَنَ تَسُوقُ النَّاسَ إِلَى الْمَحْشَرِ".

د حذيفه بن اسيد الغفاری رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ دنبی عليه السلام دکور مبارک سوري ته ناست وو اودقيامت ذکر مو کولو په دې دوران کښې* زمونږ اوازونه تيز شول يعنی شور اوغوغا جوړه شوه نبی عليه السلام اوفرمائيل قيامت دهغه وخته پورې هيڅ کله نه قائميږي ترڅوچه ددينه مخکښې لس علامات ښکاره نشي (۱) دمغرب دطرف نه دنمر

(1): صحيح مسلم/الفتن ۱۳ (۲۹۰۱)، سنن الترمذي/الفتن ۲۱ (۲۱۸۳)، سنن ابن ماجه/الفتن ۲۸ (۴۰۴۱)، (تحفة الأشراف: ۳۲۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷/۴) (صحيح)

راختل (۲) د دابة الارض ظاهريدل (۳) دياجوج ماجوج وتل (۴) د دجال وتل (۵) داسمان نه دعيسى عليه السلام راتلل (۱) لوګي شروع کيدل (۷) په درې ځايونو کښې په زمکه کښې ډوبيدل (۸) يعنى په مشرق اومغرب کښې (۴) اودعربو په جزيره کښې دزمکې راښکل (۱۰) اوددې ټولوپه اخرکښې داور راوتل ديمن دزمې نه دعدن په ژور والي کښې هغه اور کوم چه به خلق دحشر ميدان ته راشړي.

**قوله:** ﴿فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لَنْ تَكُونَ – أَوْ لَنْ تَقُومَ – السَّاعَةُ حَتَّى يَكُونَ قَبْلَهَا عَشْرُ آيَاتٍ طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ وَخُرُوجُ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَالدَّجَّالُ وَعِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَالدُّخَانُ وَثَلاَثُ خُسُوفٍ خَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَخَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَآخِرُ ذَلِكَ تَخْرُجُ نَارٌ مِنَ الْيَمَنِ مِنْ قَعْرِ عَدَنَ تَسُوقُ النَّاسَ ..الخ﴾

## د علامات قيامت ترمينځه ترتيب :

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د قيامت د واقع کيدو نه مخکښې د دې لسو ذکر کړې شوو علاماتو مونډلې کيدل ضروري دی، په بذل کښې ليکلې دی چه په دې حديث کښې دا علامات عشره د وقوع د ترتيب په لحاظ سره ذکر نه دی بلکه غير مرتب مذکور دی [1] ترتيب په دې کښې داسې دې چه د دې لسو نه ﴿ اولا خسوفات ثلاثة ثم خروج الدجال ثم نزول عيسى ثم جروج ياجوج وماجوج، ثم الريح الذى تقبض عندها ارواح اهل الايمان ثم طلوع الشمس من مغربها ثم خروج الدابة الارض، قلت والا قرب فى مثله التوقف والتفويض الى عالمه (فتح الودود)او د دې نه پس حضرت فرمائى : المناسب ان يذكر الطلوع وخروج الدابة قبل الريح.... اهـ

## د دابة الارض او دخان تفسير :

په مظاهر حق کښې د دابة الارض په باره کښې ليکلې دی چه دا به د مسجد حرام نه راوځی د صفا او مروه ترمينځه او قول د الله پاک : وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِنَ الْأَرْضِ....... محمول دې په دې باندې، او علماء کرامو ليکلې دی چه هغه ښاروې دې چه د هغې اوږدوالې به شپيتۀ ګزه وی او بعضو وئيلې دی چه هغه به مختلف الخلقة وی مشابه به د حيواناتو سره وی او جبل صفا لره شلولو سره به راوځی او هغه سره به د موسى عليه السلام همسا

---

[1] خکه چه په دې حديث کښې طلوع الشمس من المغرب اول او عيسى بن مريم عليه السلام روستو ذکر دې حال دا چه د روايت صحيحه نه ثابته ده چه حضرت عيسى عليه السلام چه کله نازل شی نو خلقو ته به د ايمان دعوت ورکوی او خلق به ايمان قبول کړی، او د دې نه په روستو حديث کښې دا راروان دی چه د طلوع الشمس من المغرب نه پس به ټول خلق ايمان راوړی خو د هغوی دا ايمان به معتبر نه وی، لهذا د دې جواب هم دا دې چه ترتيب د علامات قيامت داسې نه دې کوم چه په دې حديث کښې ذکر دې، طلوع الشمس من المغرب به روستو مونډلې شی او نزول عيسى عليه السلام په دې باندې مقدم دې، په معارف القرآن کښې د روح المعانى نه د دې اشکال جواب هم دا نقل کړې دې چه د طلوع الشمس واقعه د عيسى عليه السلام د تشريف راوړلو نه کافى زمانه روستو ده او هم هغه وخت به د توبې دروازه بنده شی، او علامه بلقينى شافعى د دې يو بل جواب ورکړې دې چه دا هم ممکنه ده چه عدم قبول ايمان د طلوع الشمس من مغربها دا حکم تراخره پورې باقى نه وی بلکه څه موده پس دا حکم بدل شی او ايمان او توبه قبليدل شروع شی.

او د سلیمان علیه السلام ګوتمه وی او څوک به هم د هغه سره منډه نه شی وهلې، وهی به مومن په همسا سره او لیکی به د هغه په تندی باندې مومن، او مهر به لګوی په کافر باندې په چهاپ سره او لیکی به د هغه په تندی باندې کافر.

او په معارف القرآن ۶/۶۰۵ کښې دی ابن کثیر رحمه الله په حواله د ابوداؤد طیالسی د طلحه بن عمر نه یو اوږد حدیث کښې روایت کړې دې چه دا دابة الارض به مکه مکرمه کښې د کوه صفا نه راوځی. او د خپل سر نه به خاورې سنډلو سره په مسجد حرام کښې حجر اسود او د مقام ابراهیم ترمینځه راورسیږی، خلق به د هغه په لیدو باندې منډې وهی، یو جماعت به پاتې شی دا دابة به د هغوی مخونه د ستورو په شان روښانه کړی، د دې نه پس به هغه د زمکې طرف ته راوځی د هر کافر په مخ باندې به د کفر نخښه اولګوی څوک به هم د هغه د نیولو نه او تخیدلې نشی، دا به هر مومن او کافر لره پیژنی (ابن کثیر) امام ابن کثیر رحمه الله په دې ځائې کښې د دابة الارض د هیئت او کیفیاتو او حالاتو متعلق مختلف روایات نقل کړی دی چه په هغې کښې اکثر قابل اعتماد نه دی. الی اخره.

او د دخان په باره کښې په مظاهر حق کښې دی : یعنی لوږی چه راوځی به او ډک به شی ترې نه مشرق او مغرب او تر د څلویښتو ورځو پورې به وی او مسلمانان به د زکام وهلو په شان وی، او کافر به په شان د مستون (مدهوش)([1]) وی، لکه چه په یو بل حدیث کښې راغلی دی، او په قرآن کریم کښې په سورة دخان کښې راغلی دی : يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ هغه هم په دې باندې محمول دې په قول د حذیفه او تابعین (متبعین) د هغه، او د ابن مسعود او په نزد د تابعینو دهغه د دې نه مراد هغه قحط دې کوم چه په قریشو باندې راغلې وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعا سره چه وې فرمائیل یا الله راوله په دوی باندې قحط د اووۀ کلونو څنګه چه دې په مصریانو باندې راوستلې وو د یوسف علیه السلام په زمانه کښې، الی آخر ما ذکر ۳/۳۵۶...

د دخان په باره کښې د حذیفه بن الیمان او د ابن مسعود رضی الله عنهما د رائې اختلاف مشهور دې په بخاری وغیره کتب حدیث کښې.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۳۱۲]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفُضَيْلِ، عَنْ عُمَارَةَ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا النَّاسُ آمَنَ مَنْ عَلَيْهَا فَذَاكَ حِينَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا سورة الأنعام آية ۱۵۸ الْآيَةَ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی دهغه وخته پورې به

---

[1]) خاموش به وی، حیران او پریشان او بدحواسه به وی، او تک تور به وی لکه سوزیدلې ایره (مترجم).

[2]): صحيح البخاري/تفسير القرآن ۷ (۴۶۳۵)، الرقاق ۴۰ (۶۵۰۶)، الفتن ۲۵ (۷۱۲۱)، صحيح مسلم/الإيمان ۷۲ (۱۵۷)، سنن ابن ماجه/الفتن ۳۱ (۴۰۶۸)، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۹۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/التفسير ۷ (۳۰۷۲)، مسند احمد (۲/۲۳۱، ۳۱۳، ۳۵۰، ۳۷۲، ۵۳۰) (صحیح)

قیامت قائم نشي ترڅوچه نمر د مغرب دطرف نه نوي راختلې کله چه راوخيژي اوخلق ئې اووينې نو په دې وخت کښې به په زمکه کښې موجود خلق ایمان راوړي خوداهغه وخت کښې چه يونفس ته به دهغه ایمان فائده نه ورکوي ترڅوچه مخکښې ئې ایمان نه وي راوړې اوپائې نیک عملونه نه وي کړي.

**قوله:** ﴿فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا النَّاسُ آمَنَ مَنْ عَلَيْهَا فَذَاكَ حِينُ (لاَ يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا)». الآيَةَ﴾

پوره آیت کریمه داسې دې : ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ رسول الله ﷺ فرمائي چه په دې آیت کريمه کښې د بعض آیت نه مراد طلوع الشمس من المغرب دې چه د هغې د راتلو نه پس به د توبې دروازه بنده شي کوم سړي چه د دې نه مخکښې ایمان نه وو راوړې او اوس ایمان راوړي نو قبول به ترې نه نه شي، خلاصه دا شوه چه کافر به په خپل کفر سره او فاسق به په خپل فسق او معصیت سره که هغه وخت توبه اوباسي نو هغه به نه قبليږي، سبب دا دې چه ایمان او توبه صرف هغه وخته پورې قبليږي ترڅو چه هغه د انسان په اختیار کښې وي. او کله چه د عذاب الهي او د حقائق آخرت مشاهده اوشوه نو هر انسان په ایمان راوړلو او د ګناه نه په بچ کيدو کښې خپله مجبور شو. د مجبورئ ایمان او توبه قابل قبول نه ده، هم د دې آیت کريمه په تفسیر کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد منقول دې چه کوم وخت د قیامت په آخري نخښو کښې دا نخښه ښکاره شي چه نمر د مشرق په ځائې د مغرب نه راوخي نو د هغې په ليدو سره به د ټول جهان کافر کلمه وئيل شروع کړي او ټول نافرمان به فرمانبردار شي خو د هغه وخت ایمان به قابل قبول نه وي. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

## بَابُ حَسْرِ الْفُرَاتِ عَنْ كَنْزٍ

### باب: د فرات نهر نه د خزانو راوتلو بیان

[٤٣١٣] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنِي عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ السَّكُونِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَمَنْ حَضَرَهُ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا".

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي نزدې ده چه دفرات نهردسرو زرو خزانې راسرګندې کړي مګرڅوک چه هلته موجود وي هغه دې ددينه څه نه اخلي.

[٤٣١٤] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنِي عُقْبَةُ يَعْنِي ابْنَ خَالِدٍ، حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ إِلَّا، أَنَّهُ قَالَ: يَحْسِرُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ.

ابوهريره به دنبی علیه السلام نه دتير شوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګر دا اضافه ئې

(١): صحيح البخاري/الفتن ٢٤ (٧١١٩)، صحيح مسلم/الفتن ٨ (٢٨٩٤)، سنن الترمذي/صفة الجنة ٣٦ (٢٥٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٦٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الفتن ٢٥ (٤٠٤٦)، مسند احمد (٢/٢٦١، ٣٣٢، ٣٦٠) (صحيح)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٣٧٩٥) (صحيح)

کړي ده چه نبي ﷺ اوفرمائيل دسرو زرو يوغربه راظاهر کړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَهُ فَلاَ يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا » ﴾ او په بل روايت کښې دی ﴿ ان يحسر عن جبل من ذهب ﴾ او د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه فرات به اوچوی د سرو زرو د خزانو نه، يعنی د فرات اوبه به اوچې شی او د هغې د لاندې نه به د سرو زرو خزانې راوځی. پس چه څوک هلته حاضر وی هغه له پکار دی چه وانه خلی د هغې نه ځکه چه د هغې باعث تنازع او تقاتل دې لکه چه په راروان حديث کښې راځي، او بعضو وئيلي دی چه په دې وجه دې نه اخلی د دې خزانې نه چه د دې په سبب به آفات او مصيبتونه راځی، او هغه يو نخښه ده د الله پاک د قدرت د نخښو نه، او بعضو وئيلي دی چه سبب ئې دا دې چه دا مال مغضوب او مکروه دې په شان د مال د قارون پس د دې نه به انتفاع حرامه وی (مظاهرحق) او د راروان حديث نه مراد د کوم طرف ته چه اشاره شوې ده هغه دا حديث دې ﴿ لا تقوم الساعة حتى يحسر الفرات عن جبل من ذهب يقتتل الناس عليه فيقتل من مائة تسعة وتسعون، ويقول كل رجل منهم لعلى اكون انا الذى انجو ﴾ رواه مسلم مظاهرحق ۳۲۵/۴: جنګ به پرې کوی خلق د هغې د حصول دپاره او په اخستلو باندې الخ.

الحديث الاول اخرجه البخارى ومسلم والترمذى، والثانى اخرجه مسلم والترمذى، اخرجه البخارى تعليقا، قاله المنذرى.

## بَابُ خُرُوجِ الدَّجَّالِ

### بابـ د دجال راوتلو بيان

خروج الدجال چه د قيامت د علاماتو نه دې د دې ثبوت د احاديث کثيره نه دې چه د هغې په باره کښې بعض علماء کرامو ليکلې دی چه هغه حد متواتر ته رسيدلې دی، ترديې چه د خروج دجال مسئله د اهل سنت په عقائدو کښې شمار کيږی هم په دې وجه د عقائدو په کتابونو کښې ددې ذکر دې پس په شرح عقائد کښې دی:

﴿ وما اخبر به النبى ﷺ من اشراط الساعة من خروج الدجال ودابة الارض وياجوج وماجوج ونزول عيسى عليه السلام من السماء وطلوع الشمس من مغربها فهو حق الى ان قال والاحاديث الصحاح فى هذه الاشراط كثيرة جدا وقد روى احاديث مرفوعة وآثار فى تفاصيلها وكيفياتها فليطلب فى كتب التفسير والسير والتواريخ ﴾ په دې کښې د بعض خوارجو، معتزلو او جهميه اختلاف دې هغوی د دې د وجود نه انکار کړې دې، پس په فتح البارى کښې دی د باب ذکر الدجال په ضمن کښې، وقال القاضي عياض في هذه الأحاديث حجة لأهل السنة في صحة وجود الدجال وانه شخص معين يبتلي الله به العباد ويقدره على أشياء كاحياء الميت الذي يقتله وظهور الخصب والأنهار والجنة والنار واتباع كنوز الأرض له وأمره السماء فتمطر والأرض فتنبت وكل ذلك بمشيئة الله ثم يعجزه الله فلا يقدر على قتل ذلك الرجل ولا غيره ثم يبطل أمره ويقتله عيسى بن مريم وقد خالف في ذلك بعض الخوارج والمعتزلة والجهمية فانكروا وجوده وردوا الأحاديث الصحيحة الخ غالبا هم په دې وجه چه

بعض فرقو د دې نه انکار کړې دې مصنف رحمه الله د دجال باب په آخر د کتاب کښې د کتاب السنة د لاندې دوباره قائم کړې دې، دې خبرې ته د اشارې کولو دپاره چه اهل سنت د دې قائل دی په خلاف د بعض فرق باطله.

## د دجال په باره کښې کوم کوم تحقیقات مطلوب دی :

په فتح الباری کښې بل ځائې کښې دی : ومما يحتاج إليه في أمر الدجال أصله وهل هو بن صياد أو غيره وعلى الثاني فهل كان موجودا في عهد رسول الله صلى الله عليه و سلم أو لا ومتى يخرج وما سبب خروجه ومن أين يخرج وما صفته وما الذي يدعيه وما الذي يظهر عند خروجه من الخوارق حتى تكثر أتباعه ومتى يهلك ومن يقتله، يعنی د دجال د تحقيق په سلسله کښې چه کوم امور د معلومولو دی هغه دا دی تقریبا لس دولس، بیا په فتح الباری کښې د دې ټولو امورو جواب هم ذکر دې، وړاندې چه په کتاب جساسه کښې کومه قصه راځی په باب فی خبر الجساسة کښې د دې خبرې دلیل دې چه دجال فی الحال په دنیا کښې موجود دې، د رسول الله ﷺ په زمانه کښې هم موجود وو، په بعض جزائرو کښې او دا چه هغه د ابن صیاد نه علاوه بل څوک دې د شرح عقائد په شرح نبراس کښې دی : وهل الدجال موجود او يتولد؟ فالصحيح هو الاول... یعنی یو اختلاف دا هم دې چه دجال په دنیا کښې موجود دې یا که په آخره زمانه کښې به پیدا کیږی، او د هغه په باره کښې صحیح هم دا ده چه هغه موجود دې او بیا صاحب نبراس د دې په دلیل کښې د تمیم داری رضی الله عنه حدیث یعنی هم هغه خبر د جساسه ذکر فرمائیلې دې.

## د لفظ دجال او مسیح تحقیق :

دجال د دجل نه دمبالغې صیغه ده د دجل معنی ده تغطیه یعنی پټول، دجال ته دجال په دې وجه وائی چه هغه حق لره په باطل باندې پټوی، د دجال معنی د رنګ کونکی هم ده، سیف مدجل وائی هغه تورې ته چه هغې ته د سرو زرو اوبه ورکړې شوې وی، او په اشعة اللمعات کښې دی :

ودجال مشتق از دجل است، ودجل بمعنی خلط ومکر وخداع وتلبیس آید، دجل الحق على الباطل گویند وقتیکه کسے حق راباباطل خلط کند وتمویه نماید، وبمعنی کذب نیز آید، ووجود این معانی در دجال ظاهر است، ومسیح اسم مشترک است میان وے عیسی علیه السلام واکثر آنست که اسم وے رامقید بدجال دارند (مسیح دجال) ودر عیسی علیه السلام مطلق گزارند (مسیح علیه السلام) وعیسی رامسیح ازاں گویند چه چوں اکمه وابرص رامسح ولمس کردے به شدے (چه په لاس رانبکلو سره به ئې اکمه او ابرص صحیح او روغ شو) واز جهت ان که از شکم مادر ممسوح برامد به آلائش وچرک که اطفال رانزد زائیدن باشند وبعضي گویند که یک چشم وے ممسوح وهموار است، وممسوح الوجه ومسیح الوجه کسے راگویند که یک طرف روئے هموار بودو چشم وابرو نباشد اهـ مختصرا.

[٤٣١٥] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، قَالَ: اجْتَمَعَ حُذَيْفَةُ، وَأَبُو مَسْعُودٍ، فَقَالَ حُذَيْفَةُ: "لَأَنَا بِمَا مَعَ الدَّجَّالِ أَعْلَمُ مِنْهُ إِنَّ مَعَهُ بَحْرًا مِنْ مَاءٍ وَنَهْرًا مِنْ نَارٍ فَالَّذِي تَرَوْنَ أَنَّهُ نَارٌ مَاءٌ وَالَّذِي تَرَوْنَ أَنَّهُ مَاءٌ نَارٌ، فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَأَرَادَ الْمَاءَ فَلْيَشْرَبْ مِنَ الَّذِي يَرَى أَنَّهُ نَارٌ فَإِنَّهُ سَيَجِدُهُ مَاءً"، قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ الْبَدْرِيُّ: هَكَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ.

د ربعي بن حراش نه روايت دې فرمائي چه ابومسعود او حذيفه ﷠ يوځل دواړه يوځائې شول حذيفه اووئيل ددجال سره چه څه وي زه دهغې متعلق دهغه نه زيات پوهيږم چه داوبو پودرياب به ورسره وي او د اور يو نهر به ورسره وي كوم چه تاسوته اور ښكاري هغه به اوبه وي، نو څوک چه په تاسو کښې ددې حالت سره مخ شي او اوبه څکل غواړي نو دهغه نه دي وڅكي كوم چه ورته اور ښكاري زرده چه هغه به دې لره اوبه بيا موي، ابومسعود بدرې په اووئيل ما هم دنبى ﷺ نه داسې اوريدلي دي.

**قوله:** ﴿عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ قَالَ اجْتَمَعَ حُذَيْفَةُ وَأَبُومَسْعُودٍ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لَأَنَا بِمَا مَعَ الدَّجَّالِ أَعْلَمُ مِنْهُ﴾

## شرح الحديث:

يو ځل حذيفه ﷛ او ابومسعود ﷛ يو ځائې ته راجمع شو نو حذيفه ﷛ اوفرمائيل چه د دجال سره چه به كوم څيز وى زه هغه د دجال نه ښه پيژنم چه هغه څه دى. او بيا ئې اوفرمائيل : بيشكه هغه سره به يو نهر د اوبو وى او يو د اور، يعنى د اور خندق، پس په هغې كښ چه كوم څيز اور ښكارى هغه به په اصل كښ اوبه وى، او كوم چه خلق اوبه ګڼړى هغه په په حقيقت كښ اور وى، او بيا هغوى اوفرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه هم دغه شان اوريدلي دى.

اصل كښ دجال به د خپل الوهيت دعوى كوى چه ما خدائې اومنئ، نو څوک چه د هغه تصديق كوى هغه به هغه لره په اوبو كښ داخلوى، او څوک چه د هغه تكذيب كوى هغه به په اور كښ داخلوى، نو د دې په باره كښ دې حديث كښ دى چه تاسو د هغه تكذيب كوئ او د هغه د اور نه مه ويريږئ هغه به اوبه وى.

په دې كښ شارحينو دوه احتماله ليكلي دى يا خو دا چه دجال به ساحر وى او په خپل جادو سره به داسې ښائى يعنى اور لره اوبه او اوبو لره اور، او يا دا چه الله پاک چه كوم جنت او اور د دجال دپاره مسخر كړې وو الله پاک به د هغې باطن واپس كړى، په حاشيه د بذل كښ دى : واختلف فى هذه الاشياء التى مع الدجال هل هى حقائق ثابتة او ظنونات وتوهمات على قولين ذكرهما النووى، امام نووى ﷬ هم دا خبره فرمائيلې ده كومه چه پورته په فتح البارى كښ تيره شوې ده يعنى د دجال په باره كښ د اهل سنت والجماعت عقيده چه د هغې وجود برحق دې او دا چه الله پاک هغه ته د بعض خوارقو قدرت وركړې دې او د دې نه روستو به بيا د هغه نه دا طاقت سلب كولو سره هغه عاجز كړى، په خلاف د خوارج او جهميه او بعض معتزله كوم چه بالكل د هغه د وجود نه انكار كوى او په خلاف د جبائى معتزلى او د بعض

(١): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ٥٠ (٣٤٥٠) والفتن ٢٦ (٧١٣٠)، صحيح مسلم/الفتن ٢٠ (٢٩٣٤)، (تحفة الأشراف: ٣٣٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٥/٥، ٣٩٩) (صحيح)

جهميه چه هغوی د دجال وجود خو مني خو د کومو خوارق چه به هغه دعوی کوی د هغې هيڅ حقيقت نشته، د دې نه پس امام نووی رحمه الله د هغوی د رائې ترديد کړې دې او د هغوی د اشکال جواب ئې ورکړې دې فارجع اليه لو شئت (نووی ۲/۲۹۹) والحديث اخرجه البخاری ومسلم بمعناه مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

[۴۳۱۶] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَا بُعِثَ نَبِيٌّ إِلَّا قَدْ أَنْذَرَ أُمَّتَهُ الدَّجَّالَ الْأَعْوَرَ الْكَذَّابَ أَلَا وَإِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ وَإِنَّ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مَكْتُوبًا كَافِرٌ".

دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل هيڅ يونبی نه دې راليږلې شوې مګر هغه خپل قوم ددجال نه پرولې دې کوم چه کانړې او ډير سخت دروکي وو نو تاسو خبردار اوسئ هغه کان سې (يوسترګې دې او ستاسو رب کانړې نه دې ددجال ددواړو سترګو په مينځ کښې يعنی په تندي باندې کافر ليکلې شوي وي.

**قوله:** ﴿مَا بُعِثَ نَبِيٌّ إِلاَّ قَدْ أَنْذَرَ أُمَّتَهُ الدَّجَّالَ الأَعْوَرَ الْكَذَّابَ أَلاَ وَإِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ وَإِنَّ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مَكْتُوبًا كَافِرٌ﴾

دجال کوم چه به د اولوهيت دعوی کوی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه د عوې ترديد په داسې طريقه بيان فرمائی کوم چه بالکل ښکاره دليل دې هغه دا چه هغه به اعور يعنی کانا وی هغه به صرف په يو سترګه باندې ګوری په بلې سره نه، او الله پاک اعور نه دې دا خبره ټولو ته معلومه ده، او دويم دا چه د هغه په تندی باندې به کافر ليکلې شوې وی، په دې حديث کښ دا هم دی چه په تيرو انبياء علیهم السلام کښ هر نبی خپل امت لره د دهغه د شر نه ويرولې دی، په دې باندې دا اشکال کولې شی چه مخکښ انبياء علیهم السلام خپل امتونه د دجال نه ولې ويرول حال دا چه په احاديثو کښ دا ثابت ده چه د هغه د خروج نه مخکښ به بعض نور علامات موندلې شی او دا چه هغه لره به عيسی علیه السلام د خپل نزول نه پس قتل کوی، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه مخکښ انبياء کرامو علیهم السلام ته صرف د فتنه دجال علم ورکړې شوې وو، د هغوی په علم کښ هغه امور نه وو کوم چه به د هغه نه مخکښ موندلې شی، ګويا د خروج د وخت او زمانې هغوی ته علم نه وو، بلکه خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هم په شروع کښ معلومه نه وه لکه چه د هغوی د دې قول نه معلوميږی ﴿ ان يخرج وانا فيکم فانا حجيجه ﴾ الحديث خو روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغه د خروج علم ورکړې شوې وو. (بذل عن مرقاة الصعود)

## دحديث په شرح کښ د شارحينو او دحضرت ګنګوهی رحمه الله بيله بيله رائې

په حاشيه د بذل کښ دی چه حضرت ګنګوهی رحمه الله دا جواب رد فرمائيلې دې لکه چه په الکوکب الدری کښ دی، په کوکب دری کښ دا ذکر دی چه په احاديثو کښ چه دا راغې چه انبياء علیهم السلام چه خپل امتونه د فتنه دجال نه ويرولې وو نو د هغې مطلب دا نه دې چه هغوی خپل امتونه د خروج الدجال نه ويرولې وو چه د هغه د راتلو خطره ده دا خبره خو انبياء علیهم السلام

(۱): صحيح البخاري/الفتن ۲۶ (۷۱۳۱) التوحيد ۱۷ (۷۴۰۸)، صحيح مسلم/الفتن ۲۰ (۲۹۳۳)، سنن الترمذي/الفتن ۶۲ (۲۲۴۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۰۳، ۱۷۳، ۲۷۶، ۲۹۰) (صحيح)

نه معلومه وه چه د هغه د خروج زمانه به د نبی آخر الزمان ﷺ د بعثت نه پس وی، بلکه د ویرولو مطلب فی نفسه دا بیانول دی چه دجال به د خپلې زمانې ډیره لویه فتنه وی چه هغوی په دې باندې د الله پاک شکر ادا کړی چه مونږ الله پاک د هغه د فتنې نه محفوظ اوساتلو چه هغوی د الله پاک د اوامرو په امتثال کښې کوشش او اهتمام کونکی وی چا چه دومره لوئې لوئې فتنې د بندګانو د امتحان دپاره پیدا کړی دی، او یو مصلحت په دې کښې د امت محمدیه ﷺ په اعتبار سره هم کیدې شی چه هغوی د دې نه ډیر بیدار او د محفوظ کیدو کوشش اوکړی او د هغوی په ذهن کښې هم ددې فتنې اهمیت راشی چه واقعی هغه دومره لویه فتنه ده د کوم نه چه به تیرو شوو انبیاء کرامو ﷺ خپل امتونه ویرول. وهذا خلاصة ما فی الکوکب، فلله دره، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی، قاله المنذری.

[۴۳۱۷](۱)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُبْنُ الْمُثَنَّى،عَنْ مُحَمَّدِبْنِ جَعْفَرٍ،عَنْ شُعْبَةَ كفر،

جعفر دشعبه نه د دجال په باره کښې ک ، ف، ر، روایت بیان کړې دې.

[۴۳۱۸](۲)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ شُعَيْبِ بْنِ الْحَبْحَابِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: يَقْرَؤُهُ كُلُّ مُسْلِمٍ.

همدا حدیث دانس بن مالک رضی الله عنه نه مروی دې په دې روایت کښې داسې دی : کوم مضمون چه دده په تندې باندې لیکلې شوې وي هر یو مسلمان به ئې لولي.

وراندې په روایت کښې دی ﴿ یقراءه کل مسلم ﴾ یعنی د دجال په تندی باندې به چه کافر لیکلې شوې وی هغه به هر مسلمان لوستلې شی، که هغه لیکل او لوستل پیژنی او که نه پیژنی لکه چه د ابن ماجه په روایت کښې دی، ﴿ کل مسلم کاتب وغیر کاتب ﴾ یعنی کافر به هغه نه شی لوستلې.

او په یو روایت کښې دی ﴿ یقراءه من کره عمله ﴾ په ظاهر کښې مطلب دا دې چه کوم مسلمان لره الله پاک په هدایت باندې قائم ساتل غواړی هغه به دا لیکل په هر حال کښې اولولی که لوستونکې وی او که نه وی، او د کوم سړی په قسمت کښې چه ګمراهی او ضلالت وی هغه به دا نه شی لوستلې.

[۴۳۱۹](۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي الدَّهْمَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ يُحَدِّثُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْأَ عَنْهُ فَوَاللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَأْتِيهِ وَهُوَ يَحْسِبُ أَنَّهُ مُؤْمِنٌ، فَيَتَّبِعُهُ مِمَّا يَبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ، أَوْ لِمَا يَبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ"، هَكَذَا قَالَ.

دعمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی څوک چه د دجال خبر واوري نو هغه لره پکار دي چه ورنه په ډډه شي په الله قسم ده ته به خلق راځی او دا ګمان به

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۱)

(۲): صحیح مسلم/الفتن ۲۰ (۲۹۳۳)، (تحفة الأشراف: ۹۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۱/۳، ۲۴۹) (صحیح)

(۳): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۱/۴، ۴۴۱) (صحیح)

وربانديې کوي چه دي ايمان والادې اوخلق به دده تابعدار جوړيږي ځکه چه دده سره به په شک کښې اچونکي څيزونه وي.

**قوله:** ﴿ مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْأَ عَنْهُ ﴾ رسول اللهﷺ فرمائی چه کوم سړې د دجال زمانه بيا مومي، او د هغه د خروج خبر واوري (نو د هغه عجائب او غرائب ليدلو دپاره دې د هغه خواله نه ځی بلکه) د هغه نه دې لرې اوسيږی ځکه چه بعض خلق به د هغه خواله لاړ شی صرف دهغه د کتلو دپاره د معلوماتو په درجه کښې يا تفريحا او د هغوی به په خپل ايمان باندې اعتماد وی خو چه کله هغوی د هغه خواله لاړ شی او هغه ته اوګوری نو هم د هغه به شی، او د هغه د تابعدارو نه به شی، والعياذ بالله تعالی..... د هغه خوارقو او استدرجاتو په وجه په کومو سره چه به الله پاک هغه راليږی.

[۴۳۲۰]()حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي بَحِيرٌ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّهُ حَدَّثَهُمْ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنِّي قَدْ حَدَّثْتُكُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ لَا تَعْقِلُوا إِنَّ مَسِيحَ الدَّجَّالِ رَجُلٌ قَصِيرٌ أَفْحَجُ جَعْدٌ أَعْوَرُ مَطْمُوسُ الْعَيْنِ لَيْسَ بِنَاتِئَةٍ وَلَا حَجْرَاءَ فَإِنْ أُلْبِسَ عَلَيْكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَمْرُو بْنُ الْأَسْوَدِ وَلِيَ الْقَضَاءَ.

دعبادة بن الصامت رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی ماتاسوته ددجال په باره کښې ترديې حده پورې خبردرکړې دې چه زماسره دا انديخنه پيداشوه چه تاسو دا ونه ګڼړئ چه مسيح دجال د يولنډ قد والا روان انسان دې اودده د دواړو خپو مينځ کښې فاصله ده اوګونجې ويښتو والا دې کانړې دې اوکړو سترګو والا دې دغه سترګه به نه بهر راوتلي وي اونه به دننه ننوتلي وي که چرې ستاسوپه دې کښې هم شبه وي نوتاسو ښه پوهه شئ چه ستاسو پروردګار کانړې نه دې ، امام ابوداؤد فرمائی عمر بن اسود قاضی وو.

**قوله:** ﴿ إِنِّي قَدْ حَدَّثْتُكُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ لاَ تَعْقِلُوا إِنَّ مَسِيحَ الدَّجَّالِ رَجُلٌ قصير أَفْحَجُ جَعْدٌ أَعْوَرُ مَطْمُوسُ الْعَيْنِ لَيْسَ بِنَاتِئَةٍ وَلاَ جَحْرَاءَ ﴾

### د دجال خلقی (پيدائشی) صفتونه :

رسول اللهﷺ فرمائی صحابه کرامو رضی الله عنهم ته چه ما د دجال په باره کښې ډير څه بيان کړی دی، يعنی د هغه احوال او د هغه علامات، خو د دې باوجود زه ويريږم چه تاسو په دې باندې پوره نه يئ پوهه شوې (په دې وجه اوس د دې ډير واضح او ښکاره علامت درښائم چه) مسيح دجال به داسې سړې وی چه د وړوکی قد والا به وی، او په تلو کښې به افحج وی، په مظاهر حق کښې ليکلې دی : افحج هغه ته وائی چه د خپو پنجې ئې په تلو کښې نزدې نزدې لګی (۲) او پوندې لرې لرې، او پنډئ به ئې چاودې وی ، کذا قال شارح، او هم دغه شان په قاموس کښې هم دی، او په نهايه کښې دی چه فحج لرې والی ته وائی په مابين د دواړو رونونو کښې، حاصل دا چه په نيغ تلو باندې به قادر نه وی بلکه خپې او پنډئ به ئې د تلو په وخت کړې وی، په يوه سترګه به ړوند وی او دويمه سترګه به ئې ورکه وی چه نه به خوره

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۰۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۲۴/۵) (صحيح)
(۲) پښتو کښې ورته کجې وائی. مترجم)

وی او نه به دننه ننوتلې وی،

او په یو روایت کښ دی ﴿ اعور العين اليمنى كان عينه عنبة طافية ﴾ لهذا داسې به وئیلې شی چه یوه سترګه د هغه به د انګور د دانې په شان راوچته وی او ګسه سترګه به ئې ختمه شوې وی یعنی بالکل برابر، په اشعة اللمعات ۳۲۷/۴ کښ دی :

در حدیثے اعور عین اليمنى آمده چنانکه گزشت، ودر حدیث دیگر عین اليسرى واقع شده وبالجملة احادیث در وصف دجال متناهی ومتخالف ورود یافته، وتور پشتی گفته که وجه جمع میان این اوصاف متنافره آنست که فرض کرده شود که یکے از دو چشم وے مطلق رفته است، ودیگرے معیب است، پس هر یکے رااعور می توان گفت چه عور دراصل بمعنی عیب است فتدبر اه.

پس حاصل دا شو چه ګسه سترګه د هغه بالکل ممسوح او هواره ده لیست بناتئه ولا حجراء او دې ګسې سترګې ته چه په بعض احادیثو کښ اعور وئیلې شوې ده دلته د اعور نه مراد عیب داره ده، ځکه چه هوارېدل عیب دې، ښئ سترګه د هغه چه اعور ده هغه پړسیدلې ده چه په هغې باندې د هغه لږ ډیر نظر لګی.

## د طافیه او طافئه تحقیق :

او دا طافیه په یاء سره ده د طفا یطفو نه ناقص واوی، چه د هغې معنی د راپورته کیدو او اوچتیدو ده او هم د دې نه دې سمک طافی، او ګسه سترګه د هغه طافئه ده په همزې سره یعنی مهموز اللام د طفئ یطفاء نه چه د هغې معنی د مړ کیدو ده، او هم دې باره کښ دا راغلی دی لیست بناتئة ولا حجراء....

﴿ فان البس عليكم فاعلموا ان ربكم ليس باعور ﴾ پس که ستاسو څه شبه پیدا شی د هغه په باره کښ په خوارق او شبهاتو لیدلو سره نو پوهه شئ چه ستاسو رب اعور نه دې.

والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[۴۳۲۱] (١) حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ صَالِحٍ الدِّمَشْقِيُّ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ جَابِرٍ الطَّائِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ الْكِلَابِيِّ، قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدَّجَّالَ، فَقَالَ: "إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ فَأَنَا حَجِيجُهُ دُونَكُمْ، وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ، وَاللَّهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ سُورَةِ الْكَهْفِ فَإِنَّهَا جِوَارُكُمْ مِنْ فِتْنَتِهِ، قُلْنَا: وَمَا لَبْثُهُ فِي الْأَرْضِ؟ قَالَ: أَرْبَعُونَ يَوْمًا: يَوْمٌ كَسَنَةٍ، وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ، وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ، وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا الْيَوْمُ الَّذِي كَسَنَةٍ أَتَكْفِينَا فِيهِ صَلَاةُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، قَالَ: لَا اقْدُرُوا لَهُ قَدْرَهُ ثُمَّ يَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِيَّ دِمَشْقَ فَيُدْرِكُهُ عِنْدَ بَابِ لُدٍّ فَيَقْتُلُهُ".

دنواس بن سمعان کلابی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام د دجال ذکر وکړو اووئې فرمائیل که چرې دې راوځي اوزه په تاسو کښې موجود یم نوزه به دخلقونه مخکښې دده مقابله اوکړم ، او که چرې دې راوځي اوزه په تاسو کښې موجود نه یم نو هر یو کس به پخپله

---

[1]: صحيح مسلم/الفتن ٢٠ (٢٩٣٧)، سنن الترمذي/الفتن ٥٩ (٢٢٤٠)، سنن ابن ماجه/ الفتن (٤٠٧٥)، (تحفة الأشراف: ١١٧١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٤، ١٨٢) (صحيح)

دده سره مقابله کوي او الله تعالی دهر مسلمان نگهبان دي ، لهذا په تاسو کښې چه څوک ده
له بیاموي نوهغه لره پکاردي چه دسورة کهف اولني آیاتونه په ده باندې ولولي ځکه چه
دغه آیاتونه ستاسو دپاره ددې فتنې نه پناه ده ، بیا مونږ عرض اوکړو چه دجال به په زمکه
کښې څومره وخت تیروي؟ نبی ﷺ اوفرمائیل څلویښت ورځې اواوله ورځ به دکال برابر
وي اودویمه ورځ به دمیاشت برابروي اودریمه ورځ به دهفتې برابروي اوباقي ورځې به ئې
ستاسو دور خوپه شان وي ، مونږ عرض اوکړو اې دالله رسوله هغه یوه ورځ کومه چه دکال
برابروي ایا مونږ به په دې کښې صرف دیوي ورځې او شپې مونځونه کوو؟ نبی ﷺ
اوفرمائیل نه، په دغه ورځ به تاسو اندازه کوئ، بیابه عیسی بن مریم علیهما السلام دمشق
دښار په مشرقی جانب کښې دسپینې منارې سره داسمان نه راکوز شي او هغه به دجال لره د
باب الد مقام سره بیا مومي اوهلته به ئې قتل کړي.

**قوله:** ﴿ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الدَّجَّالَ فَقَالَ « إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ فَأَنَا حَجِيجُهُ دُونَكُمْ وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ وَاللَّهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه که دجال زما په موجودگئ کښې راوځی نو زه به ستاسو د طرف نه
د هغه خصم یم، یعنی مدافعت کونکی، او که داسې وخت راوځی چه زه موجود نه یم،
یعنی زما نه روستو نو بیا هر سړې خپله ذمه دار دې، او الله پاک (چه د همیشه نه دې او
همیشه به وی هغه) به د هر مسلمان دپاره زما خلیفه او بدل وی. یعنی که زه نه یم نو څه
اوشو الله پاک خو به وی هغه به حفاظت فرمائی. گویا زما په موجودگئ کښې به زما په
توسط سره هغه محافظ وی او زما په عدم موجودگئ کښې به هغه براه راست محافظ وی او
په مظاهر حق کښې دی : او که د هغه خروج اوشو او نه اوم زه په تاسو کښې پس هر سړې په
خپل ځان باندې حجت دې،یعنی هغه به دخپل ځان نه په خپله شر دفعه کوی په دلیلونو
قطعیه شرعیه او عقلیه سره چه دهغه سره دی او غالب به راځی په هغه باندې. كذا قال
الطيبی او دا په دې تقدیر دې چه هغه واوری حجت والا پس معنی دا ده چه هر څل به کوی د
خپل نفس سره شر د هغه د تکذیب دپاره او اختیاروی به د هغه د عذاب صورت، او الله
پاک زما خلیفه او وکیل دې په هر مسلمان باندې یعنی حافظ د هغه دې زما نه روستو. پس
مدد به کوی د هغه او دفع کوی به تری نه شر د دجال، او دا دلیل دې په دې خبره چه د کوم
مومن یقین وی هغه سره همیشه مدد کولې شی اگر چه هغه سره نبی او امام نه وی. پس په
دې کښې رد دې په امامیه باندې، وراندې په حدیث کښې دی چه کوم سړې د دجال زمانه بیا
مومی نو هغه لره پکار دی چه د سورة کهف اولنی آیتونه اولولی، وراندې په روایت کښې
راځی چه د هغې د شروع لس آیتونه او د هغې نه په روستو روایت کښې خواتیم سورة کهف
ذکر شوي دي یعنی د آخر لس آیتونه.

**قوله:** ﴿قُلْنَا وَمَا لُبْثُهُ فِي الأَرْضِ قَالَ « أَرْبَعُونَ يَوْمًا يَوْمٌ كَسَنَةٍ وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ »﴾

مونږ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه دجال به په زمکه څومره موده وی؟ رسول الله ﷺ

اوفرمائیل : ټولې څلویښت ورځې چه په هغې کښې به یوه ورځ د یو کال برابر وی، یو ورځ د یوې میاشتې برابر، او دریمه ورځ به د یوې هفتې برابر، او باقی اووۀ دیرش ورځې به د نورو ورځو په شان وی، مونږ عرض اوکړو چه کومه ورځ د یو کال برابر وی آیا په هغې کښې به د یوې ورځ اود شپې یعنی پنځه مونځونه به کافی وی، ﴿ قال: لا اقدروا له قدره﴾ یعنی نه بلکه د هرې ورځې د مونځونو حساب اولګوئ، یعنی په هر څلریشتو ګهنټو کښې به پنځه مونځونه کولې لوستلې شی، د دې وجه ئې دا لیکلې ده چه د دجال د دې ورځې اوږدوالې به حقیقة نه وی بلکه د هغه په جادو او تصرف سره به وی.

**قوله:** "ثُمَّ يَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِيَّ دِمَشْقَ فَيُدْرِكُهُ عِنْدَ بَابِ لُدٍّ فَيَقْتُلُهُ"

## د عیسیٰ عليه السلام په نزول کښې اختلاف روایات :

په مظاهر حق کښې دی: پس چه دجال په دې هنګامو او خرابیانو او ګمراه کولو کښې وی چه ناڅاپه به الله پاک مسیح د مریم ځوئې عليه السلام راولیږی پس راکوز به شی هغوی په نزدې سپینه مناره چه د دمشق مشرقی طرف ته به وی، او په روایت کښې راغلی دی چه عیسیٰ عليه السلام به په بیت المقدس کښې کوزیږی، او په روایت کښې دی چه په اردن کښې ، او په روایت کښې دی چه په معسکر مسلمین کښې، زه وایم چه د هغوی د بیت المقدس په خوا کښې راکوزیدل د ابن ماجه په حدیث کښې دی، او هغه زما په نزد راجح دې او نه دې منافی د ټولو روایتونو ځکه چه بیت المقدس په شرقی طرف د دمشق کښې دې، او هغه معسکر د مسلمانانو دې ځکه چه هغه او اردن نوم دې د نواح بیت المقدس دپاره کما فی الصحاح، او بیت المقدس داخل دې په دې کښې اګر چه نشته په بیت المقدس کښې باب مناره، خو ضروری ده چه جوړه به شی مخکښې د راکوزیدلو دعیسیٰ عليه السلام نه. والله تعالی اعلم وقد مرالکلام علی اختلاف الروایات فی محل نزول عیسی علیه الصلوة والسلام، وکذا فی تعیین الامام الذی یصلی بهم هل هو عیسی علیه السلام او المهدی فی الحل المفهم علی صحیح مسلم، فی کتاب الایمان فارجع الیه لو شئت.

[٤٣٢٢] (١) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا ضَمْرَةُ، عَنِ السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَذَكَرَ الصَّلَوَاتِ مِثْلَ مَعْنَاهُ.

ابو امامه له دنبی کریم ﷺ نه دتیر شوي روایت په شان روایت بیان کړې دې او په دې روایت کښې ئې دتیر شوي روایت په شان د مونځونو ذکر کړې دې.

[٤٣٢٣] (٢) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ حَدِيثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ يَرْوِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُورَةِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا قَالَ هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ مَنْ حَفِظَ مِنْ خَوَاتِيمِ سُورَةِ الْكَهْفِ، وَقَالَ شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ مِنْ آخِرِ الْكَهْفِ.

دابو الدرداء نه روایت دې فرمائی چه رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی څوک چه دسورة کهف

---

(١): سنن ابن ماجه/الفتن ٣٣ (٤٠٧٧)، (تحفة الأشراف: ٤٨٩٦) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/المسافرين ٤٤ (٨٠٩)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ٦ (٢٨٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٣) (صحيح)

اولني لس آیاتونه یاد کړي نوهغه به دد جال دفتني نه محفوظ پاتې شي او په یوبل روایت کښې دی کوم چه دشعبه نه منقول دي چه دسورة کهف آخری لس آیاتونه.

[۴۳۲۴]([1]) حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ آدَمَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ نَبِيٌّ يَعْنِي عِيسَى، وَإِنَّهُ نَازِلٌ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُ فَاعْرِفُوهُ رَجُلٌ مَرْبُوعٌ إِلَى الْحُمْرَةِ وَالْبَيَاضِ بَيْنَ مُمَصَّرَتَيْنِ كَأَنَّ رَأْسَهُ يَقْطُرُ، وَإِنْ لَمْ يُصِبْهُ بَلَلٌ، فَيُقَاتِلُ النَّاسَ عَلَى الْإِسْلَامِ فَيَدُقُّ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلُ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعُ الْجِزْيَةَ وَيُهْلِكُ اللَّهُ فِي زَمَانِهِ الْمِلَلَ كُلَّهَا إِلَّا الْإِسْلَامَ وَيُهْلِكُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ، فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ أَرْبَعِينَ سَنَةً ثُمَّ يُتَوَفَّى فَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ".

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی زما اودعیسی علیه السلام په مینځ کښې به بل نبی نه وي اويقينا چه عیسی علیه السلام به ښکته راکوزیږي تاسو چه ئې کله اووینئ نودده شناخت اوکړئ دې در میانه قد والاسړې دې او رنګ ئې سوروالي اوسپين والي ته مائل دې اوداسې به ښکاري چه دیښتو دمینځ نه ئې اوبه په توپونو را روانې دي او اګر چه دده ویښته به لمده شوي هم نه وي هغه به دخلقوسره داسلام دقبولولو په خاطر جهاد کوي اوصليب به مات کړي اوخنزير به قتل کړي اودکافرانو نه به جزيه اخستل موقوف کړي يعنی هغوی به اسلام قبلولوته سجبورکړي اويابه ئې قتل کړي، الله تعالی به دده په دوره کښې ټول مذهبونه برباد کړي اودې به ملعون دجال لره قتل کړي او بيا به هغه په دنيا کښې دڅلويښتو کالو پورې ژوندې پاتې شي ددينه پس به وفات شي او اهل اسلام به پخپله په ده باندې جنازه وکړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ – يَعْنِي عِيسَى نبى– وَإِنَّهُ نَازِلٌ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُ فَاعْرِفُوهُ .....الخ» ﴾

د دې حدیث تعلق د عیسی علیه السلام سره دې او زمونږ دا باب چه شروع دې دا باب د خروج الدجال په باره کښې دې امام نووی رحمه الله خو په کتاب الفتن کښې په نزول عیسی علیه السلام باندې مستقل باب تړلې دې اولا باب ما جاء فی المهدی، او دويم باب ما جاء فی نزول عيسى بن مريم او دريم باب ما جاء فی الدجال، او بيا د دجال متعلق ډير ابواب دی باب ما جاء من اين يخرج الدجال، ما جاء فی علامات خروج الدجال، ما جاء فی فتنة الدجال. چه د هغې د لاندې ئې يو اوږد حديث کر کړې دې، د هغې نه پس باب ما جاء فی صفة الدجال، باب ما جاء فی ان الدجال لا يدخل المدينة.. ما جاء فی قتل عيسى علیه السلام بن مريم الدجال، د دې ټولو نه پس بيا د ابن الصياد باب دې.

په حديث الباب کښې اصالة خو بيان د نزول عيسى علیه السلام دې خو چونکه په دې کښې دا هم دی چه هغه به د نزول عيسى علیه السلام نه پس مسيح دجال لره قتل کوی په دې مناسبت سره دا حديث مصنف رحمه الله دلته راوړې دې.

**قوله:** ﴿ قوله رجل مربوع الى الحمرة والبياض ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۶/۲، ۴۳۷) (صحيح)

## شرح الحدیث :

د عیسی علیه السلام د حلیه شریفه وغیره امورو بیان دي چه د هغوی قد به درمیانه وی، او رنګ به ئې سور سپین وی، دوه پیکه زیړو څادرو کښې به وی، وړاندې د هغوی د حسن او جمال ذکر دې، او د بدن د تروتازه والی ګویا اوس غسل کولو سره بهر راوتلې وی، پس په یو روایت کښې دی (اخرجه مسلم فی باب الاسراء/۹۵) ﴿ وَلَقِيتُ عِيسَى ». فَنَعَتَهُ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– « فَإِذَا رَبْعَةٌ أَحْمَرُ كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ »– يَعْنِي حَمَّامًا ﴾ او په یو روایت کښې دی.

کما فی المشکوة عن الترمذی : إذا طأطأ راسه قطر وإذا رفعه تحدرمنه مثل جمان کاللؤلؤ،

په مظاهر حق ۳٦٤/٤ کښې دی، کله چه هغوی ښکته کړی خپل سر نو د هغې نه به اوسسیږی خوله د هغوی او کله چه سر اوچت کړی نو راکوزیږی به د هغوی د ویښتو مبارکو اوبه په شان د دانو د چاندئ چه د ملغرو په شان به وی، یعنی په صفایئ او سپین والی کښې، هم په دې کښې وړاندې دی : یعنی چه کله خپل سر مبارک ښکته کړی نو د هغوی د سر مبارک نه به قطرې راپریوځی نورانی، او چه کله سر مبارک اوچت کړی نو بیا به هم هغه راساسی، کنایه ده د ډیر تازه والی نه او د هغوی د حسن وجمال نه.

وړاندې په روایت کښې دی چه هغوی به د خلقو سره قتال فرمائی د اسلام راوړلو دپاره، او صلیب به مات کړی یعنی نصرانیت به ختم کړی، او خنزیر به قتل کړی یعنی د هغې پالونکی لره او د هغې خوراک به حرام کړی او د هغې قتل به مباح کړی او جزیه به ساقط کړی، یعنی د جهاد په وخت به جزیه نه قبلوی بلکه اسلام یا قتل، او چونکه د دې حکم خبر خپله رسول الله ﷺ ورکوی نو ګویا دې وخت کښې به د قبول جزیه نسخ د رسول الله ﷺ د طرف نه وی نه د هغوی د طرف نه، او وړاندې دئ چه هغوی به په دنیا کښې تر څلویښتو کالو پورې وی او د هغې نه روستو به وفات شی او مسلمانان به د هغوی جنازه کوی او د مسلم په روایت کښې دی : ﴿ انه یهلک الدجال ثم یمکث الناس سبع سنین ﴾ یعنی خلق به دهغوی د وفات نه پس صرف اووۀ کالو پورې اوسیږی. په عون المعبود کښې دی چه د مسند احمد په روایت کښې "ویهلک المسیح الدجال" نه پس دا زیاتوالې دې چه ﴿ ثم وتقع الآمنة علی الأرض حتی ترتع الأسود مع الإبل والنمار مع البقر والذئاب مع الغنم ویلعب الصبیان بالحیات ﴾ یعنی عیسی علیه السلام چه کله دجال لره هلاک کړی نو په ټوله زمکه باندې به امن قائم شی تر دې چه شیر به د اوښ سره څریږی او پړانګ د غواګانو سره او لیوان د ګډو بیزو سره، او د انسانانو بچی به د مارانو سره لوبې کوی.

# بَابٌ فِي خَبَرِ الْجَسَّاسَةِ[1]

## باب: د دجال ملعون د جاسوسا نو بیان

(جسامه څوک وو؟ تطبیق بین الروایتین):

جساسه، د جساس مونث دې یعنی هغه زنانه چه د دجال جاسوسه او د هغې خبر ورکونکې ده، لکه چه په حدیث الباب کښې دی ﴿ فاذا انا بامرة تجر شعرها ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه هغه څوک زنانه ده او هم د دې باب په یو بل حدیث کښې هغې ته دابة وئیلې شوې ده. ﴿فدخلوا الجزیرة فلقیتهم دابة اهلب کثیرة الشعر ﴾ د دې دواړو روایتونو په باره کښې حضرت په بذل کښې لیکلې دی، ﴿ قیل فی التوفیق بینهما انه یمکن ان یکون له جاسوسان دابة وامراة، او انه یصح اطلاق الدابة علی الانسان لغة، فانه اسم لکل ما یدب علی الارض او لان الجساسة شیطان، یتمثل بای صورة شاء، فراها تارة بصورة امراة وتارة بصورة دابة ﴾ یعنی یا خو دې دا اوئیلې شی چه ممکنه ده د دجال دپاره دوه جاسوسان وی یو دابه او یو زنانه او یا دې دا اوئیلې شی چه د دابه اطلاق لغة په زنانه باندې هم صحیح دې، ځکه چه په زمکه ګرځیدونکې هر څیز ته دابه وائی، او یا دې دا اوئیلې شی چه چونکه جساسه د شیطان د جنس نه ده په دې وجه هغه په مختلفو شکلونو باندې متشکل کیږی. مصنف رحمه الله خبر دجساسه لره کوم چه د فاطمه بنت قیس حدیث دې په دوه طرقو سره ذکر کړې دې، اول په طریق د ابوسلمه عن فاطمه، او دویم د شعبی عن فاطمه، اول مختصر دې او دویم کښې تفصیل دې.

[۴۳۲۵] ([2]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَّرَ الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ ذَاتَ لَيْلَةٍ ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ: "إِنَّهُ حَبَسَنِي حَدِيثٌ كَانَ يُحَدِّثُنِيهِ تَمِيمٌ الدَّارِيُّ، عَنْ رَجُلٍ كَانَ فِي جَزِيرَةٍ مِنْ جَزَائِرِ الْبَحْرِ فَإِذَا أَنَا بِامْرَأَةٍ تَجُرُّ شَعْرَهَا، قَالَ: مَا أَنْتِ؟ قَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْقَصْرِ، فَأَتَيْتُهُ فَإِذَا رَجُلٌ يَجُرُّ شَعْرَهُ مُسَلْسَلٌ فِي الْأَغْلَالِ يَنْزُو فِيمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، فَقُلْتُ: مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا الدَّجَّالُ خَرَجَ نَبِيُّ الْأُمِّيِّينَ بَعْدُ، قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: أَطَاعُوهُ أَمْ عَصَوْهُ؟ قُلْتُ: بَلْ أَطَاعُوهُ، قَالَ: ذَاكَ خَيْرٌ لَهُمْ".

دفاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه یوه ورځ نبی علیه السلام ماسخوتن دمونځ دپاره ناوخته راغې کله چه راغې نوونې فرمائیل مادتمیم داري خبرې اوریدلې کوي چه دیوکس په باره کښې ئې کولې چه په سمندر دجزیرونه په یوه جزیره کښې وو (ددې کس کشتی په طوفان کښې دګیریدونه پس یوې جزیرې ته رسیدلې وه) نوهغه اووئیل اچانک زه دیوې ښځې سره مخامخ شوم هغې خپل ویښته رابښکل ما ورنه تپوس اوکړو څوک یې؟ هغې په جواب کښې اووئیل زه جاسوسه یم ته ددې کور طرف ته لاړ شه زه چه دغه کورته ورسیدم نو وي لیدل چه یو کس خپل ویښته راکاږې اوهغه په زنځیرونو تړلې شوې دې دزمې او اسمان په مینځ کښې توپونه وهې ماورنه تپوس اوکړو ته څوک یې؟ هغه اووئیل دجال یم

[1]) د دې خائې نه مې په یکم رمضان ۲۴ هجری د نهې په ورځ لیکلی شروع کړل في المدینة المنورة، زادها الله شرفا اللهم بلغه الي التمام یا ذالجود والاکرام)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۳۹) (صحیح)

ایا امیینو پیغمبر راغلي دی؟ ماجواب ورکړو چه هو، هغه بیاتپوس اوکړو چه دي خلقو دهغه تابعداری اوکړه اوکه نافرمانی؟ ما ورته په جواب کښې اووئیل چه فرمانبرداری ئې وکړله هغه اووئیل دا خبره ددې خلقو دپاره غوره ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلمأَخَّرَ الْعِشَاءَ الآخِرَةَ ذَاتَ لَيْلَةٍ ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ « إِنَّهُ حَبَسَنِي حَدِيثٌ كَانَ يُحَدِّثُنِيهِ تَمِيمٌ الدَّارِيُّ عَنْ رَجُلٍ كَانَ فِي جَزِيرَةٍ مِنْ جَزَائِرِ الْبَحْرِ الخ ﴾

دا فاطمه بنت قیس هم هغه ده د چا مشهور روایت چه په کتاب الطلاق باب المبوتة کښې تیر شوې دې، او کوم چه په ابواب الحیض کښې د فاطمې روایت تیر شوې دې هغه فاطمه بنت ابی حبیش ده.

### د جساسه قصه:

د روایت مضورن دا دې : فاطمه بنت قیس رضي الله عنها فرمائی چه یوه ورځ رسول الله ﷺ د ماسخوتن د مانځه دپاره ناوخته تشریف راوړلو او د تاخیر وجه ئې دا بیان اوفرمائیله چه تمیم داری رضي الله عنه ماته یو عجیب او غریب حدیث بیانولو چه د هغې په وجه راباندې ناوخته شو، او بیا رسول الله ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه روستو دا واقعه خلقو ته ډیر متوجه کولو سره بیان اوفرمائیله، پس د باب په دویم روایت کښې راځی چه : ﴿ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم- الصَّلاَةَ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَضْحَكُ ﴾....

**قوله:** ﴿ فَإِذَا أَنَا بِامْرَأَةٍ تَجُرُّ شَعْرَهَا ﴾ دا د تمیم داری رضي الله عنه مقوله ده هغوی فرمائی د دې جساسه په باره کښې چه هغه یو زنانه وه چه د هغې ویښتهٔ ډیر اوږده وو، زمکې ته رسیدل ګویا هغه ډیره هیبت ناکه وه.

دا روایت خو چونکه مختصر دې، په دویم روایت کښې د واقعې ابتداء داسې ده چه:

[٤٣٢٦] (1) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ حُسَيْنًا الْمُعَلِّمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، حَدَّثَنَا عَامِرُ بْنُ شَرَاحِيلَ الشَّعْبِيُّ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ، قَالَتْ: سَمِعْتُ مُنَادِيَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنَادِي: أَنِ الصَّلَاةَ جَامِعَةً، فَخَرَجْتُ فَصَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَ: لِيَلْزَمْ كُلُّ إِنْسَانٍ مُصَلَّاهُ، ثُمَّ قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ لِمَ جَمَعْتُكُمْ؟ قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: إِنِّي مَا جَمَعْتُكُمْ لِرَهْبَةٍ وَلَا رَغْبَةٍ وَلَكِنْ جَمَعْتُكُمْ أَنَّ تَمِيمًا الدَّارِيَّ كَانَ رَجُلًا نَصْرَانِيًّا فَجَاءَ فَبَايَعَ وَأَسْلَمَ، وَحَدَّثَنِي حَدِيثًا وَافَقَ الَّذِي حَدَّثْتُكُمْ، عَنِ الدَّجَّالِ حَدَّثَنِي، أَنَّهُ رَكِبَ فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ مَعَ ثَلَاثِينَ رَجُلًا مِنْ لَخْمٍ وَجُذَامٍ فَلَعِبَ بِهِمُ الْمَوْجُ شَهْرًا فِي الْبَحْرِ وَأَرْفَئُوا إِلَى جَزِيرَةٍ حِينَ مَغْرِبِ الشَّمْسِ، فَجَلَسُوا فِي أَقْرُبِ السَّفِينَةِ، فَدَخَلُوا الْجَزِيرَةَ، فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرَةُ الشَّعْرِ، قَالُوا: وَيْلَكِ مَا أَنْتِ؟ قَالَتْ: أَنَا الْجَسَّاسَةُ انْطَلِقُوا إِلَى هَذَا الرَّجُلِ فِي هَذَا الدَّيْرِ فَإِنَّهُ إِلَى خَبَرِكُمْ بِالْأَشْوَاقِ، قَالَ: لَمَّا سَمَّتْ لَنَا رَجُلًا فَرِقْنَا مِنْهَا أَنْ تَكُونَ شَيْطَانَةً، فَانْطَلَقْنَا سِرَاعًا حَتَّى دَخَلْنَا الدَّيْرَ فَإِذَا فِيهِ أَعْظَمُ إِنْسَانٍ رَأَيْنَاهُ قَطُّ خَلْقًا وَأَشَدُّهُ وَثَاقًا مَجْمُوعَةٌ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ وَسَأَلَهُمْ عَنْ نَخْلِ بَيْسَانَ وَعَنْ عَيْنِ زُغَرَ وَعَنِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ، قَالَ: إِنِّي أَنَا الْمَسِيحُ وَإِنَّهُ يُوشِكُ أَنْ يُؤْذَنَ لِي فِي الْخُرُوجِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَإِنَّهُ فِي بَحْرِ الشَّامِ أَوْ بَحْرِ الْيَمَنِ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ مَرَّتَيْنِ وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ قِبَلَ الْمَشْرِقِ، قَالَتْ:

---

(1): صحيح مسلم/الفتن ٢٤ (٢٩٤٢)، سنن الترمذي/الفتن ٦٦ (٢٢٥٣)، ق/الفتن ٣٣ (٤٠٧٤) (تحفة الأشراف: ١٨٠٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٧٤، ٤١١، ٤١٢، ٤١٣، ٤١٥، ٤١٦، ٤١٨) (صحيح)

حَفِظْتُ هٰذَا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

دفاطمه بنت قیس ﷝ نه روایت دي فرمائي چه مادنبي ﷺ دموذن نه اوریدلی دی چه اواز ئې کولومونځ جمع کیدونکې دي (یعني دمونځ دپاره حاضریدل اویوځای کیدل ضروري دي) نوزه هم اووتلم اودنبي ﷺ سره مې مونځ اداکړو کله چه نبي ﷺ خپل مونځ مکمل کړو نو دخندا په حال کښې په نمبر باندې کښناستو اووئې فرمائیل هریو کس دخپل مونځ په ځائې باندې ناست پاتې شئ ، اوبیا ئې اورفرمائیل ایا تاسوته معلومه ده چه ماتاسوڅه دپاره راټول کړي يئ؟ مونږ اووئیل الله اودهغه رسول ته ددې ښه علم دې ، نبي ﷺ اوفرمائیل ما تاسو د یرولو اود زیري ورکولو دپاره نه يئ راجمع کړي بلکه ددې اطلاع درکولو دپاره ما راجمع کړي يئ چه تمیم داري یونصراني سړې وو بیا هغه راغې او زما په لاسو ئې اسلام قبول کړو او بیعت ئې وکړو اوده ماته یوه داسې خبره کړې ده چه دهغه خبره ددې خبرې سره مطابق شوه کومه چه ماتاسوته د دجال په باره کښې کړې وه چه هغه په یوه سمندري کشتئ کښې سور وو ددې دیرشو لخمي او جزامي کسانوسره دسمندر چپو په دوی باندې یوه میاشت لوبې وکړې خوبیاهغه یوه ورځ دنمر دپریوتو په وخت کښې یوې جزیرې ته لاړو اوهلته داس په شان یوځناور چن لویه الکۍ او اوږده ویښته ئې وو وموندو ده ته خلقواووئیل اې بدبخته ته څه شې يې؟ هغه اووئیل زه جاسوس یم، تاسو یقینا ددې آیت کریمه تلاوت کوئ اوتاسودې کس ته ورروسته ورشئ څکه چه دغه کس ستاسو نه دخبریدو ډیر شوق مند دې ، تمیم وائی کله چه دغه ښځې زمونږ په وړاندې ددغه کس نوم واخستو نومونږ ورنه ویریدو هسې نه چه چرته شیطان نه وي نو مونږ ددغه ځائې نه په تیزه منډه راغلو او د کورته داخل شو مونږ دلته دومره لوي کس اولیدو چه مونږ چرته مخکښې داسې څوک نه وو لیدلې دغه کس ښه مضبوط تړلې شوې وو او دواړه لاسونه ئې په څټ پورې تړل شوي وو اوبیا ئې حدیث تر آخره پورې بیان کړو اوده نه ئې تپوس اوکړو چه دبیسان مقام کجورې څنګه وې اوزغر نوی چینه څنګه ده اودنبي ﷺ حال څنګه دې؟ ددینه پس ئې اووئیل زه مسیح دجال یم اونزدې ده چه ماته ددې ځای نه دوتلو اجازت راکړې شي، بیانبي ﷺ اوفرمائیل دجال په شام کښې په سمندرکښې یاداچه په یمن کښې په سمندرکښې نشته بلکه مشرق طرف ته دې اونبي ﷺ پخپل لاس مبارک باندې دوه پیرې دمشرق جانب ته اشاره اوفرمائیله فاطمي ﷝ اووئیل مادا حدیث درسول الله و نه یادکړې دې اوبیا راوی پوره حدیث بیان کړو.

رسول الله ﷺ په منبر باندې مسکې کیدو سره تشریف فرما شو او دا ئې اوفرمائیل چه هر سړې دې په خپل ځائې باندې کینی، او بیا د دې نه روستو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زما مقصد دې وخت کښې ستاسو مخې ته هغه واقعه بیانول دی کومه چه ماته تمیم داری ﷛ بیان کړې ده، او وې فرمائیل چه تمیم داری ﷛ یو نصرانی سړې وو، پس دې ماته راغلو او زما په لاس باندې ئې د اسلام بیعت اوکړو او ورسره ئې هغه واقعه هم بیان کړه چه کومه به ما تاسو ته د دجال په باره کښې وئیله. هغوی ماته بیان اوکړو چه هغوی په یوه کشتئ کښې د

درياب سفر کولو د قبيله لخم او جذام د ديرشو کسانو سره، د سمندر مخالف هواګانو او چپو هغوی تر يوې مياشتې پورې په سمندر کښې تاوهل بيا يوه ورځ هغوی داسې اوکړل چه خپله کشتئ ئې يوې جزيرې ته نزدې کړه د ماښام په وخت، يعنی دلرې نه په جزيره نظر راتلوباندې ئې دخپلې کشتئ لنګر واچولو، ﴿فَجَلَسُوا فِي أَقْرُبِ السَّفِينَةِ﴾ او بيا په وړه کشتئ کښې کيناستلو سره هغه جزيرې ته داخل شو، لفظ اقرب د قارب جمع ده يعنی وړه کشتئ، دا دستور دې چه په بحری سفر کښې ځان سره په لويه کشتئ کښې وړې کشتئ هم ساتلې شی چه د ضرورت په وخت د هغې نه هم کار واخستلې شی.

**قوله:** ﴿ فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرَةُ الشَّعْرِ ﴾ (حاشيه : او د ترمذی په روايت کښې دی ﴿ فاذاهم بدابة لباسة ناشرة شعرها، په دې باندې په کوکب کښې ليکلې دی : ای کثيرة الملابس ولعله عبر عن کثرة الشعر بکثرة اللباس اه او ممکنه ده چه دا د مبالغې صيغه وی لبس په معنی د خلط سره، يعنی خلقو لره په مغالطه کښې اچونکې او مکاره، صاحب قاموس هم دا اختيار کړې ده) نو کله چه دا خلق هغه جزيرې ته اورسيدل نو هلته هغوی يو زنانه اوليده ګڼړو ويښتو والا (د ويرونکی شکل والا) ﴿ قَالُوا وَيْلَكِ مَا أَنْتِ قَالَتْ أَنَا الْجَسَّاسَةُ انْطَلِقُوا إِلَى هَذَا الرَّجُلِ فِي هَذَا الدَّيْرِ فَإِنَّهُ إِلَى خَبَرِكُمْ بِالأَشْوَاقِ ﴾ هغوی د دې زنانه نه تپوس اوکړو چه ته څه بلا ئې هغې اووې زه جساسه يم (يعنی د دجال جاسوسه) او وې وئيل چه لاړ شئ هغه سړی طرف ته کوم چه په دغه ګرجه کښې دې هغه ستاسو د خبرونو او د خبرو ډير مشتاق دې، يعنی هغوی د بهر خبرونه اوريدل غواړی چه په دنيا کښې څه حالات شروع دی او څه څه انقلابات راغی.

تميم داری ﷺ فرمائی چه کله هغې د رجل لفظ اووې چه لاړ شئ هغه سړی ته، نو مونږ اويريدو چه کيدې شی دې دا انسان نه وی بلکه د جناتو نه دې، بهر حال هم د هغې د ښودنې مطابق مونږ هغه ګرجې طرف ته په تيزئ سره لاړو ﴿ فاذا فيه اعظم انسان رأيناه قط ﴾ هلته مونږ اوليدل چه يو داسې لوئې بدن والا انسان دې کوم چه مونږ چرته هم نه وو ليدلې، چه د خپل خلقت په اعتبار سره هم ډير لوئې وو او تړلې شوې هم ډير په سخته طريقه باندې وو د هغه لاسونه او خپې په سټ کښې تړلې شوې وو، ﴿ فلکر الحديث ﴾ دا اشاره ده اختصار طرف ته چه مونږ روايت لره مختصر کوو، او هغه اختصار غالبا هم هغه دې کوم چه د باب په اول روايت کښې تير شوې دې. ﴿ فَإِذَا رَجُلٌ يَجُرُّ شَعْرَهُ مُسَلْسَلٌ فِي الأَغْلاَلِ يَنْزُو فِيمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ ﴾ چه هغه په زنځيرونو کښې د تړلې کيدو سره سره پورته طرف ته رازوړند وو، او توپونه ئې وهل.

**قوله:** ﴿ وَسَأَلَهُمْ عَنْ نَخْلِ بَيْسَانَ وَعَنْ عَيْنِ زُغَرَ وَعَنِ النَّبِيِّ الأُمِّيِّ ﴾ يعنی هغه (دجال) د دې خلقو نه د ډيرو خبرو په باره کښې تپوس اوکړو يو د هغې نه دا دې چه د نخل بيسان په باره کښې ئې تپوس اوکړو ﴿ هل يثمر ام لا ﴾ چه په هغې باندې ميوه راځی که نه، او د زغر د چينې په باره کښې ئې تپوس اوکړو چه آيا د هغې اوبه جاری دی که نه؟

**قوله:** بيسان په اردن کښې د يو ځائې نوم دې چه په هغې کښې د کهجورو باغونه په کثرت

سره دی، او زغر په شام کښې يو ځائې دې، صاحب د معجم البلدان فرمائي چه زه بيسان ته ديرځل تللې يم خو اوس په هغې کښې صرف دوه اونې دکهجورو پاتې دی، او هغه هم اوچې، کوم چه د خروج الدجال د علاماتو نه ده او د عين زغر په باره کښې هغوی فرمائي چه هغه به په آخره زمانه کښې اوچ شي او دا يعنې د هغې اوبه منقطع کيدل د علامات قيامت نه دی.

په دې روايت کښې خو صرف دومره ده ﴿ وعن النبي الامي ﷺ ﴾ او په اول روايت کښې تير شوې دی، چه آيا د اميين د رسول ﷺ خروج او ظهور شوې دې نو تميم داری رضي الله عنه جواب ورکړو چه او شوې دې، بيا په دې باندې دجال د هغوی نه تپوس اوکړو: ﴿ اطاعوه ام عصوه الخ ﴾ چه خلق د هغوی اطاعت کوی که نافرمانی؟ هغوی جواب ورکړو چه د هغوی خبره منی، په دې باندې هغه اووې: ﴿ ذلک خير لهم ﴾ چه د هغوی اطاعت کول د هغوی په حق کښې غوره دی. اوګورئ دجال څه وائي، حقيقت د کذاب په ژبه باندې هم راځي.

**قوله:** ﴿ قَالَ إِنِّي أَنَا الْمَسِيحُ وَإِنَّهُ يُوشِكُ أَنْ يُؤْذَنَ لِي فِي الْخُرُوجِ ﴾ او هغه خپله اووې چه زه مسيح دجال يم، او ډير زر ماته د وتلو اجازت کيدونکې دې د دې حديث نه معلومه شوه چه دجال د اول نه په دنيا کښې موجود دې او په بعض جزائرو کښې محبوس او مقيد دې، قيامت ته نزدې به په خپل وخت باندې د هغه خروج او ظهور وی او د دې نه دا هم ثابته شوه چه ابن صياد دجال نه دې.

## محل د خروج دجال :

**قوله:** ﴿ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم « وَإِنَّهُ فِي بَحْرِ الشَّامِ أَوْ بَحْرِ الْيَمَنِ لاَ بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ مرتين» ﴾ [1] رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه يعنې دجال يا خو په بحر شام کښې دې يا په بحر يمن کښې، نه بلکه د مشرق په طرف کښې دې، او دا خبره رسول الله ﷺ دوه کرته اوفرمائيله. په "ما هو "کښې لفظ "ما " زائده دې.

وړاندې په دريم روايت کښې راځي چه په هغې کښې داسې دی

[٤٣٢٧] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صُدْرَانَ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ مُجَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَامِرٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي فَاطِمَةُ بِنْتُ قَيْسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ وَكَانَ لاَ

---

[1] ) الاشاعة لاشراط الساعة : کښې د دجال د محل خروج او وقت خروج مستقل بحث دې هغوی ليکی : اما محل خروجه فالمشرق جزما، ثم جاء في رواية انه يخرج من خراسان روي ذلك احمد والحاكم من حديث ابي بكر رضي الله عنه، وفي اخري انه يخرج من اصبهان اخرجها مسلم وعند الحاكم وابن عساكر من حديث ابن عمر رضي الله عنهما انه يخرج من يهودية اصبهان اي محلة خارج اصبهان ومثله عند احمد عن عائشة رضي الله عنها وعند الطبراني من حديث فاطمة بنت قيس يخرج من بلدة يقال لها اصبهان من قرية من قراها يقال لها استقباد اهـ وفيه ايضا في موضع اخر : وعن كعب الاحبار قال يتوجه الدجال فينزل عند باب دمشق الشرقي اي ابتداء قبل خروجه ثم يلتمس فلا يقدر عليه شئ لم يري عند المنارة التي عند نهر الكسوه ثم يطلب فلا يدري اين توجه فينسي ذكره ثم يظهر بالمشرق فيعطي الخلافة ثم يظهر السحر ثم يدعي النبوة فيتفرق الناس عنه يعني المسلمين فياتي النهر فيامره ان يسيل فيسيل ثم يامره ان يرجع فيرجع ثم يامره ان ييبس فييبس الحديث بطوله رواه نعيم بن حماد، ويتبعه سبعون الفا من يهود اصبهان وثلاثة عشر الف امراة وعامة من يتبعه اليهود والترك والنساء، ويبعث الله له شياطين فيقولون له استعن بنا علي ما تريد فيقول نعم اذهبوا الي الناس فقولوا انا ربهم فيبثهم في الآفاق الي غير ذلك اهـ

[2] ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٠٢٤) (ضعيف)

يَصْعَدُ عَلَيْهِ إِلَّا يَوْمَ جُمُعَةٍ قَبْلَ يَوْمَئِذٍ ثُمَّ ذَكَرَ هَذِهِ الْقِصَّةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَابْنُ صُدْرَانَ بَصْرِيٌّ غَرِقَ فِي الْبَحْرِ مَعَ ابْنِ مِسْوَرٍ لَمْ يَسْلَمْ مِنْهُمْ غَيْرُهُ.

دفاطمه بنت قيس رضي الله عنها نه روايت دي فرمائى چه نبى عليه السلام دماسپخين مونځ اوكړو او بيا په منبر باندې كښيناستو اونبى عليه السلام به ددينه مخكښې دجمعې نه علاوه په نورو ورځوكښې په منبرباندې نه كيناستو ليكن صرف په دې ورځ په منبر كيناستو اوهمدا واقعه ئې بيان كړه، امام ابوداؤد فرمائى ابن صدران دبصرى اوسيدونكى وو اوداابن مصور سره په اوبو كښې غرق شوې وو او په دې خلقو كښې دده نه علاوه بل چا اسلام نه وو قبول كړې.

**قوله:** ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ وَكَانَ لَا يَصْعَدُ عَلَيْهِ إِلَّا يَوْمَ جُمُعَةٍ قَبْلَ يَوْمَئِذٍ ﴾ د دې نه معلوميږى چه دا قصه رسول الله ﷺ د ماسپخين د مانځه نه پس اورولې وه.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ صُدْرَانَ بَصْرِيٌّ غَرِقَ فِي الْبَحْرِ مَعَ ابْنِ مِسْوَرٍ لَمْ يَسْلَمْ مِنْهُمْ غَيْرُهُ ﴾

په سند كښې محمد بن صدران مذكور دې د مصنف رحمه الله استاذ، مصنف د هغوى په باره كښې فرمائى چه يو ځل ئې د ابن مسور د جماعت سره د درياب سفر كولو، د هغه كشتئ ټول مسافر غرق شو په درياب كښې په هغوى كښې څوك هم نه وو بچ شوې سوا د محمد بن صدران نه.

[٤٣٢٨] ()[1] حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، أَخْبَرَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جُمَيْعٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى الْمِنْبَرِ: إِنَّهُ بَيْنَمَا أُنَاسٌ يَسِيرُونَ فِي الْبَحْرِ فَنَفِدَ طَعَامُهُمْ، فَرُفِعَتْ لَهُمْ جَزِيرَةٌ، فَخَرَجُوا يُرِيدُونَ الْخُبْزَ فَلَقِيَتْهُمُ الْجَسَّاسَةُ، قُلْتُ لِأَبِي سَلَمَةَ: وَمَا الْجَسَّاسَةُ؟ قَالَ: امْرَأَةٌ تَجُرُّ شَعْرَ جِلْدِهَا وَرَأْسِهَا قَالَتْ: فِي هَذَا الْقَصْرِ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ وَسَأَلَ عَنْ نَخْلِ بَيْسَانَ، وَعَنْ عَيْنِ زُغَرَ، قَالَ: هُوَ الْمَسِيحُ، فَقَالَ لِي ابْنُ أَبِي سَلَمَةَ: إِنَّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ شَيْئًا مَا حَفِظْتُهُ، قَالَ: شَهِدَ جَابِرٌ أَنَّهُ هُوَ ابْنُ صَيَّادٍ قُلْتُ: فَإِنَّهُ قَدْ مَاتَ قَالَ: وَإِنْ مَاتَ قُلْتُ: فَإِنَّهُ أَسْلَمَ، قَالَ: وَإِنْ أَسْلَمَ، قُلْتُ: فَإِنَّهُ قَدْ دَخَلَ الْمَدِينَةَ، قَالَ: وَإِنْ دَخَلَ الْمَدِينَةَ.

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ يوه ورځ په منبر باندې اوفرمائيل څه كسانوپه درياب كښې سفركولو اوددوى سره خوراک ختم شو نويوه جزيره ورته راپورته كړې شوه دوى دډوډئ په تالاش كښې پدې جزيره كښې روان شو اويوه جاسوسه ښځه ئې پيدا كړه ما ابوسلمه رضي الله عنه ته اووئيل هغه جاسوسه ښځه څوک وه؟ هغه اووئيل هغه يوه داسې ښځه وه چه دخپل سر اودبدن ويښته ئې راښكل اوبيا ئې حديث تر آخره پورې بيان كړو، ددينه پس دجال دبيسان مقام دونوپه باره كښې تپوس اوكړو اودزغر دچينې په باره كښې ئې تپوس اوكړو راوى وئيلى دى چه همدا دجال وو، ابن ابى سلمه وئيلى دى چه جابر په دې روايت كښې نور څه هم بيان كړي وو ليكن هغه ماته ياد نه دي اودائې هم وئيلي وو چه دجال ملعون همدغه ابن صياد دې ماورته اووئيل هغه خومړ شوې دې هغه راته په جواب كښې اووئيل اګركه مړ شوې وي ماورته اووئيل هغه خواسلام قبول كړې وو نوده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٦١) (ضعيف الإسناد)

اووئيل اګرکه اسلام ئې قبول کړې وي ماورته اووئيل هغه خو مدينه ته داخل شوې وو اودجال خو مدينه ته نشي داخليدلې) هغه اووئيل اګرچه مدينې ته هم داخل شوې وي.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى عَنْ جَابِرٍ رضى الله تعالى عنهما الخ ﴾ په دې روايت کښې داسې دی ﴿ فَنَفِدَ طَعَامُهُمْ فَرُفِعَتْ لَهُمْ جَزِيرَةٌ فَخَرَجُوا يُرِيدُونَ الْخُبْزَ فَلَقِيَتْهُمُ الْجَسَّاسَةُ ﴾ يعنی د هغه خلقو د لارې توخه ختمه شوه د خوراک د انتظام کولو دپاره دې جزيرې ته داخل شوې وو، هلته ئې اتفاقا دا جساسه په نظر شوه.

### (ايا ابن صياد دجال وو؟)

دا روايت د فاطمه بنت قيس رضي الله عنها په ځائې د جابر رضي الله عنه نه روايت دې، وړاندې د دې حديث په آخر کښې دی:

**قوله:** ﴿ قَالَ شَهِدَ جَابِرٌ أَنَّهُ هُوَ ابْنُ صَيَّادٍ قُلْتُ فَإِنَّهُ قَدْ مَاتَ. قَالَ وَإِنْ مَاتَ الخ ﴾

ابوسلمه عبدالرحمن وائی چه جابر رضي الله عنه به فرمائيل چه دا دجال هم دغه ابن الصياد دې، هغوی فرمائی چه په دې باندې ما د هغوی نه تپوس اوکړو چه ابن صياد خو مړ شوې دې (او دجال په بعض جزائرو کښې موجود دې) هغوی اوفرمائيل اګر چه مړ دې خو بيا هم، ما اووې چه ابن الصياد خو اسلام قبول کړې وو، نو هغوی اوفرمائيل: اګر چه اسلام ئې قبول کړې وی، هم دغه شان وړاندې د دخول مدينه ذکر هم دې.

په دې باندې په بذل کښې د فتح الودود نه نقل کړې دی چه: وكانه مبنى على تجويز تعدد الصورو المظاهر كما هو منقول فى بعض الاولياء..... يعنی يو سړې په مختلف صورتونو او مختلف مواضع کښې اوليدلې شی داسې کيدې شی لکه چه د بعض اولياء په باره کښې منقول دی، خو په حاشيه د ابوداؤد کښې امام بيهقی او د حافظ ابن کثير نه د دې خلاف ليکلې دی، ابن کثير رحمه الله فرمائی چه ابن صياد دجال صغير وو، او ابن صياد هغه دجال نه دې د چا خروج چه به په آخره زمانه کښې وی د چا دليل چه د فاطمه بنت قيس رضي الله عنها حديث دې او هم دا خبره امام بيهقی رحمه الله هم فرمائيلې ده، بلکه دا چه کوم حضرات دا دواړه يو منی د هغوی په علم کښې د تميم داری رضي الله عنه دا واقعه نه ده راغلې، والا فالجمع بينهما بعيد جدا الى آخر ما فى حاشية شيخ الهند ٢٤٧/٢)

حديث فاطمة المطول اخرجه مسلم والحديث الثالث اخرجه ابن ماجه، واخرجه الترمذی وفی الفاظه اختلاف واخرجه النسائی بنحو من حديث مسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي خَبَرِ ابْنِ صَائِدٍ

### باب د ابن صياد په باره کښې بيان

دا هم هغه ابن الصياد دې د کوم چه پورته ذکر راغلې دې، ابن الصياد په او ابن صائد دواړو طريقو سره نقل دې، د احاديث الباب نه معلوميږی چه دا ابن صياد يو يهودی هلک وو چه د کاهنانو په شان به ئې د غيب خبرې بيانولې، بعض صحابه کرامو لکه عمر او ابن عمر رضي الله عنهما به قسم خوړلو چه دجال هم دا دې. امام نووی رحمه الله فرمائی چه ابن صياد د چا نوم چه صفا دې علماء کرامو فرمائيلې دی چه د هغه قصه هم ډير ګرانه او مشتبه ده. يعنی

دا چه مسيح دجال چه كوم مشهور دې هغه هم دا دې او كه د هغه نه علاوه بل څوک دې، خو په دې كښې شک نشته چه هغه هم يو دجال من الدجاجله ضرور دې. د احاديثو د ظاهر نه دا معلوميږي چه په رسول الله ﷺ باندې هم دې باره كښې څه وحی نه وه نازله شوې، خو رسول الله ﷺ ته د صفات دجال وحی شوې وه، او په ابن صياد كښې قرائن محتمله د دې خبرې موندلې شو خو رسول الله ﷺ د هغه په باره كښې هيڅ قطعي فيصله نه وه فرمائيلې هم دا وجه وه رسول الله ﷺ عمر رضي الله عنه ته چه كله هغه د ابن صياد د قتل اجازت غوښتلې وو فرمائيلې وو چه كه واقعی دا دجال وی نو ته د هغه په وژلو باندې قادر نه ئې (ځكه چه د هغه په باره كښې خو دا فيصله شوې ده چه عيسی عليه السلام به ئې قتل كوی) باقی خپله د ابن صياد دا احتجاج او استدلال (دې باره كښې چه هغه دجال نه دې) چه زه خو مسلمان يم او دجال به كافر وی، او دا چه دجال خو به لا ولد وی او زما اولاد شوې دې او دا چه دا دجال به مكې او مدينې (زادهما الله شرفا) ته نه شی داخليدې او زه په مدينه كښې مستقل اوسيږم، وغيره وغيره، دا استدلال صحيح نه دې، ځكه چه رسول الله ﷺ چه كوم د دجال صفات بيان فرمائيلی دی نو د هغې مطلب خو دا دې چه كله د دجال خروج اوشی په دنيا كښې د دجال په حيثيت نو هغه وخت به په هغه كښې دا صفات موندلې شی، حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې تفصيلی كلام فرمائيلې دې په كتاب الاعتصام كښې، په باب ﴿من رای ترک النكير من النبی ﷺ حجة الخ﴾ د لاندې پس هغې ته رجوع اوكړه كه دې خوښه وی. (كذا فی العون)

امام نووی رحمه الله هم په شرح د مسلم كښې په دې باندې ډير كلام فرمائيلې دې د هغې طرف ته دې رجوع اوكړې شی، او د دې باب په آخر كښې حضرت هم په بذل المجهود كښې په دې باندې كلام فرمائيلې دې په آخر كښې ليكی: واقرب ما يجمع به بين ما تضمنه حديث تميم وكون ابن صياد هو الدجال أن الدجال بعينه هو الذي شاهده تميم موثقا وأن ابن صياد شيطان تبدى في صورة الدجال في تلك المدة إلى ان توجه إلى أصبهان فاستتر مع قرينه إلى ان تجيء المدة التي قدر الله تعالى خروجه فيها ولشدة التباس الأمر في ذلك سلك البخاري مسلك الترجيح فاقتصر على حديث جابر عن عمر في ابن صياد ولم يخرج حديث فاطمة بنت قيس في قصة تميم اهـ بزيادة من الفتح (۱۳/ ۳٤۰)

[٤٣٢٩] ([1]) حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ خُشَيْشُ بْنُ أَصْرَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَرَّ بِابْنِ صَائِدٍ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ عِنْدَ أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ وَهُوَ غُلَامٌ فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى ضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ، ثُمَّ قَالَ: "أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟ قَالَ: فَنَظَرَ إِلَيْهِ ابْنُ صَيَّادٍ، فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الْأُمِّيِّينَ، ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: آمَنْتُ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ، ثُمَّ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا يَأْتِيكَ؟ قَالَ: يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خُلِطَ عَلَيْكَ الْأَمْرُ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي قَدْ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئَةً وَخَبَأَ لَهُ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ سورة

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ۷۹ (۱۳٥٤)، الجهاد ۱۷۸ (۳۰٥٥)، الأدب ۹۷ (٦٦۱۸)، صحيح مسلم/الفتن ۱۹ (۲۹۳۰)، سنن الترمذي/الفتن ٦۳ (۲۲٤۹)، (تحفة الأشراف: ٦۹۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱٤۸، ۱٤۹) وأعاده المؤلف في السنة (٤۷٥۷) (صحيح)

الدخان آية ».قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ: هُوَ الدُّخُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ، فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ائْذَنْ لِي فَأَضْرِبَ عُنُقَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ يَكُنْ فَلَنْ تُسَلَّطَ عَلَيْهِ يَعْنِي الدَّجَّالَ وَإِلَّا يَكُنْ هُوَ فَلَا خَيْرَ فِي قَتْلِهِ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ و دخپلو صحابه كرامو سره چه عمر رضي الله عنه په كښې هم وو دابن صياد په خوا كښې تيريدل په دې وخت كښې ابن صياد ديني مغاله دقلا سره د ماشومانو سره لوبې كولې او په دې وخت كښې دې هم ماشوم وو دې دنبي ﷺ دورتلونه خبر نشو تردې چه نبي ﷺ دده په شاباندې لاس كيخودو او ورته ئې اووئيل ايا ته ددې خبرې ګواهي وركوې چه زه دالله رسول يم هغه دنبي ﷺ طرف ته وكتل او وئې وئيل زه ګواهي وركوم چه ته په اهل عربو كښې داميانو رسول بې ، بيابن صياد نبي ﷺ ته اووئيل آيا ته ګواهي وركوې چه زه دالله رسول بم نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ماپه الله اودهغه په رسولانو ايمان راوړې دې بيانبي ﷺ ده ته اووئيل ايا تاته څه شې راځي؟ ده جواب وركړو چه ماته خو صادق اوكاذب راځي نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ستا معامله مشتبه ده نبي ﷺ اوفرمائيل ماستاپه باره كښې پخپل زړه كښې يوه خبره پټه نيولې ده اونبي ﷺ دا ايت كريمه : ﴿يوم تاتي الشتاء بدان مبين﴾ په زړه كښې پټ اونيولو هغه آووئيل پټ نيولې شوې شې دخ دې نبي ﷺ ورته اوفرمائيل لرې شه ته دخپلې اندازې نه مخكښې نشې تلې عمر فاروق له عرض اوكړو اې دالله رسوله ماته دده دځټ دوهلو اجازت راكړه نبي ﷺ اوفرمائيل كه چرې دې دجال وي نوستاپه ده باندې زورنه رسيږي اوكه چرې دجال نه وي نودده په وژلو كښې ستادپاره هيڅ خيرنشته.

د باب د اولنې حديث مضمون دا دې چه ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه يو ځل رسول الله ﷺ د خپلو څو ملګرو سره چه په هغوى كښې عمر رضي الله عنه هم وو په ابن صياد باندې تير شو په داسې حال كښې چه ابن صياد د قبيله بنومغاله د اوچت كور يا غونډئ سره نزدې د ماشومانو سره لوبې كولې، هغه ته د رسول الله ﷺ د تيريدو خبر او نه شو تر دې چه رسول الله ﷺ خپل لاس مبارک د هغه په ملا باندې اوهلو، او وې فرمائيل ﴿ اتشهد انى رسول الله ﴾ هغه رسول الله ﷺ ته اوكتل او وې وئيل چه زه ګواهي وركوم چه ته رسول الاميين ئې. دا اشاره ده قوم عرب طرف ته ځكه چه دې خو په ظاهر كښې د يهودو نه وو، بيا ابن صياد خپله رسول الله ﷺ ته اووئيل : ﴿ اتشهد انى رسول الله ﴾ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿امنت بالله ورسله ﴾ يعنى كوم چه واقعى د الله پاک حقيقى رسولان دى په هغوى زما ايمان دې.

په دې باندې د حضرت ګنګوهى رحمه الله په تقرير كښې ليكلې دى چه رسول الله ﷺ په صراحة سره د هغه د رسالت انكار اونكړو كيدې شى په دې مصلحت سره چه د هغه د رسول الله ﷺ نه ويره پيدا نه شى چه په هغې سره به د رسول الله ﷺ مقصود فوت شى يعنى رسول الله ﷺ خو د هغه نه نور سوالات هم كول چه د هغې جوابونه مطلوب وو، او بهر حال چه كومه خبره رسول الله ﷺ اوفرمائيله هغه سراسر حق ده چه په هغې سره د هغه د رسالت د دعوى خپله ترديد كيږى بيا رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوفرمائيلو : ﴿ ما ياتيک ﴾ تا ته

څه راځي؟ يعنې د غيب خبرونه کوم چه ته بيانوې، هغه جواب ورکړو : ﴿ياتينى صادق وكاذب ﴾ چه ماته دواړه قسم خبرې رارسيږي رښتيا هم او دروغ هم، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل : ﴿خلط عليک الامر ﴾ چه ستا معامله مخلوط او ګډه وډه ده. بيا رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه ما ستا دپاره په خپل زړه کښې يو خبره پټه کړې ده، او رسول اللهﷺ په خپل زړه مبارک کښې دا خبره پټه کړې وه ﴿يوم تاتى السماء بدخان مبين ﴾ هغه د سوچ کولو نه پس اوئيل : هو الدخ چه هغه دخ دې رسول اللهﷺ اوفرمائيل : څه لرې شه ! ته هرګز د خپل حيثيت نه وړاندې نه شې تلې. ﴿اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ ﴾.

ابن صياد پوره جمله او پوره آيت کوم چه رسول اللهﷺ زړه کښې نيولې وو څه بيان کړو صرف کلمه دخان ئې هم پوره بيان نه کړه هم په دې وجه رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه بس ستا حقيقت معلوم شو، خو دلته دا سوال واردېږي چه هغه چه دا څه بيان کړل دا ئې څنګه بيان کړل اګر چه هغه ناقص کلمه ولې نه وی.؟ د دې جواب دا ليکلې شوې دې چه کيدې شي رسول اللهﷺ د هغې ذکر بعض صحابه کرامو سره کړې وی چه د هغې څه حصه شيطان استراق کړې وی، يا په آسمان کښې د هغې ذکر شوې وی او د هغه ځائې نه شيطان سرقه کړې وی او بيا شيطان د هغې خبر ابن صياد ته ورکړې وی لکه چه معروف ده چه شياطين د سرقه کولو نه پس کاهنانو ته د هغې خبرونه ورکوی. (كذا فى البذل عن الفتح الودود) ﴿فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ الخ ﴾ سيدنا عمرؓ د رسول اللهﷺ نه د هغه د قتل په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه که هم دا ابن صياد دجال دې نو بيا خو ته د هغه په قتل کولو باندې نه شې قادر کيدې او که داسې نه وی نو بيا د دهٔ په قتل کولو کښې هيڅ خير نشته، ځکه چه ابن صياد په يهودو کښې دې چا سره چه د مصالحت معامله شوې ده لهذا هغه ذمی شو. والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى وليس فى حديثهم، وخماله ﴿يوم تاتى السماء بدخان مبين ﴾، قاله المنذرى.

په وړاندې روايت کښې راځي :

[٤٣٣٠]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ: "وَاللَّهِ مَا أَشُكُّ أَنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ ابْنُ صَيَّادٍ".

د نافع نه روايت دې فرمائی چه ابن عمر دا وئيل په الله قسم زه په دې کښې شک نه کوم چه مسيح دجال ابن صياد دې.

﴿كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ وَاللَّهِ مَا أَشُكُّ أَنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ ابْنُ صَيَّادٍ ﴾ او د دې نه پس دا راځی محمد بن المنكدر فرمائی چه ما جابر بن عبداللهؓ اوليدلو هغوی به قسم خوړلو سره فرمائيل چه ابن صياد دجال دې، ما اووې چه تاسو په دې باندې د الله پاک قسم خورئ؟ نو هغوی اوفرمائيل چه عمرؓ هم په دې باندې قسم خوړلې وو د رسول اللهﷺ مخکښې نو هغوی انکار نه وو فرمائيلې.

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف:) (صحيح الإسناد)

[٤٣٣١](1)حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَحْلِفُ بِاللَّهِ أَنَّ ابْنَ صَائِدٍ الدَّجَّالُ، فَقُلْتُ: تَحْلِفُ بِاللَّهِ؟ فَقَالَ: "إِنِّي سَمِعْتُ عُمَرَ يَحْلِفُ عَلَى ذَلِكَ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُنْكِرْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دمحمدبن المنكدر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ما جابربن عبدالله وليدو چه په الله ئې قسم وکړو چه ابن صياد دجال دې ماووئيل چه اياتاسو يدې باندې قسم کوئ هغه ووئيل چه ما دنبي ﷺ سره عمر رضي الله عنه په قسم کولو ليدلې وو مګر نبي ﷺ دا خبره بده ونه ګڼړله.

وحديث جابر رضي الله عنه اخرجه البخاري ومسلم، قاله المنذري.

[٤٣٣٢](2)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ".

د جابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زمونږنه دحرې په ورځ ابن صياد ورک شو.

﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ﴾ ابن صياد چه په مدينه کښې اوسيدو د هغه په باره کښې جابر رضي الله عنه فرمائي چه هغه په وقعة الحرة کښې ورک شوې وو، بيا د هغه پته او نه لګيده د وقعة الحرة ذکر خو کرته په کتاب کښې راغلې دې.

[٤٣٣٣](3)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ ثَلَاثُونَ دَجَّالُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دي دهغه وخته پورې قيامت نشي قائميدې ترڅوچه ديرش دجالان نه وي راوتلي او په دې دجالانو کښې به هريو دجال خپل ځان دالله رسول ګڼړي.

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ ثَلاَثُونَ دَجَّالُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ »﴾

دا حديث د كتاب الفتن په شروع کښې د يو اوږد حديث د لاندې هم تير شوې دې، ﴿وانا خاتم النبيين لا نبي بعدى﴾

[٤٣٣٤](4)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ ثَلَاثُونَ كَذَّابًا دَجَّالًا كُلُّهُمْ يَكْذِبُ عَلَى اللَّهِ وَعَلَى رَسُولِهِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي دهغه وخته پورې قيامت نشي قائميدې ترڅوچه ديرش دروغژن دجالان نه وي راوتلي او په دې دجالانو کښې به هريو دجال خپل دالله اودرسول تکذيب کوي.

(1): صحيح البخاري/الاعتصام ٢٣ (٧٣٥٥)، صحيح مسلم/الفتن ١٩ (٢٩٢٩)، (تحفة الأشراف: ٣٠١٩) (صحيح)
(2): تفرد به أبوداود (صحيح الإسناد) (راجع الفتح/الاعتصام: ٢٣، و تحفة الأحوذي: ٤٢٦٦)
(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٥٠، ٤٥٧) (صحيح)
(4): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥١٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٥٠، ٥٢٧) (حسن الإسناد)

[۴۳۳۵] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ جَرِيرٍ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: قَالَ عُبَيْدَةُ السَّلْمَانِيُّ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَذَكَرَ نَحْوَهُ فَقُلْتُ لَهُ: أَتَرَى هَذَا مِنْهُمْ يَعْنِي الْمُخْتَارَ؟ فَقَالَ عُبَيْدَةُ: أَمَا إِنَّهُ مِنَ الرُّءُوسِ.

ابراهیم وئیلی دی چه مباد عبیده سلماني نه تپوس وکړو چه ایا داسې روایت دې فرق صرف دادې چه مادهغه نه تپوس وکړوچه مختاربن عبیده هم ددې دجالانونه دې هغه ووئیل دې ددوی سردار دې.

**قوله: ﴿ فَقُلْتُ لَهُ أَتَرَى هَذَا مِنْهُمْ - يَعْنِي الْمُخْتَارَ - فَقَالَ عَبِيدَةُ أَمَا إِنَّهُ مِنَ الرُّءُوسِ ﴾**

ابراهیم فرمائی چه ما د خپل استاد عبیده سلمانی نه تپوس اوکړو چه تاسو دې یعنی مختار بن ابی عبید الثقفی لره په ثلاثین دجالین کښې شمارئ؟ نو هغوی اوفرمائیل چه دا خو د هغوی په سردارانو کښې دې.

دا مختار بن ابی عبید هم په دروغژنو مدعیان نبوت کښې وو، لکه چه په حدیث کښې راځی: ﴿ یخرج من ثقیف کذاب ومبیر ﴾ کما فی صحیح مسلم والترمذی، وئیلې شوې دی چه د مبیر (ظالم) نه مراد حجاج بن یوسف الثقفی دې، او د کذاب نه مراد هم دا مختار بن ابی عبید دې، د هغه پلار ابوعبید چه نوم ئې مسعود رضی الله عنه دې خپله په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دې او د هغه خور صفیه بنت ابی عبید د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ښځه وه.

په شروع کښې خودهغه حالات ډیرښه وو اوپه قاتلین حسین کښې ئې دیو یونه بدله واخستله، خو بیا د هغه حالات په مزه مزه خرابیدل تر دې چه په آخر کښې ئې د نبوت دعوی اوکړه.

## بَابُ الْأَمْرِ وَالنَّهْيِ

### باب د نیکو عملونو حکم کول او د بدو کارونو نه منع کول

مصنف رحمه الله د کتاب الفتن اختتام په دې باب سره کړې دې چه په هغې کښې ئې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر متعلق روایات راوړې دی فلله در المصنف ما الطف نظره.....

ګویا اشاره ده دې طرف ته چه فتنې چه کومې دنیا ته راځی هغه خو به راځی خو انسان لره د خپل طرف نه د هغې د دفع کولو علاج او تدبیر کول پکار دی.

[۴۳۳۶] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ رَاشِدٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ بَذِيمَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا دَخَلَ النَّقْصُ عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَ الرَّجُلُ يَلْقَى الرَّجُلَ، فَيَقُولُ: يَا هَذَا اتَّقِ اللهَ وَدَعْ مَا تَصْنَعُ فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ لَكَ، ثُمَّ يَلْقَاهُ مِنَ الْغَدِ فَلَا يَمْنَعُهُ ذَلِكَ أَنْ يَكُونَ أَكِيلَهُ وَشَرِيبَهُ وَقَعِيدَهُ فَلَمَّا فَعَلُوا ذَلِكَ ضَرَبَ اللهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ، ثُمَّ قَالَ: لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ إِلَى قَوْلِهِ فَاسِقُونَ سورة المائدة آية ۷۸–۸۱ ثُمَّ قَالَ: كَلَّا وَاللهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيِ الظَّالِمِ وَلَتَأْطُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا".

دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی په بنی اسرائیلو کښې چه کومه اوله خرابي راغلې وه هغه داوه کله چه به یو کس دبل سره ملاقات

(١): ❀ تخریج: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۹۹) (ضعیف)

(٢): سنن الترمذي/تفسیر القرآن ٦ (۳۰۴۷، ۳۰۴۸)، سنن ابن ماجه/الفتن ۲۰ (۴۰۰۶)، (تحفة الأشراف: ۹۶۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۱/۱) (ضعیف)

وکړونو هغه ته به ئې اوونئيل داالله نه خوف وکړه اودخپلو حرکتونونه منع شه ځکه چه داسي کارونه ستاد پاره مناسب نه دي نوکله چه به ئې ورسره بله ورځ ملاقات وکړو نو دې به ئې ددې کارونونه نه منع کولو ځکه چه هغه به ددوی سره دخوراک څښاک په محفلونوکښې شرکت کولو، کله چه دي خلقو داسې وکړل نوالله پاک هم ددوی دبعضوخلقوزړونه دبعضونورو سره ملاوکړل اوبيائې اوفرمائيل په بنی اسرائيلو کښې چه چا کفر اختيارکړونوالله تعالی په دوې باندې په ژبه دداوداودعيسی عليهما السلام دلعنت اخرنې ايت اوفرمائيلو يعني: «لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ» تر «فَاسِقُونَ» پورې، بيا ئې اوفرمائيل په الله تعالی قسم تاسوبه دخيرخبرې کوې او د ممنوعه کارونونه به منع کوئ اودده دواړه لاسونه به نيسئ اودحق طرف ته به ئې داسې راتيټوې لکه څنګه چه دتيټولوحق دې اوپه حق باندې به پې ټينګوئ لکه څنګه چه دټينګيدو حق دې.

## مضمون الحديث :

قوله: ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ :...... وَاللَّهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيِ الظَّالِمِ وَلَتَأْطُرُنَّهُ (1) عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا »﴾

رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو : چه په بنواسرائيل کښې د خراب والی او نقصان ابتداء داسې اوشوه چه يو سړی به بل سړی لره چه په کومه ګناه ليدلو نو هغه به ئې د هغې نه منع کولو، بيا به ئې چه د هم هغه سړی سره په بله ورځ ملاقات کيدلو نو «سره د هغه سړي په خپل معصيت باندې د قائم پاتې کيدو باوجود» د هغه هغې ګناه لره کول هغه سره د خوراک او څکاک کولو نه نۀ مانع کيدل، يعنی د ګناه د کولو باوجود به ئې د هغه سره ناسته او خورک څکاک جاری ساتلو، پس چه کله هغوی دا صورت اختيار کړو نو الله پاک د دواړو زړونه يو شان کړل.

په حديث شريف کښې دی : ﴿ افضل الاعمال الحب فی الله والبغض فی الله ﴾ بلکه دا چه په دعاء قنوت کښې دا جمله ده ﴿ ونخلع ونترک من يفجرک ﴾ چه د هغې تقاضه دا ده چه فساق او فجار او کوم خلق چه ګناهونه کوی ترڅو چه هغوی هغه ګناهونه نه پريږدی د هغوی نه خپل تعلقات او روابط پرې کول پکار دی، او که داسې نه کوی نو بيا به هغه هم د هغوی په شان شي.

بيا وړاندې په دې حديث کښې دی : رسول اللهﷺ په قسم سره تاکيدا فرمائی چه تاسو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ او د ظالم لاس نيولو سره هغه د ظلم نه بندوئ او هغه د ظلم نه لرې کولو سره په حق باندې کلکوئ.

### د رسول اللهﷺ د خپل امت سره کمال همدردی او خيرخواهی :

په دې حديث کښې خو دا حکم د رسول اللهﷺ د امت سره متعلق دې او په يو بل حديث کښې رسول اللهﷺ خپل دا خپل حال بيان کړې دې، پس د ترمذی په کتاب الامثال کښې دا روايت دې چه ﴿ عن أبي هريرة : أن رسول الله صلى الله عليه و سلم قال إنما مثلي ومثل أمتي كمثل

1) قال الشيخ (الخطابي) قوله لتاطرنه معناه لتردونه عن الجور، واصل الاطر العطف او الثني ومنه تاطر العصاء وهو تثنية لها.

رجل استوقد نارا فجعلت الذباب والفراش يقعن فيها وأنا آخذ بحجزكم وأنتم تقحمون فيها ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه زما مثال د خپل امت په باره کښې داسې دې لکه چه يو سړې اور بل کړي شمع وغيره نو پتنګان په کثرت سره د هغې خوا ته جمع کيدلو سره هلاکيږي، نو رسول الله ﷺ فرمائی چه زما هم دا حال دې چه خلق د ګناهونو ارتکاب کولو سره جهنم ته داخليدل غواړي او زما حال دا دې چه زه تاسو ستاسو د شاګانو نه اونيسم او په نيولو نيولو سره مو د جهنم نه بل طرف ته راکاږم او تاسو ئې چه د هغې طرف ته روان يئ. جزى الله عنا سيدنا ومولانا محمدا ما هو اهله.

[٤٣٣٧](١)حَدَّثَنَا خَلَفُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ الْحَنَّاطُ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَحْوِهِ زَادَ أَوْ لَيَضْرِبَنَّ اللَّهُ قُلُوبَ بَعْضِكُمْ عَلَى بَعْضٍ ثُمَّ لَيَلْعَنَنَّكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْمُحَارِبِيُّ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمٍ الْأَفْطَسِ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَرَوَاهُ خَالِدٌ الطَّحَّانُ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دنبی عليه السلام نه دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګرددې اضافي سره چه: الله تعالی به ستاسودبعضوزړونه د بعضونوروسره ملحق کړي اوبيابه الله تعالی په تاسوباندې هم لعنت وکړي لکه څنګه چه يې په هغوی باندې هم لعنت کړې وو.
امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت محاربي دعلاء بن مسيب نه هغه دعبدالله بن عمروبن مره نه هغه دسالم افطس نه اوهغه دابوعبيده نه اوهغه دعبدالله نه نقل کړې دې، اوهمدارنګې دا روايت خالد الطحان د دعلاء بن مسيب نه هغه دعبدالله بن عمروبن مره نه اوهغه دابوعبيده نه نقل کړې دې.

[٤٣٣٨](٢)حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ. ح وحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ الْمَعْنَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ بَعْدَ أَنْ حَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ وَتَضَعُونَهَا عَلَى غَيْرِ مَوَاضِعِهَا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ سورة المائدة آية ١٠٥، قَالَ: عَنْ خَالِدٍ، وَإِنَّا سَمِعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا الظَّالِمَ فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابٍ، وَقَالَ عَمْرٌو، عَنْ هُشَيْمٍ، وَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي ثُمَّ يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا ثُمَّ لَا يُغَيِّرُوا إِلَّا يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ مِنْهُ بِعِقَابٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ كَمَا قَالَ خَالِدٌ أَبُو أُسَامَةَ، وَجَمَاعَةٌ وَقَالَ شُعْبَةُ فِيهِ مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي هُمْ أَكْثَرُ مِمَّنْ يَعْمَلُهُ.

دقيس نه روايت دې فرمائی چه ابوبکر رضي الله عنه دالله تعالی دحمد او ثناء بيانولونه پس اوفرمائيل اې خلقو تاسوخو دا ايت کريمه «عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ» لولئ ليکن په نامناسبه محل باندې ئې حمل کوئ اوحال دادې چه مادنبی عليه السلام نه اوريدلی دی چه فرمائيل ئې يقيناکله چه څوک دظالم ظلم ووينې اودهغه لاس ونه نيسي

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٦١٤) (ضعيف)
(٢): سنن الترمذي/الفتن ٨ (٢١٦٨)، تفسير القرآن سورة المائدة ١٩ (٣٠٥٧)، سنن ابن ماجه/الفتن ٢٠ (٤٠٠٥)، (تحفة الأشراف: ٦٦١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢، ٥، ٧، ٩) (صحيح)

نونزدې ده چه الله تعالی به په دې ټولو خلقو باندې عذاب راولي اوعمرو دهشیم نه نقل کوي وائی ابوبکر رضي الله عنه ووئیل چه دنبی علیه السلام نه مې آوریدلی دی چه فرمائیل ئې هیڅ یوقوم داسې نشته چه بد عملونه پکښې نه کیږی اوقدرت باوجود خلق دغه بدکارونه ختم نکړي نو الله تعالی به په دوی باندې عذاب مسلط کړي امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت خالد، ابواسامه اویوي ډلې بیان کړې دې، شعبه وئیلی دی داسې هیڅ یوقوم نشته چه په دوی کښې گناه کیږی او په دوی کښې زیات خلق دگناهونو مرتکب وي اوبیاپه ټولوباندې عذاب الهي نازل نشي.

**قوله:** ﴿ عَنْ قَيْسٍ قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ بَعْدَ أَنْ حَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الآيَةَ وَتَضَعُونَهَا عَلَى غَيْرِ مَوَاضِعِهَا (عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لاَ يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ) وَإِنَّا سَمِعْنَا النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ « إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوُا الظَّالِمَ فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابٍ ﴾

## د تبلیغ اهمیت او د هغې وجوب:

سیدنا ابوبکرصدیق رضي الله عنه خلقو ته فرمائی چه تاسو دا آیت لولئ او دا په غلط ځائې باندې ږدئ، یعنی د دې غلط مطلب اخلئ، د دې آیت کریمه ترجمه دا ده کوم چه پورته ذکر شو (تاسو خپل فکر کوئ، که تاسو په هدایت باندې یئ نو د گمراه کونکی گمراهی به ستاسو دپاره ضرر نه لری) یعنی تاسو په دې آیت کریمه باندې دا گنړئ چه نورو ته تبلیغ کول ضروری نه دی خپله د انسان په هدایت باندې کیدل کافی دی، بیا هغوی وراندې فرمائی: حال دا چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دی هغوی به فرمائیل چه خلق چه کله ظالم لره د هغه په ظلم باندې وینی او هغه نه منع کوی نو نزدې ده چه په ټولو باندې عذاب راشی، په گناه کونکو باندې هم او په نه منع کونکو باندې هم، او په دویم روایت کښې داسې دی چه د هغې راوی هشیم دې، حال دا چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دی هغوی به فرمائیل چه په کوم قوم کښې گناهونه کیږی، کوم خلق چه د هغې په منع کولو باندې قادر وی او بیا هغې لره نه منع کوی نو عذاب به په دې ټولو باندې راځی.

وراندې مصنف رحمه الله یو دریم روایت ذکر کړو یعنی د شعبه نه چه په هغې کښې دا زیادت دې ﴿هم اکثر ممن یعمله﴾ او گناه نه کونکی په تعداد کښې د گناه کونکو نه زیات وی، دا قید په ظاهر کښې په دې اعتبار سره دې چه قدرت علی المنع به هم هغه وخت وی چه کله نه کونکی زیات وی، حضرت په بذل المجهود کښې د شعبه روایت د مسند احمد نه نقل فرمائیلې دې او فرمائی چه هلته د شعبه په روایت کښې دا زیادت نشته کوم چه مصنف رحمه الله فرمائی. والله تعالی اعلم والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه بنحوه، وقال الترمذی حسن صحیح، قاله المنذری.

[۴۳۳۹] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، أَظُنُّهُ عَنِ ابْنِ جَرِيرٍ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ فِي قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا عَلَيْهِ فَلَا يُغَيِّرُوا إِلَّا أَصَابَهُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَمُوتُوا".

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۲۴۲)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الفتن ۲۰ (۴۰۰۹) (حسن)

جریر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی په یوقوم کښې چه یو کس دبد کار مرتکب وي اودقوم خلق دقدرت باوجود ددې کس حالت اودده عمل تبدیل نکړي نوالله تعالی به دوی لره ددوی دمرګ نه مخکښې په عذاب کښې مبتلا کړي.

[۴۳۴۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَهَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَجَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَعَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ رَأَى مُنْكَرًا فَاسْتَطَاعَ أَنْ يُغَيِّرَهُ بِيَدِهِ فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، وَقَطَعَ هَنَّادٌ بَقِيَّةَ الْحَدِيثِ وَفَّاهُ ابْنُ الْعَلَاءِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ بِلِسَانِهِ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ".

د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دنبی ﷺ نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل ئې: په تاسو کښې چه څوک خلاف شرع کار ووینې اوپه لاس سره ددې دمنع کولو طاقت لري نوپه خپل لاس باندې دې دغه کارمنع کړي اوکه چرې په لاس باندې دمنع کولو طاقت نه لری نوپه ژبې سره دې منع کړي (یعنی بد دې ورته ووائي) اوکه چرې ددې هم طاقت نه لری نوپه زړه کښې دی ورنه نفرت وکړي اودا دایمان آخری کمزوري درجه ده.

قوله:﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ :..... وَفَّاهُ ابْنُ الْعَلَاءِ - « فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ بِلِسَانِهِ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الإِيمَانِ »﴾

په دې حدیث کښې د تغیر منکر مرتبې بیان کړې شوې دی، اول تغییر بالید چه په خپل لاس باندې دې منع کړی او که د هغې طاقت ئې نه وی نو په ژبه باندې دې د منع کولو کوشش اوکړی، او که د هغې ګنجائش هم نه وی نو د زړه نه دې هغه بد اوګنړی، د هدایه نه معلومیږی چه د امام صاحب رحمه الله په نزد د تغیر بالید حق تولو ته نه دې حاصل بلکه امراء او حکام ته دې، او د صاحبین په نزد عام دې. (۲)

والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه مختصرا ومطولا، وقد تقدم فی کتاب الصلوة قاله المنذری.

[۴۳۴۱] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الرَّبِيعِ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ أَبِي حَكِيمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ جَارِيَةَ اللَّخْمِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو أُمَيَّةَ الشَّعْبَانِيُّ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا ثَعْلَبَةَ كَيْفَ تَقُولُ فِي هَذِهِ الْآيَةِ عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ سورة المائدة آية ۱۰۵، قَالَ: أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْهَا خَبِيرًا سَأَلْتُ عَنْهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "بَلِ ائْتَمِرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ حَتَّى إِذَا رَأَيْتَ شُحًّا مُطَاعًا وَهَوًى مُتَّبَعًا وَدُنْيَا مُؤْثَرَةً وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِي رَأْيٍ بِرَأْيِهِ، فَعَلَيْكَ يَعْنِي بِنَفْسِكَ وَدَعْ عَنْكَ الْعَوَامَّ فَإِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ أَيَّامَ الصَّبْرِ الصَّبْرُ فِيهِ مِثْلُ قَبْضٍ عَلَى الْجَمْرِ لِلْعَامِلِ فِيهِمْ مِثْلُ أَجْرِ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ عَمَلِهِ وَزَادَنِي غَيْرُهُ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ قَالَ: أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ".

---

(۱): انظر حدیث رقم :(۱۱۴۰)، (تحفة الأشراف: ۴۰۸۵) (صحیح)

(۲) وظاهر ما في الحديث ۳۷۲/۳ ان الامر بالمعروف باليد عام عند الصاحبين، واما عند الامام (ابي حنيفة) فباليد الي الامراء وباللسان الي غيرهم، یعنی تغییر بالید د صاحبینو په نزد خو عام دې، او د امراء او غیر امراء ټولو په حق کښې دې، او د امام صاحب په نزد په دې کښې تفصیل دې هغه دا چه د تغیر باللسان حق د ټولو دپاره دې او تغییر بالید یعنی په لاس سره اصلاح کول دا د امراء او حکامو کار دې د عام خلقو نه دی.

(۳): سنن الترمذي/تفسیر القرآن سورة المائدة ۱۸ (۳۰۵۸)، سنن ابن ماجه/الفتن ۲۱ (۴۰۱۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۸۱) (ضعیف)

دابو امیه شعبانی نه روایت دي فرمائي چه دابو ثعلبه خشني نه مې تپوس وکړو چه اې ابوثعلبه ددې ایت کریمه: (علیکم انفسکم) په باره کښې ته څه وائې؟هغه ووئیل ددې په باره کښې ما دنبی علیه السلام نه تپوس وکړونو راته ئې اوفرمائیل: تاسو امربالمعروف اونهي عن المنکرکوئ تردې پورې چه تاسووینئ چه دکنجوس پیروي کیږي اودنفساني خواهش تابع داري کیږي او په دنیاپسي منډې وهلې شي اوهریو زې راې په خودپسندئ کښې مبتلا دې نوپداسې وخت کښې تاسو د خپل ځان خیال اوساتئ اودعوامو خیال دزړه نه اوباسئ ځکه چه ستاسونه پس یوه داسې ورځ را روانه ده په کومه کښې چه به صبرکول داسې مشکل وي لکه په لاس کښې سکروټه نیول او داسې ورځوکښې به په دین باندې عمل کونکي ته دپنځوسو کسانوداجر برابر اجر ورکولې شي ، راوی وائی چه یوبل راوی دا اضافه کړې ده چه یوصحابي عرض وکړو اې دالله رسوله ایا دهغوی نه دپنځوس کسانو اجر؟نبی علیه السلام اوفرمائیل نه بلکه ستاسونه دپنځوسو کسانو داجر برابر اجربه ورته ورکړې شي.

**قوله:** ﴿حَدَّثَنِي أَبُو أُمَيَّةَ الشَّعْبَانِيُّ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ فَقُلْتُ يَا أَبَا ثَعْلَبَةَ كَيْفَ تَقُولُ فِي هَذِهِ الآيَةِ (عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ) قَالَ أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْهَا خَبِيرًا﴾

## هغه کوم وخت دې چه په هغې کښې ترک تبلیغ مضر نه دې؟

د دې حدیث تعلق هم د هغه آیت باره کښې دې چه د هغې په باره کښې د ابوبکرصدیق قول تیر شو ، د ابوثعلبه نه چه کله د دې آیت په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی سائل ته اوفرمائیل چه تاسو د دې آیت کریمه په باره کښې د داسې سړی نه تپوس کړې دې کوم چه د دې نه خبر دې، مراد ئې تري نه خپل ذات دې، او دا هم احتمال دې چه دا ﴿سالت﴾ په صیغه د متکلم وی په دې صورت کښې به د خبیر مصداق رسول الله وی چه ما د دې په باره کښې د رسول الله نه تپوس کړې وو نو هغوی دا جواب اوفرمائیلو : بلکه تاسو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ، او کله چه تاسو هغه حالت اوګورئ، کوم چه وړاندې په حدیث کښې مذکور دې. نو بیا داسې اوکړئ چه بس خپل فکر کوئ او د عوامو فکر پریږدئ، او هغه حالت دا دې چه خلق سخت بخل اختیار کړی او د انسان په فطرت کښې چه کوم د بخل صفت دې د هغې کامله اتباع شروع کړی ﴿شحا مطاعا﴾ او دویم صفت دې ﴿وهو متبعا﴾ چه خلق به صرف د خواهشات نفسانیه اتباع کوی ﴿ودنیا موثرة﴾ یعنی په هره معامله کښې دنیوی مصلحت ته ترجیح ورکوی، او څلورم صفت دا دې ﴿واعجاب کل ذی رای برایه﴾ چه هر سړې خپله رائې خوښوی.

دا دې د خلقو هغه حالت چه د هغې د موندلې کیدو په وخت ترک تغییر او ترک تبلیغ د سړی دپاره مضر نه دې په دې حدیث د ابوثعلبه کښې د صدیق اکبر د حدیث مقابله کښې زیاته تشریح ده، حاصل د هغې هم دا دې چه ترک تبلیغ په یو مخصوص وخت کښې دې په هر حال کښې نه دې، د علماء کرامو نه د دې یو توجیه نقل کړې شوې ده هغه دا چه په دې آیت کریمه کښې ترک تبلیغ ته غیر مضر وئیلې شوې دې په داسې حال کښې چه خلق په هدایت باندې وی (اذا اهتدیتم) او خلق به په هدایت باندې هم هغه وخت وی چه کله هغوی د خپلو

ټولو فرائضو تکمیل کوی، او د ټولو فرائضو نه یو تبلیغ هم دې، لهذا د ترک تبلیغ په صورت کښې به ﴿اذا اهتدیتم﴾ والا شرط نه موندلې کیږي، پس حاصل به د دې په دې صورت کښې دا وی چه د تبلیغ باوجود هم که خلق او نه مني نو بیا ستاسو په حق کښې هیڅ ضرر نشته.

وړاندې په حدیث کښې دی: ﴿فان من ورائکم ایام الصبر فیه مثل قبض علی الجمر﴾ [1]

رسول الله ﷺ فرمائی بیشکه وړاندې په تاسو داسې ورځې راروانې دی چه په هغې کښې په دین باندې قائم اوسیدل به د سړی دپاره داسې ګران شی لکه په موټی کښې سکروټه نیول او په دغه زمانه کښې په په دین باندې د عمل کونکی دپاره د پنځوس کسانو برابر اجر لیکلې شی، داسې پنځوس چه د هغه په شان عمل کوی.

**قوله:** ﴿قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ قَالَ « أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ »﴾ [2]

یعنی د هغه پنځوس کسانو نه آیا هم د هغه زمانې پنځوس سړی مراد دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل نه بلکه ستاسو نه پنځوس مراد دی.

## ایا غیر صحابی د صحابی رضی الله عنه نه افضل کیدې شی؟

په بذل کښې د فتح الودود نه نقل کړې دی چه د دې غیر صحابی د عمل اجر د صحابه کرامو په عمل باندې پنځوس چنده مضاعف کیدل صرف د هغه عمل په اعتبار سره دی چه د هغې اختیارول به په راروانه زمانه کښې زیات سخت وی نه مطلقا اهـ... لهذا په دې حدیث سره دا ګڼړل صحیح نه دی چه د غیر صحابی اجر کلا د صحابی د اجر نه زیاتیدلې شی. اهـ

والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، وقال الترمذي حسن غريب، قاله المنذري.

[۴۳۴۲] ([3]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، أَنَّ عَبْدَ الْعَزِيزِ بْنَ أَبِي حَازِمٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كَيْفَ بِكُمْ وَبِزَمَانٍ أَوْ يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَ زَمَانٌ يُغَرْبَلُ النَّاسُ فِيهِ غَرْبَلَةً تَبْقَى حُثَالَةٌ مِنَ النَّاسِ قَدْ مَرِجَتْ عُهُودُهُمْ وَأَمَانَاتُهُمْ وَاخْتَلَفُوا، فَكَانُوا هَكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ، فَقَالُوا: وَكَيْفَ بِنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ: تَأْخُذُونَ مَا تَعْرِفُونَ وَتَذَرُونَ مَا تُنْكِرُونَ وَتُقْبِلُونَ عَلَى أَمْرِ خَاصَّتِكُمْ وَتَذَرُونَ أَمْرَ عَامَّتِكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ.

---

[1] د دې د ماقبل سره څه مناسبت دې؟ د دې په باره کښې په کوکب ۲۱۶۷ کښې لیکلې دی چه دا د یو سوال مقدر جواب دې چه آیا د ټولو خلقو دا حالت هم کیدې شی؟ نو د دې په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په دې کښې څه تعجب دې خکه چه دا زمانه خو به هغه زمانه وی چه په هغې کښې به په دین باندې قیام داسې ګران شی لکه په موټی کښې سکروټه نیول، پس په داسې ماحول او فضاء کښې چه هر څومره بدتر حالت راپیښ شی هغه قیاس ته نزدې دې.

[2] دا خو د جمهورو د مسلک مطابق دې او بعض علماء کرامو لکه ابن عبدالبر هغوی خو د دې قسم روایاتو نه استدلال کړې دې چه غیر صحابی د صحابی نه افضل کیدې شی، كذا في هامش البذل او په مظاهر حق کښې ﴿مثل امتي مثل المطر لا يدري اوله خير ام اخره﴾ د دې حدیث د لاندې د حافظ ابن عبدالبر دا مسلک کوم چه پورته ذکر شوې دې لیکلې دې، او د جمهورو استدلال د نورو ټولو دلائلو نه د دې حدیث نه هم دې کوم چه وړاندې په باب في فضل اصحاب النبي ﷺ خير امتي القرن الذي بعثت فيهم ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم الحديث)

[3]: سنن ابن ماجه/الفتن ۱۰ (۳۹۵۷)، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ۸۸ (۴۸۰)، مسند احمد (۲/۲۱۲) (صحيح)

د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: په دغه وخت کښې به ستاسو څه حالت وي، یاني داسې اوفرمائيل زرده چه داسې وخت راشي دکارخلق به پکښې پتولي شي یعنی څه خلق به وفات شي اوبیکاره خلق به پاتې شي کوم چه خس اوخشاک دي دچاچه به عهد او پیمان اوامانتونه مره شوي وي او په خپل مینځ کښې به داختلاف ښکارشي نبی چه دا اوفرمائيل نودخپل یولاس ګوتې ئې په بل لاس کښې واچولي صحابه کراموعرض وکړوچه اې دالله رسوله په دې وخت کښې زمونږ دپاره څه کول پکاردیبنبی عليه السلام ورته اوفرمائيل کومه خبره چه درته ښه ښکاري هغه اختیارکړئ اوکومه چه درته بده ښکاري هغه پریږدئ صرف خپل فکرکوئ اودبل چا فکر پریږدئ.

**قوله:** ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « كَيْفَ بِكُمْ وَبِزَمَانٍ ». يُغَرْبَلُ النَّاسُ فِيهِ غَرْبَلَةً تَبْقَى حُثَالَةٌ مِنَ النَّاسِ قَدْ مَرِجَتْ ..الخ ﴾

## د فتنو په زمانه کښې سړی لره څنګه کیدل پکار دی؟

رسول الله ﷺ فرمائي چه څه حال به وی ستاسو، یعنی څه به کوئ تاسو، چه کله داسې زمانه راشی چه په هغې کښې به خلق چاڼ کړې شی، رذیل او بیکاره خلق به په دنیا کښې پاتې شی چه د هغوی معاملات او امانتونه به مخلوط او ګدود شی، او دې وخت کښې رسول الله ﷺ د خپلو ګوتو مبارکو ترمینځهٔ تشبیک اوفرمائیلو، په دې باندې صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چه بیا دغه وخت کښې مونږ له څه کول پکار دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم معروف او نیک کارونه دی هغه اختیار کړئ او کوم چه ناجائز او منکر دی هغه ترک کړئ. او بس خپل فکر کوئ عوام په خپل حال باندې پریږدئ. او د دې نه په روستو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ د عبدالله بن عمرو په سوال باندې اوفرمائیل: ﴿الزم بیتک واملک علیک لسانک الخ ﴾ چه د کور نه بهر مه راوځه او خپله ژبه په قابو کښې ساته. والحدیث اخرجه النسائی،قاله المنذری.

[٤٣٤٣] ()حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ أَبِي الْعَلَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنِي عِكْرِمَةُ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ حَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ ذَكَرَ الْفِتْنَةَ، فَقَالَ: "إِذَا رَأَيْتُمُ النَّاسَ قَدْ مَرِجَتْ عُهُودُهُمْ وَخَفَّتْ أَمَانَاتُهُمْ وَكَانُوا هَكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ، قَالَ: فَقُمْتُ إِلَيْهِ، فَقُلْتُ: كَيْفَ أَفْعَلُ عِنْدَ ذَلِكَ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاكَ؟ قَالَ: الْزَمْ بَيْتَكَ وَامْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ وَخُذْ بِمَا تَعْرِفُ وَدَعْ مَا تُنْكِرُ وَعَلَيْكَ بِأَمْرِ خَاصَّةِ نَفْسِكَ وَدَعْ عَنْكَ أَمْرَ الْعَامَّةِ".

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه مونږ درسول الله ﷺ نه چاپیره ناست وواود فتنوذکرشروع وو په دې وخت نبی نبی عليه السلام اوفرمائيل کله چه تاسو ووینئ چه لوظونه ماتیږي اوامانتونه پیمابل کیږي او دخلقوحالت داسې شي، چه دا اوفرمائيل نودخپل نیو لاس ګوتې ئې په بل لاس کښې واستولي ماچه دا واوریدل نو پاڅیدم اوعرض مې وکړوچه اې دالله رسوله پدې وخت کښې زما دپاره څه کول پکاردي؟نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل دداسې فتني په وخت کښې په کورکښې کینه اوخپله ژبه په قابوکښې وساته

(): تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٨٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٢/٢) (حسن صحیح)

اوکومه خبره چه دوی ته نه ښکاري هغه اختيارکړه اوکرمه چه درت بهد.. بکاري هغه پريږده، صرف خپل فکرکره اودين جانکر پريږده.

[٤٣٤٤] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَادَةَ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، عَنْ عَطِيَّةَ الْعَوْفِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الْجِهَادِ كَلِمَةُ عَدْلٍ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ أَوْ أَمِيرٍ جَائِرٍ".

ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي: فعمل جهاد دادي په يوانسان ديوسالم بادشاه يا حکمران په وړاندې دانصاف خبره وکړي.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ مرفوعا« أَفْضَلُ الْجِهَادِ كَلِمَةُ عَدْلٍ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ ». أَوْ « أَمِيرٍ جَائِرٍ »﴾ دا حديث د ترجمة الباب عين موافق دې هم په دې وجه دلته راوړلې شوې دې، د ظالم بادشاه مخکښې حق خبره وئيلو ته افضل جهاد په دې وجه وئيلې شوې دې چه مجاهد ته په جهاد مع الکفار کښې دوه احتماله وی د خپلې غلبې هم او د مغلوب کيدو هم، د اول اميد او د ثانی ويره، خو د ظالم بادشاه مخکښې حق خبره کولو کښې د خپل هلاکت ظن غالب وی لهذا دا زيات ګران کار شو پس افضل هم دا شو. الحديث اخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٤٣٤٥] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرٍ، حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ زِيَادٍ الْمَوْصِلِيُّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ، عَنِ الْعُرْسِ ابْنِ عَمِيرَةَ الْكِنْدِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ كَانَ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا، وَقَالَ: مَرَّةً أَنْكَرَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا".

دعرس بن عميره الکندي نه روايت دي فرمائی چه رسول پاک صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي: کله چه په زمکه کښې ګناهونه کيږي او څوک ئې ويني اوبده ئې وګڼي، مر، وئيلی دی چه دغه ګناه ئې بده رکنرله نويد، مثال دي دی لکه چا چه ګناه نه وي ليدلي اوچاچه دغه ګناه نه وي ليدلي نيکن هغه په دې ګناه باندې خوشحاله دي نودا داسې ده لکه چه ده دغه ګناه ليدلي وي.

﴿عَنِ الْعُرْسِ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ كَانَ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا ». « كَمَنْ غَابَ عَنْهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا ...الخ﴾

يعنی کله چه په يو ځائې کښې څه ناجائز او حرام کارکيږی نو کوم سړې چه هلته د مخکښې نه موجود دې خو هغه ئې بد ګڼړی نو هغه د هغه سړی په شان دې کوم چه هغه ځائې کښې بالکل حاضر نه وی، او د دې برعکس چه کوم سړې په هغه ځائې کښې د خپل بدن په اعتبار سره غير موجود وی دې ناجائز کار لره هغه خوښوی نو هغه په حکم کښې د هغه سړی په شان دې کوم چه په هغه ځائې کښې موجود وی او په هغه کار کښې شريک وی.

[٤٣٤٦] (³) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ، عَنْ مُغِيرَةَ ابْنِ زِيَادٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، قَالَ: مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا.

¹): سنن الترمذي/الفتن ١٢ (٢١٧٤)، سنن ابن ماجه/الفتن ٢٠ (٤٠١١)، (تحفة الأشراف: ٤٢٣٤) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٤) (حسن)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٤، ١٩٠٠٦) (حسن)

\ عدي بن عدی د نبی ﷺ نه د تیر شوی روایت په شان روایت بیان کړې دې مګرددې اضافي سره چه: چاچه ګناه دکیدو په وخت کښې ولیدله اوبده ئې وګڼړله نودي داسې دی لکه چه ده بلکل لیدلې نه وي.

[۴۳۴۷]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ وَقَالَ سُلَيْمَانُ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَنْ يَهْلِكَ النَّاسُ حَتَّى يَعْذِرُوا أَوْ يُعْذِرُوا مِنْ أَنْفُسِهِمْ".

دابو البختری رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه هغه چا راته خبرې راکړي دي چاچه دنبی ﷺ نه اوریدلي ووچه فرمائیل ئې: خلق به هرګزهلاک نکړې شي ترڅوچه خلق ګناهونه کوي اودځان دپاره څه عذر پری نږدي.

**قوله**: ﴿ حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « لَنْ يَهْلِكَ النَّاسُ حَتَّى يَعْذِرُوا أَوْ يُعْذِرُوا مِنْ أَنْفُسِهِمْ » ﴾ [۲]

**شرح الحدیث:**

یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه خلق به نه هلاکیږی تردې چه د هغوی عیوب او معاصی غالب نه شی په دې کښې دواړه لغتونه دی ﴿ اعذر ﴾ د باب افعال نه او د عذر یعذر مجرد نه. پس د دې حاصل معنی دا ده او په اصل کښې دا د ﴿ قَالَ إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي عُذْرًا ﴾ د قبیلې نه دې او د دې یو مثال هغه دې کوم چه په آخر د کتاب کښې په باب الخلفاء کښې راروان دې د حجاج په کلام کښې ویا غدیری من عبد هذیل.

یعنی که ما د دې نه پس تاسو نه څه سوال اوکړو نو بیا تاسو ما د خپل ځان سره مه ساتئ ګویا په دې صورت کښې به تاسو سره زما د نه ساتلو معقول عذر وی، هم دغه شان دلته هم ده چه خلق به تر هغه وخته پورې هلاک نه شی، یعنی الله پاک به هغوی ته عذاب نه ورکوی تر څو چه د هغوی ګناهونه غالب رانشی، خو چه کله د هغوی معاصی غالب شی او د حد نه تیرې شی نو الله پاک به هغوی ته عذاب ورکړی او ګویا د خلقو دا حالت به د الله پاک دپاره هغوی ته د عذاب ورکولو یو معقول عذر وی.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۶۰/۴، ۲۹۳/۵) (صحيح)

[2] وفي النهاية: ومنه الحديث [ لن يَهْلِكَ النَّاسُ حتي يُعْذِرُوا من أنفسهم ] يقال: أعْذَرَ فلانٌ من نَفْسه إذا أمْكَن منها يَعْني أنهم لا يَهْلِكُون حتي تكثر ذُنُوبهم وعُيُوبهم فيستوجبُون العُقُوبة ويكون لم يُعَذّبهم عُذرٌ كأنهم قامُوا بعُذْرِه في ذلك ويُروي بفتح الياء مَن عَذَرْته وهو بمعناه. وحقيقة عَذَرْت: مَحَوتُ الإساءة وطَمَسْتُها.

تنبیه: د خطابی او د بذل په نسخه کښې ﴿ لمن يعذبهم ﴾ مصحف کیدو سره ﴿ لمن يعذبهم ﴾ جوړ شوي دي، فليتنبه)

## بَابُ قِيَامِ السَّاعَةِ

### باب: د قيامت قائميدو بيان

دا د كتاب الفتن آخرى باب دې، د ټولو فتنو انتهاء د قيام قيامت سره ده.

[۴۳۴۸](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ سُلَيْمَانَ، أَنَّ عبد الله بن عمر، قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ صَلَاةَ الْعِشَاءِ فِي آخِرِ حَيَاتِهِ فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ، فَقَالَ: "أَرَأَيْتُكُمْ لَيْلَتَكُمْ هَذِهِ فَإِنَّ عَلَى رَأْسِ مِائَةِ سَنَةٍ مِنْهَا لَا يَبْقَى مِمَّنْ هُوَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ أَحَدٌ، قَالَ ابْنُ عُمَرَ: فَوَهِلَ النَّاسُ فِي مَقَالَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ فِيمَا يَتَحَدَّثُونَ عَنْ هَذِهِ الْأَحَادِيثِ عَنْ مِائَةِ سَنَةٍ، وَإِنَّمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَبْقَى مِمَّنْ هُوَ الْيَوْمَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ يُرِيدُ بِأَنْ يَنْخَرِمَ ذَلِكَ الْقَرْنُ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائى چه رسول الله ﷺ پخپل اخرى عمر كښې يوشپه دماسخوتن مونځ اوكړو هركله چه فارغ شو نو اودريدو او وئې فرمائيل ايا ستاسو ننۍ شپې ته خيال دې چه په ننۍ شپه كښې په ټوله زمكه كښې چه څومره انسانان دي په دوى كښې به يوكس هم سل كاله پس ژوندې نه وي، ابن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل خلقو چه دا واوريدل نو په غلط فهمۍ كښې مبتلا شول چه دې خو داسې حديث نقل كوي چه سل كاله پس به قيامت راځى اوحال دادې چه نبى عليه السلام فرمائيلي وو په زمكه كښې چه اوس څومره خلق دي په دوى كښې به يوكس هم سل كاله پس ژوندې نه وي ددې مطلب داوو چه دا دا نسل به تير شي اوبل نسل به شروع شي.

### مضمون الحديث:

قوله: « فَإِنَّ عَلَى رَأْسِ مِائَةِ سَنَةٍ مِنْهَا لَا يَبْقَى مِمَّنْ هُوَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ أَحَدٌ ». الخ »(2)

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائى چه يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته د ماسخوتن مونځ راكړو په خپل آخرى ژوند كښې، د مانځه د سلام نه پس هغوى اودريدل او وې فرمائيل چه تاسو خپله دا شپه وينئ؟ په شرح كښې ليكلى دى چه د دې جواب محذوف دې تقديره : قالوا نعم قال فاضبطوها...... يعنى د دې مقام نه د صحابه كرامو رضي الله عنهم دا جواب په فهم كښې راځى او د مقام نه دا خبره په فهم كښې راځى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ښه بيا دا خبره په ذهن كښې اوساتئ. او هغه دا چه د دې شپې نه سل كاله پس به چه څومره خلق هم په زمكه باندې موجود دى په هغوى كښې به هيڅوک باقى نه وى، ابن عمر رضي الله عنهما فرمائى چه د خلقو غلط فهمى پيدا شوه د رسول الله ﷺ د دې ارشاد په باره كښې او د دې سلو كالو په باره كښې ئې رائې وركول شروع كړل، يعنى دا ئې فهم كړه چه كيدې شى مراد ئې دا وى چه د دې شپې نه واخله تر سلو كالو پورې به قيامت راشى، هغوى فرمائى : حال دا چه د رسول الله ﷺ مراد

(1): صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۵۳ (۲۵۳۷)، سنن الترمذي/الفتن ۶۴ (۲۲۵۱)، (تحفة الأشراف: ۶۹۳۴)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ۴۱ (۱۱۶)، مواقيت الصلاة ۲۰ (۶۰۱) (صحيح)

(2) بسط الكلام عليه ابن قتيبة في (( التاويل )) وقال المراد ((اي منكم ))واجاب العيني ۵۷۲/۲ بان المراد من امته، وبسطه في ۵۸۳/۱ والحافظ ۲۵۲/۱، والنووي ۳۱۰/۲، (هامش البذل)

دا وو چه دې وخت کښې چه هر څومره خلق موجود وی په هغوی کښې به څوک هم د هغوی نه سل پس نه وی، نه دا چه هیڅوک به هم په دنیا کښې باقی وی.

ابن بطال فرمائی چه د رسول الله ﷺ مقصد په دې ارشاد سره خلقو ته نصیحت کول دی او هغوی ته خبر ورکول دی د دې امت د عمرونو د کمیدو او د دې چه د هغوی عمرونه د تیرو امتونو په شان اوږدهٔ نه دی چه هغوی په عبادت کښې کوششونه اوکړی. زه وایم چه د رسول الله ﷺ نصیحت صرف د صحابه کرامو په باره کښې نه وو بلکه دا نصیحت عام او دائمی دې، تقریبا د هرې زمانې په خلقو باندې صادق راځی لهذا د هرې زمانې خلقو له د رسول الله ﷺ د ارشاد نه نصیحت حاصلول پکار دی.

**(د ټولو نه په اخر کښې وفات شوې صحابی)**

په صحابه کرامو ﷺ کښې د ټولو نه په اخر کښې وفات شوې ابو الطفیل عامر بن واثله ﷺ دې، یو قول د هغوی د وفات په باره کښې د ۱۰۰ هجریٔ دې او دویم قول د ۱۱۰ هجریٔ دې او په دواړو صورتونو کښې د رسول الله ﷺ د قول صداقت ښکاره دې ځکه چه رسول الله ﷺ دا خبره د خپل عمر شریف په آخره کښې فرمائیلې وه، په حاشیه د بذل کښې د سیوطی د تدریب نه نقل کړې دی چه د دې حدیث نه په دې باندې استدلال کړې شوې دې چه که یو سړې د رسول الله ﷺ د وفات نه سل کاله پس د صحبت یعنی د خپل صحابی کیدو دعوی اوکړی نو هغه به ناقابل قبول وی. اهـ حضرت شیخ فرمائی واخرج احمد فی مسنده ۳۲۶/۲ انه قال ذلک قبل الموت بشهر اهـ.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۴۳۴۹] ([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ سَهْلٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَنْ يُعْجِزَ اللَّهُ هَذِهِ الْأُمَّةَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ".

دابو ثعلبه الخشنی ﷺ نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی الله تعالی به دا امت دنیمې ورځې نه په کم وخت کښې نه ختموی (دنیمې ورځې نه مراد دقیامت د ورځې نیمه ورځ ده یعنی پنځه سوه کاله).

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِىِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لَنْ يُعْجِزَ اللَّهُ هَذِهِ الأُمَّةَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ ﴾ ([2]) رسول الله ﷺ ارشاد فرمائی چه الله پاک به دا امت محروم نه کړی د نیمې ورځې نه، یعنی کم از کم د نیمې ورځې پورې دا امت به باقی وی د دې نه پس به قیامت راځی، د دې نیمې ورځې نه تر پنځه سوو کالو پورې مراد ده لکه چه په روستو حدیث کښې راځی، د آخرت ورځ مراد دې کوم چه به د زرو کالو برابر وی، قال الله تعالی : وان یوما عندربک کالف سنة مما تعدون...([3])

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٣/٤) (صحيح)

[2]) وفي هامش البذل : وكذب ابن حزم في الملل والنحل ١٠٥/٢ لمن عين للدنيا عمراً، وفي الدرر المنثور ٥/٢ : من مجموع المقطعات ما يدل علي ان عمرها ١٧٤٠ سنة)

[3])ذكر القاري ١٨٥/٥ تحت حديث ابن ماجه، الايات بعد الماتين احتمالا انهما بعد الالف اهـ راجع الي الاصل لو شئت)

[۴۳۵۰]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنِي صَفْوَانُ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ: النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تَعْجِزَ أُمَّتِي عِنْدَ رَبِّهَا أَنْ يُؤَخِّرَهُمْ نِصْفَ ذَلِكَ الْيَوْمِ، قَالَ: خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ".

دسعد بن ابی وقاص نه روایت دی فرمائی چه نبی کریم فرمائیلی دي زه امید لرم چه زما امت به دومره عاجزه نه شي چه الله تعالی ورته نیمه ورځ مهلت ورنکړي سعد له ته خلقو اووئیل دنیمي ورځي څه مطلب دې؟ هغه په جواب کښې اووئیل پنځه سوه کاله.

آخر كتاب الملاحم

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الحدود

## د حدودو د احکامو بیان

**(د حد لغوی او شرعی معنی):**

حدود د حد جمع ده او حد وائی هغه څیز ته کوم چه د دواو څیزونو ترمینځه حائل شی او د هغوی د اختلاط نه مانع وی، حدود شرعیه ته حدود په دې وجه وائی چه هغه هم مانع وی د فاعل دپاره د دوباره ارتکاب نه، او د بل سړی دپاره هم د انزجار باعث وی، وفی الهداية: الحد لغة هو المنع ومنه الحداد للبواب وفي الشريعة هو العقوبة المقدرة حقا لله تعالى حتى لا يسمى القصاص حدا لأنه حق العبد ولا التعزير لعدم التقدير، یعنی حد د هغه مقرره سزا نوم دې چه حق دې د الله پاک هم په دې وجه د هغې قائمول ضروری دی بخښنه کول په دې کښې جائز نه دی، په خلاف د قصاص چه هغه حق العبد دې هم په دې وجه صاحب حق (ولی د مقتول) لره د هغې د معاف کولو حق دې لهذا دې ته به حق نه شی وئیلې کیدې او نه به تعزیر ته د عدم تقدیر او عدم تعیین د وجې نه، بیا وړاندې په دې کښې دی: والمقصد الأصلي من شرعه الانزجار عما يتضرر به العباد والطهارة ليست أصلية فيه بدليل شرعه في حق الكافر، دا وئیل غواړی چه حدود زاجرات دی نه مکفرات چه مشهوره اختلافی مسئله ده.

امام بخاری او امام ترمذی خو په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې، باب ما جاء ان الحدود كفارة لاهلها، هم په دې وجه زمونږ په نزد دلته سره د حد جاری کیدو د توبې وجوب باقی وی، صاحب هدایه د دې دلیل دا بیان کړې دې چه ګورئ حدود د کافر په حق کښې هم مشروع دی او ښکاره خبره ده چه د کافر په حق کښې طهارت نه پاتې کیږی قال الراغب: ويطلق الحدود ويراد بها نفس المعاصى كما فى قوله تعالى وتلك حدود الله فلا تقربوها (من الاوجز)

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۸۶٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۷۰/۱) (صحيح)

# باب الحُكْمِ فِيمَن ارْتَدَّ

## د مرتد د احکامو بیان

[۴۳۵۱](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ عَلِيًّا عَلَيْهِ السَّلَامُ أَحْرَقَ نَاسًا ارْتَدُّوا عَنِ الإِسْلَامِ، فَبَلَغَ ذَلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ: لَمْ أَكُنْ لِأُحْرِقَهُمْ بِالنَّارِ، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللَّهِ" وَكُنْتُ قَاتِلَهُمْ بِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ"، فَبَلَغَ ذَلِكَ عَلِيًّا عَلَيْهِ السَّلَامُ، فَقَالَ: وَيْحَ ابْنِ عَبَّاسٍ".

عکرمه دابو ایوب رضي الله عنه نه روایت کوی فرمائي چه علی رضي الله عنه هغه خلق سوزولي وو څوک چه مرتد شوي وو، ابن عباس به ته چه کله ددې خبرې اطلاع ملاو شوه نوهغه اوفرمائیل که چرې زه په دغه وخت کښې موجود وې نو مابه دوی نه وو سوزولي ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی دالله تعالی په مخصوص عذاب باندې چاته عذاب مه ورکوئ بلکه مابه ددین نه اوریدونکوته د حضور صلی الله علیه وسلم د فرمان مطابق سزا ورکړې وه او قتل کړي به مې وو ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی څوک چه د دین اسلام په پریخودوسره بل دین اختیار کړي نوده لره قتل کړئ، کله چه دابن عباسه دفرمان اطلاع علی ته ورسیده نووې فرمائیل شاباس اې ابن عباسه (یعنی علی نه دابن عباس راي خوښه کړه).

**قوله:** ﴿ عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه أَحْرَقَ نَاسًا ارْتَدُّوا عَنِ الإِسْلاَمِ فَبَلَغَ ذَلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَمْ أَكُنْ لأُحْرِقَهُمْ بِالنَّارِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لاَ تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللَّهِ ». وَكُنْتُ قَاتِلَهُمْ بِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ ». فَبَلَغَ ذَلِكَ عَلِيًّا رضي الله عنه فَقَالَ وَيْحَ ابْنَ عَبَّاسٍ ﴾

### شرح الحديث :

یعنی علی رضي الله عنه څه خلقو لره چه مرتد شوی وو د اسلام نه د احراق بالنار سزا ورکړه، سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما ته چه کله د دې خبر ملاؤ شو چه دغه وخت کښې د بصرې امیر وو د علی رضي الله عنه د طرف نه نو هغوی اوفرمائیل چه که زه اوم نو هغوی ته به مې د تحریق سزا نه ورکوله، ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی ﴿ لا تعذبوا بعذاب الله ﴾ بلکه ما به هغوی قتل کړې وې ځکه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دې: ﴿ من بدل دينه فاقتلوه ﴾ چه کوم انسان مرتد شی هغه قتل کړئ،

### (د ويح معنى)

چه کله علی رضي الله عنه ته د ابن عباس رضي الله عنهما دا قول ملاؤ شو نو هغوی اوفرمائیل: ﴿ ويح ابن عباس ﴾ چه ابن عباس رضي الله عنهما څه ښکلې خبره فرمائیلې ده پس د ترمذی په روایت کښې په ځائې د ﴿ويح﴾ صدق ابن عباس رضي الله عنهما ذکر دې، د اکثرو اهل علمو رائې دا ده کما قال القاری چه لفظ ویح د د

(١): صحيح البخاري/الجهاد ١٤٩ (٣٠١٧)، المرتدين ٢ (٦٩٢٢)، سنن الترمذي/الحدود ٢٥ (١٤٥٨)، سنن النسائي/المحاربة ١١ (٤٠٦٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢ (٢٥٣٥)، (تحفة الأشراف: ٥٩٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٢/١، ٢٨٣، ٣٢٣) (صحيح)

خوښولو داظهار دپاره راځی، او دویم قول په دې کښې دا دې چه دا کلمه د ترحم ده او دا به په هغه صورت کښې وی چه کله دا اوئیلې شی چه هغوی د ابن عباس رضی الله عنهما اعتراض لره نه وی خوښ کړې ځکه چه د هغوی په نزد ﴿ لا تعذبوا بعذاب الله ﴾ دا نهی د تنزیه دپاره ده، په خلاف د ابن عباس رضی الله عنهما چه هغوی دا قول په تحریم باندې محمول کولو سره په علی رضی الله عنه باندې نکیر فرمائیلې دې.

زمونږ په نسخه هم داسې دی ﴿ ویح ابن عباس ﴾ او په یو نسخه کښې دی ﴿ ویح ام ابن عباس ﴾ د لفظ ام په زیادت سره او په بله نسخه کښې دی ﴿ ابن ام عباس ﴾ قال صاحب العون انه سهو من الکاتب.

## په قتل د مرتد او مرتده کښې اختلاف د ائمة :

امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په باره کښې فرمائی : **والعمل على هذا عند أهل العلم في المرتد واختلفوا في المرأة إذا ارتدت عن الإسلام فقالت طائفة من أهل العلم تقتل وهو قول الأوزاعي و أحمد و إسحق وقالت طائفة منهم تحبس ولا تقتل وهو قول سفيان وغيره من أهل الكوفة**، یعنی مرتد که سړې وی نو د دې په باره کښې خو اتفاق دې چه د هغه سزا قتل دې آیا مخکښې د توبې طلب کولو نه یا پس د هغې نه؟ دا مسئله مختلف فیه ده جمهور د استتابة قائل دې او د حسن بصری او اهل ظاهر په نزد د هغوی قتل فی الحال واجب دې مخکښې د توبې نه، اوس دا چه د دې استتابة چه جمهور ئې قائل دی هغه په طریق د وجوب دې یا په طریق د استحباب، د مالکیانو په نزد معروف وجوب دې او د احنافو په نزد دلته استحباب فی اللامع. او د شوافعو او د حنابله په نزد په دواړه روایتونو دی وجوب او استحباب. (تراجم بخاری) او د مرتدې زنانه په باره کښې اختلاف دې د ائمه ثلاثه په نزد. کما فی اللامع عن الموفق. د سړی او ښځې ترمینځه په دې مسئله کښې هیڅ فرق نشته د دواړو حکم قتل دې، او امام ابوحنیفه رحمه الله: ﴿ تجبر على الاسلام بالحبس والضرب ولا تقتل لقوله عليه السلام لا تقتلوا امراءة، ولانها لا تقتل بالكفر الاصلى فلا تقتل بالطارى كالصبى ﴾ یعنی د کافرې حربی په باره کښې چه کله دا دی چه هغه نه شی قتل کولې چه د هغې کفر اصلی دې هم دغه شان به مرتده هم نه شی قتل کولې چه د هغې کفر طارئ دې هم دغه شان د احنافو تائید د دې نه هم کیږی چه صدیق اکبر رضی الله عنه د نساء بنو حنیفه استرتاق فرمائیلې وو او هغوی ئې نه وې قتل کړې، پس په هغوی کښې یوې زنانه هغوی سیدنا علی رضی الله عنه ته ورکړې وه چه د هغې نه محمد بن الحنفیة پیدا شو. (لامع)

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

[٤٣٥٢] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ دَمُ رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ

[1]): صحيح البخاري/الديات ٦ (٦٨٧٨)، صحيح مسلم/القسامة ٦ (١٦٧٦)، سنن الترمذي/الديات ١٠ (١٤٠٢)، سنن النسائي/المحاربة ٥ (٤٠٢١)، سنن ابن ماجه/الحدود ١ (٢٥٣٤)، (تحفة الأشراف: ٩٥٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٢/١، ٤٢٨، ٤٤٤، ٤٦٥)، دي/الحدود ٢ (٢٣٤٤) (صحيح)

إِلاَّ بِإِحْدَى ثَلاَثٍ: الثَّيِّبُ الزَّانِي، وَالنَّفْسُ بِالنَّفْسِ، وَالتَّارِكُ لِدِينِهِ الْمُفَارِقُ لِلْجَمَاعَةِ".

دعبدالله رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي وو حلال نه دی وژل دهغه مسلمان څوک چه دلا اله الاالله ګواهی ورکوي اوددې خبرې ګواهی ورکوي چه زه دالله رسول یم، خو په یو ددرې خبرو سره یو دنکاح کولونه پس چه څوک زنا وکړي دویم دنفس په بدل کښې نفس دریم هغه څوک چه مرتد شي او دین اسلام پریږدی او بل دین اختیار کړي اودمسلمانانو دجماعت نه جدا شي.

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يَحِلُّ دَمُ رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنِّى رَسُولُ اللَّهِ إِلاَّ بِإِحْدَى ثَلاَثٍ الثَّيِّبُ الزَّانِى وَالنَّفْسُ بِالنَّفْسِ .....الخ﴾

یعنی د مسلمانانو وینه د درې وجهو نه حلاله کیدې شی یو زنا پس د احصان نه، چه د محصن کیدو باوجود زنا کوی او بل په قصاص کښې، او دریم د ارتداد د وجې نه.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٣٥٣] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ: رَجُلٌ زَنَى بَعْدَ إِحْصَانٍ فَإِنَّهُ يُرْجَمُ، وَرَجُلٌ خَرَجَ مُحَارِبًا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ أَوْ يُنْفَى مِنَ الْأَرْضِ، أَوْ يَقْتُلُ نَفْسًا فَيُقْتَلُ بِهَا".

دعائشه رضی الله عنها نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: حلال نه دی وژل دهغه مسلمان څوک چه دلا اله الاالله ګواهی ورکوي اوددې خبرې ګواهی ورکوي چه زه دالله رسول یم، خو په یو ددرې خبرو سره یو دنکاح کولونه پس چه څوک زنا وکړي ځکه چې دي به رجم کولې شي دویم هغه کس چه دالله اودرسول سره دجنګ دپاره راپاڅیدلي وي ځکه چه دي به قتل کولې شي بابه پهانسي کولې شي اویابه شړلي شي دملک نه اودریم وژل دیونفس ځکه چه دي به دهغې په بدل کښې کولی شي.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلاَّ فِى إِحْدَى ثَلاَثٍ رَجُلٌ زَنَى بَعْدَ إِحْصَانٍ فَإِنَّهُ يُرْجَمُ وَرَجُلٌ خَرَجَ مُحَارِبًا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ أَوْ يُنْفَى مِنَ الأَرْضِ أَوْ يَقْتُلُ نَفْسًا فَيُقْتَلُ بِهَا »﴾

په دې حدیث کښې هم د دریو ذکر دې یو زنا بعد الاحصان، او دویم رجل محارب، دریم قاتل نفس یعنی قصاص، په دې حدیث کښې په ځائې د تارک لدینه رجل محارب ذکر دې.

وړاندې په کتاب کښې د دې مستقل باب راروان دې، باب ما جاء فی المحاربة، لهذا په دې باندې به کلام هم هلته راځی، ان شاء الله تعالی، والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[٤٣٥٤] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بُرْدَةَ، قَالَ: قَالَ أَبُو مُوسَى: أَقْبَلْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعِي رَجُلَانِ

¹): سنن النسائي/المحاربة ٩ (٤٠٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٦، ٢١٤) (صحيح)

²): صحيح البخاري/المرتدين ٢ (٦٩٢٣)، صحيح مسلم/الامارة ٣ (١٧٣٣)، سنن النسائي/الطهارة ٤ (٤)، (تحفة الأشراف: ٩٠٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٩/٤) (صحيح)

مِنَ الْأَشْعَرِيِّينَ، أَحَدُهُمَا عَنْ يَمِينِي وَالْآخَرُ عَنْ يَسَارِي فَكِلَاهُمَا سَأَلَ الْعَمَلَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاكِتٌ فَقَالَ: "مَا تَقُولُ يَا أَبَا مُوسَى أَوْ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ، قُلْتُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا أَطْلَعَانِي عَلَى مَا فِي أَنْفُسِهِمَا وَمَا شَعَرْتُ أَنَّهُمَا يَطْلُبَانِ الْعَمَلَ وَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى سِوَاكِهِ تَحْتَ شَفَتِهِ قَلَصَتْ، قَالَ: لَنْ نَسْتَعْمِلَ أَوْ لَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ وَلَكِنِ اذْهَبْ أَنْتَ يَا أَبَا مُوسَى أَوْ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ فَبَعَثَهُ عَلَى الْيَمَنِ ثُمَّ أَتْبَعَهُ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ، قَالَ: فَلَمَّا قَدِمَ عَلَيْهِ مُعَاذٌ قَالَ: انْزِلْ وَأَلْقَى لَهُ وِسَادَةً وَإِذَا رَجُلٌ عِنْدَهُ مُوثَقٌ قَالَ: مَا هَذَا؟ قَالَ: هَذَا كَانَ يَهُودِيًّا فَأَسْلَمَ ثُمَّ رَاجَعَ دِينَهُ دِينَ السُّوءِ، قَالَ: لَا أَجْلِسُ حَتَّى يُقْتَلَ قَضَاءُ اللَّهِ وَرَسُولِهِ، قَالَ: اجْلِسْ نَعَمْ، قَالَ: لَا أَجْلِسُ حَتَّى يُقْتَلَ قَضَاءُ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَأَمَرَ بِهِ، فَقُتِلَ ثُمَّ تَذَاكَرَا قِيَامَ اللَّيْلِ فَقَالَ أَحَدُهُمَا: مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ أَمَّا أَنَا فَأَنَامُ وَأَقُومُ أَوْ أَقُومُ وَأَنَامُ وَأَرْجُو فِي نَوْمَتِي مَا أَرْجُو فِي قَوْمَتِي".

دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه دنبي علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم او زما سره دوه کسه اشعریان هم وویوزمابني طرف ته وو اوبل کس طرف ته دواړو دنبي علیه السلام نه دعاملتوب مطالبه کوله اونبي علیه السلام خاموش ناست وو بیا ئي اوفرمائي اې ابوموسی یا اې عبدالله بن قیس ته په دې سلسله کښې څه وائې؟ ماعرض اوکړو په هغه ذات مې دې قسم وي چاچه ته په حقه پیغمبر رالیږلې يې دوی دواړو زه دخپل زړه دخبرې نه نه وم خبرکړې اوماته معلومه نه وه چه دوی عاملین مقرریدل غواړي ابوموسی وائی ګویاکښې ما په دې وخت کښې دنبي علیه السلام مسواک ته کتل کوم چه دهغه دشوندو دلاندې وو او شونډه ئې ورله پورته کړي و، بیانبي علیه السلام اوفرمائیل مونږ پخپلو کارونوباندې هغه څوک نه مقرروو څوک چه ددې غوښتل کوي لیکن اې ابوموسی یاعبدالله بن قیس ته لاړ شه اوبیانبي علیه السلام ابوموسی لره دیمن ګورنر مقرر کړو او په دې پسې ئې بیا معاذ بن جبل رضی الله عنه ولیږلو کله چه معاذ ابوموسی ته ورسیدو نوهغه معاذ ته اووئیل کوز شه اودهغه دپاره ئې بیوه تکیه ایخودلې وه معاذ ده چه وکتل نویوکس په پړو تړلې شوې وو تپوس ئې وکړو داڅوک دې؟ ابوموسی ورته اووئیل دا یو یهودي وو بیائې اسلام قبول کړو اوس داسلام نه دوباره اوریدلې دې اوخپل زوړ ناکاره دین ته ورګرځیدلې دې معاذ رضی الله عنه اووئیل زه ترهغې پورې نه کینم ترڅوچه دا کس دالله اودهغه درسول دحکم مطابق قتل نکړې شي، ابوموسی ورته اووئیل ته خوکښینه همداسې به وشي معاذ رضی الله عنه اووئیل زه به هیڅ کله کښېنم ترڅوچه دا کس دالله اودهغه درسول دحکم مطابق قتل نکړې شي، درې پیرې ئې داسې اوفرمائیل نو په دې وخت کښې ابوموسی اشعری و حکم وکړو او دې قتل کړې شو، ددینه پس ابوموسی او معاذ رضی الله عنهما دواړو دشپې دشوګیرې په باره کښې (دنوافلودپاره) خبرې شروع کړې پدوی دواړوکښې یوکس اووئیل شاید معاذ کاروئیل زه دشپې خوب هم کوم اوعبادت هم کوم یا عبادت هم کوم اوخوب هم کوم او زما امید دې چه ماته به په خوب کښې هم دومره اجر ملاو شي څومره چه په عبادت کښې ملاویږي.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ وَمُسَدَّدٌ قَالَ أَبُو مُوسَى أَقْبَلْتُ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَمَعِي رَجُلَانِ مِنَ الْأَشْعَرِيِّينَ أَحَدُهُمَا عَنْ يَمِينِي وَالْآخَرُ عَنْ يَسَارِي الخ ﴾

**مضمون الحديث :**

ابو موسى اشعرى رضي الله عنه فرمائى چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې روان اوم، ما سره د قبيله اشعر دوه سړي نور شو زما نه ښي او ګس طرف ته، د رسول الله ﷺ خدمت ته د راتلو نه پس دې دواړو د رسول الله ﷺ نه عمل طلب کړو يعنى دا چه هغوى لره د يو ځائې عامل جوړ کړې شي، رسول الله ﷺ په دې سوال باندې خاموش پاتې شو او زما طرف ته متوجه کيدو سره ئې اوفرمائيل چه تاسو څه وايئ، په ظاهره ئې مطلب دا دې چه تاسو د دوى د سفارش دپاره راغلى يئ لکه چه د صورت حال نه معلوميږى، هغوى فرمائى چه ما عرض اوکړو چه قسم په الله ماته دې دواړو خپل غرض نه وو بيان کړې او نه زما په ذهن کښې دا خبره وه چه دا په دې وجه راغلى دى، رسول الله ﷺ زما جواب اوريديو سره اوفرمائيل : ﴿ لَنْ نَسْتَعْمِلَ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ ﴾ چه مونږ يو داسې چالره عامل نه جوړو کوم چه د دې طالب او خوښونکې وى، په دې روايت کښې دا هم دى ﴿ وَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى سِوَاكِهِ تَحْتَ شَفَتِهِ قَلَصَتْ ﴾ ابوموسى رضي الله عنه فرمائى چه د کوم وخت دا واقعه ده په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ مسواک فرمائيلو او مسواک ئې د شونډو مبارکو نه لاندې وو چه د هغې په وجه ئې شونډه مبارکه پورته اوچتيدله، ګويا دا منظر زما مخې ته دې، او د بذل نه معلوميږى چه حضرت د دې مفهوم دا اخستلې دې چه دا د رسول الله ﷺ د شونډو اوچتيدل په مسواک کولو کښې د اوډريدو د وجې نه وه ﴿ تاسفا على سوالهما ﴾ يعنى چونکه په رسول الله ﷺ باندې د دې دوه کسانو سوال بد اولګيدو نو په افسوس کښې ئې د شونډو نه لاندې مسواک نيولې وو. والله تعالیٰ اعلم.

د حديث دا ټکړه مختصرا په کتاب القضاء باب فى طلب القضاء کښې تيره شوې ده، او د دې نه مخکښې په کتاب الطهارة کښې، باب کيف يستاک کښې تيره شوى ده، او دلته دا لفظ دې : وهو يستاک وقد وضع السواک على طرف لسانه، او هلته د دې په باره کښې يو بل اختلاف روايات هم تير شوې دې، استحمال او استعمال دواړه بيل بيل واقعات دى، فارجع اليه.

وړاندې په حديث کښې دى چه رسول الله ﷺ ابوموسى اشعرى رضي الله عنه ته اوفرمائيل : ﴿ وَلَكِنِ اذْهَبْ أَنْتَ يَا أَبَا مُوسَى فَبَعَثَهُ عَلَى الْيَمَنِ ثُمَّ أَتْبَعَهُ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ ﴾ د ابوموسى ملګرو خو چونکه عمل طلب کړې وو په دې وجه رسول الله ﷺ هغوى ته انکار اوفرمائيلو او ابوموسى رضي الله عنه چونکه د دې په باره کښې غوښتونکې بالکل نه وو بلکه د خپلو ملګرو د طلب عمل نه هم ويريدلې وو په دې وجه رسول الله ﷺ وفرمائيل چه تاسو د دې اهل يئ مونږ تالره عامل جوړولو سره ليږو، او بيا د دې نه روستو معاذ بن جبل رضي الله عنه هم رسول الله ﷺ راوليږلو.

دا د بعث معاذ رضي الله عنه روايت په کتاب الزکوة کښې هم تير شوې دې او هلته دا اختلاف هم تير شوې دې چه سيدنا معاذ رضي الله عنه لره رسول الله ﷺ والى ليږلې وو يا که قاضى، خو بهر حال رسول الله ﷺ دې دواړو لره بيل بيل مستقل د عمل دپاره ليږلې وو، پس د بخارى په يو روايت کښې دى کما فى العون ﴿ ان کلا منهما کان على عمل مستقل ﴾ يعنى د دواړو علاقې بيلې بيلې وې او دا هم راځى چه کله به هغوى يو بل ته نزدې کيدل نو خپل مينځ کښې به ئې

یو بل سره ملاقات کولو.

**قوله:** ﴿ قَالَ فَلَمَّا قَدِمَ عَلَيْهِ مُعَاذٌ قَالَ انْزِلْ. وَأَلْقَى لَهُ وِسَادَةً فَإِذَا رَجُلٌ عِنْدَهُ مُوثَقٌ الخ ﴾ یعنی معاذ رضي الله عنه چه په شروع کښې کله یمن ته اورسیدو نو ابوموسی اشعری رضي الله عنه سره کوز شو، ابو موسی رضي الله عنه د هغوی په لیدو باندې د هغوی دپاره تکیه راغوښتلو سره کیخودله، سیدنا معاذ رضي الله عنه هغوی سره یو قیدی تړلې اولیدو نو هغوی د سورلۍ نه د کوزیدو نه مخکښې تپوس اوکړو چه دا څوک دې ابو موسی رضي الله عنه اوفرمائیل چه دا یهودی وو او اسلام ئې قبول کړې وو بیا مرتد شو نو معاذ رضي الله عنه اوفرمائیل چه زه نه کینم ترڅو چه ته په دهٔ باندې حد جاری نه کړې یعنی قتل چه د الله پاک او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم فیصله ده، هغوی اوفرمائیل تاسو کینئ دا کار هم اوس کوم، هغوی اوفرمائیل زه نه کینم ترڅو چه تاسو دې قتل کړې نه وی، مطلب دا دې چه تاسو زما د اعزاز او اکرام فکر مه کوئ کوم کار چه ډیر ضروری او اهم دې یعنی د حدود الله تنفیذ هغه اول اوکړئ، پس هغوی هغه سړې قتل کړو، (بیا هغوی د ابوموسی رضي الله عنه سره په اطمینان باندې کیناستل) ﴿ ثم تذاكرا قيام الليل ﴾ یعنی خپل مینځ کښې ئې خبرې اترې کولې او د خبرو ترمینځه د تهجد او د قیام لیل ذکر هم راغلو، دلته په روایت کښې دی چه سیدنا معاذ رضي الله عنه اوفرمائیل چه زما عادت خو د شپې په اودهٔ کیدو او آرام کولو کښې هم دا دې او د مونځ کولو هم، ﴿ وارجو في نومتي ما ارجو في قومتي ﴾ او زه خو د الله پاک نه په خپل خوب باندې هم د هغه ثواب امید لرم د کوم امید چه ترې نه په قیام کښې لرم، په دې روایت کښې د ابوموسی رضي الله عنه حال ذکر نه دې چه هغوی به د شپې څه څه کول، د کلام د سیاق نه معلومیږی چه هغوی به په عبادت کښې مبالغه کوله هم په دې وجه سیدنا معاذ رضي الله عنه د هغې په مقابله کښې خپل معمول بیان کړو، پس حافظ لیکی: وفي رواية سعيد بن ابي بردة: فقال ابوموسى اقرأه قائما وقاعدا وعلى راحلتي واتفوقه تفوقا اى الازم قراءته في جميع الاحوال. یعنی هغوی اوفرمائیل چه زه خو په هر حال کښې د قرآن کریم تلاوت کوم. او د هغوی قراءت دې هم ډیر مشهور ډیر په ښکلی آواز سره به ئې قرآن لوستلو، پس یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی قراءت اوریدلو سره اوفرمائیل: اعطيت مزمارا من مزامير داؤد، د دې حدیث نه معلومه شوه چه د حد ثابتیدلو نه پس د هغې په تنفیذ کښې ناوخته کول نه دی پکار.

والحديث فيه اكرام الضيف والمبادرة الى انكار المنكر، واقامة الحد على من وجب عليه وان المباحات يوجر عليها بالنية اذا صارت وسائل للمقاصد الواجبة او المندوبة، او تكميلا لشئ منهما اه (عون) والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، قاله المنذري

[٤٣٥٥] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الْحِمَّانِيُّ يَعْنِي عَبْدَ الْحَمِيدِ ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، وَبُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: "قَدِمَ عَلَيَّ مُعَاذٌ وَأَنَا بِالْيَمَنِ وَرَجُلٌ كَانَ يَهُودِيًّا، فَأَسْلَمَ فَارْتَدَّ عَنِ الْإِسْلَامِ، فَلَمَّا قَدِمَ مُعَاذٌ، قَالَ: لَا أَنْزِلُ عَنْ دَابَّتِي حَتَّى يُقْتَلَ، فَقُتِلَ قَالَ: أَحَدُهُمَا وَكَانَ قَدِ اسْتُتِيبَ قَبْلَ ذَلِكَ".

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٠٧٣) (صحيح)

د ابوموسی ﷺ نه روایت دي فرمائی چه معاذ زما خواته راغي اوزه په یمن کښې وم یویهودي سړې مسلمان شوې وو اوبیا د اسلام نه بیرته ګرځیدلي وو هرکله چه معاذ راغي نوونې وئیل زه دخپلې سورلۍ نه ترهغه وخته پورې نه کوزیږم ترڅوچه دې قتل شوې نه وي نودې قتل کړې شو راوی وائی په دوی دواړو کښې یوکس اووئیل دد دې یهودي نه دقتل کولونه مخکښې دتوي غوښتنه هم شوي وو.

**قوله:** ﴿وكان قد استتيب قبل ذلک﴾ د تیر شوی روایت نه په ظاهره معلومیږی چه د دې رجل موثق قتل قبل الاستتابة کړې شوې وو، په دې روایت کښې دا زیادت دې چه داسې نه ده بلکه د دې نه مخکښې استتابة کړې شوې وو، او د دې نه په روستو روایت کښې راځی ﴿قال فاتی ابوموسی برجل قد ارتد عن الاسلام فدعاه عشرين ليلة او قريبا منها﴾

[٤٣٥٦](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَأُتِيَ أَبُو مُوسَى بِرَجُلٍ قَدِ ارْتَدَّ عَنِ الْإِسْلَامِ، فَدَعَاهُ عِشْرِينَ لَيْلَةً أَوْ قَرِيبًا مِنْهَا، فَجَاءَ مُعَاذٌ فَدَعَاهُ فَأَبَى، فَضَرَبَ عُنُقَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ [٢] لَمْ يَذْكُرِ الِاسْتِتَابَةَ وَرَوَاهُ ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي مُوسَى لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ الِاسْتِتَابَةَ.

د ابوبرده نه هم دا حدیث مروی دې مګر په دې روایت کښې داسې دی چه ابوموسی اشعری هته یوکس راوستلی شو کوم چه مرتد شوې وو هغه ورته اسلام ته دواپس کیدو او دنوي ویستلو دپاره دشلو ورځو پورې ترغیب ورکړو بیامعاذ ﷺ راغي هغه هم ورته اووئیل چه اسلام قبول کړه لیکن ده انکار وکړو نودده څټ اووهلې شو (قتل کړې شو) امام ابوداؤد فرمائی چه داحدیث دعبدالملک بن ابو برده نه هم منقول دې لیکن دنوي ذکر په کښې نشته اوابن فضل هم دا روایت دشیباني نه اوهغه دسعید بن ابی برده اوهغه دخپل پلار ابوموسی نه داستغفار دمطالبې دذکر نه بغیر بیان کړې دې.

داستتابة په باره کښې روایات مختلف دی لکه چه وړاندې مصنف رحمه الله پخپله فرمائی.

حديث عبد الملك اخرجه البخاري مرسلا، وطريق فضيل اخرجه البخاري، ومسلم، قاله المنذري.

[٤٣٥٧](٢)حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ: فَلَمْ يَنْزِلْ حَتَّى ضُرِبَ عُنُقُهُ وَمَا اسْتَتَابَهُ.

د قاسم نه هم دا روایت منقول دې لیکن په دې روایت کښې داسې دی چه معاذ دخپلې سورلۍ نه دهغه وخته پورې نه کوزیدو ترڅوچه دده څټ نه وو وهلې شوې اودده نه دتوي ویستلو غوښتنه نه وه شوې.

[٤٣٥٨](٣)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي سَرْحٍ يَكْتُبُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَزَلَّهُ الشَّيْطَانُ فَلَحِقَ بِالْكُفَّارِ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُقْتَلَ يَوْمَ الْفَتْحِ، فَاسْتَجَارَ لَهُ عُثْمَانُ بْنُ

(١): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: ٤٣٥٤، (تحفة الأشراف: ٩٠٩٦، ٩١١٣، ١٩١٩٥) (صحيح الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤٣٥٤)، (تحفة الأشراف: ٩٠٩٦) (ضعيف الإسناد)
(٣): سنن النسائي/المحاربة ١٢ (٤٠٧٤)، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٢) (حسن الإسناد)

عَفَّانَ فَأَجَارَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د ابن عباس به نه روایت دې فرمائی چه عبدالله بن سعد بن سرح دنبی ﷺ کاتب وو ده لره شیطان دوکه کړې وو او د کافرانوسره یوځائې شوې وو په کومه ورځ چه مکه فتح شوه په دغه ورځنبی ﷺ دده دقتل کولوحکم اوکړو بیا دده دپاره عثمان بن عفان به پناه وغوښتله نبی کریم به ورته پناه ورکړه اودوباره په اسلام کښې داخل شو.

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي لسَرْحٍ يَكْتُبُ لِرَسُولِ اللّٰهِ –صلى الله عليه وسلم– فَأَزَلَّهُ الشَّيْطَانُ﴾

**شرح الحديث:**

یعنی عبدالله بن سعد بن ابی سرح چه د حضرت عثمان رضی الله عنه رضاعی رور وو د رسول الله ﷺ د کاتبینو نه وو رسول الله ﷺ به په هغه باندې لیکل کول، شیطان هغوی په لعزش کښې اخته کړل بیا هغه د کفارو سره ملاؤ شو، د فتح مکه په ورځ رسول الله ﷺ د هغه د قتل حکم ورکړو خو هغه په تیخته د سیدنا عثمان رضی الله عنه په پناه کښې راغلو، رسول الله ﷺ د هغوی امن قائم اوساتلو. دا روایت مختصر دې، د دې نه په روستو روایت کښې تفصیل دې او هغه تفصیل په کتاب الجهاد کښې تیر هم شوې دې، باب قتل الاسير ولا يعرض عليه الاسلام د لاندې او هلته د دې روایت هم کوم چه دلته راغلې دې حواله ورکړې شوې ده، او اشکال و جواب هم کوم چه په دې مقام باندې وی، دلته په بذل کښې حضرت د هغې په باره کښې لیکلې دی: قال فی فتح الودود وفيه ان التوبة عن الكفر فی حیاته ﷺ كانت موقوفة على رضاه ﷺ﴾ دومره خبره په "درمنضود" کتاب الجهاد کښې تیره شوې ده د علامه سندی نه، دلته په بذل کښې حضرت په دې باندې دا اضافه فرمائیلې ده: قلت لعله مخصوص بمن امر النبی ﷺ باهدار دمه قبل ذلک، یعنی علامه سندی چه دا فرمائیلی دی چه د رسول الله ﷺ په ژوند کښې د توبه عن الکفر معتبر وه د رسول الله ﷺ په رضا باندې، حضرت فرمائی چه داسې مطلقا نه ده بلکه دا د هغه سړی په باره کښې ده کوم ته چه رسول الله ﷺ مهدر الدم وئیلې وی، لکه چه دلته د عبدالله بن سعد بن ابی سرح سره اوشوه.

پورته په حدیث کښې راغلی دی، د ابن ابی سرح په باره کښې، ﴿فازله الشيطان﴾ کیدې شی چه دا زلة هم هغه وی کوم چه د هغه په ترجمه کښې په اسد الغابة کښې د هغه په حالاتو کښې ذکر دې په هغې کښې لیکلې شوې دی چه دې سړی به د رسول الله ﷺ دپاره وحی لیکله بیا مرتد کیدو سره د مشرکینو سره یوځائې شو او هغوی ته ئې اووې چه ﴿انی کنت اصرف محمدا حيث ارید﴾ چه ما به د رسول الله ﷺ مخ چرته چه اړول غوښتل اړولو به مې، هغه به په ما باندې املاء کوله، عزیز حکیم ﴿فاقول﴾ او ﴿علیم حکیم﴾ فيقول نعم کل سواء یعنی رسول الله ﷺ به ماته فرمائیل د عزیز حکیم د لیکلو نو ما به ورته اووې چه علیم حکیم اولیکم؟ نو هغوی به فرمائیل چه او اولیکه دواړه برابر دی.

والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[۴۳۵۹](1)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ نَصْرٍ، قَالَ زَعَمَ السُّدِّيُّ: عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ اخْتَبَأَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي سَرْحٍ عِنْدَ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، فَجَاءَ بِهِ حَتَّى أَوْقَفَهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ بَايِعْ عَبْدَ اللَّهِ، فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَنَظَرَ إِلَيْهِ ثَلَاثًا كُلُّ ذَلِكَ يَأْبَى، فَبَايَعَهُ بَعْدَ ثَلَاثٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى أَصْحَابِهِ فَقَالَ: "أَمَا كَانَ فِيكُمْ رَجُلٌ رَشِيدٌ يَقُومُ إِلَى هَذَا حَيْثُ رَآنِي كَفَفْتُ يَدِي عَنْ بَيْعَتِهِ فَيَقْتُلُهُ، فَقَالُوا: مَا نَدْرِي يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا فِي نَفْسِكَ أَلَا أَوْمَأْتَ إِلَيْنَا بِعَيْنِكَ، قَالَ: إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِنَبِيٍّ أَنْ تَكُونَ لَهُ خَائِنَةُ الْأَعْيُنِ".

دسعد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي په کومه ورځ چه مکه فتح شوه نوعبدالله بن سعد بن ابی سرح دعثمان خواته لاړو هلته ئي ځان پټ کړو عثمان رضي الله عنه ده لره دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر کړو او رائې وستلو تردي چه دنبی علیه السلام په وړاندې مخامخ ودرولی شو او عرض ئې وکړو يا رسول الله دعبد الله سره بيعت وکړه نبی علیه السلام خپل سر مبارک پورته اوچت کړو او درې پيرې ئې ده ته وکتل او هرځل به ئې دده سره دبيعت کولو نه انکار کولو د درې پيرې انکارکولو نه پس نبی علیه السلام دده سره بيعت اوکړو ددې نه پس نبی علیه السلام صحابه کراموته متوجه شواوونې فرمائيل ايا په تاسوکښې څوک عقلمند نه وو؟ چه ده ته ورپاسيدلې وې کله چه ی ده لره وليد و چه ماورسره بيعت ونکړو ددې دپاره چه دده په قتل پسې ورپاسيدلې وې، صحابه کرامو عرض اوکړو اې دالله رسوله مونږ ستادزړه دحان نه خبر نه يو البته که چرې تا په سترګو دده دقتل دپاره اشاره کړې وې نومونږ به ضرور قتل کړې وونبی علیه السلام اوفرمائيل اشارې کول دنبی علیه السلام سره نه ښائي چه هغه دې دسترګو په ګوټونو پټې اشارې وکړې.

[۴۳۶۰](2)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ إِلَى الشِّرْكِ فَقَدْ حَلَّ دَمُهُ".

د جرير رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه درسول الله صلى الله عليه وسلم نه مې اوريدلې دی چه فرمائيل يې: کله چه يو غلام دخپل مالک نه دکفر او شرک طرف ته وروتښتي نودده وژل جائزدي

## بَابُ الْحُكْمِ فِيمَنْ سَبَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم(3)

### بابه د هغه چا د سزا بيان چه د رسول صلى الله عليه وسلم بې ادبی اوکړی

يعنی کوم سړې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شان کښې ګستاخی، بدردې يا کنځل اوکړی د هغه دحکم بيان.

[۴۳۶۱](4)حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى الْخُتَّلِيُّ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ الْمَدَنِيُّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عُثْمَانَ الشَّحَّامِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ، "أَنَّ أَعْمَى كَانَتْ لَهُ أُمُّ وَلَدٍ تَشْتُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقَعُ فِيهِ

---

1): انظر حديث رقم: (۲۶۸۳)، (تحفة الأشراف: ۳۹۳۸) (صحيح)

2): صحيح مسلم/الإيمان (۶۸)، سنن النسائي/المحاربة ۱۰ (۴۰۵۷)، (تحفة الأشراف: ۳۲۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۵/۴) (ضعيف)

3) واختلف في قبول توبة ساب النبي صلى الله عليه وسلم كما في رسائل لبن عابدين ۱۴/۱ وله في ذلك رسالة مستقلة ۳۱۳ (هامش البذل)

4): سنن النسائي/المحاربة ۱۳ (۴۰۷۵)، (تحفة الأشراف: ۶۱۵۵) (صحيح)

فَيَنْهَاهَا فَلَا تَنْتَهِي وَيَزْجُرُهَا فَلَا تَنْزَجِرُ، قَالَ: فَلَمَّا كَانَتْ ذَاتَ لَيْلَةٍ جَعَلَتْ تَقَعُ فِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَشْتُمُهُ، فَأَخَذَ الْمِغْوَلَ فَوَضَعَهُ فِي بَطْنِهَا وَاتَّكَأَ عَلَيْهَا فَقَتَلَهَا فَوَقَعَ بَيْنَ رِجْلَيْهَا طِفْلٌ، فَلَطَخَتْ مَا هُنَاكَ بِالدَّمِ فَلَمَّا أَصْبَحَ ذُكِرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَمَعَ النَّاسَ فَقَالَ: أَنْشُدُ اللَّهَ رَجُلًا فَعَلَ مَا فَعَلَ لِي عَلَيْهِ حَقٌّ إِلَّا قَامَ فَقَامَ الْأَعْمَى يَتَخَطَّى النَّاسَ وَهُوَ يَتَزَلْزَلُ حَتَّى قَعَدَ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا صَاحِبُهَا كَانَتْ تَشْتُمُكَ وَتَقَعُ فِيكَ فَأَنْهَاهَا فَلَا تَنْتَهِي وَأَزْجُرُهَا فَلَا تَنْزَجِرُ وَلِي مِنْهَا ابْنَانِ مِثْلُ اللُّؤْلُؤَتَيْنِ وَكَانَتْ بِي رَفِيقَةً فَلَمَّا كَانَ الْبَارِحَةَ جَعَلَتْ تَشْتُمُكَ وَتَقَعُ فِيكَ فَأَخَذْتُ الْمِغْوَلَ فَوَضَعْتُهُ فِي بَطْنِهَا وَاتَّكَأْتُ عَلَيْهَا حَتَّى قَتَلْتُهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَلَا اشْهَدُوا أَنَّ دَمَهَا هَدَرٌ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه دیونابینا سړي یوه ام ولده وینځه وه اودنبی علیه السلام بدبه ئې وئیل اودنبی علیه السلام حجوه به ئې بیانوله دغه نابیناکس به ددې عمل نه منع کوله لیکن هغه به نه منع کیدو اوهغه به رټله لیکن په هیڅ شان به ئې نه منل یوه شپه حسب معمول هغې دنبی علیه السلام بد وئیل شروع کړل اوکنځل ئې کول نودې نابینا کس چاړه راواخستله اوودې په خیټه ئې کیښودله چاړې ته ئې زور ورکړو اودائې قتل کړه ددې ښځې د دواړو خپو په مینځ کښې بچې وغورځیدو او په وینوکښې لت پت شو هرکله چه صبا شو نودنبی علیه السلام په خدمت کښې ددې واقعې ذکر وشونبی علیه السلام ټول خلق راجمع کړل او وئې فرمائیل چاچه دا کار کړې وي زه هغه ته په الله قسم ورکوم او خپل حق ورته قسم ورکوم کوم چه زماپه ده باندې دې چه هغه دې پاڅي (اقراردې وکړي) نابینا چه دا خبره واوریده نو اودریدو اودخلقو په مینځ کښې په توپونو توپونو راغې او حاضر شوتردې چه دنبی علیه السلام په وړاندې مخامخ کښیناستو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زه هغه کس یم چاچه دا وینځه وژلې ده ، دې وینځې به تاته کنځل کول اوستابد به ئې وئیل مابه دا منع کوله خونه به منع کیدله اومابه دا رټله لیکن دې به نه منله اوددې دخیټې نه زما دوه د ملغلرویشان ځامن دې او دا زما یوه ښه ملګرې وه تیره شوې شپه دې وینځې تاته بد وئیل شروع کړه اوستا حجوه ئې بیانوله ماچاړه راواخسته اوودې په خیټه مې کیښوده او په چاړه مې خپل وزن ورواچوو تردې چه قتل شوه نبی علیه السلام چه دا واوریدل نوو ئې فرمائیل اې خلقو تاسو ګواه اوسئ چه ددې وینځې وینه عبس ده (یعنی ددې قصاص به نشي اخستلې).

**قوله:** ﴿ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ أَنَّ أَعْمَى كَانَتْ لَهُ أُمُّ وَلَدٍ تَشْتُمُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَتَقَعُ فِيهِ الخ ﴾

## مضمون الحديث :

د ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چه یو نابینا صحابی وو چه د هغه یو ام ولده وه یعنی غیر مسلمه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کښې به ئې ګستاخی کوله او کنځل به ئې کول، هغه نابینا صحابی د هغې مالک به هغه منع کوله، د یوې شپې واقعه ده چه هغې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کښې بکواس کولو نو دې صحابی داسې اوکړل چه یو سیخ ئې واخستلو او د هغې سوکه ئې د هغه وینځې په خیټه باندې کیخودله او خپل بوج ئې پرې ور واچولو او هغه ئې هلاکه کړه، او چونکه هغه وخت هغه حامله وه په داسې کولو سره هغه ماشوم بهر راغلو او

هغه ټول خائي په وينو باندې ليت پيت شو. چه کله صبا شو نو رسول الله ﷺ ته د هغې د قتل تذکره اوکړې شوه، رسول الله ﷺ خلق راجمع کړل او مجمع ته خطاب کولو سره ئې دا اوفرمائيل چه د الله پاک واسطه درکولو سره وايم هغه سړی ته چا چه دا کار کړې دې چه په خپل ځان باندې زما څۀ حق منې نو هغه دې اودرېږي، په دې خبره اوريدو باندې هغه نابينا صحابي رضی الله عنه اودريدلو او چونکه هغوی په مجلس کښې شاته ناست وو په دې وجه د خلقو په اوږو باندې راوختلو او رپيدلو سره د رسول الله ﷺ مخې ته کيناستلو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ د دې قاتل زه يم. او هغې چه به کوم حرکتونه کول د هغې ذکر ئې اوکړو، او دا ئې هم اوئيل چه د دې نه زما دوه ډير ښکلي ځامن هم دی. او زما پخوانې ښځه وه، تيره شپه هغې ستا په شان کښې ګستاخي کوله نو ما چاړه راواخستله او د هغې په خيټه باندې مې کيخودله او بوج مې پرې واچولو تر دې چه هغه مړه شوه، رسول الله ﷺ دې خبرې اوريدلو سره اوفرمائيل: «الا اشهد وان دمها هدر» ټول خلق ګواه شئ چه د دې ښځې وينه معاف ده.

**په مسئله مترجم بها کښې د فقهاء کرامو رائې:**

په مسئلة الباب کښې لږ اختلاف او تفصيل دې او دا چه که ساب النبی ﷺ که مسلم وی نو هغه به مرتد شي او هغه به بالاجماع قتل کولې شي بغير د استتابة نه. او که ذمی وی نو د جمهورو په نزد به په داسې کولو سره د هغه عهد مات شي لهذا هغه به هم قتل کولې شي، البته امام مالک رحمه الله فرمائي چه که د سب النبی ﷺ نه پس هغه اسلام راوړی نو نه به شي قتل کولې، او د احنافو په نزد که هغه ذمی دې نو په داسې کولو سره به د هغه نقض مات شي او د هغه به سزا قتل نه بلکه تعزير وی.

والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[۴۳۶۲]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ جَرِيرٍ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، "أَنَّ يَهُودِيَّةً كَانَتْ تَشْتُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقَعُ فِيهِ فَخَنَقَهَا رَجُلٌ حَتَّى مَاتَتْ فَأَبْطَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَمَهَا".

دعلي رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوې يهودنړې به نبی عليه السلام ته کنځل کول اودده که بد به ئې وئيل په دې خبره باندې يو کس ددې ځټ تاو کړو تردې چه مړه شوه نبی عليه السلام ددې وينه هدر وګرځوله.

[۴۳۶۳]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح وحَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَنُصَيْرُ بْنُ الْفَرَجِ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ زُرَيْعٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: "كُنْتُ عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَتَغَيَّظَ عَلَى رَجُلٍ، فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ، فَقُلْتُ: تَأْذَنُ لِي يَا خَلِيفَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَضْرِبُ عُنُقَهُ، قَالَ: فَأَذْهَبَتْ كَلِمَتِي غَضَبَهُ فَقَامَ، فَدَخَلَ فَأَرْسَلَ إِلَيَّ فَقَالَ: مَا الَّذِي قُلْتَ آنِفًا؟ قُلْتُ: ائْذَنْ لِي أَضْرِبْ عُنُقَهُ، قَالَ: أَكُنْتَ فَاعِلًا لَوْ أَمَرْتُكَ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: لَا وَاللَّهِ مَا كَانَتْ لِبَشَرٍ بَعْدَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو دَاوُد:

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠١٥٠) (ضعيف الإسناد)

[2]: سنن النسائي/المحاربة ١٣ (٤٠٧٦)، (تحفة الأشراف: ٦٦٢١، ١٨٦٠٢) (صحيح)

هَذَا لَفْظُ يَزِيدَ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: أَيْ لَمْ يَكُنْ لِأَبِي بَكْرٍ أَنْ يَقْتُلَ رَجُلًا إِلَّا بِإِحْدَى الثَّلَاثِ الَّتِي قَالَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُفْرٌ بَعْدَ إِيمَانٍ، أَوْ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ، أَوْ قَتْلُ نَفْسٍ بِغَيْرِ نَفْسٍ، وَكَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْتُلَ.

د ابو برزه اسلمی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه دابوبکر صدیق رضی الله عنه سره ناست وم اوهغه یوکس ته غصه شو اوسخته غصه ئې وکړه ماورته اووئیل اې دالله درسول خلیفه ماته اجازت راکړه چه زه دده څټ اووهم په دې خبرې سره به دده غصه کمیدله تردې چه پاڅیدو او دننه لاړو بیا ئې زه وغوښتلم اووئې فرمائیل تاوس څه خبره کوله؟ ماعرض اوکړو ماته اجازت راکړه چه زه دده څټ اووهم، صدیق اکبره اوفرمائیل که چرې ماتاته حکم کړې وې نوتاپه ریښتیا سره دده څټ وهلو؟ ماعرض اوکړو یقینا مابه دده څټ وهل رو ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمائیل دنبی علیه السلام نه پس دا مقام کوم انسان ته نه دې حاصل شوې امام ابوداؤد فرمائی دا الفاظ دیزید بن زریع دي.

﴿عَنْ أَبِي بَرْزَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَتَغَيَّظَ عَلَى رَجُلٍ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ فَقُلْتُ تَأْذَنُ لِي يَا خَلِيفَةَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَضْرِبُ عُنُقَهُ قَالَ فَأَذْهَبَتْ كَلِمَتِي الخ﴾

## مضمون الحدیث:

سیدنا ابوبرزه الاسلمی رضی الله عنه فرمائی چه زه یوه ورځ د صدیق اکبر رضی الله عنه سره اوم هغه په یو سړي باندې ناراضه شو په دې باندې هغه سړې د هغوی سره په بې ادبۍ باندې راغلو یعنی د هغوی په شان کښ ئې گستاخی اوکړه، ابوبرزه وائی چه ما د هغوی نه اجازت طلب کړو چه یا خلیفة رسول الله ﷺ آیا زه د هغه سټ اووهم؟ هغوی فرمائی چه زما دې لفظ د هغوی غصه سړه کړه (او هغوی هلته کیناستلې نه شو) پس اودریدل او دننه لاړل، او دننه تلو سره ئې د یو سړي په ذریعه زه راطلب کړم او وې فرمائیل چه تا اوس څه خبره کړې وه؟ ما عرض اوکړو چه ما ستاسو نه د هغه سړي د قتل اجازت طلب کړې وو، صدیق اکبر رضی الله عنه اوفرمائیل چه که ما تاته اجازت درکړې وې نو تا به داسې کړې وې؟ ما اووې اوجئ ضرور، هغوی اوفرمائیل قسم په الله پاک دا خبره د هیڅ انسان دپاره جائز نه ده د رسول الله ﷺ نه پس، یعنی د رسول الله ﷺ خو دا مقام دې چه که هغوی د چا نه خفه کیدو سره د هغه د قتل حکم اوکړی نو دهغه قتل به جائز وی، اوهم دغه شان څوک چه دهغوی په شان کښ گستاخی اوکړی نو دهغه قتل به هم جائز وی، خو د رسول الله ﷺ نه پس د هغوی خلفاء کښ د چا هم دا حکم نه دې چه دهغوی په وجه باندې دهغه قتل جائزشی. والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُحَارَبَةِ

## بابـ د لارې شوکونکی د سزا بیان

امام بخاری رحمه الله خو په دې مسئله باندې د مستقل کتاب عنوان اختیار کړې دې کتاب المحاربین من اهل الکفر والردة او بیا ئې د هغې نه لاندې څو ابواب ذکر کړې دی، په ظاهر کښ دا مسئله وسیع الذیل ده.

[۴۳۶۴] () حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ قَوْمًا مِنْ عُكْلٍ أَوْ قَالَ مِنْ عُرَيْنَةَ قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاجْتَوَوُا الْمَدِينَةَ "فَأَمَرَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلِقَاحٍ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا، فَانْطَلَقُوا فَلَمَّا صَحُّوا قَتَلُوا رَاعِيَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا النَّعَمَ، فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرُهُمْ مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ، فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آثَارِهِمْ فَمَا ارْتَفَعَ النَّهَارُ حَتَّى جِيءَ بِهِمْ فَأَمَرَ بِهِمْ فَقُطِعَتْ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ وَسُمِرَ أَعْيُنُهُمْ وَأُلْقُوا فِي الْحَرَّةِ يَسْتَسْقُونَ فَلَا يُسْقَوْنَ"، قَالَ أَبُو قِلَابَةَ: فَهَؤُلَاءِ قَوْمٌ سَرَقُوا وَقَتَلُوا وَكَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ وَحَارَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ.

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه څه کسان دعکل یاعرينه قبيلې په مدينه منوره کښې دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شول اووئې وئيل په مونږ باندې دمدينې آب هوا موافق رانغله نونبي ﷺ ورته يوڅولنګي اوښې ورکړې اوحکم ئې ورته وکړو چه ددې اوښو شود اومتيازې څکئ دوی دغه اوښې ځنګل ته بوتلې کله چه روغ شول نودنبي ﷺ شپونک ئې قتل کړو او اوښې ئې وشړلې آوبوئې تلې کله چه نبي ﷺ ته ددې واقعې خبر ورسيدو نونبي ﷺ په دوی پسې صحابه کرام وروزغلول ډيرې ورځې نه وې تيرې شوې چه هغوی ټول ئې ونيول اوحاضرئې کول نبي ﷺ حکم وکړو اوددوی لاسونه خپې پريکړې شواوددوی په سترګو کښې ګرم سلاي رانښکلې شواوپه ګرموکانړوباندې واچولې شو دتندې په وجه به ئې اوبه غوښتل ليکن اوبه به ورته نشوې ورکولې، ابو قلابه وئيلي دی چه دغه خلقو غلا اوقتل کړې وو اودايمان دقبلولونه پس کافرشوي وو اوداالله اودرسول سره ئې جنګ کړې وو.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ قَوْمًا مِنْ عُكْلٍ – أَوْ قَالَ مِنْ عُرَيْنَةَ – قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– ﴾

دا حديث په حديث العرنيين سره مشهور دې، امام ترمذي رحمه الله خو دا د کتاب الطهارة نه پس ذکر فرمائيلې دې څکه چه په دې کښې د بول ماکول اللحم دطهارت اونجاست مسئله ده اوپه کتاب الاطعمة کښې هم مختصراً اوامام ابوداؤد رحمه الله دا دلته په کتاب الحدود کښې ذکر فرمائيلې دې څکه چه په دې حديث کښې د حد او مثله وغيره ذکر دې، او په نسائي کښې دواړه ځايه دې او په صحيح بخاري کښې خو په ډيرو ځايونو کښې دې.[2]

## د حديث العرنيين شرح :

عکل او عرينه دا دواړه مستقل دوه قبيلې دی اګر چه دا هم وئيلې شوې دی چه دا دواړه يو دی خو حافظ دې ته وهم وئيلې دې، په دې روايت کښې خو په شک سره راغلې دې او په بعض رواياتو کښې صرف عکل دې او په بعضو کښې صرف عرينه، او په بعض کښې ﴿من عکل وعرينة ﴾ په عطف سره، حافظ فرمائي چه هم دا صحيح ده څکه چه يو روايت په طبراني کښې

[1]): صحيح البخاري/الوضوء ٦٦ (٢٣٣)، الجهاد ١٥٢ (٣٠١٨)، صحيح مسلم/القسامة ٢ (١٦٧١)، الطب ٦ (٢٠٤٢)، سنن النسائي/الطهارة ١٩١ (٣٠٦)، المحاربة ٧ (٤٠٢٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٥٥ (٧٢)، الأطعمة ٣٨ (١٨٤٥)، مسند احمد (٣/١٠٧، ١٧٧، ١٩٨، ٢٠٥، ٢٨٧) (صحيح)

[2] أخرجه البخاري في تسع مواضع النظر: ١/٣٦، ١/٣٠٣، ١/٤٢٣، ٢/٦٦٣، ٢/٨٤٨، ٢/٨٥٢، ٢/١٠٠٥، ٢/١٠١٩)

دا دي چه په هغې کښ څلور د عرينة وو، او درې د قبيله عکل، ا وپه بعض رواياتو کښ د هغوی اته کيدل ذکر دی قال الحافظ لعل الثامن ليس منهما کما فی الفيض السمائی)

د دې خلقو په باره کښ سيدنا انس ﷺ فرمائی چه دا خلق د رسول اللهﷺ په خدمت کښ مدينې طيبې ته راغلل نو د هغه ځائې آب وهوا پرې موافق رانغله. په يو روايت کښ دی (ابوعوانة) ﴿ فعظمت بطونهم کما فی التحفة ﴾ چه د مدينې طيبې د خوراک موافق نه راتلو په وجه باندې د هغوی معدې خرابې شوې او د نفخ شکايت پيدا شو، نو رسول اللهﷺ د هغوی په باره ځو د پيو والا اوښو حکم اوفرمائيلو چه د هغې پئ هم اوڅکئ او وارۀ بول هم اوڅکئ،[1] پس دوی هغه ځائې ته لاړل او هلته تلو سره ئې د هغې پئ او بول اوڅکل، خو چه کله روغ شو نو هغوی دا حرکت اوکړو چه د رسول اللهﷺ شپونکې ئې قتل کړو او هغه اوښان ئې په تيزئ سره اوتختول، چه کله رسول اللهﷺ ته د دې قصې علم اوشو نو حضورﷺ د هغوی په تعاقب کښ په اسونو سوارۀ يو جماعت اوليږلو (ففی رواية خيلا من المسلمين اميرهم کرز بن جابر الفهری) رسول اللهﷺ سحر وختی دا دسته د هغوی په تعاقب کښ اوليږله، نو دا خلق د ورځې د راوچتيدلو نه مخکښ اونيولې شو، رسول اللهﷺ د هغوی په باره کښ فيصله اوفرمائيله چه د هغوی لاسونه خپې دې د جانب مخالف نه پرې کړې شی يعنی د هغوی د يو طرف خپه او د بل طرف لاس، لکه چه د ترمذی په روايت کښ دی، ﴿ فقطع ايديهم وارجلهم من خلاف ﴾ او دويمه سزا هغوی ته دا ورکړې شوه چه سلائيان ګرمولو سره د هغوی په سترګو کښ راښکلې شو، په بل روايت کښ راځی ﴿ فامر بمسامير فاحميت فکحلهم ﴾ دا د مسمار جمع ده يعنی د اوسپنې ميخ، او په مقام حره کښ هغوی واچولې شو، اوبه به ئې طلب کولې خو د هغوی دا فرمائش پوره نه کړې شو.

په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې چه دې خلقو ته د څکلو دپاره اوبه ولې ورنکړې شوې ځکه چه دا خو اجماعی مسئله ده چه د کوم مجرم سزا قتل وی که هغه اوبه طلب کړی نو منع کولې به شی، د دې مختلف جوابونه کړې شوې دی: بعض وائی دا د صحابه کرامو د طرف نه وه هغوی په خپل اجتهاد سره داسې کړې وو نه د رسول اللهﷺ په حکم سره، قال الحافظ: وهو ضعيف جدا لان النبیﷺ اطلع علی ذلک وسکوته کاف فی ثبوت الحکم﴾ او وئيلې شوې دی ځکه چه د دغه خلقو ناشکری کړې وه په البان د ابل سره په کوم سره چه هغوی ته شفاء حاصله شوې وه[2] په دې وجه هغوی ته سزا هم هغه ورکړې شوه د کومې چه هغوی ناشکری کړې وه، د علامه سندی رائې دا ده چه هغوی سره داسې قصاصا اوکړې

---

[1] ) فی هامش البذل: وتقدم الكلام علي حكم الابوال في هامش البذل ٤٠٥/١ تحت باب الجنب يتيمم تحت حديث ابي ذر ﷺ انه قال اجتويت المدينة فامر لي رسول اللهﷺ بذود ويغنم فقال لي اشرب من البانها واشك في ابوالها. ولم يتعرض لها الشيخ في المحلين، قال ابن العربي ص ١٦٣ج١ في شرح الترمذي، هذا حديث صحيح ثابت ثم بسط الكلام علي شرحه اهـ)

[2] ) يعنی د مړيدو په ناشکرئ کښ ورته دا سزا ورکړې شوه او هغوی تږی مړۀ کړې شو، او مارۀ نه کړې شو)

شو ځکه چه هغوی د رسول الله ﷺ د راعی سره داسې کړې وو یعنی هغه ئې تږې وژلې وو، پس د نسائی په یو روایت کښې دی: اللهم عطش من عطش آل محمد ﷺ.

﴿ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ فَهَؤُلَاءِ قَوْمٌ سَرَقُوا وَقَتَلُوا وَكَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ وَحَارَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾

د ابوقلابه مقصد کوم چه د حدیث راوی دې د عرنیین شدت جنایت لره بیانول دی چه هغوی د ډیرو جرائمو ارتکاب کړې وو په دې وجه هغوی ته دومره سخته سزا ورکړې شوه، پس وړاندې په کتاب کښې راځی: ﴿ وهم الذین اخبر عنهم انس بن مالک الحجاج حین ساله ﴾ یعنی حجاج بن یوسف د انس رضی الله عنه نه په یوه موقع باندې دا سوال کړې وو چه رسول الله ﷺ کومې سزا ګانې ورکړې دی په هغې کښې ستاسو په نزد د ټولو نه سخته سزا څه وه؟ نو هغوی په دې باندې قصه د عرنیین بیان کړې وه وړاندې په روایت کښې راځی ﴿ قطع ارجلهم وایدیهم وما حسمهم ﴾

[٤٣٦٥] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ أَيُّوبَ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ قَالَ فِيهِ: فَأَمَرَ بِمَسَامِيرَ فَأُحْمِيَتْ فَكَحَلَهُمْ وَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ وَمَا حَسَمَهُمْ.

دایوب نه په دې روایت کښې داسې مروي دي چه نبی علیه السلام د سلایانو ګرمولو حکم کړې وو اودوی په سترګو کښې راښکلې شول اوددوی لاسونه او پښې پرې کړې شو اودوی په یوځل باندې قتل نکړې شول.

چه رسول الله ﷺ د دې خلقو د لاس خپې پرې کولو نه پس هغوی ته داغ نه وو ورکړې، ځکه چه سارق ته چه د قطع ید نه پس کوم داغ ورکولې شی هغه خو په دې وجه چه توله وینه بهیدو سره هلاک نه شی، حال دا چه هغه لره هلاکول مقصود نه دی په خلاف د عرنیین چه د هغوی هلاکول مقصود وو.

[٤٣٦٦] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح وَحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: فَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَلَبِهِمْ قَافَةً فَأُتِيَ بِهِمْ، قَالَ: فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى فِي ذَلِكَ إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا سورة المائدة آية ٣٣ الْآيَةَ.

د انس بن مالک رضی الله عنه نه همدا روایت نقل شوې دې مګر ددې اضافې سره چه نبی علیه السلام ددوی په تعاقب پسې یوڅوکسان مخبران اولیږل هغوی دګرفتاریدونه پس راوستلې شول نو په دې باره کښې الله تعالی دا ایت: «إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا» نازل کړو. آیت تر آخره پورې.

﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى فِي ذَلِكَ (إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا) ﴾

دې باره کښې په روایاتو او د علماء کرامو اختلاف راځی چه دا آیت د محاربې د

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٤٥) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: (٤٣٦٤)، (تحفة الأشراف: ٩٤٥) (صحيح)

کومو خلقو په باره کښې نازل شوي دي، [۱] يو قول خو په دې کښې دا شو چه د عرنيين په باره کښې نازل شو، د حسن او د عطاء قول هم دا دې، او د امام بخاري رحمه الله رائې په دې کښې دا ده چه دا د مرتدينو په باره کښې نازل شوې لکه چه وړاندې د دې آيت کريمه د تفسير لاندې راغې او د جمهورو رائې دا ده چه د عرنيين تخصيص نشته بلکه مطلقا د قطاع الطريق او د مفسدين فی الارض په باره کښې دې، حافظ فرمائي : قول معتمد دا دې چه د آيت کريمه نزول خو د عرنيين په باره کښې شوې وو اولا چه مرتد وو خو دا آيت کريمه د خپل عموم الفاظ په وجه باندې مسلمان مفسدين او قاطعين طريق ته هم شامل دې خو سزا به د دواړو بيله بيله وي.

**د قطاع الطريق سزا او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف بالتفصيل :**

که دا قطاع الطريق او مفسدين کفار وي نو امام ته به اختيار وي چه کله په هغوی باندې قابو بيا مومي چه څه غواړې سزا دې ورکړي، او که هغه مسلمان وي نو د امام مالک رحمه الله رائې دا ده چه هلته هم د امام دپاره تخيير دې، او جمهور علماء کرام احناف او شوافع وغيره وائي چه د جرم نوعيت ته به کتلې شي او د هغې په اعتبار سره به هغوی ته سزا ورکولې شي، لهذا آيت کريمه ﴿ان يقتلوا او يصلبوا او تقطع ايديهم وارجلهم من خلاف او ينفوا من الارض﴾ کښې لفظ ﴿او﴾ د تنويع او تفصيل دپاره دې په خلاف د امام مالک رحمه الله چه د هغوی په نزد د تخيير دپاره دې، پس په بدائع الصنائع کښې د احنافو د مسلک تفصيل داسې کړې شوې دې[۲] چه د قطع الطريق څلور صورتونه دی باخذ المال فقط، بالقتل فقط،

---

[۱] وكتب الشيخ في ((الابواب والتراجم)) ٦/٢٢١ ذكر في هامش اللامع اختلاف العلماء في تعيين من نزلت هذه الاية في حقهم بالبسط وابسط منه في الجزء السادس من الاوجز فقد ذكر فيه ان في اية المحاربة ثلاثة مسائل الاولي انه في الكفرة او في المسلمين الثانية في تعريف المحارب الثالثة ان الاحكام الاربعة في الاية علي التخيير او التنويع اهـ او په هغې کښې دا هم ليکلې دی: والجمهور علي انها نزلت في قطاع الطريق، اود قطاع الطريق څلور قسمونه د بدائع نه وړاندې راغې)

[۲] **د قطع طريق تعريف** : اوس دا چه د قطع طريق حقيقت څه دې (کوم چه د سرقه يو لوئې قسم دی) زيلعی علی الكنز کښې د باب قطع الطريق په شروع کښې ليکلې دي : شَرَائِطُ قَطْعِ الطَّرِيقِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ ثَلَاثَةٌ يَعْنِي مَا يَخْتَصُّ بِهِ دُونَ السَّرِقَةِ الصُّغْرَى ثَلَاثَةٌ أَنْ يَكُونَ مِنْ قَوْمٍ لَهُمْ قُوَّةٌ وَشَوْكَةٌ تَنْقَطِعُ بِهِمْ الطَّرِيقُ، وَأَنْ لَا يَكُونَ فِي مِصْرٍ وَلَا فِيمَا بَيْنَ الْقُرَى وَلَا بَيْنَ مِصْرَيْنِ، وَأَنْ يَكُونَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْمِصْرِ مَسِيرَةُ سَفَرٍ لِأَنَّ قَطْعَ الطَّرِيقِ إنَّمَا يَكُونُ بِانْقِطَاعِ الْمَارَّةِ وَلَا يَنْقَطِعُونَ فِي هَذِهِ الْمَوَاضِعِ عَنْ الطَّرِيقِ لِأَنَّهُمْ يَلْحَقُهُمْ الْغَوْثُ مِنْ جِهَةِ الْإِمَامِ وَالْمُسْلِمِينَ سَاعَةً بَعْدَ سَاعَةٍ فَلَا يَتْرُكُ الْمُرُورَ وَالِاسْتِطْرَاقَ وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُمْ لَوْ كَانُوا فِي الْمِصْرِ لَيْلًا أَوْ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمِصْرِ أَقَلُّ مِنْ مَسِيرَةِ سَفَرٍ تَجْرِي عَلَيْهِمْ أَحْكَامُ قُطَّاعِ الطَّرِيقِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى لِمَصْلَحَةِ النَّاسِ وَهِيَ دَفْعُ شَرِّ الْمُتَغَلِّبَةِ الْمُتَلَصِّصَةِ اهـ يعنی د قطع الطريق حقيقت دا دې چه د ډاکوانو او مفسدينو دومره لوئې جماعت يا طاقت او شوکت داسې وی چه قطع الطريق کولې شي يعنی لاره بندولې شی او دا هله کيدی چه د ښهر يا د دوه ښهرونو ترمينځه وی، يا دغه شان د څو کلو ترمينځه وی بله دا چه د دې قطاع الطريق او ښهر ترمينځه فاصله د مسافت د سفر په اندازه وی ځکه چه دا مواضع داسې دی چرته چه د حکومت د طرف نه او هم دغه شان د عام خلقو د طرف نه مدد رارسيدلې شی او تلل نه منقطع کيږی. هم په دې وجه دا قيود اولګولې شو چه داسې مواضع دې نه وی، او د امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دې چه که دا خلق په ښهر کښې وی او د شپې وخت وی او يا د هغوی او د ښهر ترمينځه د سفر د مسافت نه کمه فاصله وی نو بيا به هم په هغوی باندې د قطاع الطريق احکام جاري کولې شی د خلقو د مصلحت او د هغه باغيانو د شر دفع کولو دپاره.

باخذ المال والقتل یا بالتخویف فقط، په اول صورت کښې به صرف قطع د ید او رجل وی، او په دویم صورت کښې صرف قتل او د دواړو د جمع کولو به صورت کښې د امام صاحب او د صاحبینو اختلاف دې، امام صاحب فرمائی چه امام ته اختیار دې چه که غواړی نو دواړه سزاګانې دې جمع کړی یعنی قطع د ید او رجل سره قتل یا صلب هم، او که غواړی نو صرف د قتل یا د صلب سزا دې ورکړی او قطع دې نه کوی (١)، او د صاحبینو په نزد د جمع بین الجنایتین په صورت کښې سزا صرف قتل دې بغیر د قطع نه، او کوم سړی چه نه مال واخستلو او نه قتل بلکه صرف تخویف ئې اوکړو نو د هغه سزا نفی من الارض ده. الی آخر ما فی البذل صفحه ۱۲۲........

د نفی نه څه مراد دې په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې : قال مالك والشافعي يخرج من بلد الجناية إلى بلدة أخرى زاد مالك فيحبس فيها وعن أبي حنيفة بل يحبس في بلده وتعقب بأن الاستمرار في البلد ولو كان مع الحبس إقامة فهو ضد النفي فان حقيقة النفي الإخراج من البلد وحجته أنه لا يؤمن منه استمرار المحاربة في البلدة الأخرى فانفصل عنه مالك بأنه يحبس بها، یعنی د امام مالک او امام شافعی رحمه الله په نزد د ښهر نه ویستل دی، د امام مالک رحمه الله په نزد مع الحبس، او د امام شافعی رحمه الله په نزد مطلقا. او د امام صاحب په نزد د دې نه مراد صرف حبس دې د ښهر نه ویستل نه دی، ځکه چه د ښهر نه په ویستلو کښې هم دا خطره ده چه کوم کار هغه دلته کولو هغه به هلته هم کوی، په دې باندې امام مالک رحمه الله فرمائیلي دی چه د ښهر نه ویستلو سره دې هلته قید هم کړې شی چه دا خطره نه وی، ځکه چه د نفی حقیقت خو اخراج من البلد دې کوم چه صرف په حبس سره نه حاصلیږی. (عون)

[٤٣٦٧] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، وَقَتَادَةُ، وَحُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ أَنَسٌ: فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَحَدَهُمْ يَكْدِمُ الْأَرْضَ بِفِيهِ عَطَشًا حَتَّى مَاتُوا.

دانس بن مالک رضی الله عنه نه همدا روایت نقل شوی دې مګر دې اضافې سره چه انس رضی الله عنه ووئیل: ما پدې کښې یو کس اولیدو چه په خپله ژبه ئې زمکه څټله دتندې نه تردې چه مړه شول.

(١) او په زیلعی علی الکنز ۲۳۲ کښې هم د دې مسئلې کافی تفصیل مذکور دې جمع بین الجنایتین یعنی قتل او د اخذ مال حکم په دې کښې داسې لیکلي دي : وَالْحَالَةُ الرَّابِعَةُ أَنْ يُؤْخَذَ وَقَدْ قَتَلَ النَّفْسَ وَأَخَذَ الْمَالَ فَإِنَّ الْإِمَامَ فِيهِ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ قَطَعَ يَدَهُ وَرِجْلَهُ مِنْ خِلَافٍ وَقَتَلَهُ، وَإِنْ شَاءَ قَتَلَهُ وَصَلَبَهُ، وَإِنْ شَاءَ قَطَعَهُ وَصَلَبَهُ، وَإِنْ شَاءَ قَتَلَهُ، وَإِنْ شَاءَ صَلَبَهُ، وَإِنْ شَاءَ قَطَعَهُ مِنْ خِلَافٍ وَقَتَلَهُ وَصَلَبَهُ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ وَلَا يُقْطَعُ وَأَبُو يُوسُفَ مَعَهُ فِي الْمَشْهُورِ لِأَنَّ الْقَطْعَ حَدٌّ عَلَى حِدَةٍ وَالْقَتْلَ كَذَلِكَ بِالنَّصِّ فَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا بِجِنَايَةٍ وَاحِدَةٍ وَهِيَ قَطْعُ الطَّرِيقِ إِذْ لَا يَجُوزُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْحَدَّيْنِ بِجِنَايَةٍ وَاحِدَةٍ وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ وَرَضِيَ عَنْهُ أَنَّهُ وَجَدَ الْمُوجِبَ لَهُمَا وَهُوَ الْقَتْلُ وَأَخْذُ الْمَالِ فَيَسْتَوْفِيَانِ إلي آخر ما بسط... ګویا د صاحبینو رائې دا ده چه دا قطع طریق چه هغې ته سرقه کبری هم وئیلې کیدې شی یو ډیر جامع جنایت دې چه په هغې کښې کله کله صرف اخذ د مال وی او کله پکښې صرف تخویف وی او کله اخذ د مال او قتل دواړه موندلې شی، وفیه ایضا: وَالْحَالَةُ الثَّالِثَةُ أَنْ يُؤْخَذَ وَقَدْ قَتَلَ النَّفْسَ وَلَمْ يَأْخُذْ الْمَالَ فَإِنَّ الْإِمَامَ يَقْتُلُهُ حَدًّا حَتَّى لَوْ عَفَا الْأَوْلِيَاءُ لَمْ يَلْتَفِتْ إلَى عَفْوِهِمْ إلي آخر ما ذكر.

(٢): سنن الترمذي/الطهارة ٥٥ (٧٢)، سنن النسائي/المحاربة ٧ (٤٠٣٩) (تحفة الأشراف: ٣١٧، ١١٥٦) (صحيح)

[٤٣٦٨]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ نَحْوَهُ زَادَ ثُمَّ نَهَى، عَنِ الْمُثْلَةِ، وَلَمْ يَذْكُرْ مِنْ خِلَافٍ وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، وَسَلَّامُ بْنُ مِسْكِينٍ، عَنْ ثَابِتٍ جَمِيعًا، عَنْ أَنَسٍ لَمْ يَذْكُرَا مِنْ خِلَافٍ وَلَمْ أَجِدْ فِي حَدِيثِ أَحَدٍ قَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ مِنْ خِلَافٍ إِلَّا فِي حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ.

دانس بن مالک رضی الله عنه نه همدا روايت نقل شوي دي مګرددي اضافي سره چه نبی علیه السلام د مثلې کولونه منع اوفرمائيله او من خلاف الفاظ ئې په روايت کښې نه دي بيان کړي.

[٤٣٦٩]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ أَحْمَدُ هُوَ يَعْنِي عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّ نَاسًا أَغَارُوا عَلَى إِبِلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاسْتَاقُوهَا وَارْتَدُّوا عَنِ الْإِسْلَامِ وَقَتَلُوا رَاعِيَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤْمِنًا فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمْ فَأُخِذُوا فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ، قَالَ: وَنَزَلَتْ فِيهِمْ آيَةُ الْمُحَارَبَةِ، وَهُمُ الَّذِينَ أَخْبَرَ عَنْهُمْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ الْحَجَّاجَ حِينَ سَأَلَهُ".

دابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يوڅو کسانو دنبی علیه السلام په اوښانوباندې حمله وکړه اوبوني تلل اوددين اسلام نه واوريدل اودنبی علیه السلام مومن شپونکې پې قتل کړو نبی علیه السلام په دوی پسې کسان وليږل اوګرفتارئې کړل نبی علیه السلام دهغوی نه لاسونه پښې پريکړل اوددوی په سترګو کښې ئې ګرم سلايان راښکل ددغه خلقو په باره کښې دا ايت کريمه : ﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا﴾ نازل شو اوانس بن مالک رضی الله عنه هم ددې کسانو تذکيره حجاج ته کړيوه کله چه حجاج دده نه سوال کړې وو.

﴿ وهم الذين اخبر عنهم انس بن مالک الحجاج حين ساله ﴾ په دې باندې مونږ مخکښ ليکل کړي دي.

[٤٣٧٠]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَطَعَ الَّذِينَ سَرَقُوا لِقَاحَهُ وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ بِالنَّارِ عَاتَبَهُ اللَّهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا سورة المائدة آية ٣٣ الْآيَةَ".

د ابوالزناد رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی هرکله چه نبی علیه السلام دهغه کسانو لاسونه او پښې پريکړل چاچه اوښان پټ کړي وو اوددوی سترګې ئې په اور سره اوويستلې نو په دې باره کښې الله تعالی دا آيا تونه نازل کړل دعتاب په طريقه او وئې فرمائيل : «﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا﴾».

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَطَعَ الَّذِينَ سَرَقُوا لِقَاحَهُ وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ بِالنَّارِ عَاتَبَهُ اللَّهُ تَعَالَى فِي ذَلِكَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى ﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ الْآيَةَ ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم : (٤٣٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٧/٣) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/المحاربة ٧ (٤٠٤٦)، (تحفة الأشراف: ٧٢٧٥، ١٨٨٩٨) (حسن صحيح)

[3]: سنن النسائي/المحاربة ٧ (٤٠٤٧)، (تحفة الأشراف: ٧٢٧٥، ١٨٨٩٨) (ضعيف)

دا روایت مرسل دې، قال المنذری هذا مرسل، واخرجه النسائی مرسلا.

ابوالزناد وائی چه رسول الله ﷺ د غرنیین سره چه کومه معامله فرمائیلې وه د قطع او د سمل اعین نو په دې باندې د آیت محاربه نزول اوشو په طور د عتاب، په بذل المجهود کښې لیکلې دی چه یو قول د دې آیت کریمه په تفسیر کښې هم دا دې، که دا قول صحیح وی نو د دې وجه دا کیدې شی عدم انتظار الوحی ومسارعة الاجتهاد فی الحکم اھ او دویم قول په دې کښې دا دې چه عرنیین په دې آیت کریمه کښې داخل نه دی لان جرمهم فوق ما ذکر فی هذه الآیة لهذا دعتاب قول صحیح نه دې.

[۴۳۷۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح وَحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، قَالَ: كَانَ هَذَا قَبْلَ أَنْ تَنْزِلَ الْحُدُودُ يَعْنِي حَدِيثَ أَنَسٍ.

دمحمد بن سیرین ﷫ نه روایت دې فرمائی چه دانس حدیث مخکښې د نازلیدلو دحدودونه وو.

**قوله: ﴿عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ كَانَ هَذَا قَبْلَ أَنْ تَنْزِلَ الْحُدُودُ يَعْنِي حَدِيثَ أَنَسٍ﴾**

**د عرنیین سره چه کومه مثله وغیره اوکړې شوه د هغې توجیه او جوابات:**

یعنی رسول الله ﷺ دې قوم سره مثله اوکړه او تعذیب بالنار ئې ورکړو دا منسوخ ده، دا د نزول حدود نه مخکښې واقعه ده، د ابن سیرین دا قول امام ترمذی ﷫ هم ذکر کړې دې، او د دې نه مخکښې هغوی د انس ﷛ د دې روایت تخریج کړې دې چه د هغې الفاظ دا دی: إنما سمل النبي صلى الله عليه و سلم أعينهم لأنهم سملوا أعين الرعاة قال أبو عيسى هذا حديث غريب لا نعلم أحدا ذكره غير هذا الشيخ (يحيى بن غيلان) عن يزيد بن زريع وهو معنى قوله (والجروح قصاص) د هغې حاصل دا شو چه په عرنیین سره چه کومه مثله وغیره کړې شوې ده هغه قصاصا کړې شوې ده ځکه چه هغه خلقو هم د رسول الله ﷺ د شپونکی سره داسې کړې وو، او د ابن سیرین د قول مطلب دا شو چه د عرنیین سره چه کومه مثله کړې شوې وه هغه د نزول حدود او د نسخ مثله نه مخکښې واقعه ده روستو په دې کښې نسخ واقع شوه خو د اول جواب په باره کښې چه په هغې کښې دا دی چه دا معامله د هغوی سره قصاصا کړې شوې وه ځکه چه هغوی هم د رسول الله ﷺ د راعی سره داسې کړې وو، امام ترمذی ﷫ دې ته غریب وئیلې دی کما تقدم آنفا، زه وایم چه دا خبره کول چه هغوی هم د رسول الله ﷺ د راعی سره هم دغه شان کړې وو، د صحیح بخاری په روایت کښې خو دا نشته خو د مسلم په روایت کښې شته: قَالَ الْعَيْنِيُّ فِي عُمْدَةِ الْقَارِي: السُّؤَالُ الثَّانِي مَا وَجْهُ تَعْذِيبِهِمْ بِالنَّارِ؟ الْجَوَابُ: أَنَّهُ كَانَ قَبْلَ نُزُولِ الْحُدُودِ وَآيَةِ الْمُحَارَبَةِ وَالنَّهْيِ عَنْ الْمُثْلَةِ فَهُوَ مَنْسُوخٌ، وَقِيلَ لَيْسَ بِمَنْسُوخٍ وَإِنَّمَا فَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِصَاصًا لِأَنَّهُمْ فَعَلُوا بِالرُّعَاةِ مِثْلَ ذَلِكَ، وَقَدْ رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي بَعْضِ طُرُقِهِ انْتَهَى (تحفه) حاصل دا چه د عرنیین سره چه کومه مثله کړې شوې ده هغه یا خو قصاصا کړې شوې ده او یا دا چه دا دنسخ د مثله نه مخکښې واقعه ده او منسوخ ده، حافظ فرمائی

(): صحيح البخاري/الطب ٦ (٥٦٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٩٢٩١) (ضعيف)

چه د نسخ دليل دا کيدې شي چه د بخاري په کتاب الجهاد کښې د ابوهريره رضي الله عنه حديث دې چه د هغې نه دا معلوميږي چه جواز مثله ثم النهي عنه، دا دواړه څيزونه د هغوی مخې ته راپيښ شو (ګويا د ابوهريره رضي الله عنه داسلام نه پس راپيښ شو) او د عرنيين قصه د ابوهريره رضي الله عنه د اسلام نه مخکښې ده.[1]

[٤٣٧٢]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ إِلَى قَوْلِهِ غَفُورٌ رَحِيمٌ سورة المائدة آية ٣٣-٣٤ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي الْمُشْرِكِينَ، فَمَنْ تَابَ مِنْهُمْ قَبْلَ أَنْ يُقْدَرَ عَلَيْهِ لَمْ يَمْنَعْهُ ذَلِكَ أَنْ يُقَامَ فِيهِ الْحَدُّ الَّذِي أَصَابَهُ".

دابن عباس به نه روايت دې فرمائي چه دالله تعالى دا قول : «إنما جزاء الذين يحاربون الله ورسوله ويسعون في الأرض فسادا أن يقتلوا أو يصلبوا أو تقطع أيديهم وأرجلهم من خلاف أو ينفوا من الأرض» نه تر «غفور رحيم» پورې د مشرانو په باره کښې نازل شوې دې پدې کښې چه چا دګرفتاريدونه مخکښې توبه ويستلې وې نوددينه دانه لازميږي چه ده ته دې حد معاف شي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ (إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ) إِلَى قَوْلِهِ (غَفُورٌ رَحِيمٌ) د مينځ آيت دا دې، ﴿ ذَلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ... إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴾ ﴿ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي الْمُشْرِكِينَ فَمَنْ تَابَ مِنْهُمْ قَبْلَ أَنْ يُقْدَرَ عَلَيْهِ لَمْ يَمْنَعْهُ ذَلِكَ أَنْ يُقَامَ فِيهِ الْحَدُّ الَّذِي أَصَابَهُ﴾

## د اية المحاربة تفسير عند الجمهور:

د ابن عباس رضي الله عنه د رائې نه قطع نظر کولو سره جمهورو چه کومه معنى د آيت کريمه اخستلې ده اول دې په هغې ځان پوهه کړې شي، د دې آيت کريمه تفسير په معارف القرآن ادريسى کښې داسې دې : په تير شوي آيت کريمه کښې د فساد في الارض او د قتل ناحق شناعت (بدي) بيان فرمائيلې ځکه چه د فساد يو صورت قطع طريق يعنى لوټ مار او لارې شوکول دي، ځکه په دې آيت کښې اوس د فساد د انسداد (بنديز) دپاره اول د قطاع الطريق يعنى لوټمارانو (شوکمارانو) شرعى سزا لره بيان فرمائي او د دې نه پس په آيت کښې د سارق (غل) سزا بيانوى کوم چه هم د دې حکم سابق تتمه او تکمله ده ځکه چه غلا هم يو قسم فساد دې :

بيشکه سزا د هغه خلقو دپاره ده چه د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ سره جنګ کوى، (يعنى د شريعت مقابله کوى او د هغې د احکامو علانيه مخالفت کوى) او په زمکه کښې د فساد

---

[1] ) د حافظ عبارت دا دې : يدل عليه (اي علي النسخ) ما رواه البخاري في الجهاد من حديث أبي هريرة في النهي عن التعذيب بالنار بعد الإذن فيه وقصة العرنيين قبل إسلام أبي هريرة وقد حضر الإذن ثم النهي اهـ وقصة العرنيين قبل أسلام ابي هريرة.

[2] ): سنن النسائي/المحاربة ٧(٤٠٥١)، (تحفة الأشراف: ٦٢٥١) (حسن)

په اراده باندې منډې وهي يعنې قتل او قطع طريق (شوکې او ډاکې) کوي د داسې خلقو سزا هم دا ده چه قتل کړې شي يا په سولئ کړې شي يا د هغوی خپې لاسونه د مخالف طرف نه پرې کړې شي يعنې ښې لاس او ګسه خپه، يا جلا وطن کړې شي.
د جمهور علماء کرامو قول دا دې چه دا آيت کريمه د قطاع الطريق متعلق دې که هغه مسلمان وي يا کافر، او د ﴿ الذين يحاربون ﴾ کښې د محاربې نه مراد قطع الطريق دې، او د بعض علماء کرامو قول دا دې چه دا آيت کريمه د مرتدينو په باره کښې نازل شوې دې او په آيت کريمه کښې د محاربې نه مراد ارتداد دې او په ﴿ ان يقتلوا او يصلبوا ﴾ تر آخره پورې کښې چه کوم لفظ د "او" راغلې دې هغه د صحابه کرامو او د تابعينو رضي الله عنهم د يو جماعت په نزد د تخيير دپاره دې چه امام ته اختيار دې چه په هغه ځلورو سزاګانو کښې د جرم د نوعيت په لحاظ چه کومه سزا مناسب ګڼړي او د جمهور علماء کرامو په نزد لفظ "او" ..... د تنويع او تقسيم دپاره دې، يعنې په مختلف حالاتو کښې د اختلاف احکام دپاره دې، او مطلب دا دې چه دا سزاګانې په جرمونو باندې تقسيم دی چه د کوم قسم جرم ارتکاب اوکړې شي هم د هغه قسم سزا به ورکولې شي، مثلاً که چا څوک صرف قتل کړل نو د هغه سزا به صرف قتل وي او که د قتل سره سره ئې مال هم لوټ کړې وي نو هغه به هم قتل کولې شي او په سولئ کولې به هم شي يعنې قتل کولو سره به د عبرت دپاره په سولئ باندې زوړندولې شي او که صرف مال ئې لوټ کړې دې نو صرف د يو طرف لاس او د بل طرف خپه به ئې پرې کولې شي، او که صرف لاروی ئې ويرولې وي نو هغه به جلا وطن کولې شي، لکه چه امام شافعي رحمه الله فرمائي يا دې په قيد کښې واچولې شي لکه چه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي، د امام شافعي رحمه الله په نزد د ﴿ ينفوا من الارض ﴾ نه جلا وطنې مراد ده او د امام صاحب په نزد د دې نه مراد قيد او حبس دې، ځکه چه که دا خلق د مسلمانانو بل ښهر ته هم اوليږلې شي نو د هغه ځائې مسلمانانو ته به هم تکليف رسوي، او که د کفارو ملک ته لاړ شي نو د هغوی د ارتداد ويره ده، ﴿ ذلک لهم خزی فی الدنيا ولهم فی الاخرة عذاب عظيم ﴾ دا حدونه او سزاګانې د هغوی دپاره په دنيا کښې ذلت او رسوائی ده او په آخرت کښې د هغوی دپاره لوئې عذاب دې، خو کوم خلق چه ستاسو د نيولو او ګرفتاريدو نه مخکښې د خپلو ګناهونو نه توبه اوکړي نو ښه پوهه شئ چه الله پاک د خپلو حقونو معاف کونکې دې او مهربان دې، باقي حقوق العباد بغير د بندګانو د معاف کولو نه ساقطيږي نه.

**په ايت کريمه کښې يو بله مسئله فقيهه :**

مطلب دا دې چه که د ګرفتارئ نه مخکښې توبه اوکړي نو څه چه د الله پاک حق دې هغه خو به معاف شي [1] او حد به د هغوی نه ساقط شي، خو حق العبد به باقي وي، پس که که مال

[1] لهذا د مال د اخستلو په صورت کښې خو به قطع د يد او د رجل نه وي، او د قتل نفس په صورت کښې به قتل حدا نه وي اګر چه قصاصا به وي که ولي د مقتول اوغواړي، او که د ګرفتارئ نه مخکښې توبه اونکړي دا حد کوم چه د الله پاک حق دې يعنې قطع يد ورجل او دا قتل به ضرور وي او د صاحب مال يا د مقتول د ولي په معاف کولو سره به نه شي معاف کيدلې)

ئې اخستلې دې نو د هغې ضمان به ورکول وی او که څوک ئې وژلې دی نو قصاص به لازم وی، خو د دې قصاص او ضمان د معاف کولو حق به صاحب مال او د مقتول ولی ته حاصل وی، او ولی د مقتول که هغه لره قتل کړی نو هغه قتل به د قصاص په طور وی نه د حد په طور، ښه ځان پوهه کړه.

**تنبیه** : د دې حد نه سوا نور باقی حدود مثلا حد زنا او حد خمر او حد سرقه او حد قذف په توبې سره نه ساقطیږی کذا فی البنایة.

امام ابوبکر رازی او امام فخر الدین رازی فرمائی چه د سلف او خلف قول دا دې چه دا آیت کریمه د قطاع الطریق یعنی د ډاکه اچونکو په باره کښې نازل شوې دې که هغه فاسق او فاجر مسلمان وی یا کافر، او بعض علماء کرامو (لکه امام بخاری) دې طرف ته تلی دی چه دا آیت کریمه د مرتدینو په باره کښې نازل شوې دې، خو دا قول شاذ دې او اول قول صحیح دې الخ [1]

## د ابن عباس رضی الله عنهما د رائې تشریح :

د دې آیت کریمه د تفسیر مخامخ کیدو نه تاسو ځان پوهه کړئ چه د ابن عباس رضی الله عنهما دا حدیث دلته په آبوداؤد کښې مختصر دې د ابن عباس رضی الله عنهما مفصل او واضح روایت په سنن نسائی کښې شته، په هغې کښې داسې هم دی : نزلت هذه الآية في المشركين فمن تاب منهم قبل أن يقدر عليه لم يكن عليه سبيل وليست هذه الآية للرجل المسلم فمن قتل وأفسد في الأرض وحارب الله ورسوله ثم لحق بالكفار قبل أن يقدر عليه لم يمنعه ذلك أن يقام فيه الحد الذي أصاب،
د نسائی د دې روایت د وجې نه د ابن عباس رضی الله عنهما د قول مطلب دا شو چه په دې آیت کریمه کښې چه راغلې دې ﴿ الا الذين تابوا من قبل ان تقدروا عليهم الاية ﴾ چه په دې قطاع الطریق کښې چه کوم داسې وی چه هغوی د گرفتاریٔ نه مخکښې توبه اوکړی نو د هغوی نه به حد یعنی د الله پاک حق معاف شی دا په هغه صورت کښې دې چه کله هغه قاطع مشرک وی ځکه چه دا آیت کریمه د مشرکین په پاره کښې دی خو که هغه قاطع طریق په مسلمین کښې دی او د گرفتاریٔ نه مخکښې قطع طریق کولو سره دار الحرب ته اوتختی نو د هغې حکم دا نه دې په هغه باندې که د حد جاری کولو موقع راوځی په داسې طریقه چه هغه بیا څه وخت

[1] ) ځکه چه د مرتد قتل په هر حال کښې واجب دې او په اظهار د فساد باندې موقوف نه دې، دویم دا چه د مرتد صرف قتل واجب دې د مرتد صرف لاس پرې کول یا د هغه جلاوطن کول کافی نه دی، دریم دا چه د دې آیت کریمه نه معلومیږی چه دا حد به هغه وخت ساقطیږی چه کله مجرم د گرفتاریدو نه مخکښې توبه اوکړی او که د گرفتاریٔ نه پس توبه اوکړی نو دا حد به نه ساقطیږی خو دا حکم د قاطع الطریق خو دې خو د مرتد دا حکم نه دې ځکه چه د مرتد حد په هر حال کښې په توبې سره ساقطیږی، مرتد که د گرفتاریٔ نه مخکښې توبه اوکړی یا روستو په هغه باندې به حد نه شی جاری کولی، څلورم دا چه د مرتد حکم قتل دې نه صلب (سولی) پنځم دا چه د آیت کریمه الفاظ عام دی کوم چه ارتداد او ډاکې او شوکې او ناحق قتل ته شامل دی، غاية ما فی الباب که او هم منلې شی چه آیت د مرتدینو په باره کښې نازل شوې نو اعتبار به عموم دد لفظ لره وی نه د خصوص السبب لره اوگوره تفسیر کبیر ٤٠٧/٣ واحکام القرآن للجصاص ٤٠٧/٢ (معارف القرآن)

دارالاسلام ته راشي نو په هغه باندې به حد شرعي نافذ كولې شي يعني هم هغه سزا كومه چه د قطاع الطريق وى په يو صورت كښې صرف قطع يد ورجل او په يو صورت كښې قتل يا دواړه، هغه به پرې جاري كولې شي، ﴿ وانت تعلم ان هذا ليس هو مسلك الجمهور فان عندهم هذه الاية والحكم المذكور فيها ليس مختصا باهل الشرك بل هو عام سواء كانوا اى قطاع الطريق مسلمين او مشركين ﴾ خو په بذل كښې د ګنګوهي د تقرير نه د ابن عباس رضي الله عنهما د دې قول توجيه نقل كړې ده چه د ابن عباس رضي الله عنهما قول ﴿ لَمْ يَمْنَعْهُ ذَلِكَ أَنْ يُقَامَ فِيهِ الْحَدُّ الَّذِي أَصَابَهُ ﴾ كښې د دې حد نه مراد حد شرعي نه دې بلكه حق العبد مراد دې، مثلا هغه مال كوم چه دې قاطع طريق اخستلې دې يا نفس سهي، خو په دې صورت كښې به دا قتل د قصاص په طور وى د حد په طور به نه وى كما تقدم عن معارف القرآن، خو د نسائي د روايت مفصله د راتلو نه پس به د حضرت دا توجيه توجيه القول بما لا يرضى به القائل د قبيل نه شي[1] بلكه هم دا به وئيل پكار وى چه په دې مسئله كښې د ابن عباس رضي الله عنهما مسلک د جمهورو خلاف دې لكه چه خپله په البذل المجهود كښې د نسخه احمديه په حاشيه كښې د مولانا شاه اسحاق صاحب دا قول نقل كړې شوې دې لعله مذهب ابن عباس، والله تعالى اعلم بالصواب وهذا جهد المقل فى توضيح هذا المقام. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْحَدِّ يُشْفَعُ فِيهِ

### باب د شرعي حد د معاف كولو دپاره د سفارش بيان

[٤٣٧٣] ([2]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي. ح حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِي سَرَقَتْ، فَقَالُوا: مَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا يَعْنِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: وَمَنْ يَجْتَرِئُ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أُسَامَةُ أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ، ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ، فَقَالَ: إِنَّمَا هَلَكَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ وَايْمُ اللَّهِ لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا".

د عائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه د قبيله بن مخزوم يوې ښځې قريش په مشكل كښې واچول په دې وجه چه دغه ښځې غلا كړې وه بيا دوى پخپل مينځ كښې شروع شول چه وئيل بسې ابادې ښځې په باره كښې كوم كس د نبي عليه السلام سره خبرې كولې شي؟ خلقو په جواب كښې اووئيل چه په دې خبره باندې صرف اسامه بن زيد رضي الله عنه جرات كولې شي ځكه چه هغه د نبي عليه السلام دوست دې، اسامه بن زيد د نبي عليه السلام په خدمت كښې حاضر شو او عرض

---

[1] كه دې روايت د ابوداؤد ته د نورو رواياتو په شان اوكتلې شي نو دا يو غوره توجيه وه د حضرت د طبع لطيف مطابق ځكه چه د حضرت ذوق په دې قسم مواقع كښې د تنقيد نه دې بلكه د توجيه دې.

[2]: صحيح البخاري/الشهادات ٨ (٢٦٤٨)، الأنبياء ٥٤ (٣٤٧٥)، فضائل الصحابة ١٨ (٣٧٣٢)، المغازي ٥٣ (٤٣٠٤)، الحدود ١١ (٦٧٨٧)، ١٢ (٦٧٨٨)، ١٤ (٦٨٠٠)، صحيح مسلم/الحدود ٢ (١٦٨٨)، سنن الترمذي/الحدود ٦ (١٤٣٠)، سنن النسائي/قطع السارق ٥ (٤٩٠٣)، سنن ابن ماجه/الحدود ٦ (٢٥٤٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٦)، سنن الدارمي/الحدود ٥ (٢٣٤٨) (صحيح)

ئي وکړو نبی علیہ السلام ورته اوفرمائیل اې اسامه ایاته دالله تعالی په حدونو کښې دیوحد په باره کښې سفارش کوې ددینه پس نبی کریم ﷺ اودریدو اوخطبه ئې ورکړه اوداسې ئې اوفرمائیل همدې څیز خوهغه خلق هلاک کړي رو کوم چه ستاسونه مخکښې تیرشوي دي چه کله به په دوی کښې یوصاحب حیثیت کس غلا وکړه نوهغه به دسزا ورکولونه بغیر پریخودلې شو اوکله چه به پدرې کښې یوغریب کس دغلاجرم وکړو نو په هغه باندې به دغلا سزا جاري کړې شوه، په الله قسم دمحمده لور فاطمه هم که چرې غلا وکړي نودهغې به هم خامخا لاس پریکوم.

**قوله**: ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِى سَرَقَتْ فَقَالُوا مَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا تَعْنِى رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم–. قَالُوا وَمَنْ يَجْتَرِئُ إِلاَّ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ – صلى الله عليه وسلم الخ ﴾

### مضمون الحديث:

سیده عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چه د قریشو یو زنانه غلا اوکړه چه د هغې په وجه باندې قریش فکرمند وو چه د هغې په باره کښې رسول الله ﷺ ته څوک سفارش اوکړي، ځکه چه د غلا د ثبوت نه پس د هغې سزا قطع ید لازمی ده او د خاندان قریش دپاره به دا خبره ډیره د شرم باعث وی چه د یوې قریشیه لاس پرې کړې شی په دې وجه هغوی د رسول الله ﷺ محبوب خادم اسامه بن زید رضی الله عنهما لره تیار کړو دې خبرې ته چه رسول الله ﷺ ته سفارش اوکړی پس هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره د هغې په باره کښې سفارش اوکړو، رسول الله ﷺ په دې باندې ډیر زیات خفه شو پس په دې خبره باندې رسول الله ﷺ یو خطبه ارشاد اوفرمائیله: ﴿ إِنَّمَا هَلَكَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ ﴾

چه تیرشوی ډیر امتونه هم په دې وجه هلاک شوی دی چه که په هغوی کښې به د یوې عزت مندې کورنئ یو کس غلا اوکړه نوهغه به ئې پریخودلو، اوکه د کمې درجې سړې به وو نو په هغه به ئې حد جاری کولو، او نبی علیه السلام اوفرمائي: وايم الله لو ان فاطمة بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم سرقت لقطعت يدها،، په دې موقع باندې اعاذنا الله من ذلک لوستل پکار دی په بذل کښې لیکلې شوې دی، په ابن ماجه کښې هم دا روایت چه د هغې په آخر کښې دی: قال محمد بن رمح (شيخ المصنف) سمعت الليث بن سعد يقول قد اعاذها الله عزوجل ان تسرق: وكل مسلم ينبغى له ان يقول هذا،

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٣٧٤](١)حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَتِ امْرَأَةٌ مَخْزُومِيَّةٌ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَطْعِ يَدِهَا وَقَصَّ نَحْوَ حَدِيثِ اللَّيْثِ، قَالَ: فَقَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى ابْنُ وَهْبٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَقَالَ فِيهِ كَمَا قَالَ اللَّيْثُ: إِنَّ امْرَأَةً سَرَقَتْ فِي

(١): صحيح مسلم/الحدود ٢(١٦٨٨)، (تحفة الأشراف:١٦٦٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/١٦٢)، ويأتي برقم(٤٣٩٧) (صحيح)

عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ الْفَتْحِ، وَرَوَاهُ اللَّيْثُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ بِإِسْنَادِهِ، فَقَالَ: اسْتَعَارَتِ امْرَأَةٌ وَرَوَى مَسْعُودُ بْنُ الْأَسْوَدِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا الْخَبَرِ قَالَ: سَرَقَتْ قَطِيفَةً مِنْ بَيْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَوَاهُ أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ امْرَأَةً سَرَقَتْ فَعَاذَتْ بِزَيْنَبَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دعائشه رضي الله عنها نه روايت ئي فرمائي چه دقبيله بن مخزوم يوي ښځې به دخلقونه سوالي او اماني څيزونه غوښتل اوبيابه په هغي باندې منكريدله نونبي عليه السلام دهغي دلاس په پريكولو باندې حكم وكړو اوباقي حديث ئي دليث دحديث په شان بيان كړو، راوی وائي نبي عليه السلام دهغې لاس پريكړو، ابوداؤد فرمائي دا روايت ابن وهب ديونس نه اوهغه دزهري نه بيان كړې دې هغه دزفري نه او په دې روايت كښې هم داسې ذكركړيدې لكه څرنګه چه دليث په روايت كښې وو چه يوه ښځې دنبي عليه السلام په زمانه كښې دمې دفتح په كال باندې غلا كړيوه اودا روايت ليث ديونس نه بيان كړې دې اوهغه دابن شهاب نه په همدې سند سره نقل كړې دې او پدې روايت كښې داسې دی چه دغه ښځې دچانه څه شې دفرض په طور اغستلې وو (اوبيا ئي انكار وكړو) اودا روايت مسعود بن الاسود رضي الله عنه دنبي عليه السلام نه بيان كړې دې او په دې روايت كښې داسې دی چه دغه ښځې دنبي عليه السلام دكور نه يوڅادر پټ كړې وو، امام ابوداؤد فرمائي دا روايت ابوزبير دجابرنه نقل كړې دې چه بوې ښځې غلا كړې وه اوبيا ئي دنبي عليه السلام دلود زينب نه پناه وغوښتله.

﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَتِ امْرَأَةٌ مَخْزُومِيَّةٌ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ فَأَمَرَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِقَطْعِ يَدِهَا وَقَصَّ نَحْوَ حَدِيثِ اللَّيْثِ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَى ابْنُ وَهْبٍ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ فِيهِ كَمَا قَالَ اللَّيْثُ إِنَّ امْرَأَةً سَرَقَتْ ﴾

د باب په اول روايت كښ چه د هغې راوی ليث دې په هغې كښ قطع يد لاجل السرقة ذكر دې، او دا د حديث دويم طريق يعني معمر عن الزهری په دې كښ قطع يد لاجل جحود العارية ذكر دې، هم دې اختلاف د روايت لره مصنف رحمه الله دلته ذكر فرمائی، خو په انكار د عارية باندې د قطع يد مسئله مختلف فيه ده، ائمه ثلاث او جمهور د دې قائل نه دی خو امام احمد د دې قائل دې، پس د څو ابوابو نه پس په يو باب كښ راځی، باب فی القطع فی العارية اذا جحدت، او هلته مصنف رحمه الله هم د دې ترجمې مطابق روايات ذكر كړی دی، په ظاهر كښ د حنابله د مسلک په تائيد كښ، ځكه چه خپله مصنف رحمه الله حنبلي دې علی ما هو المشهور لهذا جمهور به د دې په جواب كښ هم دا وائی چه د دې امراءة مخزوميه چه يو طرف ته دا عادت وو چه هغوی د خلقو په نوم باندې كورونو ته تلو سره كالی وغيره په سوال باندې اخستل او روستو به ئي انكار كولو نو يو طرف ته چه د هغوی عادت دا وو بل طرف ته به هغوی كله كله غلا هم كوله لكه چه په حديث الباب كښ راغلی دی، لهذا د راتلونكی باب جواب د جمهورو د طرف نه هم دا وركولې شی، چه د هغې قطع يد لاجل السرقة وو نه د جحود عارية په وجه باندې.

.........

[٤٣٧٥] (¹) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ زَيْدٍ نَسَبَهُ جَعْفَرٌ إِلَى سَعِيدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَقِيلُوا ذَوِي الْهَيْئَاتِ عَثَرَاتِهِمْ إِلَّا الْحُدُودَ".

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی دبامروته خلقو لغزشونه معاف کوئ خو د حدودونه علاوه (يعني داسې خلق کوم چه عموما نيک وي او په عام طور سره په ګناهونو اوجرائموکښې ملوث نوي که چرې ددوينه خطائي وشي نومعافي ورته کوئ مګرکچری داسی ګناه ورنه وشي کومه چه په حدودوکښې شامل وي نوهغه نشي معاف کيدې).

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « أَقِيلُوا ذَوِى الْهَيْئَاتِ عَثَرَاتِهِمْ إِلاَّ الْحُدُودَ » ﴾

## شرح الحديث:

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو حکام او اميرانو لره ته خطاب کولو سره چه د ښه او بدو خلقو غلطو لره معاف کوئ، مګر حدود چه په دې کښې به د چا رعايت هم نه شي کولې.
امام شافعي رحمه الله فرمائی چه ذوالهيئة هغه سړې دې چه د هغه حالت غير مشکوک وی، او وئيلې شوې دی چه د دې نه مراد هغه خلق دی کوم خلق چه په شرارت کښې مشهور نه وی نو که د داسې سړی نه څه خطاء اوشی نو هغه ته بخښنه کوئ، او يا د دې نه مراد باحيثيته خلق دی، او د عثرات نه مراد وئيلې شوې دی چه واړهٔ ګناهونه دی، په دې صورت کښې به ﴿الا الحدود﴾ استثناء منقطع وی، يا به د ذنوب نه مراد مطلق ګناهونه وی، او د حدود نه مراد هغه ګناهونه کوم چه حد ته رسونکی دی، په دې صورت کښې به استثناء متصل وی خو دا حديث بعض علماء لکه سراج الدين قزوينی موضوع ګرزولې دې خو حافظ ابن حجر د دې ترديد کړې دې او د دې ئې نور طرق بيان کړی دی د دې په سند کښې يو راوی دې عبدالملک بن زيد چه د هغه په باره کښې کلام دې څه حصه تفصيل دې د هغې په بذل المجهود کښې اوکتلې شی. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

# بَابُ الْعَفْوِ عَنِ الْحُدُودِ، مَا لَمْ تَبْلُغِ السُّلْطَانَ

## باب: کومه معامله چه قاضی ته لا نه وی پيش شوې دهغې دمعاف کولو بيان

[٤٣٧٦] (²) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ جُرَيْجٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "تَعَافُوا الْحُدُودَ فِيمَا بَيْنَكُمْ فَمَا بَلَغَنِي مِنْ حَدٍّ فَقَدْ وَجَبَ".

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه رسول کريم فرمائيلی دی تاسو پخپل مينځ کښې يوبل ته دحدودې معافي کوي ليکن کله چه ماته ديوحدپه باره کښې

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٩١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٦) (صحيح)
[2]: سنن النسائي/قطع السارق ٥ (٤٨٨٩)، (تحفة الأشراف: ٨٧٤٧) (صحيح)

معامله راورسيږي نو بيا حد خامخا واجبيږي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « تَعَافَوُا الْحُدُودَ (۱) فِيمَا بَيْنَكُمْ فَمَا بَلَغَنِى مِنْ حَدٍّ فَقَدْ وَجَبَ » ﴾ يعني هغه ګناهونه او امور کوم چه موجب حد دی نو هغې لره قاضی ته د رسيدو نه مخکښ خپل مينځ کښ تاسو معاف کولی شئ خو چه کله مسئله قاضی ته اورسيږی نو بيا هغه وخت د معافئ ګنجائش نشته بلکه حد به واجب وی هم دا قانون دې د سفارش هم اوګڼړلې شی چه د بلوغ الی السلطان نه مخکښ خپل مينځ کښ د يو بل سفارش کيدې شی روستو نه. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

## باب في السَّتْرِ عَلَى أَهْلِ الْحُدُودِ

### باب په چا چه حد واجب شوې وی په هغوی د پردې اچولو بيان

يعنی د کوم سړی نه چه د داسې فعل صدور اوشی کوم چه موجب حد دې شرعا، په هغې کښ اخفاء او پرده کول اولی دی لکه زنا او شراب څکل، په بذل کښ ليکلې دی ای استحبابه، ولعله مقصود فيما فيه حق الله تعالى فقط اهـ د کوم مثال چه مونږ پورته ورکړې دې، او چرته چه د بنده حق ضائع کيږی هلته ستر اولی نه دې پس په کتاب الجهاد کښ حديث تير شوې دې، من كتم غالا فهو مثله.

[۴۳۷۷](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ مَاعِزًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَأَمَرَ بِرَجْمِهِ، وَقَالَ لِهَزَّالٍ: "لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ كَانَ خَيْرًا لَكَ".

يزيد بن نعيم دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه ماعز دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو اودنبی عليه السلام په وړاندې ئې څلور پيرې اقرار وکړو اونبی عليه السلام ورباندې درجم حکم جاري کړو، اوهزال ته ئې ووئيل که چرې په خپله جامه باندې دې دې پټ کړې وې نوستا دپاره بهتره وه.

**قوله:** ﴿ وقال لهزال لَوْ سَتَرتَ بِثَوْبِكَ كَانَ خَيْرًا لَكَ ﴾ د سيدنا ماعز بن مالک اسلمی رضي الله عنه چه د هغوی په باره کښ دا حديث دې او چا چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخکښ اقرار بالزنا کړې وو دا هغوی د هزال په مشوره باندې کړې وو لکه چه وړاندې په روايت کښ د دې تصريح راروانه ده، په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم هزال ته فرمائی که تا د ماعز په باره کښ پرده پوشی کړې وه نو ستا دپاره غوره وه. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[۴۳۷۸](۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، أَنَّ هَزَّالًا أَمَرَ مَاعِزًا أَنْ يَأْتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُخْبِرَهُ.

دابن منکدرنه روايت دې فرمائی چه هزال ماعزته وئيلې ووچه نبی عليه السلام ته ورشې او په واقعه باندې ئې خبرکړې

(۱) وسياتي ص ۲۵۶ من البذل في باب التجسس حديث ابن مسعود رضي الله تعالى عنه وفيه انا نهينا عن التجسس.انتهي.
(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۷/۵) (ضعيف)
(۳): انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۲۹) (ضعيف)

## بَابٌ فِي صَاحِبِ الْحَدِّ يَجِيءُ فَيُقِرُّ

### باب: څوک چه حاکم ته راشي او دجرم اقرار اوکړی دهغې بیان

[٤٣٧٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرِيدُ الصَّلَاةَ فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ فَتَجَلَّلَهَا فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا فَصَاحَتْ وَانْطَلَقَ فَمَرَّ عَلَيْهَا رَجُلٌ، فَقَالَتْ: إِنَّ ذَاكَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا، وَمَرَّتْ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ فَقَالَتْ: إِنَّ ذَلِكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا فَانْطَلَقُوا فَأَخَذُوا الرَّجُلَ الَّذِي ظَنَّتْ أَنَّهُ وَقَعَ عَلَيْهَا فَأَتَوْهَا بِهِ فَقَالَتْ: نَعَمْ هُوَ هَذَا، فَأَتَوْا بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أَمَرَ بِهِ قَامَ صَاحِبُهَا الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا صَاحِبُهَا، فَقَالَ لَهَا: اذْهَبِي فَقَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكِ، وَقَالَ لِلرَّجُلِ قَوْلًا حَسَنًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي الرَّجُلَ الْمَأْخُوذَ، وَقَالَ لِلرَّجُلِ الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا ارْجُمُوهُ، فَقَالَ: لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَقُبِلَ مِنْهُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَسْبَاطُ بْنُ نَصْرٍ أَيْضًا، عَنْ سِمَاكٍ.

دوائیل بن حجر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه دنبي ﷺ په زمانه کښې یوه ښځه دمونځ دپاره ووتله اوددې زنانه سره په لاره کښې یوکس مخامخ شوهغه په دې باندې ور اوختو اوجماع ئې ورسره وکړله نودې زنانه شور جوړ کړو اودغه کس لاړو په دې وخت کښې یوبل کس ددې زنانه په خواکښې تیریدو دې زنانه ووئیل فلانی کس زماسره دا کار کړي دي اود مهاجرینو یوه ډله راغله اودې زنانه ورته خپل بیان وکړوچه فلانی کس زماسره داحرکت کړي دي هغوی تولوچه داخبره واوریده نولاړل اودغه کس ئې ونیولوپه چاباندې چه زنانه دجانبه الزام ووډنیولو نه پس دزنانه خواته راوستلې شونوزنانه دالزام تصدیق وکړواوداسې ئې ووئیل چه همدا کس دې، نو په دې خبره باندې صحابه کراموډغه کس نبي ﷺ ته بوتلونونبي ﷺ په ده باندې حکم کول اوغوښتل چه یکدم هغه اصلي کس پاڅیدو او وې وئیل اې دالله رسوله داحرکت ماکړې رونبي ﷺ زنانه ته اوفرمائیل ته خولاړه شه الله تعالی ستاګناه معاف کړه اونبي ﷺ داولني ملزم تعریف وکړو، بیاصحابه کرامونبي ﷺ ته ووئیل چه چه دا وروستني کس سنګسار کړئ نبي ﷺ اوفرمائیل چه ده داسې توبه ویستلې ده که چرې ټول مدینې والاداسې توبه وکړي نوددوی نه به قبوله شي، امام ابوداؤدفرمائي چه دا روایت سماک داسباط بن نصرنه هم بیان کړي دي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- تُرِيدُ الصَّلاَةَ فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ فَتَجَلَّلَهَا (٢)فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا الخ ﴾

### مضمون الحديث:

د رسول الله ﷺ په زمانه کښې یو زنانه د کور نه اوتله مسجد ته د مانځه په غرض سره په لاره کښې یو نامعلومه سړې هغې ته ملاؤ شو پس هغه په هغې باندې راخور شو او خپل حاجت ئې د هغې نه پوره کړو، هغه زنانه په دې باندې چغې کړې خو هغه سړې خپل کار کولو سره لاړو، د دې نه پس یو بل سړې دغه زنانه باندې تیر شو نو دغه زنانه هم د دې

(١): سنن الترمذي/الحدود ٢٢ (١٤٥٤)، (تحفة الأشراف: ١١٧٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٩/٦) (حسن)

(٢) بالجيم فهو كناية عن الجماع قاله السيوطي وقال القاري اي فغشيها بثوبه فصار كالجل عليه. اه. (عون).

سړی په باره کښې دا وئیل شروع کړل چه هم دې سړی ما سره دا کار کړې دې، د مهاجرینو یو جماعت په هغه ځائې باندې راتیر شو نو هغوی ته هم دې زنانه هم داسې اووې، دې خلقو هغه سړې اونیولو او هغه زنانه ته ئې نزدې راوستلو، زنانه اووې او هم دا سړې دې، خلقو هغه سړی د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راوستلو، چه کله رسول اللهﷺ په هغه سړی باندې د حد جاری کولو حکم اوفرمائیلو نو اوس اصل سړې په مجلس کښې اودریده او عرض ئې اوکړو یا رسول اللهﷺ صاحب د واقعې خو زه یم، د دې نه پس داسې اوشو چه رسول اللهﷺ هغه زنانه ته اوفرمائیل چه ته لاړه شه الله پاک ته معاف کړې، ځکه چه هغه خو مجبوره وه څه چه د هغې سره اوشو هغه بغیر د هغې د ارادې او رضا نه اوشو، او د هغه سړی په باره کښې ئې چه بری وو ښه خبره ارشاد اوفرمائیله، د هغه د زړه ساتلو دپاره، صحابه کرامو رضی الله عنهم رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو د هغه سړی په باره کښې کوم چه صاحب د واقعې وو چه دې رجم کړئ، خو د ترمذی په روایت کښې دی چه خپله رسول اللهﷺ د خلقو ته د رجم کولو حکم اوفرمائیلو ولفظه: ﴿ وقال للرجل الذی وقع علیها ارجموه﴾

## تحقیق نفیس واجب التنبیه :

دلته په البذل المجهود کښې حضرت لیکلی دی : فامر برجمه فرجم... چه رسول اللهﷺ د هغه صاحب واقعه د رجم حکم اوفرمائیلو، پس هغه رجم کړې شو، د حضرت دا رائې د ترمذی د روایت موافق ده خو د ابوداؤد روایت چه د هغې سیاق، د سیاق ترمذی خلاف دې په دې کښې د حضورﷺ د طرف نه د امر بالرجم تصریح نشته لهذا د ابوداؤد د روایت د وجې نه دا نه شی وئیلې کیدې چه رسول اللهﷺ د دې سړی رجم کړې وی بلکه د دې تقاضا خو دا ده چه رسول اللهﷺ دا سړې رجم نه کړو ځکه چه خلقو چه کله رسول اللهﷺ ته درخواست اوکړو د رجم په باره کښې نو رسول اللهﷺ په دې باندې اوفرمائیل ﴿لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَقُبِلَ مِنْهُمْ ﴾ د حضرت شیخ رائې هم دا ده او د ترمذی د روایت په باره کښې حضرت په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی هو عندی وهم کما فی هامش الکوکب الدری، په حاشیه د کوکب کښې حضرت شیخ د ابوداؤد سیاق لره ترجیح ورکولو سره خپله رائې دا لیکلې ده چه د دې سړی رجم او نه کړې شو چه بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو د رجم په باره کښې، حضرت شیخ لیکی : ویوافق سیاق ابی داؤد سیاق الذهبی فی التذکرة بلفظ فقالوا : انرجمه؟ فقال لقد تاب توبة الخ وکذا فی مسند احمد فقیل یا نبی الله الا ترجمه؟ فقال لقد تاب توبة الخ وهذا تحقیق نفیس لم یعترض له الشراح، والله تعالی اعلم بالصواب.

او رسول اللهﷺ دا هم ارشاد اوفرمائیلو چه دې سړی داسې توبه کړې ده چه که د اسې توبه تولې مدینې والا هم د خپلو ګناهونو دپاره اوکړی نو د تولو نه به قبوله کړې شی.

**(اشکال):** دلته یو څیز بل قابل غور دې او هغه دا چه په دې روایت کښې راغلی دی، ﴿ فلما امر به قام صاحبها ﴾ په دې باندې دا اشکال دې چه تر اوسه پورې دې سړی د زنا اقرار نه دې کړې، او نه ورسره باقاعده څوک ګواهان وو نو بیا رسول اللهﷺ د دې رجل بری د رجم اراده څنګه اوفرمائیله؟

(**جوابات**): هم په دې وجه شارحينو د دې حديث تاويل داسې کړې دې چه کيدې شي د راوي مراد دا وي ﴿ فلما قارب ان يامر به ﴾ يعني د ظاهر حال نه معلوميږي چه بس اوس به رسول الله ﷺ په هغه باندې د رجم فيصله اوفرمائي، ځکه چه خلقو دا سړې د رسول الله ﷺ مخې ته حاضر کړې وو، او رسول الله ﷺ د هغه په باره کښې تفتيش کولو، او د حضرت ګنګوهي په تقرير کښې دي : الظاهر ان الامر لم يكن الا باخراجه وابعاده حيث راه اختل عقله وتشتت امره ولم يثبت عليه شئ الخ يعني د رسول الله ﷺ دا امر د حد جاري کولو دپاره نه وو بلکه د هغه د مجلس نه د ويستلو باره کښې وو، ځکه چه دغه سړې ددې تهمت په وجه پريشانه او ګډ وډ وو، خبرې ئې هم نه شوې کولې، په دې وجه نبي عليه السلام دهغه دمجلس نه د وتلو حکم اوفرمائيلو، خو هغه واقعې والا دا اوګڼړله چه هغه د اقامة حد دپاره بوتللې شو په دې وجه هغه فورا د خپل فعل اقرار اوکړو ددې بری سړی لره د بچ کولو دپاره، الى آخر ما في البذل. والحديث اخرجه الترمذي، وابن ماجة بنحوه، قاله المنذري.

## باب في التلقين في الحد

### باب د حد دپاره د تلقين کولو بيان

د تلقين في الحد مطلب دا دې چه چرته د حد ثبوت په طريق اقرار وي نو هلته د قاضي دا کوشش کول چه د حد ثبوت اونه شي نو غوره ده ګويا هغه د خپل اقرار نه واوړي، وهذا التلقين مستحب لدرأ الحد، لا لاسقاط حق المسروق منه، فيعطى له حقه وان اندرء الحد كذا في البذل، يعني په دې تلقين سره مقصود حق العبد لره ضائع کول نه دي لهذا مسروق منه ته به د هغه حق ورکولې شي اګر چه حد ساقط شي مثلا يو سړې قاضي ته راتلو سره د زنا اقرار اوکړي نو هغه ته دې اووائي چه اې بيوقوفه! تا ته خبر هم شته چه زنا څۀ ته وائي او مسلمان هم چرته زنا کولې شي، او هم دغه شان د قاضي د دې اقرار بالزنا په وخت اعراض کول د هغه د طرف نه مخ اړول، او لکه څنګه چه دلته په حديث الباب کښې دي چه رسول الله ﷺ هغه غل ته چا چه د هغوي مخکښې د غلا اقرار کړې وو اوفرمائيل : ﴿ ما اخالك سرقت ﴾ چه زمونږ خو دا خيال نشته چه تا به غلا کړې وي.

[٤٣٨٠] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي الْمُنْذِرِ مَوْلَى أَبِي ذَرٍّ، عَنْ أَبِي أُمَيَّةَ الْمَخْزُومِيِّ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِلِصٍّ قَدِ اعْتَرَفَ اعْتِرَافًا وَلَمْ يُوجَدْ مَعَهُ مَتَاعٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا إِخَالُكَ سَرَقْتَ، قَالَ: بَلَى، فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا فَأَمَرَ بِهِ فَقُطِعَ وَجِيءَ بِهِ، فَقَالَ: اسْتَغْفِرِ اللَّهَ وَتُبْ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللَّهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ ثَلَاثًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: عَنْ أَبِي أُمَيَّةَ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابو اميه مخزومي رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ ته يو غل راوستل شو او اقراري

¹): سنن النسائي/قطع السارق ٣ (٤٨٨١)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٩ (٢٥٩٧)، (تحفة الأشراف: ١١٨٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٣/٥) (ضعيف)

هم کړي وومګر څه مال ورسره برامدنشونبی ﷺ اوفرمائیل زما خیال دي چه تا غلا کړې ده ده ووئیل هوکړي مې ده بیانبی ﷺ دده په وړاندې دوه یادرې پیرې همداسې ووئیل اوبیائې ورباندې حد جاري کړواولاس ئې پرې کړې شو بیا یوخل نبی ﷺ ته راوستلې شوورته ئې اوفرمائیل دالله تعالی نه مغفرت اوغواړه اوهغه ته رجوع وکړه هغه ووئیل زه دالله نه معاني غواړم اوهغه ته رجوع کوم، بیانبی ﷺ درې پیرې اوفرمائیل اې الله دده توبه قبوله کړې او ده ته مغفرت وکړې. امام ابوداؤد فرمائی چه دې روایت لره عمرو بن عاصم دهمام نه اوهغه داسحاق نه اوهغه دابو امیه نه نقل کړې دې.

﴿قال بلی فاعاد علیه مرتین﴾ اعتراف سرقه د جمهورو په نزد د غلا د ثبوت دپاره یو ځل کافی دې او د امام احمد او ابویوسف په نزد دوه کرته اقرار ضروری دې.

﴿فقال استغفر الله وتب الیه، فقال استغفرالله واتوب الیه﴾

## حدود صرف زواجر دی او که کفارات هم؟

یعنی د قطع د ید نه پس چه کله هغه سارق رسول الله ﷺ ته راوستلې شو نو رسول الله ﷺ هغه ته د توبې او استغفار حکم اوفرمائیلو، په دې سره د احنافو تائید کیږی چه وائی چه حد مکفر نه دی بلکه زاجر دی پس په بذل المجهود کښې دی: وهذا یدل علی ان الحد لیس بکفارة للذنوب والکفارة هی التوبة اهـ په دې مسئله باندې په صحیح بخاری کښې مستقل باب دې، باب الحدود کفارة: او هم دغه شان په ترمذی کښې: باب ما جاء ان الحدود کفارة لاهلها، په دې کښې هغوی د عبادة بن صامت رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې: ﴿کنا عند النبي صلی الله علیه و سلم في مجلس فقال تبایعوني علی أن لا تشرکوا بالله شیئا ولا تسرقوا ولا تزنوا قرأ علیهم الآیة فمن وفی منکم فأجره علی الله ومن أصاب من ذلك شیئا فعوقب علیه فهو کفارة له الخ﴾ او په عرف الشذی کښې دی: في کتب أصولنا أن الحدود زواجر، وعند الشافعیة سواتر وکفارات، ولم أجد عن أئمتنا ومشائخنا أن الحدود زواجر فقط لا کفارات، لکن المحقق أن الحدود کفارات بعض الکفارة وعلی هذا عندي نُقول، شاه صاحب دا فرمائی چه دا خبره "حدود کفاره نه دی" د احنافو په نزد، دا نقل صحیح نه دې، د احنافو په نزد هم په حدودو کښې تکفیر ته دخل دې یعنی فی الجملة هغه مکفر دی، او بیا ئې د دې موافق د بعض ائمه احنافو عبارتونه رانقل کړی دی، فارجع الیه لو شئت، او په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ د فریقین دلائلو طرف ته اشاره کړې ده. [1] والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

.............

[1] ) ففي هامش البذل: قال القاري في المرقاة ۸۰/۱۰ في حديث عبادة: من اصاب من ذلك شيئا فعوقب في الدنيا فهو كفارة، ومنه اخذ اكثر العلماء ان الحدود كفارات، وحديث لا ادري الحدود كفارات ام لا قبل العلم بذلك اهـ وينظر النووي ۷۳/۲ وذكر العيني ۱۸۷/۱ المؤيدات لحديث عبادة ان الحدود كفارات، قلت ويؤيد الحنفية حديث الباب وقوله تعالى انما جزاء الذين يحاربون الله ورسوله آلاية.... وفيها عذاب الآخرة مع عذاب الدنيا، ولذا اضطر صاحب تفسير الجمل بتاويل الاية بالكافر او بمن لم يقم عليه الحد اهـ ما في الهامش)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَعْتَرِفُ بِحَدٍّ وَلَا يُسَمِّيهِ

### باب: څوک چه د جرم اعتراف اوکړي خو نوم ئې وانخلي دهغې بيان

[٤٣٨١] (١) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي أَبُو أُمَامَةَ، "أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَصَبْتُ حَدًّا فَأَقِمْهُ عَلَيَّ، قَالَ: تَوَضَّأْتَ حِينَ أَقْبَلْتَ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: هَلْ صَلَّيْتَ مَعَنَا حِينَ صَلَّيْنَا، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: اذْهَبْ فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَدْ عَفَا عَنْكَ".

دابوامامة رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوكس دنبى عليه السلام په خدمت كښې حاضرشو اوعرض ئې وكړوچه اې دالله رسوله زه حدته رسيدلې يم په مائې جارې كړه، نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل آيا اودس دې كړې وو كله چه مونږ ته راتلې؟هغه ووئيل هوبيائې ورته اوفرمائيل ايامونځ دې كړې دې كله چه مونږ مونځ كولو؟ هغه ووئيل هوبيائې ورته اوفرمائيل لاړ شه يقينا الله تعالى تاته معافي وكړله

﴿ حدثني أَبُو أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلاً أَتَى النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّى أَصَبْتُ حَدًّا فَأَقِمْهُ عَلَيَّ قَالَ « تَوَضَّأْتَ حِينَ أَقْبَلْتَ ». قَالَ نَعَمْ الخ ﴾

يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت كښې راغلو او عرض ئې اوكړو يا رسول الله ﷺ! زما نه ګناه شوې ده په ما باندې حد قائم كړئ رسول الله ﷺ اوفرمائيل تا د راتلو په وخت كښې اودس كړې وو، هغه عرض اوكړو كړې مې وو، بيا رسول الله ﷺ د هغه نه د مانځه په باره كښې تپوس اوكړو چه تا مونږ سره مونځ كړې وو چه كله مونږ مونځ كولو هغه اووې اوجى، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ځه الله پاک ته معاف كړې.

شارحينو ليكلى دى. كما فى البذل..... چه په ظاهره دې سړي په صغائرو كښې د يوې ګناه ارتكاب كړې وى، خو د هغه ګمان دا وو چه دا د حد سبب دې او كيدې شى چه رسول الله ﷺ ته د وحى په ذريعه د دې علم شوې وى چه هغه فعل په صغائرو كښې دې هم په دې وجه رسول الله ﷺ د هغه نه وضاحت طلب نه كړو، چه د هغې يو قرينه دا ده چه مونځ او اودس د صغائرو دپاره مكفر دى نه د كبائرو دپاره. والحديث اخرجه مسلم والنسائى مختصرا ومطولا، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الِامْتِحَانِ بِالضَّرْبِ

### باب: د تفتيش دپاره د مجرم د وهلو بيان

[٤٣٨٢] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ، حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْحَرَازِيُّ "أَنَّ قَوْمًا مِنَ الْكَلَاعِيِّينَ سُرِقَ لَهُمْ مَتَاعٌ، فَاتَّهَمُوا أُنَاسًا مِنَ الْحَاكَةِ، فَأَتَوْا النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ صَاحِبَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَحَبَسَهُمْ أَيَّامًا ثُمَّ خَلَّى سَبِيلَهُمْ فَأَتَوْا النُّعْمَانَ، فَقَالُوا: خَلَّيْتَ سَبِيلَهُمْ بِغَيْرِ ضَرْبٍ وَلَا امْتِحَانٍ، فَقَالَ النُّعْمَانُ: مَا شِئْتُمْ إِنْ شِئْتُمْ أَنْ أَضْرِبَهُمْ فَإِنْ خَرَجَ مَتَاعُكُمْ فَذَاكَ وَإِلَّا أَخَذْتُ مِنْ ظُهُورِكُمْ مِثْلَ مَا أَخَذْتُ مِنْ ظُهُورِهِمْ، فَقَالُوا:

---

(١): صحيح مسلم/التوبة ٧ (٢٧٦٥)، (تحفة الأشراف: ٤٨٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٥١، ٢٦٢، ٢٦٥) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/قطع السارق ٢ (٤٨٧٨)، (تحفة الأشراف: ١١٦١١) (حسن)

هَذَا حُكْمُكَ، فَقَالَ: هَذَا حُكْمُ اللَّهِ وَحُكْمُ رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِنَّمَا أَرْهَبَهُمْ بِهَذَا الْقَوْلِ أَيْ لَا يَجِبُ الضَّرْبُ إِلَّا بَعْدَ الِاعْتِرَافِ.

دازهر بن عبدالله حرازی رحمه الله نه روایت دې فرمائی چه دقبیله کلاع دیوڅو کسانو مال پټ کړې شوهغوی په یوڅو جولاګانو باندې دغلا الزام ولګولو اودوی ئې دنبی ﷺ صحابي نعمان بن بشیرته راوستل نعمان دوی لره یوڅو ورځې ګرفتار کړې شوې وساتل، او بیا ئې پریخودل بیا هغوی ټول نعمان بن بشیر رضی الله عنه ته حاضر شو هغوی عرض وکړوچه تاسو خو غلاګان دوهلو ټکولو اوتفتیش نه بغیر پریخودل نعمان ورته ووئیل تاسوڅه غواړئ؟ که ستاسو خوښه وي زه به ئې ووهم مګردې شرط سره که چرې ددوی سره ستاسومال برامد شي خوتهیک ده اوکه ورسره پیدانشي نودغه هومره به تاسوهم وهم هغوی ورته ووئیل آیا داستاخپل حکم دې؟ نعمان ورته ووئیل دادالله تعالی اودهغه درسول حکم دې.

## شرح الحديث ومسئلة الباب:

**قوله:**﴿ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْحَرَازِيُّ أَنَّ قَوْمًا مِنَ الْكَلَاعِيِّينَ سُرِقَ لَهُمْ مَتَاعٌ فَاتَّهَمُوا أُنَاسًا مِنَ الْحَاكَةِ الخ ﴾ بعض خلق چه د کلاعیین نه دی یعنی په قبیله ذی کلاع کښې چه د یمن یو قبیله ده، د هغوی سامان غلا شو، د هغوی په څه خلقو باندې شک وو چه د کپړو جوړونکو نه وو، حاکه جمع ده د حائک یعنی جولا، نو هغوی نعمان بن بشیر رضی الله عنه ته لاړل کوم چه هغه وخت د کوفې امیر وو، هغوی ته تلو سره ئې خپله واقعه بیان کړه او خپله شک او شبهه ئې ښکاره کړه هغوی دا متهم خلق څو ورځې نظربند اوساتل، چه کله ورته هیڅ هم د ثبوت دپاره ملاؤ نه شو نو هغوی ئې پریخودل، هغه کلاعیین هغوی ته راغلل او وې وئیل چه تاسو دوی بغیر د وهلو او امتحان نه پریخودل هغوی اوفرمائیل چه آیا تاسو غواړئ چه زه هغوی اووهم، زه داسې کولې شم که تاسو غواړئ، د دې نه پس که ستاسو سامان د هغوی نه برامد شو نو صحیح ده ګینې بیا به ستاسو ملاګانو لره هم دومره وهل ورکوم څومره چه هغوی اووهلې شي، په دې باندې هغوی اووې چه دا ستاسو فیصله ده؟ هغوی اوفرمائیل دا زما نه بلکه د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ فیصله ده.

د دې حدیث نه معلومه شوه چه رجل متهم د تحقیق او تفتیش دپاره قید کولې شی خو وهل ئې جائز نه دی، پس په کتاب القضاء کښې یو باب تیر شوې دې باب فی الدین هل یحبس به، وتقدم هناک لی الواجد یحل عرضه وعقوبته، قال ابن المبارک یحل عرضه یغلظ له، وعقوبته یحبس له، وفی روایة من هذا الباب ان النبی ﷺ حبس رجلا فی تهمة.

په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه نقل کړې شوې دی: الا ان العلماء جوزوا فی ایامنا هذه الامتحان بالضرب وبماشاء من التهدید،([1]) لما روا من تفویت الحقوق واتلافها لولا ذلک، وکان فیما مضی من الزمان یکتفی بالیسیر من التهدید فی اعتراف السارق اهـ یعنی زمونږ په موجوده زمانه کښې علماء کرامو د امتحان بالضرب وغیره اجازت ورکړې دې ګینې د دې نه بغیر د

---

[1]) وفي هامش البذل: وفيه تفصيل عند الحنفية من ان المعروف بالبر لا يحبس ولا يعاقب وهل يحلف فيه قولا ان المستور يحبس والمعروف لفسق يعاقب (الشامي ٢/ص٢١٤ و ٢٠٥)

حقوق ضائع کیدو ویره ده، او په تیرو زمانو کښ تهدید یسیر کافی وو، والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابُ مَا يُقْطَعُ فِيهِ السَّارِقُ

### باب: د څومره مال په وجه به د غل لاس کټ کولې شی؟

یعنی په څومره مال غلا کولو کښ به قطع د ید کولې شی، یعنی د سرقې نصاب څه دې؟

### د سرقې تعریف او په نصاب د سرقې کښ مذاهب ائمه :

سرقه د باب ضرب یضرب نه ده او سرق هم په دې معنی کښ ده، د دې تعریف فقهاء کرامو داکړې دی : اخذ مال محرز خفیة، یعنی د بل چا داسې مال چه محفوظ وی په پټه باندې اخستل، دسرقې د نصاب په باره کښ په بذل المجهود کښ د علامه شوکانی رحمه الله نه نقل کولو سره یولس مذاهب ذکر کړی دی، علامه شوکانی رحمه الله فرمائی چه په دې کښ اصل مذاهب خو هم د ادی یعنی یولس مذاهب کوم چه مونږ ذکر کړې دی او په فتح الباری کښ ئې دا مذاهب شلو ته رسولې دی خو د دې یولسو نه علاوه چه کوم مذاهب دی هغې ته مستقل مذاهب نه شی وئیلې کیدې چه هغه هم دې یولسو ته راجع دی. د امام شافعی رحمه الله په نزد ربع دینار دې، د امام مالک او احمد په نزد درې دراهم، د احنافو په نزد لس دراهم، د داؤد ظاهری او حسن بصری په نزد مطلق مال، که لږ وی او که ډیر.

[۴۳۸۳] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُهُ مِنْهُ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْطَعُ فِي رُبُعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام به د دینارد څلورې حصې په غلاکولو باندې د غل لاس پریکولو.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ يَقْطَعُ فِي رُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا الخ ﴾ دا د امام شافعی رحمه الله دلیل شو چه د هغوی په نزد نصاب د سرقې ربع دینار دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۳۸۴] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَوَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُقْطَعُ يَدُ السَّارِقِ فِي رُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا"، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: الْقَطْعُ فِي رُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا.

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دی فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه د غل لاس د دینارد څلورې حصې په مقدار یاددې نه په زیاته غلاکوسره کټ کولې شي. احمد بن صالح وئیلی دی د لاس پریکول په غلاکولو مقدار د ربع د دینار باندې دي.

---

(۱): صحیح البخاري/الحدود ۱۳ (۶۷۸۹)، صحیح مسلم/الحدود ۱ (۱۶۸۴)، سنن الترمذي/الحدود ۱۶ (۱۴۴۵)، سنن النسائي/قطع السارق ۷ (۴۹۲۰)، سنن ابن ماجه/الحدود ۲۲ (۲۵۸۵)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۲۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحدود ۷ (۲۳)، مسند احمد (۶/۳۶، ۸۰، ۸۱، ۱۰۴، ۱۶۳، ۲۴۹، ۲۵۲)، سنن الدارمي/الحدود ٤ (۲۳٤٦) (صحیح)

(۲): صحیح البخاري/ الحدود ۱۳ (۶۷۹۰)، صحیح مسلم/ الحدود ۱ (۱۶۸٤)، سنن النسائي/ قطع السارق ۷ (٤٦۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱٦٦۹٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحدود ۷ (۲٤)، دي/الحدود ٤ (۲۳٤٦) (صحیح)

[٤٣٨٥]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ فِي مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام ددرهموډډال په وجه دغل لاس پريکړي وو.

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَطَعَ فِي مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ﴾ يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د غل لاس پرې کړې دې د ډهال په غلا کښې چه د درې درهمو وو، وړاندې هم د ابن عمر رضی الله عنهما په بل روايت کښې هم دا راغی دا د امام مالک او امام احمد دليل شو.

[٤٣٨٦]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ، أَنَّ نَافِعًا مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُمْ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ سَرَقَ تُرْسًا مِنْ صُفَّةِ النِّسَاءِ ثَمَنُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام ديوکس لاس پريکړو چه غلائي کړې وه چاچه دصفة النساء نه ډال پټ کړې وو اوودې ډال قيمت درې درهمه وو.

د دې نه پس د ابن عباس رضی الله عنهما په روايت کښې دی:

[٤٣٨٧]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبِي السَّرِيِّ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَهَذَا لَفْظُهُ وَهُوَ أَتَمُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَطَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ رَجُلٍ فِي مِجَنٍّ قِيمَتُهُ دِينَارٌ أَوْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، وَسَعْدَانُ بْنُ يَحْيَى، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ بِإِسْنَادِهِ.

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه نبی علیه السلام ديوکس لاس پريکړوچه غلائي کړې وه اوودې ډال قيمت يودينار اويا لس درهمه وو.

**قوله:** ﴿قَطَعَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَدَ رَجُلٍ فِي مِجَنٍّ قِيمَتُهُ دِينَارٌ أَوْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ﴾ يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د ډهال په غلا کښې لاس پرې کړو چه د هغې قيمت يو دينار يا لس درهم وو. په بذل کښې ليکلې دی چه د جمهورو استدلال د باب د شروع د احاديثو نه دې او د احنافو د دې آخری حديث د ابن عباس رضی الله عنهما نه.

اصل په دې کښې دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه مال په غلا کښې قطع ديد کړې دې کوم چه په قيمت کښې د ډهال د قيمت برابر وی، اوس د ډهال د قيمت په باره کښې روايات مختلف دی، ربع دينار، ثلاثة دراهم او عشرة دراهم، امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه هر کله

[1]: صحيح البخاري/الحدود ١٣ (٦٧٩٥)، صحيح مسلم/الحدود ١ (١٦٨٦)، سنن النسائي/قطع السارق ٧ (٤٩١٢)، (تحفة الأشراف: ٨٣٣٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحدود ١٦ (١٤٤٦)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٢ (٢٥٨٤)، موطا امام مالك/الحدود ٧ (٢١)، مسند احمد (٢/٦، ٥٤، ٦٤، ٨٠، ١٤٣)، سنن الدارمي/الحدود ٤ (٢٣٤٧) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الحدود ١ (١٦٨٦)، سنن النسائي/ قطع السارق ٧ (٤٩١٣)، (تحفة الأشراف: ٧٤٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٤٥)، دي/الحدود ٤ (٢٣٤٧) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/قطع السارق ٧ (٤٩٥٤)، (تحفة الأشراف: ٥٨٨٤) (شاذ)

قیمت د مجن په دې کښې اصل دې او د هغې په تعیین کښې چونکه روایات مختلف دی لهذا په دې کښې به احتیاطا هغه مقدار اخستلې شي په کوم چه ټول روایات صادقیږی او چونکه یو روایت د هغه قیمت په باره کښې عشرة دراهم هم دې لهذا هم هغه به اختیارولې شی، ځکه چه دا مقدار خو مجمع علیه دې او کوم چه د دې نه کم دې هغه غیر متفق علیه مقدار دې، په بذل المجهود کښې دی : استدل الطحاوی للحنفية بحديث أَيْمَنَ الْحَبَشِيِّ , قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَدْنَى مَا يُقْطَعُ فِيهِ السَّارِقُ ثَمَنُ الْمِجَنِّ» ، وفى رواية عن ام ايمن قالت قال رسول الله ﷺ لا يقطع يد السارق الا فى جحفة، د احنافو نور دلائل په بذل المجهود کښې کتلې کیدې شي.

## بَابُ مَا لَا قَطْعَ فِيهِ

### باب: د کومو څيزونو په پټولو چه د غل لاس نه شي پريکولې د هغې بيان

[٤٣٨٨] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، أَنَّ عَبْدًا سَرَقَ وَدِيًّا مِنْ حَائِطِ رَجُلٍ فَغَرَسَهُ فِي حَائِطِ سَيِّدِهِ فَخَرَجَ صَاحِبُ الْوَدِيِّ يَلْتَمِسُ وَدِيَّهُ فَوَجَدَهُ، فَاسْتَعْدَى عَلَى الْعَبْدِ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَهُوَ أَمِيرُ الْمَدِينَةِ يَوْمَئِذٍ، فَسَجَنَ مَرْوَانُ الْعَبْدَ وَأَرَادَ قَطْعَ يَدِهِ فَانْطَلَقَ سَيِّدُ الْعَبْدِ إِلَى رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ فَسَأَلَهُ عَنْ ذَلِكَ فَأَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ، فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنَّ مَرْوَانَ أَخَذَ غُلَامِي وَهُوَ يُرِيدُ قَطْعَ يَدِهِ وَأَنَا أُحِبُّ أَنْ تَمْشِيَ مَعِي إِلَيْهِ فَتُخْبِرَهُ بِالَّذِي سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَشَى مَعَهُ رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ حَتَّى أَتَى مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ فَقَالَ لَهُ رَافِعٌ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ فَأَمَرَ مَرْوَانُ بِالْعَبْدِ فَأُرْسِلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْكَثَرُ الْجُمَّارُ.

د محمد بن يحي بن حبان رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه يو کس دکجور و دباغ نه دبوټي غلا وکړه اودابوټي يې دخپل مالک په باغ کښې ولګولو دبوټي مالک دخپل بوټي په تالاش پسي اووتلو اوبيا ئي هغه بوټي پيداکړو اوپه مدينه کښې ئي دوخت حاکم مروان بن حکم ته مقدمه يوړله ، اودخپل ځان دپاره ئي مدد وغوښتو مروان دغه غلام قيد کړو اودده دلاس کټ کولو اراده ئي وکړه اوددې غلام دمالک رافع بن خديج خواته لاړو اودهغه نه ئي ددې مسئلې تپوس اوکړو هغه ورته اووئيل مادنبی کريم فانه آوريدلی دی چه فرمائيل ئي دميوې اودميوې دوګي په پټولوباندې دغل لاس نشي پريکولې ده اووئيل مروان زماغلام ګرفتار کړې دې اوهغه دده لاس پريکول غواړي زما خواهش دې چه ته زماسره مروان ته لاړ شي اوتاچه دنبی عليه السلام نه کوم حديث اوريدلې دې هغه ورته بيان کړې رافع بن خديجه دده سره يوځائې لاړو تردې چه مروان ته اورسيدل او ورته ئي اووئيل چه مادنبی عليه السلام نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئي چه دميوې اودميوې دغونچک په وجه دغل لاس نشي کټ کولې مروان چه دا واوريدل نو غلام ئي پريخودو ، امام ابوداؤد فرمائی چه دکثر لفظ معنی ده د ميوې وګې.

(١): سنن الترمذي/الحدود ١٩ (١٤٤٩)، سنن النسائي/قطع السارق ١٠ (٤٩٦٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٧ (٢٥٩٣)، (تحفة الأشراف: ٣٥٨١، ٣٥٨٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحدود ١١ (٣٢)، مسند احمد (٤٦٣/٣، ٤٦٤، ١٤٠/٥، ١٤٢)، سنن الدارمي/الحدود ٧ (٢٣٥٠) (صحيح)

**قوله:** ﴿ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ أَنَّ عَبْدًا سَرَقَ وَدِيًّا مِنْ حَائِطِ رَجُلٍ فَغَرَسَهُ فِي حَائِطِ سَيِّدِهِ فَخَرَجَ صَاحِبُ الْوَدِيِّ يَلْتَمِسُ وَدِيَّهُ فَوَجَدَهُ فَاسْتَعْدَى عَلَى الْعَبْدِ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَهُوَ أَمِيرُ الْمَدِينَةِ ﴾

## شرح الحديث :

مضمون حديث دا دې چه د يو سړي غلام، دا غلام د واسع بن حبان وو يعني د راوی حديث محمد بن يحی تره، او د غلام نوم فيل ليکلې شوې دې. د چا د باغ نه ئې بوټې پټ کړو، او د غلا کولو نه پس ئې د خپل آقا په باغ کښې نال کړو، د بوټي مالک د هغې په لټون کښې اوتلو پس هغه ئې بيا موندلو او د هغه د عبد خلاف ئې د مروان بن الحکم ته چه دغه وخت کښې امير المدينة وو ته فرياد اوکړو. مروان په دې باندې غلام قيد کړو او د قطع يد اراده ئې اوکړه، د غلام مالک واسع بن حبان، رافع بن خديج رضی الله عنه ته لاړو، او د هغوی نه ئې معلومه کړه، هغوی ده ته د رسول الله ﷺ دا حديث بيان کړو: ﴿ لا قطع فی ثمر ولا کثر ﴾ په دې اوريدلو باندې واسع بن حبان اووې چه امير المدينة خو زما غلام نيولې دې او د هغه د قطع يد اراده کوی، لهذا تاسو مهربانی اوکړئ او ماسره مروان ته لاړ شئ، او هغه ته دا حديث واوروې، پس رافع بن خديج رضی الله عنه هغه سره مروان ته لاړو او د تلو سره هغوی ته دا حديث واورولو، مروان حديث اوريدلو سره غلام لره د پريخودلو حکم اوفرمائيلو.

قال ابوداؤد : الکثر الجمار..... د حديث مطلب دا دې چه په اونو باندې لګيدلې ميوې او جمار غلا کولو کښې قطع يد نشته، جمار د کهجورې د تنې په مينځ کښې چه کوم مغز وی سپين سپين هغې ته وائی، او په دې کښې د قطع يد نه کيدو وجه دا ده چه د دې څيزونو په اخستلو کښې د سرقه معنی نه شی موندلې د عدم حرز په وجه باندې ځکه چه دا څيزونه محفوظ نه دی، د امام احمد رحمه الله په روايت کښې دی چه کومه اونه په مکان محفوظ کښې وی د هغې د ثمر په غلا کولو کښې قطع د يد شته، او په ثمر کښې د قطع يد د نه کيدو يو بله وجه هم ده چه هغه د ما يتسارع اليه الفساد د قبيل نه دې چه د هغې په غلا کولو کښې زمونږ په نزد قطع يد نشته، پس چه کوم خوراک مهيا للاکل وی د هغې په غلا کښې هم قطع يد نشته، په روستنی روايت کښې اضافه ده: فَجَلَدَهُ مَرْوَانُ جَلَدَاتٍ وَخَلَّى سَبِيلَهُ، يعنی مروان دې غلام ته تعزيرا څو کوړې ورکړې او بيا ئې پريخودلو.

والحديث اخرجه النسائی مختصرا.... واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه موصولا مختصر کذلك، قاله المنذری.

[۴۳۸۹] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَجَلَدَهُ مَرْوَانُ جَلَدَاتٍ وَخَلَّى سَبِيلَهُ.

د محمد بن يحی نه په دې روايت کښې داسې منقول دې چه مروان دغه غلام ته يو څو کوړې سزا ورکړه اوبيا ئې پريخودو.

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۵۸۱) (شاذ)

[۴۳۹۰] ([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ، فَقَالَ: "مَنْ أَصَابَ بِفِيهِ مِنْ ذِي حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَمَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ وَمَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ وَمَنْ سَرَقَ دُونَ ذَلِكَ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْجَرِينُ الْجُوخَانُ.

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه دنبی کريم ﷺ نه دزوړندو ميوو په باره کښې تپوس اوکړې شو نبی علیه السلام اوفرمائيل هريو ضرورتمند چه دغه ميوه وخوړله او پخپله لمن کښې ئې جمع نکړه نوپه ده باندې هيڅ ګناه نشه اوڅوک چه ددينه دځان سره ويسي نوده ته به وهل ورکولې شي اوددې دوچنده جرمانه به ورکوي ، اوچاچه ددينه ددې دوچولو دځائې نه دجمع کولونه پس غلا وکړه اودهغې قيمت ديوډال برابر وو نودده کس لاس به پريکولې شي.

## شرح الحديث

﴿عن عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ فَقَالَ « مَنْ أَصَابَ بِفِيهِ مِنْ ذِى حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلاَ شَىْءَ عَلَيْهِ وَمَنْ خَرَجَ بِشَىْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ ﴾

يعنی د رسول الله ﷺ نه په اونو باندې د لګيدلې ميوې په باره کښې تپوس اوکړې شو ([2]) نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که حاجت مند دې لره ماتولو سره په خوله کښې کيږدی په دې شرط چه ځان سره ئې يونسې نو په هغه باندې هيڅ تاوان نشته او کومه چه اوشوکوی او ځان سره ئې يوسی، په هغه باندې د هغې تاوان او ضمان دې او سزا هم، يعنی تعزير.

يعنی قطع يد خو په دواړو صورتونو کښې نشته د عدم حرز د وجې نه لکه چه پورته تير شو ، او صرف په شوکولو سره خوړلو کښې هيڅ باک نشته او ځان سره د اوړلو اجازت نشته، په دې کښې به تعزير وی او ضمان، په قاعده کښې خو به ضمان برابر اخستلې شی خو دلته په روايت کښې نسخې مختلف دی په بعضو کښې دی ﴿ غرامة مثله ﴾ او په بعض کښې ﴿غرامة مثليه ﴾ د دوچند ضمان حکم اوس نشته هغه منسوخ دې.

## ما استفيد من الحديث :

په دې حديث کښې مسافر لره د ميوو شوکولو سره د خوراک اجازت ذکر دې، امام ترمذی رحمه الله په دې حديث باندې په کتاب البيوع کښې دا ترجمه قائم کړې ده باب ما جاء فی الرخصة فی اکل ثمار للماربها، علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه علماء کرامو دا په مجاعة او

[1]: سنن الترمذي/البيوع ٥٤ (١٢٨٩)، سنن النسائي/قطع السارق ٩ (٤٩٦١)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٨ (٢٥٩٦)، (تحفة الأشراف: ٨٧٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٦/٢) (حسن)

[2]: يا د معلق نه مراد د. کهجورې هغه غنچک ده کومه چه د اونې نه شوکولو سره د څو ورځو دپاره درمن (ستهور) ته د رسولو نه مخکښې زوړنده کړې شی في الجملة د خشکئ دپاره په دې وجه که هغه غونچک هم دغه شان په درمن کښې جمع کړې شی نو د خرابيدو خطره به ئې وی.

ضرورت باندې محمول کړې دې په دې وجه دا حديث د نصوص مقابله نه شي کولې کوم چه د تحريم د مال مسلم په باره کښې راغلي دې. اهـ او په کوکب الدری ۳۷۷/۲ کښې دا دی چه دا د انصارو په عرف باندې محمول دې د هغوی په نزد د ثمر ساقط د خوړلو اجازت وو او د جائع دپاره د ثمر مغلق هم پس د دې بنياد په عرف باندې دې که په يو ځائې کښې د معلق اجازت هم عام وی د جائع او غير جائع دواړو دپاره نو هلته به د دواړو دپاره جائز وی. اهـ د دې نه معلومه شوه چه که په يو ځائې کښې مطلقا اجازت نه وی نو د چا دپاره به هم جائز نه وی.

**قوله:** ﴿ وَمَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُئْوِيَهُ الْجَرِينُ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ ﴾

او که يو سړې د دې ميوې (کهجورې وغيره) غلا په هغه وخت کښې اوکړی چه کله هغه درمن ته رسولې شوې وی د حفاظت دپاره او د هغې مقدار وی هم دومره چه ثمن مجن ته رسيږی نو په دې صورت کښې به قطع دید وی.

**قوله:** ﴿ غير متخذ خبنة ﴾ يعنی په کپړه کښې دې ځان سره پټ نه اوړی، صرف هم هلته دې اوخوری، خبنه وائی معطف الازار ته، يعنی د لنګ هغه سره چه راتاوهلو سره لنګ تړلې شی لکه په پاجامه کښې چه بډهه وی. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه بنحوه، وقال الترمذی حسن، قاله المنذری.

## بَابُ الْقَطْعِ فِي الْخُلْسَةِ وَالْخِيَانَةِ

### باب: يو څيز په زور اخستلو سره يا په امامت کښې خيانت کولو سره د لاس کټ کولو بيان

[٤٣٩١] ([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ، قَالَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً مَشْهُورَةً فَلَيْسَ مِنَّا".

دجابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. نشته دې په تالان کونکي باندې لاس پريکول اوچاچه په زبردستی سره دچامال غصب کړونوهغه زمونږ نه دې.

[٤٣٩٢] ([2]) وَبِهَذَا الْإِسْنَادِ قَالَ: وَبِهَذَا الْإِسْنَادِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى الْخَائِنِ قَطْعٌ".

اوپه همدې سند سره داهم مروي دي چه نبی کريم فرمائيلی دی چه په خيانت کونکي باندې هم قطع ديد نشته يعنی دده لاس به نشي پريکولې.

﴿ عن جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لَيْسَ عَلَى الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً مَشْهُورَةً فَلَيْسَ مِنَّا وَلَيْسَ عَلَى الْخَائِنِ قَطْعٌ »﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه په لوټ مار کولو والا باندې قطع ديد نشته او څوک چه داسې ښکاره د نورو مال اخلی هغه زمونږ نه نۀ دې.

[1]: سنن الترمذي/الحدود ١٨ (١٤٤٨)، سنن النسائي/قطع السارق ١٠ (٤٩٧٥)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٦ (٢٥٩١)، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٨٠)، سنن الدارمي/الحدود ٨ (٢٣٥٦) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٠) (صحيح)

په ترجمة الباب کښې د خلسة لفظ وو او په حديث کښې د نهبة، د دواړو مفهوم يو دې او په دې کښې د قطع يد نه کيدو وجه ښکاره ده چه د انتهاب او د سرقه دواړو حقيقت مختلف دې، ځکه چه په انتهاب کښې اخذ خبيةً نه وی بلکه علانيه وی، او په خيانت کښې نشته ځکه چه هلته د حرز معنی مفقود ده او دا دواړه د سرقې په حقيقت کښې داخل دی.

د حضرت گنگوهی په تقرير کښې ليکلي دی چه چونکه د حدود نه مقصود زجر دې او د زجر زيات حاجت په هغه جناياتو او جرمونو کښې وی چه د هغې شيوع او عموم وی په خلاف د خلسه او نهبه چه په دې باندې اقدام کول د هر سړی کار نه شی کيدې، مگر هم هغه سړې چه ډير زيات بې باک او جری وی، خو تعزير پکښې شته څه چه حاکم مناسب اوګنړی.

[٤٣٩٣](1) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ، زَادَ وَلَا عَلَى الْمُخْتَلِسِ قَطْعٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَانِ الْحَدِيثَانِ لَمْ يَسْمَعْهُمَا ابْنُ جُرَيْجٍ مِنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، وَبَلَغَنِي عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ أَنَّهُ قَالَ: إِنَّمَا سَمِعَهُمَا ابْنُ جُرَيْجٍ مِنْ يَاسِينَ الزَّيَّاتِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدْ رَوَاهُمَا الْمُغِيرَةُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

جابر دنبی عليه السلام نه ددې په شان روايت بيان کړې دې مگردا اضافه ئې کړې ده نشته دې په مختلس باندې د لاس پريکول امام ابوداؤد فرمائی ابن جريج دابوزبير نه دا دواړه حديثونه نه دي آوريدلی دی او ماته دامام احمد بن حنبل نه دا خبر رارسيدلې دې چه ابن جريج دا احاديث دياسين زيات نه آوريدلی دی امام ابوداؤد فرمائی دا دواړه روايتونه مغيره د ابو زبير نه اوهغه دجابره نه بيان کړې دې.

**قوله: ﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَانِ الْحَدِيثَانِ لَمْ يَسْمَعْهُمَا (2)ابْنُ جُرَيْجٍ مِنْ أَبِي الزُّبَيْرِ وَبَلَغَنِي عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ أَنَّهُ قَالَ إِنَّمَا سَمِعَهُمَا ابْنُ جُرَيْجٍ مِنْ يَاسِينَ الزَّيَّاتِ﴾**

## د قال ابوداؤد تشريح :

مصنف رحمه الله په دې دواړو احاديثو باندې کلام کوی اول د محمد بن بکر او دويم د عيسی بن يونس، او دا چه ابن جريج دا دواړه احاديث د ابوالزبير نه نه دی اوريدلې، او هم دا رائې د امام نسائی هم ده، امام نسائی فرمائی چه دا حديث د ابن جريج نه د هغه ډيرو شاگردانو روايت کړې دې په هغوی کښې چا هم حدثنی ابوالزبير.. نه دی وئيلې (يعنی د تحديث لفظ کوم چه په سماع باندې دلالت کوی) ولا احسبه سمعه من ابی الزبير...). گويا د دې دواړو رائې متفق ده، او امام ابوداؤد رحمه الله د خپلې رائې تائيد د خپل استاد احمد بن حنبل رحمه الله د کلام نه کړې دې چه هغوی اوفرمائيل ﴿ انما سمعها ابن جريج من ياسين الزيات ﴾ گويا د ابن جريج او د ابوالزبير ترمينځه واسطه د ياسين الزيات ده، حافظ منذری د دې ټولو د نقل کولو نه پس فرمائی: قد صححه الترمذی من حديث ابن جريج عن ابی الزبير وهذا يدل علی انه تحقق اتصاله، يعنی د امام ترمذی رحمه الله د کلام نه معلوميږی چه د هغوی په نزد حديث متصل دې

(1): انظر حديث رقم: (٤٣٩١)، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٠) (صحيح)

(2) وفي هامش البذل: قال ابن الهمام صححه الترمذي وسكت عنه ابن القطان وعبدالحق في احكامه فهو تصحيح له منهما فتعليل ابي داؤد مرجوح (الخ)

هیڅ انقطاع پکښې نشته، په حاشیه د نسائی کښې د نیل الاوطار نه د دې انقطاع فی السند د رائې تضعیف داسې کړې دې : اجیب بان سوید بن نصر روی عن ابن المبارک عن ابن جریج اخبرنی ابوالزبیر، وقد اخرجه عبدالرزاق فی مصنفه الی اخر ما فی الحاشیة، والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وقال الترمذی حسن صحیح.

## بَابُ مَنْ سَرَقَ مِنْ حِرْزٍ

### باب: څوک چه یو محفوظ ځیز پټ کړې دهغې بیان

په سرقه کښې حرز د جمهور علماء کرامو په نزد شرط دې، کینې بغیر د دې نه سرقه سرقه نه ده، داؤد ظاهری او د اسحاق بن راهویه په نزد شرط نه دې، هم دا وجه ده چه په نباش باندې قطع د ید نشته، ځکه چه کفن غیر محرز دې، بعض شراح د امام احمد رحمه الله مذهب هم د ظاهریه په شان لیکلې دې خو دا صحیح نه ده، پس په اوجز ۶/۵۷ کښې دی : الشرط الرابع کوم المسروق فی حرز عند جمهور العلماء خلافا لداؤد الظاهری اذ لا یعتبر الحرز، ثم قال الموفق : اذا ثبت اعتبار الحرز والحرز ما عد حرزا فی العرف الخ.....

[۴۳۹۴]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ حَمَّادِ بْنِ طَلْحَةَ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ حُمَيْدِ ابْنِ أُخْتِ صَفْوَانَ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: "كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ عَلَى خَمِيصَةٍ لِي ثَمَنُ ثَلَاثِينَ دِرْهَمًا فَجَاءَ رَجُلٌ، فَاخْتَلَسَهَا مِنِّي فَأُخِذَ الرَّجُلُ فَأُتِيَ بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِهِ لِيُقْطَعَ قَالَ: فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: أَتَقْطَعُهُ مِنْ أَجْلِ ثَلَاثِينَ دِرْهَمًا؟ أَنَا أَبِيعُهُ وَأُنْسِئُهُ ثَمَنَهَا قَالَ: فَهَلَّا كَانَ هَذَا قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِي بِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ زَائِدَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جُعَيْدِ بْنِ حُجَيْرٍ، قَالَ: نَامَ صَفْوَانُ، وَرَوَاهُ مُجَاهِدٌ، وَطَاوُسٌ أَنَّهُ كَانَ نَائِمًا فَجَاءَ سَارِقٌ، فَسَرَقَ خَمِيصَةً مِنْ تَحْتِ رَأْسِهِ وَرَوَاهُ أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ فَاسْتَلَّهُ مِنْ تَحْتِ رَأْسِهِ فَاسْتَيْقَظَ فَصَاحَ بِهِ فَأُخِذَ وَرَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: فَنَامَ فِي الْمَسْجِدِ وَتَوَسَّدَ رِدَاءَهُ فَجَاءَ سَارِقٌ فَأَخَذَ رِدَاءَهُ فَأُخِذَ السَّارِقُ فَجِيءَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دصفوان بن امیه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه یوه ورځ په جوماتت کښې اوده وم په یو څادر باندې کوم چه د دیرشو درهمو برابر وو په دې وخت کښې یو کس راغې اودغه څادر ئې زما نه وتښتولو بیا دغه کس ګرفتارکړې شو اونبی علیه السلام ته راوستلې شو نبی علیه السلام دده دلاس د پریکولوحکم اوکړو، زه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې اوکړو اې دالله رسوله د دیرشو درهمودپاره ته دده لاس پریکوې زه به دغه څادر په ده باندې په قرضو خرڅ کړم نبی علیه السلام چه دا واوریدل نو وئې فرمائیل تاکه چرې داسې کولې نو ماته دراتلونه مخکښې به دې کړې وو، امام ابوداؤد فرمائی چه دا حدیث زائده دسماک نه اوهغه دعبد بن حجیرنه بیان کړې دې هغه وائی چه صفوان که اوده وو او طاوس او مجاهد وائی چه هغه اوده کیدو او په دې وخت کښې غل راغې اوڅادر ئې دده دسردلاندې نه غلا کړو. اوهمدارنګې دا روایت دابوسلمه بن عبدالرحمن نه هم مروې دې فرمائی چه دده دسرنه ئې وتختولونوچه راویښ شونو چغه یې ووهله نوغل ونیولې شو. اوهمدارنګې زهرې

[1] ): سنن النسائي/قطع السارق ٤ (٤٨٨٢)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٨ (٢٥٩٥)، (تحفة الأشراف: ٤٩٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٠١، ٦/٤٦٥، ٤٦٦) (صحيح)

دصفوان بن عبدالله نه نقل کړي دي فرمائي چه په جومات کښې اوده شو او د څادرنه ئې بالخ جوړ کړي وو اوغل ورته راغې اودده څادرئي واخستوبیاددني نه پس غل ونیولي شو اونبی علیه السلام ته راوستلي شو.

**قوله:** ﴿ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ عَلَى خَمِيصَةٍ لِي ثَمَنُ ثَلَاثِينَ دِرْهَمًا فَجَاءَ رَجُلٌ فَاخْتَلَسَهَا مِنِّي فَأُخِذَ الرَّجُلُ الخ ﴾

## شرح الحديث والكلام عليه من حيث الفقه :

صفوان بن امیه رضی الله عنه فرمائي چه زه په مسجد کښې اودۀ ووم [1] په ما دپاسه یو څادر یا کمبل پروت وو چه د هغې قیمت دیرش درهمه وو یو سړې راغلو او زما نه ئې دا څادر یوړلو، هغه سړې اونیولي شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوستلي شو رسول الله صلی الله علیه وسلم د ثبوت سرقه نه پس د هغه د قطع ید حکم اوفرمائیلو. صفوان فرمائي چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې فیصله باندې زه د هغوی په خدمت کښې راغلم او ما عرض اوکړو چه صرف د دیرشو درهمو په وجه باندې زه نه غواړم چه د هغه لاس پرې کړې شی (په دې وجه زه دا حیله اختیاروم چه) زه دا څادر په هغه باندې قرض خرڅوم یعنی روستو به ترې نه پیسې اخلم، لهذا د هغه لاس دې پرې نه کړې شی په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو: ﴿فهلا كان هذا قبل ان تاتيني به﴾ چه تا دا صورت غل لره ماته د راوستلو نه مخکښې ولې اختیار نه کړو، مطلب دا دې چه قاضی ته د مسئلې د رسیدلو نه پس د سفارش او د ترک حد گنجائش باقی نه پاتې کیږی.

دا څادر د هغوی په بدن وو یا چرته وو د دې په باره کښې روایات مختلف دی کوم چه مصنف رحمه الله وړاندې خپله بیانوی، پس په یو روایت کښې دی: فَسَرَقَ خَمِيصَةً مِنْ تَحْتِ رَأْسِهِ او په دویم روایت کښې دی ﴿ فَنَامَ فِي الْمَسْجِدِ وَتَوَسَّدَ رِدَاءَهُ ﴾

د باب ړومبې روایت مطلق وو ﴿ علي خميصة ﴾ [2] او د دې دواړو نه معلومه شوه چه د سر نه لاندې ئې وو، د سر نه د لاندې کیدو په صورت کښې خو حرز بالاتفاق موندلې شی خو که څادر د اودۀ کیدونکی په خوا کښې کیخودلې شوې وی نو بیا به هم د صحیح قول په بناء په حرز کښې شمارلې کیږی، پس په حاشیه د بذل کښې دی: وفي الهداية بعد ما ذكر الحرز بالمكان وبالمحافظ ولا فرق بين ان يكون المحافظ مستيقظا او نائما والمتاع عنده او تحته هو الصحيح لانه يعد النائم عند متاعه حافظا له في العادة، یعنی کوم سړې چه د خپل سامان سره اودۀ وی نو په دې صورت کښې به هغه د خپل مال حفاظت او نگرانی کونکې عرفا گنړلې شی، قال ابن الهمام قوله هو الصحيح احتراز عن قول بعضهم باشتراط كون المتاع تحت راسه او تحت جنبه اه.

## په حدیث الباب کښې یوه بله مسئله :

په دې واقعه کښې یو اختلافی مسئله بله هم ده هغه دا چه قاضی د قطع ید د فیصلې کولو

---

[1] )مسجد المدينة او مسجد مكة قولان كما في الاوجز ٦٣/٦ هامش البذل)

[2] ) كذا في نسخة البذل علي بتشديد الياء وكذا في نسخة الشيخ ويحتمل ان يكون علي بحرف الجر علي خميصة وعلي هذا يمكن ان يحمل علي معني الروايتين الاخريين والله اعلم)

نه پس که مسروق منه یعنی مالک دڅیز سارق لره د مسروق څیز مالک جوړ کړي یا ئې د
هغه په لاس خرڅ کړي نو قطع د ید به وي او که نه ؟ مسئله اختلافي ده د احنافو په نزد خو
به قطع د ید نه وي، د شوافعو حنابله او ابویوسف په نزد به قطع د ید وي د حدیث الباب د
وجې، د طرفین د طرف نه د دې حدیث جواب په بذل المجهود کښې او د هغې نه په زیات
تفصیل سره په اوجز کښې ورکړې شوې دې، فارجع الیه لو شئت، مختصرا دا وئیلې کیدې شي
چه دلته د سارق دپاره ثبوت د ملک چرته اوشو څکه چه مسروق منه تملیک په طریقه د بیع
غواړي، او د بیع تحقق صرف په ایجاب سره نه شي کیدې تر څو چه قبول نه وي موندلې
شوې لهذا دا حدیث د هغوی خلاف نه دې. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذري.

## بَابٌ فِي الْقَطْعِ فِي الْعَارِيَةِ إِذَا جُحِدَتْ

**بابه څوک چه د استعمال دپاره یو څیز اما نتًا اوغواړي او بیا د هغې نه انکار اوکړي**

یعنی مستعیر که یو څیز په سوال باندې د اخستلو نه پس د عاریة اخستلو نه انکار اوکړي
نو په دې صورت کښې به قطع د ید وي یا نه؟ مسئله اختلافي ده کومه چه په "درمنضود"
کښې په باب في الحد یشفع کښې تیره شوې ده د دې باب حواله هم تیره شوې ده، وفي الهامش
البذل، قال ابن الهمام : بذلک قال اسحاق بن راهویه وهو روایة عن احمد، والجمهور على انها لا
تقطع الخ.....

[٤٣٩٥]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، قَالَ مَخْلَدٌ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ امْرَأَةً مَخْزُومِيَّةً كَانَتْ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَا فَقُطِعَتْ يَدُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ جُوَيْرِيَةُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَوْ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ زَادَ فِيهِ: وَأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ خَطِيبًا فَقَالَ: هَلْ مِنَ امْرَأَةٍ تَائِبَةٍ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَرَسُولِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَتِلْكَ شَاهِدَةٌ، فَلَمْ تَقُمْ وَلَمْ تَتَكَلَّمْ وَرَوَاهُ ابْنُ غَنَجٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ، قَالَ فِيهِ فَشَهِدَ عَلَيْهَا.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه یوې مخزومي ښځې به دخلقونه په سوال
څیزونه غوښتل او بیا به منکریدله نو نبی علیه السلام په دې باندې دلاس دکټ کولو حکم اوکړو
او ددې لاس پریکړې شو ، امام ابوداؤد فرمائي چه دا روایت جویریه دنافع نه او هغې دابن
عمرنه یاد صفیه بنت ابی عبیدنه نقل کړې دې او په دې کښې دا اضافه ده چه: نبی علیه السلام
دخطې ورکولو دپاره پاڅیدو او وئې فرمائیل : آیا داسې یوه ښځه شته هچه الله تعالی
اودهغه درسول په وړاندې توبه اوباسي او داخبره ئې درې پیرې اوفرمائیله او دغه ښځه
حاضره وه نه پاڅیدله او نه ئې خبرې وکړې. امام ابوداؤد فرمائي دا روایت ابن غنج دنافعنه
او هغه دصفیه بنت ابی عبیدنه نقل کړې دې او په دې کښې داسې دی چه په دې باندې ئې
گواهي ورکړله.

**قوله:** ﴿ وَزَادَ فِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَامَ خَطِيبًا فَقَالَ « هَلْ مِنِ امْرَأَةٍ تَائِبَةٍ إِلَى اللَّهِ

[1]: سنن النسائي/قطع السارق ٥ (٤٩٠٢)، (تحفة الأشراف: ٧٥٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥١/٢) (صحیح)

وَرَسُولِهِ ». ثَلاَثَ مَرَّاتٍ وَتِلْكَ شَاهِدَةٌ فَلَمْ تَقُمْ وَلَمْ تَتَكَلَّمْ ﴾
يعنى رسول الله ﷺ د دې امراة مخزوميه د قطع يد نه پس په ولاړه باندې خطبه ورکړه او په هغې کښې ئې بغير د هغه زنانه د نوم اخستلو نه توبې ترغيب ورکړو او درې کرته ئې اوفرمائيل هم د هغې مخزوميه په موجودګۍ کښې خو هغه اوندريده او نه ئې په ژبه باندې څه اووې، د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چه د اقامت حد نه پس هم د توبې احتياج باقي وي خو کوم علماء چه حد لره مکفر منى هغوى د دې جواب دا ورکولې شي چه د دې توبې تعلق د راروانې زمانې سره دې چه د بيا دپاره به دا حرکت نه کوم.

[٤٣٩٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ، عَنِ اللَّيْثِ، قَالَ: حَدَّثَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: كَانَ عُرْوَةُ يُحَدِّثُ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: "اسْتَعَارَتِ امْرَأَةٌ تَعْنِي حُلِيًّا عَلَى أَلْسِنَةِ أُنَاسٍ يُعْرَفُونَ وَلَا تُعْرَفُ هِيَ فَبَاعَتْهُ فَأُخِذَتْ فَأُتِيَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِقَطْعِ يَدِهَا وَهِيَ الَّتِي شَفَعَ فِيهَا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، وَقَالَ فِيهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَالَ".

دام المومنين عائشة ﷞ نه روايت دې فرمائى چه يوې ښځې کومه چه چانه پېژندله هغې ديوڅو معروفو او مشهورو کسانو په ذريعه باندې دچانه څه زيورات اوغوښتل اوبيا ئې خرڅ کړل اوددې پيسې په وخوړلې بيادابښځه ګرفتاره کړې شوه اونبى ﷺ ته راوستل شوه نبى ﷺ ددې دلاس پرېکولوحکم اوکړو اوداهغه ښځه ده دکومې په سلسله کښې چه اسامه بن زيد نبى ﷺ ته سفارش کړې وو اونبى ﷺ فرمائيلې وو څه چه ئې فرمائيل (کوم چه ډير مشهور دې).

**قوله:** ﴿ كَانَ عُرْوَةُ يُحَدِّثُ أَنَّ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتِ اسْتَعَارَتِ امْرَأَةٌ - تَعْنِي - حُلِيًّا عَلَى أَلْسِنَةِ أُنَاسٍ يُعْرَفُونَ وَلاَ تُعْرَفُ هِيَ فَبَاعَتْهُ فَأُخِذَتْ ﴾

دا حديث هم د هغه امرأة مخزوميه په باره کښې دې چه هغې يو ځل داسې اوکړل (بلکه دا خو د هغې عادت وو كما هو مصرح فى الرواية الاتية) چه يو کور ته لاړه او د هغوى نه ئې عارية د هغوى کالى راوړل د داسې خلقو په نوم باندې چه پېژندګلو کورنۍ وه، د نورو په نوم باندې ځکه چه دا خو خپله د دې لائق نه وو چه دا دې خلق اوپيژنى او په دې باندې اعتماد اوکړى، هم په دې وجه ئې د نورو په نوم باندې واخستل چه د فلانى کور زنانو ستاسو کالې په سوال باندې غوښتلې دې، وړاندې راوى وائى چه هغې د اخستلو نه پس هغه خرڅ کړو بيا روستو هغه او هم نيولې شوه او رسول الله ﷺ ته راوستلې شوه، رسول الله ﷺ د هغه د قطع يد حکم اوفرمائيلو. وړاندې راوى وائى چه دا هم هغه زنانه وه چه د هغې په باره کښې اسامه ﷜ رسول الله ﷺ ته سفارش کړې وو، او رسول الله ﷺ هغه سخته خبره ارشاد فرمائيلې وه کومه ئې چه فرمائيلې وه، د مصنف ﷫ مقصد دې رواياتو لره په دې باب کښې د راوړلو دا دې چه انکار د عارية نه په حکم د سرقه کښې دې، څنګه چه په سرقه کښې قطع د يد وى هم دغه شان به په دې کښې هم وى، لکه چه د اسحاق بن راهويه

[1] ): ● تخريج:صحيح البخاري/الشهادات ٨ (٢٦٤٨)، الحدود ١٥ (٦٨٠٠)، صحيح مسلم/الحدود ٢ (١٦٨٨)، سنن النسائي/قطع السارق ٥ (٤٩٠٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٦) (صحيح)

مذهب دې او د امام احمد يو روايت، وقد تقدمت المسئلة قبل ذلك مرارا، والجواب عنه ايضا من جانب الجمهور، والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[٤٣٩٧](1)حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَتِ امْرَأَةٌ مَخْزُومِيَّةٌ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَطْعِ يَدِهَا وَقَصَّ نَحْوَ حَدِيثِ قُتَيْبَةَ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ زَادَ، فَقَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهَا.

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه يوې مخزومي ښځې به دخلقونه په سوال څيزونه غوښتل اوبيابه منکريدله نونبی عليه السلام په دې باندې دلاس ذکټ کولو حکم اوکړو اوباقي حديث ئې دقتيبه دحديث په شان دليث نه اوهغه دابن شهاب نه بيان کړو اودا اضافه ئې وکړله چه نبی عليه السلام د دې لاس پرې کړو.

## بَابٌ فِي الْمَجْنُونِ يَسْرِقُ أَوْيُصِيبُ حَدًّا

### باب: يو ليونې غلا اوکړي يا د حد قابل جرم اوکړي دهغې بيان

[٤٣٩٨](2)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حَمَّادٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ: عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الْمُبْتَلَى حَتَّى يَبْرَأَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَكْبَرَ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی: قلم پورته کړې شوې دې (معاف کړې شوې دې) ددرې کسانونه يو اوده دې ترڅوچه پاڅيدلي نه وي بل مريض (ليونې) دې ترڅوچه روغ شوې نه وي اوبل ماشوم دې ترڅوچه بالغ شوې نه وي.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ (3) وَعَنِ الْمُبْتَلَى حَتَّى يَبْرَأَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَكْبَرَ »

رفع القلم کناية ده د عدم تکليف نه، رسول الله ﷺ ارشاد فرمائي چه درې کسان مرفوع القلم او غير مکلف دی او قابل د مواخذې نه دی، يو اودهٔ ترڅو چه بيدار شوې نه وی، او يو هغه چه په ليونتوب کښې اخته وی ترڅو چه په هوش کښې نه وی راغلې، او دريم نابالغ ماشوم ترڅو چه بالغ شوې نه وی.

د حديث نه د ترجمة الباب والا مسئلې حکم معلوم شو چه په هغه باندې به حد نه شی جاری کولې او نه به د هغه په دې کښې څهٔ گناه وی، يعنی د حقوق الله په اعتبار سره، خو په حقوق العباد کښې په د هغوی نه مطالبه کيږی پس که دا درې واړه د چا څهٔ نقصان اوکړی نو د هغوی په مال کښې به ضمان واجب وی (بذل) په حاشيه د بذل کښې حضرت شيخ ليکلې دی

(1): انظر حديث رقم: (٤٣٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٤٣) (صحيح)

(2): سنن النسائي/الطلاق ٢١ (٣٤٦٢)، سنن ابن ماجه/الطلاق ١٥ (٢٠٤١)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٠/٦، ١٠١، ١٤٤)، دي/ الحدود ١٣ (٢٣٤٣) (صحيح)

(3) لكن ذكر الحموي في الاشباه والنظائر وان النائم كالمستيقظ في خمس وعشرين مسئلة ثم بسطها، وكذا بسط الكلام في احكام الصبيان بما لا مزيد عليه وحديث الباب تكلم عليه صاحب العون ٢٤٤/٤ والحافظ في الفتح ٣١٦٧٩، و ٩٨/١٢ والعيني ٥٦١/٩، ١٥١/١١ (هامش البذل)

چه ډېر مسائل داسې دی چه په هغې کښې نائم په منزله د مستیقظ دې لکه چه په الاشباه والنظائر کښې دی. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۳۹۹] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أُتِيَ عُمَرُ بِمَجْنُونَةٍ قَدْ زَنَتْ فَاسْتَشَارَ فِيهَا أُنَاسًا فَأَمَرَ بِهَا عُمَرُ أَنْ تُرْجَمَ، مُرَّ بِهَا عَلَى عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رِضْوَانُ اللَّهِ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَا شَأْنُ هَذِهِ؟ قَالُوا: مَجْنُونَةُ بَنِي فُلَانٍ زَنَتْ فَأَمَرَ بِهَا عُمَرُ أَنْ تُرْجَمَ، قَالَ: فَقَالَ ارْجِعُوا بِهَا ثُمَّ أَتَاهُ، فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْقَلَمَ قَدْ رُفِعَ عَنْ ثَلَاثَةٍ: عَنِ الْمَجْنُونِ حَتَّى يَبْرَأَ، وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَعْقِلَ، قَالَ: بَلَى، قَالَ: فَمَا بَالُ هَذِهِ؟ تُرْجَمُ، قَالَ: لَا شَيْءَ قَالَ: فَأَرْسِلْهَا قَالَ: فَأَرْسَلَهَا قَالَ: فَجَعَلَ يُكَبِّرُ"

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه عمرفاروق رضي الله عنه په یوه لیونۍ راوستلې شوه چه زناني کړې وو اودخلقونه ئې ددې متعلق مشهوره واخستله نوعمرفاروق ددې درجم کولوحکم وکړونو په دې وخت کښې دلته دعلی رضي الله عنه تیریدل وشول ، هغه ددې متعلق تپوس وکړوخلقوورته ووئیل چه دا یوه لیونۍ ده د فلانۍ قبیلې ، زناني کړې ده، اوعمر ددې درجم کولوحکم کړې دې، علی رضي الله عنه اوفرمائیل چه دا واپس راولئ او بیا امیر المومنین ته ورغې اوعرض ئې وکړو چه اې امیر المومنین ایاتاته معلومه نه ده چه قلم پورته کړې شوې دې (معاف کړې شوې دې) ددرې کسانونه یواوده دې ترخوچه پاڅیدلې نه وې بل لیونې دې ترڅوچه روغ شوې نه وې اوبل ماشوم دې ترڅوچه بالغ شوې نه وې هغه ووئیل چه ولې راته نه ده معلومه علی ووئیل بیا دانبځه ولې رجم کولې شي عمر ووئیل ددې هیڅ وجه نشته راوی وائی بیا ئې پریخودله اوعمر شروع شوچه الله اکبر اوازونه شروع کړل.

## شرح الحدیث :

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أُتِيَ عُمَرُ بِمَجْنُونَةٍ قَدْ زَنَتْ فَاسْتَشَارَ فِيهَا أُنَاسًا فَأَمَرَ بِهَا عُمَرُ أَنْ تُرْجَمَ الخ﴾ مضمون حدیث دا دې چه د هغې راوی ابن عباس رضي الله عنهما دې چه د عمر رضي الله عنه په زمانه کښې هغوی ته یوه لیونۍ زنانه راوستلې شوه چه هغې زنا کړې وه. سیدنا عمر رضي الله عنه د دې په باره کښې د خلقو نه مشوره طلب کړه او بیا هغوی د هغې د رجم حکم اوفرمائیلو. کله چه هغه زنانه بوتلې شوه نو په لاره کښې په علی رضي الله عنه باندې تیره شوه نو هغوی تپوس اوکړو چه د دې څۀ معامله ده، دا چرته بوځئ، خلقو ورته صورت حال بیان کړو په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه دا واپس بوځئ او سیدنا عمر رضي الله عنه ته ئې عرض اوکړو چه اې امیر المومنین آیا تاسو ته معلومه نه ده چه درې کسان مرفوع القلم دی (چه په هغوی کښې یو لیونې هم دې) سیدنا عمر رضي الله عنه اوفرمائیل : ولې نه یعنی د هغوی تصدیق ئې اوکړو، نو علی رضي الله عنه تپوس اوکړو چه بیا دا تاسو ولې رجم کوئ نو هغوی اوفرمائیل : نه هیڅ خبره نه ده، علی رضي الله عنه اوفرمائیل بیا دا پریږدئ، په دې وینا باندې هغوی دا پریخودله.﴿قال فجعل یکبر﴾ سیدنا عمر رضي الله عنه د معاملې نزاکت باندې پوهیدلو سره تکبیر وئیل شروع کړل.

---

[١]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠١٩٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/ الحدود ١ (عقیب ١٤٢٣)، مسند احمد (١/١٥٥، ١٥٨) (صحیح)

**(حضرت عمر (رض) د رجم حکم ولې ورکړې وو؟)**

د دې واقعې توجیه امام خطابی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې د جنون دوه قسمونه دی یو مطبق او یو غیر مطبق، یعنی یو هغه چه په هغې کښې کله کله انسان روغ شی او بل هغه چه په هغې کښې انسان کله هم نه رغیږی هر وخت یو شان لیونې وی د عمر رضی الله عنه دا امر بالرجم د قسم اول دپاره نه وو بلکه د قسم ثانی دپاره وو او د هغوی مقصد دا وو چه که یو لیونې د روغ والی په حالت کښې زنا اوکړی او بیا روستو په هغه باندې لیونتوب راشی نو د هغه دا جنون د اقامت حد نه مانع کیدل نه دی پکار، او د علی رضی الله عنه د رائې حاصل دا دې چه جنون داسې شبهه ده چه د هغې د وجې نه د حد درأ کیدل پکار دی ځکه چه دا ضابطه ده، الحدود تدراء بالشبهات..... پس کیدې شی چه دې لیونۍ زنانه چه کومه زنا کړې وه هغه ئې د کامل روغ والی په حالت کښې نه وی کړې بلکه په داسې وخت کښې ئې کړې وی چه د لیونتوب اثر پکښې باقی وی، د علی رضی الله عنه د دې رائې د معلومیدو نه پس سیدنا عمر رضی الله عنه د هغې موافقت اوفرمائیلو او حد ئې د هغه ښځې نه ساقط کړو.

[۴۴۰۰](1) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ نَحْوَهُ، وَقَالَ أَيْضًا: حَتَّى يَعْقِلَ، وَقَالَ: وَعَنِ الْمَجْنُونِ حَتَّى يُفِيقَ، قَالَ: فَجَعَلَ عُمَرُ يُكَبِّرُ.

وکیع داعمش نه دتیر شوي روایت په شان روایت بیان کړې دې اودا اضافه ئې هم کړې ده ترڅوچه ماشوم عاقل شي اولیونې جوړشي راوی وائی چه په دې وخت کښې عمر رضی الله عنه تکبیرونیل شروع کړل.

[۴۴۰۱](2) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مُرَّ عَلَى عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِمَعْنَى عُثْمَانَ قَالَ: أَوَمَا تَذْكُرُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ عَنِ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ حَتَّى يُفِيقَ، وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَحْتَلِمَ، قَالَ: صَدَقْتَ قَالَ فَخَلَّى عَنْهَا.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه په علی رضی الله عنه تیرشو باقی روایت دعثمان د روایت په شان دې مګرددې اضافي سره چه: علی رضی الله عنه ورته ووئیل چه ایاتاته یاد نه دی چه نبی علیه السلام فرمائیلي دي: قلم پورته کړې شوي دې ددرې کسانونه یودلیونی نه چه عقل ئې مغلوب شوي وي ترڅوچه جوړ شوي نه وي اود اوده نه ترڅوچه بیدارشوي نه وي اودماشوم نه ترڅوچه محتلم شوي نه وي عمر رضی الله عنه ورته ووئیل رښتیادي ووئیل اوبیائې هغه زنانه پریخودله.

د دې نه په روستو روایت کښې دا زیادت دې چه علی رضی الله عنه.... عمر رضی الله عنه ته عرض اوکړو ﴿ وَإِنَّ هَذِهِ مَعْتُوهَةُ بَنِي فُلَانٍ لَعَلَّ الَّذِي أَتَاهَا أَتَاهَا وَهِيَ فِي بَلَائِهَا. قَالَ فَقَالَ عُمَرُ لَا أَدْرِي. فَقَالَ عَلِيٌّ (رض) وَأَنَا لَا أَدْرِي ﴾

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۹۶) (صحیح)
(2): انظر حدیث رقم: (۴۳۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۹۶) (صحیح)

[٤٤٠٢] (١) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ الْمَعْنَى، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، قَالَ هَنَّادٌ الْجَنْبِيُّ، قَالَ: "أُتِيَ عُمَرُ بِامْرَأَةٍ قَدْ فَجَرَتْ فَأَمَرَ بِرَجْمِهَا فَمَرَّ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَأَخَذَهَا، فَخَلَّى سَبِيلَهَا فَأُخْبِرَ عُمَرُ، قَالَ: ادْعُوا لِي عَلِيًّا فَجَاءَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ لَقَدْ عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ: عَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَبْلُغَ، وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الْمَعْتُوهِ حَتَّى يَبْرَأَ، وَإِنَّ هَذِهِ مَعْتُوهَةُ بَنِي فُلَانٍ لَعَلَّ الَّذِي أَتَاهَا وَهِيَ فِي بَلَائِهَا قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ: لَا أَدْرِي، فَقَالَ عَلِيٌّ عَلَيْهِ السَّلَام وَأَنَا لَا أَدْرِي".

د هناد الجنبی رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه عمرفاروق ته ښځه راوستلي شوه کوي چه بدعملي کړي وو نوعمرفاروق ددې په رجم کولوحکم وکړونو په دغه وخت کښې علی رضی الله عنه تیریدواودغه ښځه ئې ونیوله اوهغه ئې دحدنه خلاصه کړه نو په دې باره کښې عمرفاروق ته خبر ورسیدوهغه ووئیل علیه ماته راولی چنانچه علی رضی الله عنه راغې او وئې وئیل چه اې امیر المومنین تاته خو معلومه ده چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی ددرې کسانونه د مواخذې قلم پورته کړې شوي دي پونابالغه ماشوم دي ترڅوچه بالغ شوي نه وي اوبل اوده دې ترڅوچه ویخ شوي نه وي اوبل لیوني دې ترڅوچه روغ شوي نه وي اوداښځه دفلاني قبیلې لیونی ده شاید چابه ورسره دلیوتنوب په وخت کښې زنا کړې وی او دا د الله تعالٰی دطرف نه په مصیبت کښې مبتلاده عمرفاروق ووئیل ماته معلومه نه ده علی رضی الله عنه ووئیل ماته هم معلومه نه ده چه داښځه دزناپه وخت کښې لیونی وه اوکه نه وه.

دا هم هغه خبره ده کومه چه د امام خطابی رحمه الله په کلام کښ تیره شوه چه د هغې دا زنا د روغ والی په حالت کښ نه وی، عمر رضی الله عنه د روغ والی د حالت اعتبار کولو سره د رجم حکم فرمائیلي وو، او علی رضی الله عنه د شبه او تردد حالت ظاهر فرمائیلو سره عدم رجم ته ترجیح ورکړه کومه چه په اخر کښ سیدنا عمر رضی الله عنه هم اومنله.

والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[٤٤٠٣] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَام، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ: عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَحْتَلِمَ، وَعَنِ الْمَجْنُونِ حَتَّى يَعْقِلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَادَ فِيهِ وَالْخَرِفِ.

علی رضی الله عنه دنبی علیه السلام نه روایت بیانوي فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: ددرې کسانونه دمواخذې قلم پورته کړې شوي دي یو اوده دې ترڅوچه ویخ شوي نه وي اوبل یونابالغه ماشوم دي ترڅوچه بالغ شوي نه وي اوبل لیوني دې ترڅوچه روغ شوي نه وي، امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت ابن جریج دقاسم بن یزیدنه هغه دعلی رضی الله عنه نه اوهغه دنبی علیه السلام نه نقل کړې دي اودا اضافه ئې کړه ده چه دبوډانه څکه چه دهغه عقل ځي راځي.

﴿ عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– زَادَ فِيهِ « وَالْخَرِفِ » ﴾

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠١٩٦، ١٠٠٧٨) (صحيح)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٦/١، ١٤٠) (صحيح)

يعنى په يو روايت كښې د مجنون سره د خرف هم اضافه ده، خرف په فتح د خاء او په كسرې د راء سره اخستلې شوې دې د خرف نه وهو فساد العقل من الكبر، يعنى د بوډاوالى د وجې نه د عقل خرابيدل. وهو غير المجنون فان الجنون من الامراض السوداوية يقبل العلاج، والخرف بخلاف ذلک، ولهذا لم يقل فى الحديث حتى يعقل لان الغالب انه لا يبرأ من الى الموت. (بذل)
د حديث الباب په بعضو طرقو كښې دى ﴿عن المجنون﴾ او په بعضو كښې دى ﴿عن المجنون المغلوب على عقله﴾ او په يو كښې دى ﴿عن المعتوة﴾ حضرت خو په بذل كښې دا ليكلې دى: المعتوة اى المجنون لان العتة نوع من الجنون او په كوكب درى ۱/۳۵۰ كښې دى: كل طلاق جائز الاطلاق المعتوه المغلوب على عقله، باندې ليكلې دى: المراد بالمعتوه هنا المجنون ځكه چه په حديث كښې د المعتوه سره المغلوب على عقله مذكور دې لا المعنى المشهور وهو الذى ليس برشيد وليس له كثير تجربة وخبرة وبصيرة فى الامور اهـ يعنى د معتوه معنى خو په اصل كښې د بيوقوف ده خو هغه دلته نه ده مراد، د حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې دى: اختلف فى ان المعتوه فى حكم المجنون او الصبى.

## بَابٌ فِي الْغُلَامِ يُصِيبُ الْحَدَّ

### باب: نابالغ كه د حد قابل جرم اوكړى نو دهغې بيان

يعنى چه نابالغه ماشوم داسې جرم اوكړى چه موجب حد وى د بالغ په حق، د هغې په باره كښې په حاشيه د بذل كښې د شرح اشباه والنظائر نه نقل كړې دى چه د داسې هلک به تعزير كولې شى د ادب دپاره، او هم دغه شان حبس هغه هم تاديبا نه عقوبة.

[٤٤٠٤] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَيْرٍ، حَدَّثَنِي عَطِيَّةُ الْقُرَظِيُّ، قَالَ: "كُنْتُ مِنْ سَبْيِ بَنِي قُرَيْظَةَ فَكَانُوا يَنْظُرُونَ فَمَنْ أَنْبَتَ الشَّعْرَ قُتِلَ وَمَنْ لَمْ يُنْبِتْ لَمْ يُقْتَلْ فَكُنْتُ فِيمَنْ لَمْ يُنْبِتْ".

دعطية القرظى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه زه دبني قريظة په قيديانو كښې وم صحابه كرامو به كتل چه دچا زيرناف ويښته ټوكيدلي وونوهغه به ئې قتل كولو او دچا چه به نه وو راټوكيدلي نوهغه به ئې نه قتل كولو او زه په هغو ماشومانو كښې وم دچا چه نه وو راټوكيدلي.

**قوله:** ﴿حَدَّثَنِي عَطِيَّةُ الْقُرَظِيُّ قَالَ كُنْتُ مِنْ سَبْيِ بَنِي قُرَيْظَةَ فَكَانُوا يَنْظُرُونَ فَمَنْ أَنْبَتَ الشَّعْرَ قُتِلَ وَمَنْ لَمْ يُنْبِتْ لَمْ يُقْتَلْ فَكُنْتُ فِيمَنْ لَمْ يُنْبِتْ﴾ (2)

عطيه قرظى رضي الله عنه چه صحابى دې او د يهودو د بنو قريظه نه وو، د بنوقريظه په باره كښې په كتاب الجهاد كښې تير شوې دى چه د هغوى رجال قتل او نساء او صبيان رسول الله صلى الله عليه وسلم قيد فرمائيلې وو. او د چا په باره كښې ئې چه شبه وه د بلوغ او عدم بلوغ نو د هغې په باره كښې فيصله د نامهٔ نه لاندې ويښتو باندې اوكړې شوه، د چا چه انبات شوې وو هغه قتل كړې شو او دچا چه نه وو شوې هغه پريخودلې شو، نو دا عطيه د خپل ځان په باره كښې

(1): سنن الترمذي/السير ۲۹ (۱۵۸٤)، سنن النسائي/الطلاق ۲۰ (۳٤٦۰)، قطع السارق ١٤ (٤٩٨٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ٤ (۲٥٤٢)، (تحفة الأشراف: ٩٩٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٠/٤، ٣٨٣، ٣١٢/٥، ٣٨٣) (صحيح)

(2) قال الباجي ج ٣ ص ١٦٩ وبه قال اكثر اصحابنا في حقوق الناس لا حقوق الله الخ. (حاشية بذل)

فرمائي چه چونکه زما هم هغه وخت کښې انبات نه وو شوې په دې وجه پرېخودلې شوم اوم.

[٤٤٠٥] [1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَكَشَفُوا عَانَتِي فَوَجَدُوهَا لَمْ تَنْبُتْ، فَجَعَلُونِي فِي السَّبْيِ.

عبد الملک بن عمیر همدا روایت ددې اضافې سره بیان کړې دې : فرمائي چه هغوی زما شرم ګاه برېنډه کړه اووه ئې لیدل چه ویښته وربانډې نشته نوزه ئې په قیدیانوکښې شامل کړم.

**تشریح:** د دې نه پس حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما راروان دې چه هغوی د رسول الله ﷺ مخکښې پیش کړې شوې وو د غزوه احد په موقع باندې په جنګ کښې د شرکت دپاره خو رسول الله ﷺ اجازت نه وو ورکړې او حال دا چه د هغوی عمر څوارلس کاله وو، بیا د دې نه پس په راروان کال په غزوه خندق کښې د شرکت کولو دپاره پیش کړې شو نو هغه وخت رسول الله ﷺ اجازت اوفرمائیلو.

[٤٤٠٦] [2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَهُ يَوْمَ أُحُدٍ، وَهُوَ ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً فَلَمْ يُجِزْهُ وَعُرِضَهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً فَأَجَازَهُ".

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه ز نبی علیه السلام ته داحد په ورځ پیش کړې شوم اوڅوارلسو کالو وم نوماته ئې په جنګ کښې شاملیدو اجازت رانکو او په غزوه خندق کښې دپنځلسو کالووم نوبیائې راته اجازت راکړو.

**تشریح:** دا حدیث په کتاب الخراج باب متی یفرض للرجل فی المقاتلة، کښې تیر شوې دې. حدیث عطیة القرظي اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، وقال الترمذي، حسن صحيح، قاله المنذري.

[٤٤٠٧] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ نَافِعٌ: حَدَّثْتُ بِهَذَا الْحَدِيثِ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، فَقَالَ: إِنَّ هَذَا الْحَدُّ بَيْنَ الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ.

نافع وائي چه داحدیث مې عمر بن عبد العزیزته بیان کړوهغه ووئیل چه دبالغ اودنابالغ په مینځ کښې حد دې.

## بَابُ السَّارِقِ يَسْرِقُ فِي الْغَزْوِ أَيُقْطَعُ

### باب: څوک چه په غزوه (جهاد) کښې غلا اوکړی دهغه د لاس کټ کولو بیان

[٤٤٠٨] [3] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيِّ، عَنْ شُيَيْمِ بْنِ بَيْتَانَ، وَيَزِيدَ بْنِ صُبْحٍ الْأَصْبَحِيِّ، عَنْ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، قَالَ: كُنَّا مَعَ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ فِي الْبَحْرِ فَأُتِيَ بِسَارِقٍ يُقَالُ لَهُ: مِصْدَرٌ قَدْ سَرَقَ بُخْتِيَّةً فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تُقْطَعُ الْأَيْدِي فِي السَّفَرِ وَلَوْلَا ذَلِكَ لَقَطَعْتُهُ".

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٩٠٤) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: (٢٩٥٧)، (تحفة الأشراف: ٨١٥٣) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/الحدود ٢٠ (١٤٥٠)، سنن النسائي/قطع السارق ١٣ (٤٩٨٢)، (تحفة الأشراف: ٢٠١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨١/٤) (صحيح)

دجناده بن ابو امیه نه روایت دې فرمائی چه مونږ د بسر بن ارطاة سره په سمندر کښې سفر کولو اوهغه ته یو غل راوستلې شو چه نوم ئې مصدر وو هغه یو اوښ پټ کړې وو هغه اوونیل مادنبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمائیل ئې دسفرپه دوران کښې به دالاس نشي کټ کولې په دې بنا باندې زه دده لاس نه پریکوم اوکه داسې نه وې نوخامخا به مې دده لاس پریکړې وو.

**قوله:** ﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لاَ تُقْطَعُ الأَيْدِى فِى السَّفَرِ ». وَلَوْلاَ ذَلِكَ لَقَطَعْتُهُ ﴾

مضمون حدیث دا دې جنادة بن امیه فرمائی چه زه د بسر بن ارطاة سره اوم په دریابی سفر کښې نو یو غل راوستلې شو چه د هغه نوم مصدر وو چا چه یو بختی اوښ پټ کړې وو نو هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي وو هغوی به فرمائیل چه په سفر کښې لاس نه دی پرې کول پکار، او که دا د سفر حالت نه وې نو ما به د ده لاس پرې کړې وو.

## الكلام على الحديث من حيث الفقه:

په بذل کښې لیکلې دی چه دا حدیث امام اوزاعی اختیار کړې دې، اکثر فقهاء کرام د دې قائل نه دی، بعضو دا جواب ورکړې دې چه دا حدیث ضعیف دې، او بعضو وئیلې دی چه د دې نه په مال غنیمت کښې غلا کول مراد دی او چونکه په غنیمت کښې د هغه هم حصه ده په دې وجه قطع دید به نه شی کولې، او د دې یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه دا د هغه سړی په باره کښې دې چه د هغه د قطع ید د وجې نه د لحوق بدار الحرب ویره وی اهـ

او د جمهورو دلیل د سیدنا عباده ﷺ دا حدیث دې ﴿ جاهدوا الناس فی الله القریب والبعید، ولا تبالوا فی الله لومة لائم، واقیموا حدود الله فی الحضر والسفر، رواه عبدالله بن احمد فی مسند ابیه ﴾ یعنی د زوائد مسند احمد روایت دې، قال فی مجمع الزوائد : يشهد لِصِحَّتِهِ عُمُومَاتُ الْكِتَابِ وَالسُّنَّة وَإِطْلَاقَاتها لِعَدَمِ الْفَرْق فِيهَا بَيْنَ الْقَرِيب وَالْبَعِيد وَالْمُقِيم وَالْمُسَافِر اِنْتَهَى (عون) امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په باره کښې فرمائی: ﴿ والعمل على هذا عند بعض أهل العلم منهم الأوزاعي لا يرون أن يقام الحد في الغزو بحضرة العدو مخافة أن يلحق من يقام عليه الحد بالعدو فإذا خرج الإمام من أرض الحرب ورجع إلى دار الإسلام أقام الحد على من أصابه كذلك قال الأوزاعي اهـ.

## په دار الحرب کښې حد جاری کول پکار دی یا نه؟

او په دې کښې د حضرت شیخ رائې کوم چه حضرت په حاشیه د بذل کښې لیکلې ده، والظاهر عندی اخذ به الحنفية، والمعنى ان الحدود لا تقام فى دار الحرب كما فى البدائع ۱۳۱/۷ وهو يخالف ما فى الكوكب ۴۰۴/۱ [1]وفى المغنى ۵۳۷/۱ لا يقام الحد فى دار الحرب وبه قال الاوزاعى ويقام اذا رجع وقال الحنفية : ولا اذا رجع وقال مالک والشافعی يقام فيه ايضا، واستدل

[1] یعنی د صاحب کوکب رائې دا نه ده څه چه حضرت شیخ فرمائی، په کوکب کښې خو دا لیکلې دی چه عدم اقامة د حد که د لحوق د ویرې نه وی نو بیا به دا عدم اقامت حد موقت وی دار الاسلام ته د واپس کیدو پورې وعلی هذا فالنفي علي الستحباب لانه لا يجوز اقامة الحدود هناك اهـ من الكوكب)

لمذهبه بحديث الباب، يعني چونکه دا واقعه د دارالحرب وه په دې وجه هغه صحابي حد جاري نه کړو، او د احنافو مسلک هم دا دې چه په دار الحرب کښې دې حد جاري نه کړې شي لکه چه په بدائع وغيره کښې د دې تصريح ده، او د امام احمد رحمه الله مذهب لکه چه په مغني کښې دی دا دې چه په دارالحرب کښې دې خو حد قائم نه کړې شي خو د واپسئ نه پس دې قائم کړې شي او هم دا مذهب هغوی د امام اوزاعی هم منلې دې، او د احنافو مذهب ئې دا ليکلې دې چه د هغوی په نزد به د واپسئ نه پس حد قائمولې شی، او د امام مالک او امام شافعی مسلک دا دې چه هم په دار الحرب کښې دې حد قائم کړې شي.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، وقال الترمذی غريب، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي قَطْعِ النَّبَّاشِ

### باب: د کفنونو د غلا کونکی د لاس کټ کولو بيان

نباش هغه سړې چه نبش د قبورو کوی يعني قبر کنستلو سره کفن غلا کوی، مسئله مختلف فيه ده، د طرفين (امام ابوحنيفه او امام محمد) په نزد دې کښې قطع نشته وبه قال الثوری والزهری، او د ائمه ثلاث او امام ابويوسف رحمه الله په نزد په دې کښې قطع د يد شته كذا في المرقاة (حاشيه مشكوة ۳۰۶) واحكام القرآن للجصاص (هامش البذل) د احنافو په نزد عدم قطع په دې وجه ده چه قبر حرز نه دې،

[۴۴۰۹](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ، عَنِ الْمُشَعَّثِ بْنِ طَرِيفٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ، قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ، فَقَالَ: كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ يَعْنِي الْقَبْرَ؟ قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، أَوْمَا خَارَ لِي اللَّهُ وَرَسُولُهُ، قَالَ: عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ، أَوْقَالَ: تَصْبِرُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ يُقْطَعُ النَّبَّاشُ: لِأَنَّهُ دَخَلَ عَلَى الْمَيِّتِ بَيْتَهُ.

دابوذر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه ماته نبی عليه السلام اوفرمائيل ای ابوذر ماعرض اوکړو حاضريم او اطاعت ګذاريم اي دالله رسوله نبی عليه السلام اوفرمائيل کله چه خلقو ته مرګ راشي نوته به په دغه وخت کښې څه کوي؟ او په دغه وخت کښې به ګور (قبر) دخادم په عوض وي ماعرض اوکړو الله اودهغه رسول ښه پوهيږي يامي داسي اووئيل الله اودهغه رسول چه زما په باره کښې څه اوفرمائيل نوزه به هم هغسي کوم نبی عليه السلام اوفرمائيل په تاباندې صبر کول ضروری دی. امام ابوداؤد فرمائی حماد بن ابی سلمه وئيلی دی چه دکفن پټونکي لاس به پريکولې شي ځکه چه دې دمړي کورته داخل شوې دې.

او د جمهورو استدلال د حديث الباب نه دې چه په هغې کښې دادی« « يَا أَبَا ذَرٍّ ». قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ فَقَالَ كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ يَعْنِي الْقَبْرَ » دا حديث په کتاب الفتن کښې تير شوې دې، په دې حديث کښې چونکه په قبر باندې د بيت اطلاق کړې شوې دې په دې باندې جمهورو په خپل مسلک باندې استدلال کړې

(1): انظر حديث رقم: (۴۲۶۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۴۷) (صحيح)

دې، بذل کښې په دې باندې ليکلي دی چه اګر چه په حديث کښې په قبر باندې د بيت اطلاق کړې شوې دې خو کله چه کور خالي وی او په هغې باندې څوک نګران او محافظ نه وی نو هغه حرز نه وی، والحديث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذري.

## باب في السارق يسرق مرارا

### باب: څوک چه بار بار غلا کوی دهغه د حکم بيان

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:**

يعنی که يو سړې بار بار غلا اوکړی نو د هغه څه حکم دې؟ په دې مسئله کښې احناف او حنابله يو طرف ته دی او مالکيان او شوافع بل طرف ته، زمونږ په نزد په سرقه اولی کښې ښې لاس او په ثانيه کښې ګسه خپه، که د دې نه پس غلا اوکړی نو د قطع سزا نشته بلکه تعزير او حبس دائم دې تر دې چه توبه اوباسی، او د شوافعو او مالکيانو په نزد دريم ځل کښې ګس لاس او څلورم ځل کښې ښئ خپه پريکول دی، که د دې نه پس اوکړی نو تعزير او حبس دې، او حديث الباب د دې ټولو خلاف دې.

[۴۴۱۰] () حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عَقِيلٍ الْهِلَالِيُّ، حَدَّثَنَا جَدِّي، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ ثَابِتِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: جِيءَ بِسَارِقٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "اقْتُلُوهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا سَرَقَ، فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، قَالَ: فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّانِيَةَ، فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا سَرَقَ، فَقَالَ: اقْطَعُوهُ، قَالَ: فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّالِثَةَ، فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا سَرَقَ فَقَالَ: اقْطَعُوهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ الرَّابِعَةَ، فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا سَرَقَ، قَالَ: اقْطَعُوهُ فَأُتِيَ بِهِ الْخَامِسَةَ، فَقَالَ: اقْتُلُوهُ، قَالَ جَابِرٌ: فَانْطَلَقْنَا بِهِ فَقَتَلْنَاهُ ثُمَّ اجْتَرَرْنَاهُ فَأَلْقَيْنَاهُ فِي بِئْرٍ وَرَمَيْنَا عَلَيْهِ الْحِجَارَةَ".

د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام ته يو غل پيش کړې شو نبی عليه السلام اوفرمائيل دې قتل کړئ صحابه کرامو عرض اوکړو اې د الله رسوله ده خو غلا کړې ده. نبی عليه السلام اوفرمائيل دده لاس پريکړئ راوی وائی چه دده لاس پريکړې شو، يوه ورځ همدا غل دوباره راوستلې شو نونبی عليه السلام دده د قتل حکم وکړو صحابه کرامو عرض اوکړو اې د الله رسوله ده خو غلا کړې ده نبی عليه السلام اوفر مائيل دده خپه پريکړئ نو دده يوه خپه پريکړې شوه ددينه پس دريم ځل بيا راوستلې شونبی عليه السلام دده د قتل حکم وکړونوبياعرض اوکړې شواې د الله رسوله ده خو غلا کړې ده نبی عليه السلام اوفرمائيل نو دده بل لاس پريکړې شو ددينه پس په څلورم ځل بيا راوستلې شو نبی عليه السلام اوفرمائيل قتل ئې کړئ صحابه کرامو عرض اوکړو اې د الله رسوله ده خوغلا کړې ده نبی عليه السلام اوفرمائيل نو دده بله خپه پريکړې شوه کله چه په پنځم ځل راوستلې شو نو دده دقتل کولو حکم ئې وکړو جابر فرمائی چه بيا مونږه دې بوتلو اوقتل موکړو او يوکوهي ته مو وروغور ځوو اودبره نه موپه کانړو او ويشتو.

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ جِيءَ بِسَارِقٍ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « اقْتُلُوهُ ». فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّمَا سَرَقَ. فَقَالَ « اقْطَعُوهُ ». قَالَ فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّانِيَةَ الخ﴾

[1]: سنن النسائي/قطع السارق ۱۲ (۴۹۸۱)، (تحفة الأشراف: ۳۰۸۲) (ضعيف)

يعني يو غل رسول اللهﷺ ته راوستلې شو نو هغوی اوفرمائيل دې قتل کړئ، په دې باندې صحابه کرامو ﷢ عرض اوکړو يا رسول اللهﷺ! دې سړی صرف غلا کړې ده (نو د قتل حکم ولې؟) رسول اللهﷺ اوفرمائيل ښه لاس ترې نه پرې کړئ، پس هم دغه شان اوکړې شو، بيا په دويم ځل هم هغه غل راوستلې شو او دريم ځل هم او څلورم ځل هم، هر ځل به ئې د قتل حکم فرمائيلو او د صحابه کرامو ﷢ په عرض کولو باندې به ئې په ځائې د قتل د قطع حکم فرمائيلو، تر دې چه د هغه څلور واړه لاسونه او خپې پرې کړې شو بيا هغه په پنځم ځل راوستلې شو، رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ اقْتُلُوه،قَالَ جَابِرٌ فَانْطَلَقْنَا بِهِ فَقَتَلْنَاهُ ثُمَّ اجْتَرَرْنَاهُ فَأَلْقَيْنَاهُ فِي بِئْرٍ وَرَمَيْنَا عَلَيْهِ الْحِجَارَةَ ﴾ دې قتل کړئ سيدنا جابر ﷜ فرمائی چه مونږ هغه بوتلو او قتل مو کړو او بيا مو راښکلو او په کوهی کښې مو ګزار کړو او دپاسه مو پرې کانړې کيخودل پس انجام د هغه سړی هم هغه شو کوم چه الله پاک په لسان نبوت باندې د شروع نه جاری کړې وو. د دې حديث نه معلوميږی چه په سرقه کښې به د څلورو واړو لاسو او خپو قطع کولې شی لکه چه د شوافعو او مالکيانو مسلک دې خو په دې حديث کښې پنځم ځل د سارق د قتل حکم کړې شوې دې د کوم چه دا دواړه امامان قائل نه دی بلکه څوک ئې هم په ائمه اربعه کښې قائل نه دې، خو ابومصعب مالکی د دې قائل دې.

**حديث د ائمه اربعه خلاف دې د دې جوابات :**

لهذا دا حديث د هغه دواړو امامانو هم خلاف دې، د دې حديث په توجيه کښې په مختلفو آراء کښې وئيلې شوې دی چه دا قتل د هغه د ارتداد د وجې نه وو ﴿ ولذا جرده ولم يصلوا عليه ولم يدفنوه ﴾ او يو قول دا دې چه دا حديث منسوخ دې لحديث لا يحل دم امرئ مسلم الا باحدی ثلاث، او د امام نسائی رائې دا ده چه الحديث منکر غير صحيح مصعب بن ثابت راوی غير قوی دې، قال النسائی ولا اعلم فی هذا الباب حديثا صحيحا، يعنی د قتل سارق په باره کښې هيڅ حديث صحيح نشته، او د حافظ ابن القيم ﷫ رائې په دې کښې دا ده چه د قتل شارب فی الرابعة حکم او هم دغه شان د قتل سارق حکم که حديث صحيح شی نو په مصلحت او تعزير باندې محمول دې، د علامه شامی رائې هم دا ده چه دا قتل سياسة وو. (هامش البذل)

اصل مترجم بها چه يو اختلافی مسئله ده کما سبق بيان الاختلاف په دې کښې يو صحيح حديث مرفوع نشته، د شوافعو او مالکيانو استدلال د حديث الباب نه دې چه په هغې باندې کلام پورته تير چه هغه خو د هغوی هم خلاف دې، بله دا چه حديث منکر دې لکه چه امام نسائی ﷫ فرمائی.

**په مسئلة الباب کښې د احنافو دليل :**

هم دغه شان د احنافو استدلال هم په دې باره کښې د صحابه کرامو ﷢ د آثارو نه دې پس

په هدایه ۲/۵۳۷ کښې دی: ولنا قول علي رضي الله عنه فيه [1] إني لأستحي من الله تعالى أن لا أدع له يدا يأكل بها ويستنجي بها ورجلا يمشي عليها وبهذا حاج بقية الصحابة رضي الله عنهم فحجهم فانعقد إجماعا ولأنه إهلاك معني لما فيه من تفويت جنس المنفعة والحد زاجر (اى لا متلف) ولأنه نادر الوجود والزجر فيما يغلب وقوعه بخلاف القصاص [2] لأنه حق العبد فيستوفى ما أمكن جبرا لحقه والحديث طعن فيه الطحاوي رحمه الله أو نحمله على السياسة اه د دې حدیث نه مراد هغه دی کوم چه په شروع کښې د امام شافعی رحمه الله د طرف نه صاحب هدایه نقل کړی دی، و لفظه: من سرق فاقطعوه فان عاد فاقطعوه فان عاد فاقطعوه.

او په موطاء د امام محمد رحمه الله کښې دی: وقد بلغنا ان عمر بن الخطاب وعن علي بن أبي طالب أنهما لم يزيدا في القطع على قطع اليمنى أو الرجل اليسرى فإن أتي به بعد ذلك لم يقطعاه وضمناه. وهو قول أبي حنيفة والعامة من فقهائنا رحمهم الله....... دا روایت د بلاغات موطاء نه دې چه د هغې مضمون دا دې چه د عمر او علی رضی الله عنهما نه د غل په باره کښې صرف اول ځل او دویم ځل قطع ثابت ده د دې نه پس د دې دواړو نه تضمین ثابت دې یعنی د سارق نه به د مال مسروق ضمان اخستلې شی، او په اول او دویم ځل به قطع د ید او رجل وی تضمین به نه وی، وهذا عند ابى حنيفة خلافا للشافعي وغيره والمسئلة مبرهنة فى كتب الاصول (كذا فى التعليق الممجد) وحديث الباب اخرجه النسائي وقال هذا منكر، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي السَّارِقِ تُعَلَّقُ يَدُهُ فِي عُنُقِهِ

**باب: د غل لاس به د کټ کولو نه پس د هغه په غاړه کښې زوړند ولې شی**

یعنی د غل لاس دې د پرې کولو نه پس د هغه په مرئ کښې زوړند کړې شی، په حدیث الباب کښې هم داسې دې.

[٤٤١١] [3] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَيْرِيزٍ، قَالَ: سَأَلْنَا فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ عَنْ تَعْلِيقِ الْيَدِ فِي الْعُنُقِ لِلسَّارِقِ أَمِنَ السُّنَّةِ هُوَ؟ قَالَ: "أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

[1] یعنی د احنافو دلیل په دې کښې د علی رضی الله عنه قول دې هغوی فرمائی چه ماته حیاء راځی د الله پاک نه په دې خبره چه زه په غلا کښې د غل نه لاس پریږدم چه په هغې باندې هغه خوراک اوکړې او استنجاء اوکړی او نه ئې خپه پریږدم چه په هغې باندې هغه اوګرځېدلې شی، هم دا دلیل هغوی د صحابه کرامو رضی الله عنهم مخکښې پیش اوفرمائیلو چه د هغې په وجه علی رضی الله عنه په هغوی باندې غالب شو، پس ګویا په دې باندې اجماع منعقد شوه، او دویمه وجه دا ده چه دا سزا (څلور واړه لاس خپې پرې کول) دا خو په حقیقت کښې انسان لره بالکل هلاکول دی د جنس منفعت د فوت کیدو د وجې نه حال دا چه په حد سره مقصود زجر دې نه تلف کول، او دریمه وجه دا ده چه د یوې خپې او یو لاس پرې کیدلو نه پس بیا په دریم او څلورم ځل هم څوک غلا اوکړی داسې خو ډیر قلیل او نادر دی حال دا چه زجر کوم چه مقصود بالحد دې هغه خو په هغه جرمونو کښې دې هغه په کثیر الوقوع وی، وړاندې یو دفع د دخل مقدر ده)

[2] دا دفع د دخل مقدر ده هغه دا چه که یو سړې د چا څلور واړه لاسونه او خپې پرې کړی نو د هغې په بدله کښې به د هغه جنایت کونکی هم څلور واړه لاسونه او خپې پرې کولې شی، وحاصل الجواب ان القصاص حق العبد واما قطع اليد في السرقة فهو من قبيل حق الله تعالي)

[3] : سنن الترمذي/الحدود ١٧ (١٤٤٧)، سنن النسائي/قطع السارق ١٥ (٤٩٨٥)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢٣ (٢٥٨٧)، (تحفة الأشراف: ١١٠٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩/٦) (ضعيف)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ فَقُطِعَتْ يَدُهُ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ".

عبدالرحمن بن محيريز وئيلي دي چه مونږ دفضاله بن عبيد که نه تپوس اوکړو چه ايا دغل لاس دپريکولونه پس دهغه په غاړه کښې زوړندول سنت دي؟ هغه په جواب کښې اووئيل يوغل نبی عليه السلام ته مخامخ کړې شو اودهغه لاس پريکړې شوې وونبی عليه السلام دهغه په غاړه کښې دهغه دلاس زوړندولو حکم وکړو چنانچه دهغه په غاړه کښې دهغه لاس زوړند کړې شو.

**قوله**: ﴿ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِسَارِقٍ فَقُطِعَتْ يَدُهُ ثُمَّ أُمِرَ بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ ﴾

د شوافعو او د حنابله په نزد تعليق مسنون دې پس په مغنی کښ دی : ويسن تعليق اليد في عنقه لما روى فضالة بن عبيد الخ يعني حديث الباب، رواه ابوداؤد وابن ماجه، وفعل ذلک علی رضي الله عنه اه قال ابن الهمام ٢٤٨/٤ وَيُسَنُّ تَعْلِيقُ يَدِهِ فِي عُنُقِهِ لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَ بِهِ وَعِنْدَنَا ذَلِكَ مُطْلَقٌ لِلْإِمَامِ إنْ رَآهُ ، وَلَمْ يَثْبُتْ مِنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي كُلِّ مَنْ قَطَعَهُ لِيَكُونَ سُنَّةً ﴾ يعنی د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تعليق اليد د هر سارق په باره کښ نه دې ثابت چه دې ته سنت اووئيلې شی، لهذا د امام په رائې ده که د هغه خوښه وی. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

## باب بَيْعِ الْمَمْلُوكِ إِذَا سَرَقَ

### باب: کوم غلام چه غلا اوکړی دهغه د خرڅولو بيان

[٤٤١٢] [1] حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَرَقَ الْمَمْلُوكُ فَبِعْهُ وَلَوْ بِنَشٍّ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت ئې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی کله چه يوغلام غلاوکړي نوخرڅ ئې کړئ هغه اګرچه په ډير کم قيمت باندې خرڅ کړې شي.

**قوله**: ﴿ إِذَا سَرَقَ الْمَمْلُوكُ فَبِعْهُ وَلَوْ بِنَشٍّ ﴾ د ابوهريره رضي الله عنه حديث مرفوع دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه که د چا غلام غلا اوکړی نو هغه دې خرڅ کړی اګر چه په هر څومره کم قيمت باندې ولې نه وی، نش وئيلې شی نصف اوقيه ته يعنی شل درهمه، د حضرت ګنګوهی په تقرير کښ دی چه مصنف رحمه الله دا حديث دلته راوړلو په دې لحاظ سره چه دا هغه څيز لره په کم قيمت باندې خرڅول هم يو قسم تعزير دې. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

## باب فِي الرَّجْمِ

### باب: د رجم د احکامو بيان

[٤٤١٣] [2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ فَإِنْ شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا سورة النساء آية ١٥، وَذَكَرَ الرَّجُلَ بَعْدَ

[1]: سنن النسائي /قطع السارق ١٣ (٤٩٨٣)، سنن ابن ماجه /الحدود ٢٥ (٢٥٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٧٩) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٧) (حسن الإسناد)

الْمَرْأَةِ ثُمَّ جَمَعَهُمَا، فَقَالَ: وَاللَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنْكُمْ فَآذُوهُمَا فَإِنْ تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا سورة النساء آية ١٦، فَنَسَخَ ذَلِكَ بِآيَةِ الْجَلْدِ، فَقَالَ: الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ سورة النور آية ٢".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه دالله تعالی داقول: «واللاتي يأتين الفاحشة من نسائكم فاستشهدوا عليهن أربعة منكم فإن شهدوا فأمسكوهن في البيوت حتى يتوفاهن الموت أو يجعل الله لهن سبيلا» په دې کښې دسړي ذکريس دښځې نه دي ، اوبيائي دواړه په لانديني ايت کښې جمع کړي دي: «واللذان يأتيانها منكم فآذوهما فإن تابا وأصلحا فأعرضوا عنهما» نودا ايت ددرويه ايت باندې منسوخ شوي دي يعني: «الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة».

**قوله:** ﴿ عن ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ (وَاللاَّتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ فَإِنْ شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلا ﴾

**ترجمه** : کومې زنانه چه ستاسو د ښځو نه د بې حيايئ ارتکاب اوکړی نو تاسو په هغوی باندې څلور ګواهان قائم کړئ پس کله چه ګواهان قائم شی نو تاسو في الحال هغه زنانو لره په کور کښې بندې کړئ تردې چه په هغوی باندې مرګ راشی يا الله پاک د هغوی دپاره بل څه صورت تجويز کړی دا د شروع حکم دې د حد د زنا د نزول نه مخکښې، پس کله چه حد زنا مشروع شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل لکه چه د باب په دويم حديث کښې راروان دی: ﴿ حذوا عنی خذوا عنی قد جعل الله لهن سبيلا ﴾ زما نه د داسې زنانو حکم واخلئ (يعنی زده کړئ) الله پاک د هغوی دپاره فيصله اوفرمائيله

**قوله:** ﴿ وَذَكَرَ الرَّجُلَ بَعْدَ الْمَرْأَةِ ثُمَّ جَمَعَهُمَا فَقَالَ (وَاللَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنْكُمْ فَآذُوهُمَا فَإِنْ تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَا) ﴾

په اول آيت کريمه کښې صرف د زنانو حکم وو، او په دويم روايت کښې ﴿ والذان ياتيانها ﴾ د دواړو ذکر جمع کړې شو، هم دي لره ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه الله پاک ذکر کړو سړی لره د ښځې نه پس په داسې طريقه چه دواړه ئې جمع کړل، په دې آيت کريمه کښې هم څه خاص حد د زنا مذکور نه دې بلکه دا پکښې دی: ﴿ آذوهما ﴾ چه کوم سړی او زنانه زنا اوکړی نو هغوی ته تکليف ورکړئ، هم په دې وجه ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی ﴿فَنَسَخَ ذَلِكَ بِآيَةِ الْجَلْدِ فَقَالَ (الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ)﴾ په دې آيت کريمه کښې هغه سبيل ذکر دې د کوم وعده چه په اول آيت کريمه کښې کړې شوې وه.

[٤٤١٤] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ مَسْعُودٍ، عَنْ شِبْلٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: السَّبِيلُ الْحَدُّ، قَالَ سُفْيَانُ فَآذُوهُمَا سورة النساء آية ١٦ الْبِكْرَانِ، فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ سورة النساء آية ١٥ الثَّيِّبَاتُ.

دامام التفسير مجاهدنه روايت دي فرمائی چه دالله تعالی په قول کښې دسبيل نه مراد حد دې ، سفيان وئيلی دی پدې ايت کښې د «فآذوهما» نه مراد غير شادي شده کسان دي اود

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٢٦٧) (حسن)

«فأمسكوهن في البيوت» نه مراد واده شوی کسان دي.

[٤٤١٥]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ حِطَّانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّقَاشِيِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُذُوا عَنِّي خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا الثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَرَمْيٌ بِالْحِجَارَةِ وَالْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَنَفْيُ سَنَةٍ".

دعبادة بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی زمانه زده کړئ زمانه زده کړئ يقينا الله تعالى ددوی دپاره الارمقررکړي ده چه ثيب کله دئيي سره زنا وکړي نوددوی دپاره سل کوړي اوډسنګسارولوحکم دي اوکله چه څلني دپيغلې سره زنا وکړي نودوی دپاره سل کوړي اودوطن نه شرل پکاردي.

**قوله:** ﴿ الثَّيِّبُ ([2])بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَرَمْيٌ بِالْحِجَارَةِ وَالْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَنَفْيُ سَنَةٍ ﴾ په آيت کريمه کښ صرف د بکر حکم مذکور دي او په دې حديث کښ د بکر او ثيب دواړو، د ثيب نه مراد وادۀ کړې نه دي بلکه محصن مراد دی ([3])د دې سزا په دې حديث کښ رجم او سل کوړې او د بکر يعنى غير محصن سزا سل کوړې او يو کال دپاره جلا وطن کول دی چه هغې ته تغريب عام وائى بيان کړې شوې ده. جمع بين الرجم والجلد يعنى د رجم سره سل کوړې هم ورکول دا د امام احمد، اسحاق بن راهويه او داؤد ظاهری مسلک دې، او ائمه ثلاث او په يو روايت کښ امام احمد رحمه الله رجم سره د کوړو قائل نه دې د هغوی په نزد دا د جمع کولو حکم منسوخ دې او ناسخ د دې دپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم فعل دې د ماعز بن مالک اسلمی رضي الله عنه سره چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوی صرف رجم کړل بغير د جلد نه او په بکر کښ جلد مائة يعنى سل کوړو سره تغريب عام يعنى يو کال دپاره جلا وطن کول دا د ائمه ثلاث مسلک دې، احناف د نفی سنة قائل نه دی يعنى دا د حد جزء نه ګڼړی بلکه دا په سياست باندې محمول کوی، په بذل کښ په دې اختلافاتو باندې په تفصيل سره کلام کړې شوې دې او په آخير کښ د بدائع نه نقل کړې شوې دی:

(وَلَنَا) قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ { الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ } وَالِاسْتِدْلَالُ بِهِ مِنْ وَجْهَيْنِ: أَحَدُهُمَا أَنَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَمَرَ بِجَلْدِ الزَّانِيَةِ وَالزَّانِي، وَلَمْ يَذْكُرْ التَّغْرِيبَ، فَمَنْ أَوْجَبَهُ فَقَدْ زَادَ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالزِّيَادَةُ عَلَيْهِ نَسْخٌ، وَلَا يَجُوزُ نَسْخُ النَّصِّ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ، وَالثَّانِي – أَنَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى جَعَلَ الْجَلْدَ جَزَاءً، وَالْجَزَاءُ اسْمٌ لِمَا تَقَعُ بِهِ الْكِفَايَةُ مَأْخُوذٌ مِنْ الِاجْتِزَاءِ – وَهُوَ الِاكْتِفَاءُ –

---

[1]): صحيح مسلم/الحدود ٣ (١٦٩٠)، سنن الترمذي/الحدود ٨ (١٤٣٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ٧ (٢٥٥٠)، (تحفة الأشراف: ٥٠٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٧٥، ٥/٣١٣، ٣١٧، ٣١٨، ٣٢٠)، سنن الدارمي/الحدود ١٩ (٢٣٧٢) (صحيح)

[2]) اي اذا زني الثيب بالثيب وكذا قوله البكر بالبكر، لكن هذا القيد ليس باحترازي بل اذا زني الثيب بالبكر او اذا زني البكر بالثيب يرجم الثيب منهما ويجلد البكر، زانی او مزنيه که دواړه ثيب دی نو بيا خو به دواړه رجم کيږی او که دواړه بکر دی نو د دواړو دپاره به سل سل کوړې وی او که يو ثيب او بل بکر وی نو چه کوم ثيب وی د هغه حکم رجم دې او چه کوم بکر وی د هغه حکم به سل کوړې وی)

[3]) دا د تسمية الكل باسم الجزء د قبيل نه دې چه وئيلې شوې خو دې ثيب او مراد ترې نه محصن دې احصان د څو صفاتو د مجوعې نوم دې چه په هغې کښ يو صفت ثيوبة هم دې يعنى ثيب کيدل، محصن چه د کومو صفاتو د مجموعې نوم دې د هغې تفصيل وړاندې راځي)

فَلَوْ أَوْجَبْنَا التَّغْرِيبَ لَا تَقَعُ الْكِفَايَةُ بِالْجَلْدِ ، وَهَذَا خِلَافُ النَّصِّ...... یعنې په خبر واحد سره په کتاب الله باندې زیادت جائز نه دې لکه چه د اصول فقه مشهوره مسئله ده، او تغریب عام لره جزء د حد منلو سره د خبر واحد په ذریعه په کتاب الله باندې زیادت لازمیږي.

وړاندې هغوی یوه بله عقلي وجه بیان کړه چه تغریب خو خلاف د مصلحت دې او ګویا هغه ته نوره هم موقع ورکول دی د دې ناجائز کار ، ځکه چه که په خپل ښهر کښې اوسیږي نو چونکه هلته به د هغه نور خپلوان او تعلق دار موجود وي نو د هغوی د وجې نه به شرم کوي دوباره د جرم د ارتکاب کولو نه، په خلاف د نورو ښهرونو چه هلته به دا مانع نه وي، باقي د مطلقا عدم تغریب مونږ قائل نه یو ، که امام په تغریب کښې مصلحت ګڼړي نو په طور د تعزیر کولې شي نه په طریق د حد اهـ. د حدیث الباب نه معلومه شوه چه د ثیب د زنا سزا رجم ده او په بکر کښې د زنا سزا جلد مائة، د ثیب نه مراده هغه سړې یا ښځه ده چه محصن وي او د بکر نه مراد غیر محصن دی.

## احصان د کومو صفاتو د مجموعې نوم دې:

د رجم دپاره د صفت احصان کیدل بالاجماع ضروري دی، اوس دا چه د احصان شرائط څه څه دی هغه کتل پکار دی، د بخاري ترجمه ده، "باب رجم المحصن" قال العيني : والمحصن بفتح الصاد من الإحصان وهو المنع في اللغة وجاء فيه كسر الصاد فمعنى الفتح أحصن نفسه بالتزوج عن عمل الفاحشة ومعنى الكسر على القياس وهو ظاهر والفتح على غير القياس، قال أصحابنا شروط الإحصان في الرجم سبعة الحرية والعقل والبلوغ والإسلام والوطي والسادس الوطي بنكاح صحيح والسابع كونهما محصنين حالة الدخول بنكاح صحيح وقال أبو يوسف والشافعي وأحمد الإسلام ليس بشرط لأنه صلى الله عليه وسلم رجم يهوديين قلنا كان ذلك بحكم التوراة قبل نزول آية الجلد في أول ما دخل صلى الله عليه وسلم المدينة فكان منسوخا بها وقال ابن المنذر وأجمعوا على أنه لا يكون الإحصان بالنكاح الفاسد ولا الشبهة وخالفهم أبو ثور فقال يكون محصنا واختلفوا إذا تزوج الحر أمة هل تحصنه فقال الأكثرون نعم وعن عطاء والحسن وقتادة والثوري والكوفيين وأحمد وإسحاق لا.

معلومه شوه چه د احصان شرطونه اووه دی، په هغې کښې په بعضو کښې اختلاف هم دې، پس په مغنی کښې دی : الرابع الحرية وهي شرط في قول أهل العلم كلهم إلا أبا ثور قال : العبد والامة هما محصنان يرجمان إذا زنيا وقال الأوزاعي في العبد تحته حرة محصن يرجم إذا زنا وان كان تحته أمة لم يرجم، هم دغه شان په صفت اسلام کښې اختلاف دې، د احنافو او مالکیانو په نزد په شرائطو د احصان کښې دې، د حنابله او شوافعو په نزد نه دې، كما سياتي فی باب رجم اليهوديين او په در مختار کښې دی : شرائط (إحصان الرجم) سبعة (الحرية والتكليف) اى عقل والبلوغ (والإسلام والوطئ) وكونه (بنكاح صحيح) حال الدخول و كونهما (بصفة الإحصان) المذكورة وقت الوطئ فإحصان كل واحد منهما شرط لصيرورة الآخر محصنا فلو نكح أمة أو الحرة عبد فلا إحصان إلا أن يطأها بعد العتق فيحصل به لا بما قبله... الى آخره.... قال ابن عابدين :

(قوله (رح)شَرَائِطُ إحْصَانِ الرَّجْمِ) وقيده به لِأَنَّ إحْصَانَ الْقَذْفِ غَيْرُ هَذَا،و(قَوْلُهُ بِنِكَاحٍ صَحِيحٍ) خَرَجَ الْفَاسِدُ كَالنِّكَاحِ بِغَيْرِ شُهُودٍ فَلَا يَكُونُ بِهِ مُحْصَنًا، (قَوْلُهُ حَالَ الدُّخُولِ) احْتِرَازًا عَمَّا لَوْ وَطِئَ فِي نِكَاحٍ مَوْقُوفٍ عَلَى الْإِجَازَةِ ثُمَّ أَجَازَتْ الْمَرْأَةُ الْعَقْدَ أَوْ وَلِيُّ الصَّغِيرَةِ فَلَا يَكُونُ بِهَذَا الْوَطْءِ مُحْصَنًا وَإِنْ كَانَ الْعَقْدُ صَحِيحًا ؛ لِأَنَّهُ وَطِئَ فِي عَقْدٍ لَمْ يَصِحَّ إلَّا بَعْدَهُ لَا فِي حَالَةِ الْوَطْءِ، وفى الكنز والدخول بالنكاح الصحيح وكونهما محصنين حالة الدخول، قال الزيلعى اما الدخول فلقوله عليه الصلوة والسلام الثيب بالثيب الحديث، والثيابة لا تكون بغير دخول، ولانه باصابة الحلال تنكسر شهوته ويشبع فيستغنى به عن الزنا، واما احصانهما حالة الدخول فان هذه النعمة به تتكامل، اذا الطبع ينفر عن صحبة المجنونة وقلما يرغب فى الصغيرة لقلة رغبتها فيه، وفى المملوكة حذرا عن رق الولد، علامه زيلعى ددې شرطونو د احصان نه د هر هر شرط لم او علت هم ذكر كړى دى، لهذا هغه دې اوكتلې شى چه مفيد او موجب د بصيرت دى والله تعالى الموفق، وفى الاوجز عن الموفق السابع : ان يوجد الكمال فيهما جميعا حال الوطى فيطا الرجل العاقل الحر امراة عاقلة حرة، وهذا قول ابى حنيفة واصحابه الخ موفق رحمه الله چونكه حنبلى دې لهذا هم دا مسلک د حنابله شو، د دې نه پس هغوى په دې كښې د امام شافعى او امام مالک رحمهما الله اختلاف نقل كړې دې كوم چه په اوجز كښې ذكر دې فارجع اليه لو شئت.

**د ذكر كړې شوى عبارت خلاصه :**

د دې ټولو حاصل دا دې چه زنا فاحشه عظمى ده، هم په دې وجه د دې سزا عقوبة شديده يعنى رجم كيخودلې شوې دې، خو د زنا دا سزا يعنى رجم مطلقا نه دې بلكه په هغه وخت كښې ده چه په زانى كښې صفت د احصان هم موندلې شى، ځكه چه د صفت احصان د وجې نه د زنا وقاحت او شناعت نور هم زياتيږى ځكه چه صفت احصان د هغه صفاتو مجموعه ده كوم چه د زنا د ارتكاب نه مانع دى خو يو سړې د هغې باوجود د زنا ارتكاب كوى چه د هغې په وجه باندې د هغه دا جرم ډير سخت شى او هغه صفتونه د جمهور علماء كرامو په نزد اووه دى: حرية، عقل، بلوغ، اسلام، نكاح صحيح، وطى بنكاح صحيح، د دخول په وخت په واطى او موطوءة كښې د دې صفت احصان موندلې كيدل (د كوم نه چه په احصان سره تعبير كولې شى) لهذا كه يو آزاد د وينځې سره نكاح اوكړه او هم په دې حالت كښې ئې وطى اوكړه او د دې نه پس په دوى دواړو كښې د يو نه زنا اوشوه او د دې نه روستو بيا هغه زنانه آزاده هم كړې شوه نو چونكه دلته صفة الاحصان وقت الدخول بيا نه موندلې شو د وطى په وخت د موطوئة د وينځې كيدو د وجې نه په دې وجه دې صورت كښې به د زنا حكم د رجم نه وى مګر دا چه د دې وينځې د آزاديدلو نه پس دوباره د هغې سره وطى كړې شوې وى او د هغې نه روستو زنا او موندلې شوه نو په دې صورت كښې به د هغه حكم رجم وى، يا هم دغه شان يو آزادې زنانه د غلام سره نكاح اوكړه او بيا هغه پورته صورت بيا موندلې شو نو د هغې هم دا حكم دې، حاصل دا چه په كوم سړى او زنانه كښې چه پورته ذكر شوې د احصان صفت بيا موندلې شى او بيا د هغې نه روستو هغه سړې يا زنانه زنا اوكړى نو رجم كولې به شى ګينې نه.

[۴۴۱۶]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الْحَسَنِ، بِإِسْنَادِ يَحْيَى، وَمَعْنَاهُ قَالَ: جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ.

منصور دحسن نه په خپل سند سره دددې روايت هم معنی روايت بيان کړې او دواړو وئيلي دي چه دزناکار سزا سل کوړې او رجم دې.

[۴۴۱۷]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ رَوْحِ بْنِ خُلَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ يَعْنِي الْوَهْبِيَّ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دَلْهَمٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ نَاسٌ لِسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ: يَا أَبَا ثَابِتٍ قَدْ نَزَلَتِ الْحُدُودُ لَوْ أَنَّكَ وَجَدْتَ مَعَ امْرَأَتِكَ رَجُلًا كَيْفَ كُنْتَ صَانِعًا؟ قَالَ: كُنْتُ ضَارِبَهُمَا بِالسَّيْفِ حَتَّى يَسْكُتَا أَفَأَنَا أَذْهَبُ فَأَجْمَعُ أَرْبَعَةَ شُهَدَاءَ فَإِلَى ذَلِكَ قَدْ قَضَى الْحَاجَةَ فَانْطَلَقُوا فَاجْتَمَعُوا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَمْ تَرَ إِلَى أَبِي ثَابِتٍ؟ قَالَ: كَذَا وَكَذَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَفَى بِالسَّيْفِ شَاهِدًا، ثُمَّ قَالَ: لَا لَا أَخَافُ أَنْ يَتَتَابَعَ فِيهَا السَّكْرَانُ وَالْغَيْرَانُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى وَكِيعٌ أَوَّلَ هَذَا الْحَدِيثِ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ دَلْهَمٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّمَا هَذَا إِسْنَادُ حَدِيثِ ابْنِ الْمُحَبَّقِ: أَنَّ رَجُلًا وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الْفَضْلُ بْنُ دَلْهَمٍ لَيْسَ بِالْحَافِظِ كَانَ قَصَّابًا بِوَاسِطَ.

عباده بن صامت رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه همدغه حديث روايت کوی په دې کښې دی چه څه خلقو سعد بن عباده ته اووئيل: اې ابو ثابت! حدود نازل شوی دی که تاسو دخپلې ښځې سره څوک سړې بيامومئ نو څه به کوئ؟ هغوی اووئيل: ددوی دواړو کار به توري سره پوره کړم. آيا زه به څلورو ګواهانو جمع کولو دپاره ځم، تر هغې خوبه هغوی خپل کار پوره کړې وی، نوهغوی واپس شو او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته لاړل او عرض ئي اوکړو چه اې دالله د رسوله صلى الله عليه وسلم! آيا تاسو د ابوثابت نه آوريدلی دی هغه داسې وائي، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: د ګواه دپاره هم توره کافي ده، بيا نبی کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: نه، نا، هغه مه قتلوئ، ځکه ماته ويره ده چه غصه ناک او غيرت مند به وروستو نه شی (بغير ددې تحقيق نه چه زنا شوې ده اوکه نه هسې په ګمان باندې) اوهغوی قتل نه کړی، ابوداؤد وائی ددې حديث ابتدائی حصه وکيع د فضل بن دلهم نه، فضل دحسن نه، حسن د قبيصه بن حريث نه، قبيصه د سلمه بن محبق نه، سلمه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه مرفوعًا روايت کړې دې دا سند دکوم ذکر چه وکيع کړې دې د ابن محبق والا روايت سند دې په هغې کښې دی چه يو سړی د خپلې ښځې وينځې سره جماع اوکړه. ابوداؤد وائي: فضل بن دلهم حافظ دحديثو نه وو، هغه په واسط کښې يو قصاب وو.

### د رجم په ثبوت کښې د بعض فرقو اختلاف:

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی کړه چه د رجم په مسئله کښې د بعض فرقو اختلاف دې قال الحافظ قال ابن بطال أجمع الصحابة وأئمة الأمصار على أن المحصن إذا زنى عامدا عالما مختارا فعليه الرجم ودفع ذلك الخوارج وبعض المعتزلة واعتلوا بأن الرجم لم يذكر في القرآن وحكاه

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۰۸۳) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۰۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۶/۳) (ضعيف)

ابن العربي عن طائفة من أهل المغرب لقيهم وهم من بقايا الخوارج واحتج الجمهور بأن النبي صلى الله عليه و سلم رجم وكذلك الأئمة بعده وثبت في صحيح مسلم عن عبادة أن النبي صلى الله عليه و سلم قال خذوا عني قد جعل الله لهن سبيلا الثيب بالثيب الرجم اهـ

كله من "الابواب والتراجم" واجز المسالك " بزيادة من الزيلعي، الحديث اخرجه مسلم والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٤١٨]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ عُمَرَ يَعْنِي ابْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خَطَبَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ فِيمَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ آيَةُ الرَّجْمِ فَقَرَأْنَاهَا وَوَعَيْنَاهَا، وَرَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَمْنَا مِنْ بَعْدِهِ، وَإِنِّي خَشِيتُ إِنْ طَالَ بِالنَّاسِ الزَّمَانُ أَنْ يَقُولَ قَائِلٌ: مَا نَجِدُ آيَةَ الرَّجْمِ فِي كِتَابِ اللَّهِ فَيَضِلُّوا بِتَرْكِ فَرِيضَةٍ أَنْزَلَهَا اللَّهُ تَعَالَى، فَالرَّجْمُ حَقٌّ عَلَى مَنْ زَنَى مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ إِذَا كَانَ مُحْصَنًا إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ أَوْ كَانَ حَمْلٌ أَوِ اعْتِرَافٌ، وَايْمُ اللَّهِ لَوْلَا أَنْ يَقُولَ النَّاسُ زَادَ عُمَرُ فِي كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ لَكَتَبْتُهَا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه عمربن الخطاب رضي الله عنه په خبطه کښې اوفرمائيل: الله تعالى محمد صلى الله عليه وسلم په حق سره ليږلي دي او په هغه باندې ئي کتاب نازلک کړي دي کوم آياتونه چه په هغه باندې نازل شوي وو په هغې کښې درجم ايت وو، مونږلوستلي وو اوياد کړي مو وو، نبى عليه السلام هم درجم په حکم باندې عمل کړي وو او مونږ هم دهغه نه پس په رجم باندې عمل کړي ووخوزماسره اوس دا ويره پيداشوي ده هسي نه چه دوخت په تيريدوخوک درجم نه انکار وکړي اوداسې ووائي چه مونږد رجم ايت دالله په کتاب کښې نه وينونوديوى فريضې په پر يخودوبه گمراه شي کومه چه الله تعالى نازله کړې ده پس رجم حق دي په هغه نارينوو اوزنانوو باندې چه زنا وکړي کله چه شادي شده وي خوهله چه گواهان ورباندې قائم کړي شي اوحمل موجود وي او زني کاران په خپله اقرار وکړي په الله قسم که چرې خلقودانه وئيلي چه عمر دالله په کتاب کښې اضافه کړې ده نومابه داحکم ليکلي وو.

﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ عُمَرَ - ابْنَ الْخَطَّابِ - رضى الله عنه خَطَبَ فَقَالَ إِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا -صلى الله عليه وسلم- بِالْحَقِّ وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ فِيمَا أَنْزَلَ عَلَيْهِ آيَةُ الرَّجْمِ فَقَرَأْنَاهَا وَوَعَيْنَاهَا وَرَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَرَجَمْنَا مِنْ بَعْدِهِ وَإِنِّى خَشِيتُ - إِنْ طَالَ بِالنَّاسِ الزَّمَانُ - أَنْ يَقُولَ قَائِلٌ مَا نَجِدُ آيَةَ الرَّجْمِ فِي كِتَابِ اللَّهِ فَيَضِلُّوا بِتَرْكِ فَرِيضَةٍ أَنْزَلَهَا اللَّهُ تَعَالَى ﴾

**مضمون حديث:**

سيدنا عمر رضي الله عنه د رجم په باره کښې فرمائي چه د رجم حکم برحق دي په قرآن کريم کښې د دې په باره کښې آيت نازل شو کوم چه مونږ په شروع کښې لوستلي وو. يعنى اګر که روستو منسوخ التلاوة شو. او د هغې مطابق رسول الله صلى الله عليه وسلم زانى لره رجم کړو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روستو

[1]): صحيح البخاري/الحدود ٣٠ (٦٨٢٩)، صحيح مسلم/الحدود ٤ (١٦٩١)، سنن الترمذي/الحدود ٧ (١٤٣٢)، سنن ابن ماجه/الحدود ٩ (٢٥٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٠٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحدود ١ (٨)، مسند احمد (١/٢٣، ٢٤، ٤٠، ٤٧، ٥٥)، سنن الدارمي/الحدود ١٦ (٢٣٦٨) (صحيح)

مونږه هم، خو ما ته دا خطره ده چه څه موده پس خلق د رجم نه انکار شروع نه کړی په دې وینا چه د دې ذکر په کتاب الله کښې نشته او بیا ګمراه شی، لهذا پوهه شئ چه د زانی محصن او محصنه دپاره د رجم حکم حق دې، اذا قامت البینة او کان حمل او اعتراف.

## د ثبوت زنا اسباب:

د ثبوت زنا صورت بیان فرمائی چه یا خو په ذریعه د ګواهانو یا په اعتراف د زنا او یا د وجود حمل په ذریعه، یعنی په ناوادهٔ کړې زنانه کښې د حمل موندلې کیدل، اعتراف زنا او شهادت شهود د دې دوارو نه د زنا ثبوت خو متفق علیه دی خو ظهور حمل والا مسئله مختلف فیه ده. په ائمه کښې امام مالک رحمه الله د دې قائل دې، په بذل کښې دی د شوکانی نه: وهو مروي عن عمر ومالك وأصحابه قالوا إذا حملت ولم يعلم لها زوج ولا عرفنا إكراهها لزمها الحد إلا أن تكون غريبة وتدعي أنه من زوج أو سيد. وذهب الجمهور أن مجرد الحمل لا يثبت به الحد بل لا بد من الاعتراف أو البينة واستدلوا بالأحاديث الواردة في درء الحدود بالشبهات.. الى آخر ما في البذل.. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی مختصرا ومطولا، قاله المنذری.

# بَابُ رَجْمِ مَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ

## باب: د ماعز بن مالک د رجم بیان

[٤٤١٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ نُعَيْمِ بْنِ هَزَّالٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي فَأَصَابَ جَارِيَةً مِنَ الْحَيِّ، فَقَالَ لَهُ أَبِي: ائْتِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبِرْهُ بِمَا صَنَعْتَ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ لَكَ، وَإِنَّمَا يُرِيدُ بِذَلِكَ رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَخْرَجًا، فَأَتَاهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللَّهِ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَعَادَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللَّهِ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَعَادَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ اللَّهِ، حَتَّى قَالَهَا أَرْبَعَ مِرَارٍ، قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكَ قَدْ قُلْتَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، فَبِمَنْ؟ قَالَ: بِفُلَانَةَ، فَقَالَ: هَلْ ضَاجَعْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: هَلْ بَاشَرْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: هَلْ جَامَعْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ فَأُخْرِجَ بِهِ إِلَى الْحَرَّةِ، فَلَمَّا رُجِمَ فَوَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ جَزِعَ، فَخَرَجَ يَشْتَدُّ فَلَقِيَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُنَيْسٍ وَقَدْ عَجَزَ أَصْحَابُهُ، فَنَزَعَ لَهُ بِوَظِيفِ بَعِيرٍ فَرَمَاهُ بِهِ فَقَتَلَهُ، ثُمَّ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ: هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ فَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَيْهِ".

نعیم بن هزال دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه ماعز بن مالک یو یتیم وو کوم چه زما پلارپاللې وو نو دکلي دیوې جینئ سره ئې زنا وکړه زما پلار ورته ووئیل چه نبی علیه السلام ته ورشه او په خپل عمل ئې خبر کړه کیدی شي چه ستادپاره مغفرت اوغواړي ددې مشورې ورکونو نه دهغه مطلب داوو چه دده دپاره څه لارووېستلې شي، ماعز دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې وکړو چه اې د الله رسوله ما دزنې ارتکاب کړې دې قرانې حکم راباندې جاري کړه تردې چه څلور پیرې ئې ووئیل بیانبی علیه السلام اوفرمائیل تاخو څلور پیرې داخبره وکړه لیکن دچاسره دې زنې کړې ده هغه ووئیل دفلانئ سره نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل آیا ورسره څملاستلې وې ده ووئیل هو، نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل آیا ورسره دې

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٧/٥) (صحيح)

مباشرت کړي وو ده ووئیل هو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ایا ورسره دي جماع کړې ده ده ووئیل چه هوراوی وائی چه نبی ﷺ ورباندې درجم حکم وکړواوحري ته درجم دپاره بوتلې شو هرکله چه رجم کړې شو هرکله چه هغه دکانړو واورنه ولیدل نو اوبرید واو اوتختید و عبدالله بن انیس ورپسې لاړو او دوباره ئې راوستو هرکله چه دده ملګري دوهلونه سترې شول نوداوښ په هډوکي ئې وویشتلو اوقتل ئې کړو، بیانبی ﷺ ته راغې اوټوله واقعه ئې ورته بیان کړه نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ایاولې مونه پریخودلوشاید توبه به ئې ویستلې وه اوالله تعالی به ورته مغفرت کړې وو.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ نُعَيْمِ بْنِ هَزَّالٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي. فَأَصَابَ جَارِيَةً مِنَ الْحَيِّ فَقَالَ لَهُ أَبِي ائْتِ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَخْبِرْهُ بِمَا صَنَعْتَ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ لَكَ وَإِنَّمَا يُرِيدُ بِذَلِكَ رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَخْرَجًا الخ ﴾

دا د ماعز بن مالک اسلمی رضی الله عنه حدیث دې یعنی د هغوی د زنا متعلق کوم چه مصنف رحمه الله په ډیرو طرقو او مختلفو الفاظو سره ذکر کړې دې په دې روایت کښې دی نعیم بن هزال فرمائی چه ماعز بن مالک یو یتیم هلک وو چه زما د پلار په غیږ کښې لوئې شوې وو هغه د قبیلې د یوې وینځې سره (په زنا کښې) اخته شو. په حاشیه د بذل کښې دی چه د هغې نوم فاطمه وو او د هزال وینځه وه کما فی التلقیح صفحه ۳۷۱ لابن الجوزی. وقیل اسمها منیره کما فی تهذیب اللغات للنوی ۳۷۲/۲، نعیم فرمائی چه د دې واقعې نه پس زما پلار هزال ماعز ته اووې چه رسول الله ﷺ ته لاړ شه او څه چه ستا نه اوشو د دې خبر هغه ته ورکړه، کیدې شی چه هغه ستا دپاره دعا او استغفار اوکړي، او ته د دې ګناه نه خلاص شې، پس هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هلته تلو سره ئې د زنا اقرار اوکړو او دا هم چه په ما باندې حکم شرعی جاری کړئ، رسول الله ﷺ د هغوی خبره اوریدلو سره اعراض اوفرمائیلو، د هغوی د اقرار او د رسول الله ﷺ د اعراض څلور کرته حاجت راغلو.

## په ثبوت د زنا بالاقرار کښې تعدد د اقرار او په دې کښې د ائمه اختلاف:

هم په دې وجه احناف وائی چه د ثبوت د زنا بالاقرار دپاره څلور کرته اقرار اخستل ضروری دی په مختلفو مجالسو کښې، [۱] او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد هم اګر چه څلور کرته اقرار ضروری دې خو اختلاف مجلس د هغوی په نزد ضروری نه دې، او باقی دوه امامان یعنی مالک او شافعی د هغوی په نزد یو ځل اقرار هم کافی دې. وړاندې په روایت کښې دا دی چه رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائیل: ﴿ إِنَّكَ قَدْ قُلْتَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَبِمَنْ قَالَ بِفُلاَنَةَ. قَالَ « هَلْ ضَاجَعْتَهَا؟ الخ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ د هغه نه ښه واضحه تپوسونه اوکړل چه د هغې هغوی صفا صفا جوابونه ورکول د دې نه پس رسول الله ﷺ په هغه باندې د رجم د جاری کولو حکم اوفرمائیلو.

**قوله:** ﴿ فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ ﴾ دلته یو اختلافی مسئله ده کومه چه حضرت شیخ په حاشیه د بذل

---

[۱] د مجالسو نه مراد د اقرار کونکی مجلسونه دی، نه دقاضی او هغه دلته موندلې شوې دی په دې وجه رسول الله ﷺ چه به کله خپل رخ بدلولو نو هغوی به هم هغه طرف ته تلو سره بیا اقرار کولو

کښې لیکلي ده هغه دا چه په مجلس د رجم کښې د امام او ګواهانو حاضریدل ضروري دي یا نه، د امام احمد او امام شافعي رحمه الله په نزد واجب نه دی، او د امام مالک او ابوحنیفه په نزد واجب دی، امام نووي رحمه الله د دې حدیث نه د خپل مذهب استدلال کړې دې ﴿ واستدل صاحب الهداية بانه منصوص عن علي رضي الله عنه فيما لا يدرك بالقياس ﴾ د دې نه پس حضرت شيخ خپله رائې احتمالا دا لیکلي ده چه کیدې شي دلته هم د رجم شروع رسول الله ﷺ کړې وي لکه چه د غامدية په قصه کښې راځي چه د هغې الفاظ دا دي ﴿ ثم رماها بحصاة مثل الحمصة ثم قال ارموا ﴾ یعنی په دغه واقعه کښې د رمی شروع رسول الله ﷺ اوکړه د يو وړوکي کاڼړي په ذريعه او بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اوس تاسو دا رمی اوکړئ. په روايت کښې دي چه کله هغه رجم کولې شو نو دوی جزع او فزع کول شروع کړل او منډې رامنډې ئې وهلې چه د هغې په وجه باندې رجم کول ګران شو، په دې کښې عبدالله بن انيس رضي الله عنه راغلو او هغوی ئې د اوښ په هډوکی باندې اووهلو چه د هغې په وجه دهغه کار تمام شو، بيا چه کله رسول الله ﷺ ته د هغه د تيختې وغيره ذکر اوکړې شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ هلا تركتموه لعله ان يتوب فيتوب الله عليه ﴾

## د رجوع عن اقرار الزنا حکم :

د رسول الله ﷺ د دې جملې نه معلومه شوه چه په کوم صورت کښې د زنا ثبوت په اقرار سره وی، او بیا هغه د خپل اقرار نه رجوع اوکړی نو په دې سره حد ساقطیږی، د جمهور علماء کرامو مسلک هم دا دې د احنافو، شوافعو او حنابله، او د ابن ابی ليلی او ابوثور په نزد رجوع عن الاقرار معتبر نه ده، په دې سره به حد نه ساقطیږی، او هم دا یو روایت د امام مالک او د امام شافعي دې، په حاشيه د بذل کښې دی. وحكى صاحب الهداية فيه خلاف الشافعي، لكن قال ابن الهمام ان المسطور في كتبهم انه لو رجع قبل الحد او بعد ما اقيم عليه بعضه سقط. وبسط الحافظ في الفتح ۱۰۴/۱۲ الاختلاف فيه.

[۴۴۲۰] (1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: ذَكَرْتُ لِعَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ قِصَّةَ مَاعِزِ ابْنِ مَالِكٍ، فَقَالَ لِي: حَدَّثَنِي حَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي ذَلِكَ، مِنْ قَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَهَلَّا تَرَكْتُمُوهُ مَنْ شِئْتُمْ مِنْ رِجَالِ أَسْلَمَ مِمَّنْ لَا أَتَّهِمُ، قَالَ: وَلَمْ أَعْرِفْ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ: فَجِئْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، فَقُلْتُ: إِنَّ رِجَالًا مِنْ أَسْلَمَ يُحَدِّثُونَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُمْ حِينَ ذَكَرُوا لَهُ جَزَعَ مَاعِزٍ مِنَ الْحِجَارَةِ حِينَ أَصَابَتْهُ: أَلَا تَرَكْتُمُوهُ، وَمَا أَعْرِفُ الْحَدِيثَ، قَالَ: يَا ابْنَ أَخِي أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِهَذَا الْحَدِيثِ كُنْتُ فِيمَنْ رَجَمَ الرَّجُلَ، "إِنَّا لَمَّا خَرَجْنَا بِهِ فَرَجَمْنَاهُ فَوَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ، صَرَخَ بِنَا: يَا قَوْمِ رُدُّونِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ قَوْمِي قَتَلُونِي وَغَرُّونِي مِنْ نَفْسِي، وَأَخْبَرُونِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ قَاتِلِي، فَلَمْ نَنْزِعْ عَنْهُ حَتَّى قَتَلْنَاهُ، فَلَمَّا رَجَعْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَخْبَرْنَاهُ، قَالَ: فَهَلَّا تَرَكْتُمُوهُ وَجِئْتُمُونِي بِهِ لِيَسْتَثْبِتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ فَأَمَّا لِتَرْكِ حَدٍّ فَلَا"، قَالَ: فَعَرَفْتُ وَجْهَ الْحَدِيثِ.

---

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۲۲۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۱/۳) (حسن)

د محمدبن اسحق نه روايت دې فرمائي چه ما عاصم بن عمر بن قتاده ته دماعز بن مالک دواقعې ذکر وکړو هغه اووئيل چه ماته حسن بن عمر د محمد بن علي بن ابی طالب دنبی ﷺ حديث بيان کړې دې چه تاسو دې ولې نه پريخودلو ځوک چه تاسو غواړئ داسلم والا نه هغه ځوک چه زه په هغوی باندې تهمت نه لګوم هغه اووئيل زه دا حديث نه پيژنم اوزه جابر بن عبدالله ته لاړم اوهغه ته مې ذکر وکړو چه داسلم قبيلې والا څه کسان يوحديث بيانوي چه تا ورته وئيلی دی کله چه هغوی ته دکانو دپريوتو په وجه دماعز دويرې واقعه بيان شوه نو وئې وئيل چه تاسودې ولې نه پريښودو اوماداحديث نه پيژندو جابر رضی الله عنه اووئيل اې زماوراره زه ددې حديث نه ښه واقف يم زه هم په دغه خلقو کښې موجود وم چاچه ماعز رجم کړې وو ، کله چه مونږه دې بوتلو اوپه کانړو مو وويشتو نوهغه په کانړو باندې حوږ شو اوچغه ئې وکړه او وئې وئيل چه اې خلقو تاسو مانبی ﷺ ته واپس بوځئ ځکه چه زه زماقوم دوکه کړې وم اوزه هغوی وژلې يم هغوی ماته وئيلي وو چه نبی ﷺ مانه قتل کوي ، ليکن مونږ منع نه شو اودې مو وويشتو کله چه مونږ نبی ﷺ ته واپس راغلو اواقعه مو ورته بيان کړه نونبی ﷺ اوفرمائيل تاسو دې ولې نه پريخودو يعنی رجم کول مووليې نه موقوف کولو اودې مو ماته ولې نه راوستلو دا خبره نبی ﷺ په دې وجه کړې وه چه ماعز حد قبلولوته ثابت قدم کړې چه ددنيا تکليف برداشت کول داخرت دعذاب نه بهتردې نه په دې وجه چه سزابه ملتوي کړې شي نو په دې وخت کښې زه دحديث په مطلب پوهه شوم.

### د حديث شرح :

قوله:﴿ مِنْ قَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « فَهَلاَّ تَرَكْتُمُوهُ ». مَنْ شِئْتُمْ مِنْ رِجَالِ أَسْلَمَ مِمَّنْ لاَ أَتَّهِمُ. ...الخ ﴾

عاصم بن عمر وائی چه ما ته حسن بن محمد بن علي يعنی د محمد الحنفية ځوی حسن دا اووې چه ماته د رسول الله ﷺ دا ارشاد ﴿ فهلا ترکتموه ﴾ د قبيله اسلم دومره خلقو بيان کړو څومره چه ستا خوښه وی يعنی ډيرو خلقو ، دا لفظ ﴿ من شئتم ﴾ په ترکيب کښې فاعل واقع شوې دې، د حدثنی ذلک دپاره. حسن بن محمد فرمائي اګر چه دا جمله خو ماته ډيرو بيان کړې ده خو د حديث د دې جملې په مطلب زه نه اوم پوهه شوې چه څۀ دې (ځکه چه د هغوی په ذهن کښې دا دوه چه په رجوع عن الاقرار سره نه ساقط کيږی) په دې وجه زه جابر بن عبدالله رضی الله عنهما ته لاړم او د هغوی په خدمت کښې حاضريدلو سره مې د هغوی نه د حديث د دې جملې مطلب اوتپوسلو ، هغوی اوفرمائيل اې زما وراره! زه د دې ټولې قصې نه ښه خبر يم ځکه چه زه خپله په رجم کونکو کښې اوم، خبره دا پيښه شوه چه کله مونږ ماعز د رجم دپاره بوتلو نو هغه په چغو چغو وئيل چه ما رسول الله ﷺ ته واپس بوځئ ځکه چه زما قوم زه مرګ له ورکړې يم او ماته ئې دهوکه راکړې ده، او هغوی ماته وئيلي وو چه رسول الله ﷺ به تا نه قتل کوی. جابر رضی الله عنه فرمائی خو مونږ د هغه د وينا پرواه اونکړه بلکه هغه مو رجم کړو، بيا چه کله مونږ واپس کيدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، او د ماعز رضی الله عنه د حال خبر مو هغوی ته ورکړو نو رسول الله ﷺ دا جمله ارشاد اوفرمائيله چه تاسو

هغه ولې نه پرېخودلو او ماته به مو راوستلې وې، نو دا رسول اللهﷺ په دې وجه وئيلې وه چه د هغه د تيښتې سبب معلوم کړې چه آخر څه وئيل غواړې، ﴿ فاما لترک حد فلا ﴾ او د رسول اللهﷺ مقصد دا نه وو چه د هغه نه حد ساقط کړې شوې وې، حسن بن محمد فرمائي ﴿ فعرفت وجه الحديث ﴾ چه اوس د جابر رضي الله عنه په بيان سره د حديث مطلب زما په فهم کښې راغلو.

د جابر رضي الله عنه دا رائې د ابن ابی ليلی او ابوثور وغيره د مذهب خو موافق ده چه په رجوع عن الاقرار سره حد نه ساقط کيږی، خو جمهور علماء کرامو د دې دا مطلب نه دې اخستلې، او په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهي د تقرير نه د دې مقام شرح بل شان ده چه د جمهورو د مسلک موافق ده هغه دا چه حسن بن محمد ته خو دا تردد کيدلو چه د حد د فيصلې نه پس خو هغه نه ساقطيږی نو بيا چه رسول اللهﷺ دا اوفرمائيل چه تاسو هغه ولې پرېنخودلو، دا رسول اللهﷺ څنګه اوفرمائيل؟ نو جابر رضي الله عنه د رسول اللهﷺ مراد دا بيان کړو چه د هغوی مراد هغه لره داسې مطلقا پرېخودل نه دی بلکه دا وو چه مونږ د هغه نه د تيښتې مقصد معلوم کړو چه هسې د تکليف د وجې نه تختي او که نه مقصود ئې رجوع عن الاقرار ده، که هغه خپل غرض رجوع عن الاقرار بيان کړې وې نو په دې باندې به مونږ هغه پرېخودلې وې، والله تعالیٰ اعلم،دا مطلب د جمهور علماء کرامو د مسلک مطابق دې.

## په ماعز رضي الله عنه باندې د جنازې مونځ کښې اختلاف :

د دې نه په روستو حديث کښې راځی ﴿ فَانْطُلِقَ بِهِ فَرُجِمَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ ﴾ وړاندې څو حديثه پس هم دا راځي : ﴿ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- خَيْرًا وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ ﴾ او د بخاری په روايت کښې دی ﴿ وصلی عليه ﴾ خو د دې نه پس امام بخاری رحمه الله فرمائی ﴿ لَمْ يَقُلْ يُونُسُ ، وَابْنُ جُرَيْجٍ ، عَنِ الزُّهْرِيِّ فَصَلَّى عَلَيْهِ، سئل أبو عبدالله هل قوله فصلى عليه يصح أم لا قال رواه معمر قيل له هل رواه غير معمر قال لا ﴾ په دې باندې حافظ په فتح الباری کښې کافي اختلاف رواة بيان کړې دې او کثرت ئې د هم هغه راويانو بيان کړې چا چه په دې حديث کښې لفظ د "صلی عليه" نه دې ذکر کړې، او بيا وړاندې تلو سره حافظ فرمائيلې دی چه په ظاهر کښې د امام بخاری رحمه الله ميلان د دې لفظ د ثبوت طرف ته د نورو شواهدو د وجې نه دې او بيا هغوی د سنن ابی قرة روايت ذکر کړې دې[1] چه د سنن ابی قرة حديث په ابی امامه کښې داسې دې ﴿ فقيل يا رسول اللهﷺ اتصلی عليه قال لا قال فلما كان من الغد قال صلوا على صاحبكم فصلى عليه رسول اللهﷺ والناس ﴾ د دې نه معلومه شوه چه په اوله ورځ باندې رسول اللهﷺ په هغه مونځ اونه کړو په دويمه ورځ ئې اوکړو پس حاصل دا چه د بخاری روايت د صلاة علی

[1] د حافظ رائې هم دا ده چه د امام بخاری رحمه الله رائې د دې لفظ د ثبوت ده، که دا صحيح وی نو بيا به دا اشکال وی چه د قراءة خلف الامام په مسئله کښې چه د ﴿ لاصلوة لمن لم يقراء بفاتحة الكتاب فصاعدا ﴾ والا حديث کښې چه د فصاعدا کوم زيادت احنافو پيش کړې دې نو د هغې جواب د امام بخاری رحمه الله نه دا منقول دې چه دا زيادت ثابت نه دې تفرد به معمر فتامل)

ماعز په باره کښې په طريق د اثبات دي. او د سنن په رواياتو ابوداؤد ترمذي او نسائی کښې د صلوة نفی ده او په صحيح مسلم کښې د صلوة يا ترک صلوة سره هيڅ تعرض نشته ترڅو چه زمونږ تتبع ده، خو د امراءة جهينة په باره کښې بغير د اختلاف نه د مونځ کولو ثبوت شته، دې باره کښې يو خاص نکته هم د حضرت شيخ نور الله مرقده نه په کتاب الجنائز کښې نقل کړې ده، اوس دا چه د مړی جنازه به کولې شی يا نه؟ په دې کښې د امام مالک او احمد رائې دا ده چه خپله امام او نور اهل فضل وعلم خلق دې دهغه جنازه نه کوی د هغوی په حق کښې مکروه ده او جمهور علماء کرام ومنهم ابوحنيفة والشافعی په نزد به د هغه د جنازې مونځ کولې شی بلکه د هر کلمه ګو د اهل قبله نه من غير فصل بين اهل الفضل وغيره، په دې مسئله باندې کلام په کتاب الجنائز، کښې په باب الصلوة على قتلة الحدود، کښې تير شوې دې.

حديث محمد بن اسحاق اخرجه النسائی، واخرج البخاری ومسلم والترمذی والنسائی من حديث ابی سلمة بن عبدالرحمن عن جابر رضی الله تعالى عنه طرفا منه بنحوه، قاله المنذری.

[٤٤٢١](١)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي الْحَذَّاءَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّهُ زَنَى، فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَأَعَادَ عَلَيْهِ مِرَارًا، فَأَعْرَضَ عَنْهُ، فَسَأَلَ قَوْمَهُ: أَمَجْنُونٌ هُوَ؟ قَالُوا: لَيْسَ بِهِ بَأْسٌ، قَالَ: أَفَعَلْتَ بِهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ فَانْطُلِقَ بِهِ فَرُجِمَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه ماعز بن مالک دنبی عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې وکړو چه ما دزنا ارتکاب کړې دې نبی عليه السلام ورنه مخ واړولو اوهغه به بار بار همدا خبره کوله او نبی عليه السلام به ورنه مخ اړولو ، ددينه پس نبی عليه السلام دده دقوم نه تپوس اوکړو چه دې خو ليونې نه دې؟ خلقو اووئيل نه، هيڅ قسم مرض په ده باندې نشته دې نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل اياتازنې کړې ده؟ دده ووئيل هونبی عليه السلام دده درجم کولوحکم وکړوبيياده لره خلقو بوتلو اورجم ئې کړواونبی عليه السلام ورباندې (بذات خود) جنازه ونکړله.

[٤٤٢٢](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ حِينَ جِيءَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا قَصِيرًا أَعْضَلَ لَيْسَ عَلَيْهِ رِدَاءٌ، فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ أَنَّهُ قَدْ زَنَى، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَلَعَلَّكَ قَبَّلْتَهَا، قَالَ: لَا وَاللَّهِ إِنَّهُ قَدْ زَنَى الْآخِرُ، قَالَ: فَرَجَمَهُ، ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ: أَلَا كُلَّمَا نَفَرْنَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ خَلَفَ أَحَدُهُمْ لَهُ نَبِيبٌ كَنَبِيبِ التَّيْسِ يَمْنَحُ إِحْدَاهُنَّ الْكُثْبَةَ، أَمَا إِنَّ اللَّهَ إِنْ يُمَكِّنِّي مِنْ أَحَدٍ مِنْهُمْ إِلَّا نَكَّلْتُهُ عَنْهُنَّ".

دجابر بن سمرة رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه ماعز بن مالک مې وليد وکله چه نبی عليه السلام ته راوستلې شودې يوڅورب لندقد والا سړې وو اوڅادر ورسره نه وو ، هغه دخپل ځان خلاف څلور پيرې ګواهی ورکړله چه مازنې کړې ده نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل تابه خکل کړې وی هغه ورئيل والله مازنې کړې ده بيانبی عليه السلام سنګسارکړواوخطبه ئې اوفرمائيله تاسوخبرشئ کله چه به مونږ دالله په لاره کښې دجهاد دپاره سفرکوو نوڅه کسان زمونږنه وروسته پاتې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٠٦٥) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم الحدود ٥ (١٦٩٢)، (تحفة الأشراف: ٢١٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٦/٥، ٨٧) (صحيح)

شي او دچيلو په شان اوازونه کوي او کوي ښځي ته څه ورکړي اوزنا ورسره وکړي واورئ که چرې الله تعالی ماته په داسې قسم کس باندې قدرت را کړي نوزه به ده ته داسې سزا ورکړم چه دې به ددغه ښخونه اخوا مرکړم.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ رَأَيْتُ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ حِينَ جِيءَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– رَجُلاً قَصِيرًا أَعْضَلَ لَيْسَ عَلَيْهِ رِدَاءٌ ﴾ وفی نسخة رجلا قصيرا وهو الموافق للقواعد.

## مضمون الحديث:

جابر ﷺ فرمائی چه کله ماعز بن مالک ﷺ د رسول الله ﷺ مجلس ته راوستلې شو نو ما اوکتل چه هغه د وړوکی قد والا او ډک بدن والا وو، او د هغوی په بدن باندې هغه وخت څادر هم نه وو، چه کله هغوی د رسول الله ﷺ مخکښې څلور کرته اقرار اوکړو نو رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائيل ﴿ فَلَعَلَّكَ قَبَّلْتَهَا؟ قَالَ لاَ وَاللَّهِ إِنَّهُ قَدْ زَنَى الآخِرُ ﴾ يعنی رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل کيدې شی چه تا هغه صرف خکل کړې وی، يعنی د دې نه به دې زيات هيڅ نه وی کړې. (دا دې هغه څه ته چه تلقين فی الحد وئيلې شی چه د هغې باب مخکښې تير شوې دې) هغه اووې والله دې ذليل او خوار خو زنا کړې ده. اخر بروزن کبد بفتح فكسر، او دا دې آخر يا آخر او نه لوستلې شی. پس هغه رجم کړې شو.

﴿ ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ « أَلاَ كُلَّمَا نَفَرْنَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ خَلَفَ أَحَدُهُمْ لَهُ نَبِيبٌ كَنَبِيبِ التَّيْسِ يَمْنَحُ إِحْدَاهُنَّ الْكُثْبَةَ أَمَا إِنَّ اللَّهَ إِنْ يُمَكِّنِّي مِنْ أَحَدٍ مِنْهُمْ إِلاَّ نَكَلْتُهُ عَنْهُنَّ » ﴾

د ماعز ﷺ دقيصې د پيښيدو نه پس رسول الله ﷺ يو خطبه ارشاد اوفرمائيله چه د هغې نه يو خو دا خبره معلومه شوه چه دغه شان چه په صحابه کرامو ﷺ کښې بعض قصې د زنا موندلې شوې دی نو دا په هغه وخت کښې دی چه د هغه کورنو سرې د جهاد دپاره وتلی وو او بيا رسول الله ﷺ د زانی د زنا د وخت کيفيت او هيئت لره په قباحت کښې د يو نر چيلی د کيفيت او هيئت سره تشبيه ورکړې ده چه کله هغه په ښځې چيلئ باندې په بريدو سره سوربری، رسول الله ﷺ فرمائی: ﴿ يَمْنَحُ إِحْدَاهُنَّ الْكُثْبَةَ ﴾ چه کوم سرې (چه زنا کوی) په هغوی کښې يوې ته يعنی په زنانو کښې يوې ته کثبة ورکوی، د کثبة تفسير راوی په لبن قليل سره کړې دې چه د هغې نه مراد منی ده، او بيا رسول الله ﷺ ډير په جلال سره اوفرمائيل چه کورئ که ماته الله پاک قدرت راکړو په هغه زنا کونکو کښې په يو تن باندې نو زه به هغه ته ښه سخته سزا ورکړم. والحديث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

[٤٤٢٣] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَالأَوَّلُ أَتَمُّ، قَالَ: فَرَدَّهُ مَرَّتَيْنِ، قَالَ سِمَاكٌ: فَحَدَّثْتُ بِهِ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ، فَقَالَ: إِنَّهُ رَدَّهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ.

سماک وائی چه د جابر بن سمره نه مې دا حديث اوريدلی دی ليکن اولنې حديث زيات کامل دې او په دې کښې دا اضافه ده چه نبی ﷺ ده لره څلور ځلې واپس کړو.

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢١٨١) (صحيح)

[٤٤٢٤]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَنِيِّ بْنُ أَبِي عَقِيلٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: قَالَ شُعْبَةُ: فَسَأَلْتُ سِمَاكًا عَنِ الْكُثْبَةِ؟ فَقَالَ: اللَّبَنُ الْقَلِيلُ.

**ترجمه**: شعبه وئیلی دی چه دسماک نه مې دکثبه په باره کښې تپوس وکړو کثبه لږ شودوته وئیلې شي.

[٤٤٢٥]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ: "أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ؟ قَالَ: وَمَا بَلَغَكَ عَنِّي؟ قَالَ: بَلَغَنِي عَنْكَ أَنَّكَ وَقَعْتَ عَلَى جَارِيَةِ بَنِي فُلَانٍ، قَالَ: نَعَمْ فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ".

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبي عليه السلام ماعز بن مالک ته ووئيل: ایاستا متعلق چه ماته څه رارسیدلي هغه ریښتیادي؟ هغه ورته ووئیل چه زما متعلق تاته څه اوریدلي دي؟نبي عليه السلام ورته اوفرمائیل زه خبر شوي یم چه تادفلاني قبیلې دخلقو دوینځې سره بدفعلي کړې ده هغه ووئیل هو او په خپل ځان باندې ئې څلور ځله ګواهی وکړله نونبي عليه السلام دده درجم کولو حکم وکړو اورجم کړې شو.

## شرح الحديث:

**قوله**: ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ « أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ »﴾ یعنی رسول الله ﷺ د ماعز نه تپوس اوکړو چه آیا ستا متعلق چه ماته کوم خبر رارسیدلي دې هغه صحیح دې؟ نو هغوی تپوس اوکړو چه تاسو ته څه خبر راغلي دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغه دا چه تا د فلانئ قبیلې د وینځې سره داسې کړې دی؟هغوی په جواب کښې اووې چه او تاسو ته صحیح خبر رارسیدلي دې. دا روایت د روایت مشهوره خلاف دې چه په هغې کښې دا تیر شوی دی چه ماعز رضی الله عنه درسول الله ﷺ مجلس ته حاضریدلو خپله د زنا اقرار کړې وو، علامه طیبی په شرح د مشکوة کښې د دې توجیه دا کړې ده چه ممکنه ده چه رسول الله ﷺ ته د ماعز د راتلو نه مخکښې دا واقعه رارسیدلې وی، بیا چه کله ماعز د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو رسول الله ﷺ ترې نه د دې واقعې په باره کښې تپوس اوکړو چه هغه انکار اوکړی د هغه څیز نه کوم چه هغه ته منسوب کولې شي چه د هغه نه حد ساقط شي خو هغه په ځائې د انکار اقرار اوکړو چه په هغې باندې رسول الله ﷺ اعراض اوفرمائیلو خو هغه بار بار اقرار کولو، لهذا په دې روایت کښې اختصار اوشو. والحدیث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[٤٤٢٦]([3]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاعْتَرَفَ بِالزِّنَا مَرَّتَيْنِ فَطَرَدَهُ، ثُمَّ جَاءَ فَاعْتَرَفَ بِالزِّنَا مَرَّتَيْنِ، فَقَالَ: "شَهِدْتَ عَلَى نَفْسِكَ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، اذْهَبُوا بِهِ فَارْجُمُوهُ".

---

[1]): انظر حدیث رقم: (٤٤٢٢) (صحیح)

[2]): صحیح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٣)، سنن الترمذي/الحدود ٤ (١٤٢٧)، (تحفة الأشراف: ٥٥١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٥/١، ٣١٤، ٣٢٨) (صحیح)

[3]): تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٥٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٤/١) (صحیح)

د ابن عباس ﷺ نه روایت دي فرمائی چه ماعز بن مالک نبی ﷺ ته راغي او دوه پيري ئي ووئيل: مازني کړې ده نونبی ﷺ ده لره وشرلو څه وخت پس بيا راغي اودوه پيري ئي دزني اعتراف وکړونبی ﷺ ورته اوفرمائيل په خپل ځان دي څلورپيري ګواهی وکړله ، اوصحابه کرامو ته ئي اوفرمائيل دي بوځئ اورجم ئي کړئ.

[٤٤٢٧](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، حَدَّثَنِي يَعْلَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَعُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ يَعْلَى يَعْنِي ابْنَ حَكِيمٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ: "لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ أَوْ غَمَزْتَ أَوْ نَظَرْتَ؟" قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَنِكْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَعِنْدَ ذَلِكَ أَمَرَ بِرَجْمِهِ"، وَلَمْ يَذْكُرْ مُوسَى: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا لَفْظُ وَهْبٍ.

دابن عبس ﷺ نه روایت دي فرمائی چه نبی ﷺ ماعز بن مالک ته ووئيل کيدي شي چه تاخکل کړې وی اويابدي سکوندلي وي اويابه دي ورته کتلي وي هغه ووئيل نه نبی ﷺ ورته اوفرمائيل ايا وطي کړي دي ده؟هغه ووئيل هو راوی وائی چه په دې وخت کښې نبی ﷺ دده په رجم کولوباندې حکم وکړو. اودموسی په روايت کښې دابن عباس ذکرنشته اوداد وهب د روايت الفاظ دي.

﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ « لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ أَوْ غَمَزْتَ »﴾ يعنی رسول الله ﷺ ماغز بن مالک ﷺ ته اوفرمائيل د هغوی د اقرار بالزنا په وخت کيدې شی چه تا صرف تقبيل کړې وی او يا به دې د ځان نه لاندې کړې وی.

په بذل کښې د بعض شروح نه نقل کړې شوې دی، الغمز الكبس باليد وبالعين وبالحاجب، يعنی د غمز معنی په لاس د رانيولو هم کيدې شی او په سترګو او وريځو باندې د اشارې په ذريعه هم چه هغې ته لاندې او پورته حرکت ورکړی خپل طرف ته د مائل کولو دپاره، ﴿ ويحتمل الحديث هذه المعانى كلها، قلت ويحتمل ان يكون معنى الغمز الكبس بالذكر بان لا يدخل حتى يتحقق الزنا ﴾ د دې نه پس حضرت فرمائی چه دا هم احتمال دې چه د ذکر په ذريعه مس کول مراد وی، او مطلب دا دې چه تا به صرف خپل ذکر هغې سره لګولې وی چه په هغې سره د زنا تحقق نه کيږی.

﴿ او نظرت ای الی فرجها قال لا، قال أَفَنِكْتَهَا ﴾ نکت په وزن د بعت ناک ينيک نيکا دا لفظ په مقصود کښې بالکل صريح دې چه هغې ته په اردو کښې چودنا (او په پښتو کښې غول) وائی. ﴿ قال نعم قال فعند ذلک امر برجمه ﴾

## د اقرار بالزنا دپاره صريح الفاظ ضروری دی:

د دې حديث نه معلومه شوه چه د حدود په ثبوت کښې صريح الفاظ پکار وی، اشارات او کنايات هلته نه چليږی، د دې کتاب په مقدمه کښې د آداب طالب حديث د لاندې تير شوی دی چه زمونږ د حضرت شيخ ﷺ عادت شريفه دا وو چه په کتاب الحدود کښې به

(١): خ بالحدود ٢٨ (٦٨٢٤)، (تحفة الأشراف: ٦٢٧٦، ١٩١٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٨/١، ٢٧٠) (صحيح)

چه کله په یو حدیث کښې څه فحش یا د کنځلو لفظ راغلو نو د هغې ترجمه به ئې صفا صفا کوله او فرمائیل به ئې چه د عربئ کنځل دی چه کله ضرورة او مصلحة رسول الله ﷺ هغه په خپله ژبه مبارکه باندې راوستلې شی نو زمونږ څه حیثیت دې په کتاب الحدود کښې دا لفظ ﴿ افنکتها ﴾ او په بخاری شریف ۳۷۸/۱ کښې د صلح حدیبیه والا حدیث کښې د صدیق اکبر رضی الله عنه په کلام کښې دا لفظ راغې ﴿ امصص بظر اللات ﴾ نو د دې الفاظو به ئې په اردو کښې ترجمه صفا کوله. والحدیث اخرجه ایضاً مرسلا، واخرجه البخاری والنسائی مسندا، قاله المنذری

[٤٤٢٨] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الصَّامِتِ ابْنَ عَمِّ أَبِي هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: "جَاءَ الْأَسْلَمِيُّ إِلَى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَنَّهُ أَصَابَ امْرَأَةً حَرَامًا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ كُلَّ ذَلِكَ يُعْرِضُ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَقْبَلَ فِي الْخَامِسَةِ، فَقَالَ: أَنِكْتَهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: حَتَّى غَابَ ذَلِكَ مِنْكَ فِي ذَلِكَ مِنْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: كَمَا يَغِيبُ الْمِرْوَدُ فِي الْمُكْحُلَةِ وَالرِّشَاءُ فِي الْبِئْرِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَهَلْ تَدْرِي مَا الزِّنَا؟ قَالَ: نَعَمْ أَتَيْتُ مِنْهَا حَرَامًا مَا يَأْتِي الرَّجُلُ مِنَ امْرَأَتِهِ حَلَالًا، قَالَ: فَمَا تُرِيدُ بِهَذَا الْقَوْلِ؟ قَالَ: أُرِيدُ أَنْ تُطَهِّرَنِي، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ، فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِهِ، يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: انْظُرْ إِلَى هَذَا الَّذِي سَتَرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فَلَمْ تَدَعْهُ نَفْسُهُ حَتَّى رُجِمَ رَجْمَ الْكَلْبِ، فَسَكَتَ عَنْهُمَا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً حَتَّى مَرَّ بِجِيفَةِ حِمَارٍ شَائِلٍ بِرِجْلِهِ، فَقَالَ: أَيْنَ فُلَانٌ وَفُلَانٌ؟ فَقَالَا: نَحْنُ ذَانِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: انْزِلَا فَكُلَا مِنْ جِيفَةِ هَذَا الْحِمَارِ، فَقَالَا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَنْ يَأْكُلُ مِنْ هَذَا؟ قَالَ: فَمَا نِلْتُمَا مِنْ عِرْضِ أَخِيكُمَا آنِفًا أَشَدُّ مِنْ أَكْلٍ مِنْهُ، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهُ الْآنَ لَفِي أَنْهَارِ الْجَنَّةِ يَنْقَمِسُ فِيهَا".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه داسلم قبیلې والایوکس نبی علیه السلام ته راغې او په خپل ځان ئې څلور پیرې ګواهی وکړله او هرځل به ورنه نبی علیه السلام اعراض کولو تردې چه پنځم ځل ته راورسیدونبی علیه السلام ورته اوفرمائیل ایا تاورسره صحبت کړې دې ده ووئیل هو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل ایا په داسې شان سره چه ستا اندام مخصوصه دهغې په شرمګاه کښې غائب شوې وو؟ ماعزووئیل هو بلکل همداسې ، نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل آیا داسې جماع دې کړې وه لکه سلائې په نجړومه کښې یا پړې چه کوهې ته کوزولې شي؟ده ووئیل هو همداسې مې کړې دې نبی علیه السلام ورنه تپوس وکړوچه ایاتاته معلومه ده چه زنې څه شې دې؟ماعز ووئیل بلکل ئې پېژنم اوهغه داسې چه په حلاله طریقه یوسړې دخپلې ښځې سره څه کوې ماهم هغه کار په حرامه طریقه کړې دې نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل اوس ستامقصد څه دې؟ ماعز جواب ورکړوچه اوس مې ته دګناه نه پاک کړې نونبی علیه السلام حکم وکړو اودې سنګسار کړې شو، بیانبی علیه السلام دماعز په ملګروکښې ددوه کسانونه داخبره واوریدله کومه چه هغوی په خپل مینځ کښې یوبل ته کوله چه ماعزته وګورئ الله تعالی ورباندې پرده اچولې وه لیکن ده لره دده نفس پرې نخودوتردې چه په کاڼو باندې وویشتلې شولکه څنګه شې سپی ویشتلې شي نبی علیه السلام چه دا واوریدل نوخاموش شو اوبیا یوه شیبه پس چرته روان شواوپه لاره کښې ئې یومرخر اولیدوچه دپړسیدو په وجه ئې خپه نیغه نیولې وه نبی علیه السلام اوفرمائیل - هغه کس اوفلانې چرته دې؟هغوی عرض وکړواې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٥٩٩) (ضعيف)

دالله رسوله مونږ حاضريونبی ﷺ ورته اوفرمائيل کوزشئ اوددې مړخرغوښه اوخورئ هغوی ووئيل اې دالله رسوله ددې خرغوښه به څوک وخوري نبی ﷺ ورته اوفرمائيل تاسوچه لږ مخکښې دخپل مسلمان ورور غيبت کړي دي هغه ددې مرداري دخوړلونه ډيريد دې په هغه ذات مې دې قسم وي دچاپه قبضه کښې چه زما روح دې ماعز اوس دجنت په نهرونوکښې غوپې وهي.

**قوله:** ﴿ كَمَا يَغِيبُ الْمِرْوَدُ فِي الْمُكْحُلَةِ وَالرِّشَاءُ فِي الْبِئْرِ ﴾ لکه سلائی چه په سرمه دانئ کښې تلو سره غائبه شی او رسئ په کوهی کښې.

﴿ فَسَمِعَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِهِ الخ ﴾

## د غيبت حرمت او بدی:

يعني رسول الله ﷺ د دوه کسانو خپل مينځ کښې خبرې واوريدلې يو بل ته وئيل چه اوګوره کنه دې سړی ته الله پاک د هغه عيب پټ کړې وو يعنی د دې ګناه چاته هم خبر نه وو بيا هغه څه کم عقلتوب اوکړو چه داسې کار ئې اوکړو يعنی د رسول الله ﷺ مخکښې ئې اقرار اوکړو، تر دې چه د سپی په مرګ باندې مړ شو، رسول الله ﷺ په دې اوريدلو باندې خاموش شو بيا لږ لرې لاړو نو په يو مردار خر باندې تير شو چه د هغه يو خپه هم راوتلې پرته وه، نو رسول الله ﷺ هلته اودريده او د دوه سړو نوم اخستلو سره ئې تپوس اوکړو چه فلانی فلانی چرته دی؟ هغوی عرض اوکړو جی مونږ حاضر يو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل د خپلې سورلئ نه راکوز شئ او د دې مردار خر غوښه اوخرئ (انزلا ئې په دې وجه اوفرمائيل چه يا خو هغوی سوارهٔ وو يا دا چه هغه خر به چرته په کنده وغيره کښې پروت وو) په دې باندې هغوی دواړو عرض اوکړو يا نبی الله ﷺ د دې مردار نه څوک خوراک کولې شی؟ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ فَمَا نِلْتُمَا مِنْ عِرْضِ أَخِيكُمَا آنِفًا أَشَدُّ مِنْ أَكْلٍ مِنْهُ ﴾ په لما کښې لام د تاکيد دپاره دې او ما موصوله ده چه بيشکه هغه څيز کوم چه تا خراب کړې دې د خپل رور د عزت نه هغه د دې مردار د خوراک نه زيات سخت دی، ﴿ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهُ الآنَ لَفِي أَنْهَارِ الْجَنَّةِ يَنْقَمِسُ فِيهَا ﴾ قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې زما سا ده چه دا مرجوم دې وخت کښې د جنت په نهرونو کښې غوپې وهی.

والحديث اخرجه النسائي، وقال فيه، انكحتها (اى مكان انكهتها) قاله المنذري.

[٤٤٢٩] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ ابْنِ عَمِّ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ بِنَحْوِهِ، زَادَ: وَاخْتَلَفُوا عَلَيَّ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: رُبِطَ إِلَى شَجَرَةٍ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ وُقِفَ.

په دې سره هم د ابوهريره رضی الله عنه نه داسې حديث نقل دې په دې کښې دومره اضافه ده چه په خلقو کښې اختلاف دې د بعضې خلقو وينا ده چه هغه يوې ونې پورې تړلې شوې وو، او د بعضو وينا ده چه هغه (په ميدان کښې) اودرولې شوې وو.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٥٩٩) (ضعيف)

[٤٤٣٠](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَسْلَمَ جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَاعْتَرَفَ بِالزِّنَا فَأَعْرَضَ عَنْهُ، ثُمَّ اعْتَرَفَ فَأَعْرَضَ عَنْهُ، حَتَّى شَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَبِكَ جُنُونٌ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أُحْصِنْتَ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَ فِي الْمُصَلَّى، فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ فَرَّ فَأُدْرِكَ فَرُجِمَ حَتَّى مَاتَ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرًا، وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ".

دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه داسلم قبیلي والا یوکس دنبی علیه السلام په خدمت کښي حاضرشو او عرض ئي وکړوچه ما زني کړې ده نونبی علیه السلام ورنه مخ واړولو ده بیا دزني اعتراف وکړونوبیا ورنه نبی علیه السلام مخ واړولوتردي چه دخپل ځان خلاف ئي څلور ځله ګواهي وکړله نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل ایا لیوني خونه ئي؟ هغه ووئیل نه نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل ایا واده دي کړي دي؟هغه ووئیل هونونبی علیه السلام په ده باندي حکم وکړو اورجم کړي شوپه عیدګاه کښي هرکله چه په ده باندي کاڼړي ور اوغورځیدل نووتختیدو بیا ونیولي شو اورجم کړي شوتردي چه مرشو نبی علیه السلام دده کامیابی بیان کړه او په ده باندي ئي جنازه ونکړله.

**قوله:** ﴿ فرجم فی المصلی ﴾ د مصلی نه مراد مصلی الجنائز والعید ده یعنی د هغې خوا کښ کومه چه د بقیع الغرقد طرف ته ده، پس د مسلم په روایت کښ دی ﴿ فانطلقنا به الی بقیع الغرقد ﴾ او قاضی عیاض دا ګڼړلي ده چه د راوی مراد دا دي چه رجم خاص په مصلی کښ واقع شوي دې او بیا په دې باندې تفریع کولو سره هغوی اوفرمائیل چه د دې نه معلومه شوه چه مصلی د مسجد په حکم کښ نه ده ګینې رجم به په دې کښ نه شو کولې د تلویث د ویرې نه، په خلاف د هغې کوم چه دارمی د بعض علماء کرامو نه نقل کړی دی چه مصلی د مسجد په حکم کښ وی، حافظ فرمائی چه د قاضی عیاض دا استنباط صحیح نه دې لان الرجم وقع عنده لا فیه ﴿ ولم یصل علیه ﴾ په تیرو شوی روایات کښ په دې باندې کلام تیر شوې دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی، قاله المنذری

[٤٤٣١](٢)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ زَكَرِيَّا وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: لَمَّا "أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجْمِ مَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ، خَرَجْنَا بِهِ إِلَى الْبَقِيعِ، فَوَاللَّهِ مَا أَوْثَقْنَاهُ وَلَا حَفَرْنَا لَهُ وَلَكِنَّهُ قَامَ لَنَا، قَالَ أَبُو كَامِلٍ: قَالَ فَرَمَيْنَاهُ بِالْعِظَامِ وَالْمَدَرِ وَالْخَزَفِ فَاشْتَدَّ وَاشْتَدَدْنَا خَلْفَهُ، حَتَّى أَتَى عَرْضَ الْحَرَّةِ فَانْتَصَبَ لَنَا فَرَمَيْنَاهُ بِجَلَامِيدِ الْحَرَّةِ حَتَّى سَكَتَ، قَالَ: فَمَا اسْتَغْفَرَ لَهُ وَلَا سَبَّهُ".

د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي هرکله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وماعز بن مالک درجم

---

(١): خ /الطلاق ١١ (٥٢٧٠)، الحدود ٢١ (٦٨١٤)، ٢٥ (٦٨٢٠)، صحیح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩١)، سنن الترمذي/الحدود ٥ (١٤٢٩)، ن /الجنائز ٦٣ (١٩٥٨)، (تحفة الأشراف: ٣١٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٣/٣)، دي /الحدود ١٢ (٢٣٦١) (صحیح) إلا أن (خ) قال: وصلي علیه وهي شاذة

(٢): صحیح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٤)، (تحفة الأشراف: ٤٣١٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الحدود ١٤ (٢٣٦٥) (صحیح)

حکم وکړونو مونږ بقیع مقام ته بوتلو په الله قسم مونږ تړلي هم نه وواو نه موودده دپاره دوغل کنستلي وو بلکه دي په خپله مونږ ته راپاڅیدوراوی وائی ابوسعید خدری ووئیل مونږ په هډوکو او لوټو (چمانو) او کاڼرو باندې وویشتلو نو او تختیدو، مونږ هم ورپسې منډې کړې، تردې چه هغه حره کاڼریجنې زمکې ته راغې، نو اودریدو، مونږ هغه د حره مقام په غټو غټو کاڼرو اوویشتلو، تردې چه یخ شو (غلې شو) نو نه هغوی دهغه د مغفرت دپاره دعا اوکړه، او نه ئې ورته بد اووئیل.

**قوله**: ﴿فَوَاللهِ مَا أَوْثَقْنَاهُ وَلاَ حَفَرْنَا لَهُ وَلَكِنَّهُ قَامَ لَنَا. - قَالَ أَبُو كَامِلٍ قَالَ - فَرَمَيْنَاهُ بِالْعِظَامِ وَالْمَدَرِ وَالْخَزَفِ الخ﴾

یعنی ماعز بن مالک رضی الله عنه د رجم په وخت نه اوتړلې شو او نه د هغه دپاره کنده اوکنستلې شوه بلکه هغه زمونږ مخې ته ولاړ وو پس کله چه مونږ د هغه رجم شروع کړو په عظام او مدر وغیره سره نو هغه منډه کړې نو مونږ هم په هغه پسې منډه کړې، تردې چه هغه د حره په یو طرف کښ زمونږ مخې ته اودریدلو مونږ په مقام حره کښ کاڼری اوچتولو سره د هغوی په هغې باندې رجم اوکړو.

والحدیث اخرجه مسلم والنسائی بمعناه، قاله المنذری.

**قوله**: ﴿قَالَ - فَمَا اسْتَغْفَرَ لَهُ وَلاَ سَبَّهُ﴾ یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د رجم د پوره کیدو نه پس د هغوی په باره کښ سکوت اوفرمائیلو نه ئې دعاء اوفرمائیله او نه بددعاء، او د دې نه په روستو روایت کښ دی چه بعض خلقو په هغه باندې لعن طعن شروع کړو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ددې نه منع کړل بیا هغوی د هغه دپاره استغفار شروع کړو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې نه هم منع کړل، ﴿هُوَ رَجُلٌ أَصَابَ ذَنْبًا حَسِيبُهُ اللهُ﴾

[٤٤٣٢] [1] حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَيْسَ بِتَمَامِهِ، قَالَ: ذَهَبُوا يَسُبُّونَهُ فَنَهَاهُمْ، قَالَ: ذَهَبُوا يَسْتَغْفِرُونَ لَهُ فَنَهَاهُمْ، قَالَ: هُوَ رَجُلٌ أَصَابَ ذَنْبًا حَسِيبُهُ اللَّهُ.

د ابو نضره نه روایت دې چه یو سړې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغې، ورپسې ئې همدغسې روایت کړې دې، او پوره نه دې، په هغې کښې دی چه خلقو هغه ته بدې ردې اووئیلې، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی منع کړل، بیا خلقو دهغه د مغفرت دعاګانې کولې، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی منع کړل او وې فرمائیل: دا یو سړې وو چه ګناه ئې اوکړه، اوس به الله ورسره پوهه شي. (که غواړي معاف به ئې کړي ګنی سزا به ورکړي تاسو پکښې ولې دخل کوئ.)

## توضیح الحدیث

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د استغفار نه کولو مصلحت ښکاره دې چه د خلقو دپاره عبرت شي او د خلقو په زړونو کښ د دې جرم بدی او سپیرۀ والې پیدا شي.

وړاندې په روایت کښ دی: ﴿أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- اسْتَنْكَهَ مَاعِزًا﴾

[1]: تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٣٣١) (ضعيف)

[۴۴۳۳]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَعْلَى بْنِ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ غَيْلَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَنْكَهَ مَاعِزًا".

بریده ﷛ روایت کوی چه نبی کریم ﷺ د ماعز خوله بوئی کړله (په دې خیال چه چرته شراب خو ئې نه دی څکلی).

## توضیح الحدیث

چه رسول الله ﷺ د ماعز د اقرار په وخت د هغه خولهٔ بوئی کړه چه معلومه شی چه هغه په نشه کښې خو نه دې، ځکه چه د سکران اقرار معتبر نه دې.

والحدیث اخرجه مسلم بطوله، قاله المنذری

[۴۴۳۴]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْأَهْوَازِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا بُشَيْرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنَّا أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَحَدَّثُ: "أَنَّ الْغَامِدِيَّةَ، وَمَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ لَوْ رَجَعَا بَعْدَ اعْتِرَافِهِمَا، أَوْ قَالَ: لَوْ لَمْ يَرْجِعَا بَعْدَ اعْتِرَافِهِمَا لَمْ يَطْلُبْهُمَا، وَإِنَّمَا رَجَمَهُمَا عِنْدَ الرَّابِعَةِ".

بریده ﷛ وائی چه مونږ به د رسول الله ﷺ د صحابؤ ذکر کولو چه غامدیه او ماعز بن مالک که د اقرار نه ګرځیدلی وو، یا ئې د اقرار نه پس بیا اقرار نه وې کړې، ن نبی کریم ﷺ به هغوی دواړو ته سزا نه وې ورکړې، نبی کریم ﷺ هغوی دواړه هغه وخت رجم کړل (سنګسار ئې کړل) چه کله ئې دوه څلور ځله اقرار اوکړو. (او دهغوی په اقرار کښې هیڅ قسم څه شک باقی نه وو پاتې شوې).

## د الفاظ حدیث شرح:

قوله: ﴿كُنَّا أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ نَتَحَدَّثُ أَنَّ الْغَامِدِيَّةَ وَمَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ لَوْ رَجَعَا بَعْدَ اعْتِرَافِهِمَا أَوْ قَالَ لَوْ لَمْ يَرْجِعَا بَعْدَ اعْتِرَافِهِمَا لَمْ يَطْلُبْهُمَا وَإِنَّمَا رَجَمَهُمَا عِنْدَ الرَّابِعَةِ﴾

دا لفظ د راوی په شک سره دې چه استاد ﴿لو رجعها﴾ وئیلې وو یا ﴿لو لم یرجعها﴾ خو جزاء د دواړو یو ده ﴿لم یطلبهما﴾ لهذا دا جمله تشریح او توجیه ته محتاج ده، که ﴿لو رجعها﴾ وی نو بیا خو مطلب دا دې چه که دې دواړو د زنًا د اقرار کولو نه پس د دې نه مطلقا رجوع کړې وې نو بیا به رسول الله ﷺ دوی نه طلب کولې بلکه پریخودلی به ئې وې لکه چه د جمهور علماء کرامو مسلک دې خلافا لابن ابی لیلی وابی ثور، او که دا ﴿لو لم یرجعها﴾ دې نو په دې صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه که د یو یا دوه کرته اقرار کولو نه پس د رسول الله ﷺ د مجلس نه تلې وې او د دې نه پس واپس نه وې راغلی په دریم او څلورم ځل د اقرار کولو دپاره نو رسول الله ﷺ به هغوی د تکمیل اقرار دپاره نه طلب کولې ځکه چه اقرار کوم چه معتبر دې هغه څلور کرته اقرار دې او ګویا رسول الله ﷺ به په ﴿ادرؤا الحدود مااستطعتم﴾ باندې عمل فرمائیلو. والحدیث اخرجه النسائی بنحوه، قاله المنذری.

( ): صحيح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٩٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٧/٥، ٣٤٨)، سنن الدارمي/الحدود ١٤ (٢٣٦٦) (صحيح)

( ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٩٤٨) (ضعيف)

[۴۴۳۵] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ صَبِيحٍ، قَالَ عَبْدَةُ: أَخْبَرَنَا حَرَمِيُّ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُلَاثَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، أَنَّ خَالِدَ بْنَ اللَّجْلَاجِ حَدَّثَهُ، أَنَّ اللَّجْلَاجَ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ، "أَنَّهُ كَانَ قَاعِدًا يَعْتَمِلُ فِي السُّوقِ فَمَرَّتِ امْرَأَةٌ تَحْمِلُ صَبِيًّا فَثَارَ النَّاسُ مَعَهَا وَثُرْتُ فِيمَنْ ثَارَ، فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ يَقُولُ: مَنْ أَبُو هَذَا مَعَكِ؟ فَسَكَتَتْ، فَقَالَ شَابٌّ حَذْوَهَا: أَنَا أَبُوهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَأَقْبَلَ عَلَيْهَا، فَقَالَ: مَنْ أَبُو هَذَا مَعَكِ؟ قَالَ الْفَتَى: أَنَا أَبُوهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَنَظَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَعْضِ مَنْ حَوْلَهُ يَسْأَلُهُمْ عَنْهُ، فَقَالُوا: مَا عَلِمْنَا إِلَّا خَيْرًا، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَحْصَنْتَ؟ قَالَ: نَعَمْ، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ، قَالَ: فَخَرَجْنَا بِهِ فَحَفَرْنَا لَهُ حَتَّى أَمْكَنَّا ثُمَّ رَمَيْنَاهُ بِالْحِجَارَةِ حَتَّى هَدَأَ، فَجَاءَ رَجُلٌ يَسْأَلُ عَنِ الْمَرْجُومِ فَانْطَلَقْنَا بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْنَا: هَذَا جَاءَ يَسْأَلُ عَنِ الْخَبِيثِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَهُوَ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ، فَإِذَا هُوَ أَبُوهُ فَأَعَنَّاهُ عَلَى غُسْلِهِ وَتَكْفِينِهِ وَدَفْنِهِ، وَمَا أَدْرِي؟ قَالَ: وَالصَّلَاةِ عَلَيْهِ أَمْ لَا؟"، وَهَذَا حَدِيثُ عَبْدَةَ وَهُوَ أَتَمُّ.

دخالد بن لجلاج بیان دي چه ددوی پلار لجلاج دوی ته اووئیل چه هغه بازار کښې ناست وو کار ئي کولو چه په دې کښې یوه ښځه تیره شوه چه یو ماشوم ئي په غیږ کړې وو، نو خلق دهغې په لیدلو اودریدل، په هغه ولاړو خلقو کښې زه هم ووم، او زه نبی کریم ﷺ ته اورسیدم. هغوی ﷺ دهغې نه تپوس کولو چه: ددې ماشوم پلار څوک دې؟ هغه ښځه چپ وه، یو ځوان چه دهغه په خواکښې ولاړ وو هغه اووئیل: اې دالله رسوله ﷺ! زه دده پلار یم، نبی کریم ﷺ بیا دهغه ښځې طرف ته متوجه شو او تپوس ئي ترې اوکړو چه: ددې ماشوم پلار څوک دې؟ نو هغه ځوان بیا اووئیل: اې دالله رسوله ﷺ! زه دده پلار یم، په دې اوریدو سره نبی کریم ﷺ د خپل ګیر چاپیره ناستو خلقو کښې چا طرف ته اوکتل دهغه نه ئي ددې ځوان باره کښې معلومات کول، نو خلقو اووئیل: مونږ خو دا نیک ګڼړو، بیا نبی کریم ﷺ دهغه نه تپوس اوکړو: آیا تا واده کړې دې؟ هغه اووئیل: آؤ جی، نو نبی کریم ﷺ دهغه د رجم کولو حکم اوفرمائیلو. نو هغه رجم کړې شو، په هغې کښې دی چه مونږ دې بوتلو او په یوه کنده کښې مو ښخ کړو، بیا مو په کاڼړو اوویشتلو، تردې چه هغه سوړ شو، په دې کښې یو سړې راغې، او ددې رجم کړې شوی سړی باره کښې ئي تپوس اوکړو، نو هغه مونږ نبی کریم ﷺ ته ور وستلو، او مونږ اووئیل: دا ددغه خبیث باره کښې تپوس کوی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: هغه د الله په نزد د مشکو د بوئی نه هم زیات پاک دې. بیا پته اولګیده چه دا دهغه پلار وو، مونږ دهغه په غسل او کفن دفن کښې دهغه مدد اوکړو. ابوداؤد وائی: ماته معلومه نه ده چه هغوی په هغه باندې په مونځ کولو کښې هم (د مدد) اووئیل اوکه نه؟ دا د عبده روایت دې، او زیات کامل دې.

## مضمون الحدیث

قوله: ﴿أَنَّ اللَّجْلَاجَ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ كَانَ قَاعِدًا يَعْتَمِلُ فِي السُّوقِ فَمَرَّتِ امْرَأَةٌ تَحْمِلُ صَبِيًّا فَثَارَ النَّاسُ مَعَهَا وَثُرْتُ فِيمَنْ ثَارَ فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم الخ﴾

خالد بن اللجاج وائی چه ماته زما پلار خبر راکړو چه هغوی په بازار کښې ناست وو څه کار

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۷۹/۳) (حسن الإسناد)

ئې كولو ، يو زنانه چه د هغې په غير كښ ماشوم وو تيره شوه ، خلق هغې سره روان شو زه هم په هغوى پسې شاته د تلونكو نه اوم تر دې چه مونږ رسول الله ﷺ ته اورسيدو ، هلته مې اوليدل چه رسول الله ﷺ د هغه زنانه نه تپوس فرمائيلو چه تاسره چه دا كوم ماشوم دې د دهٔ پلار څوک دې؟ هغه خاموشه وه د هغې خوا كښ يو ځوان ناست وو هغه اووې يا رسول الله ﷺ زه يم د دې ماشوم پلار ، د دې نه پس بيا رسول الله ﷺ هغه زنانه ته متوجه كيدو سره تپوس اوكړو چه د دې ماشوم پلار څوک دې بيا هم هغه ځوان اووې يا رسول الله ﷺ د دې ماشوم پلار زه يم ، په دې باندې رسول الله ﷺ د خواوشا ولاړو خلقو نه د هغه ځوان په باره كښ تپوس اوكړو يعنى دا چه هغه صحيح العقل دې ليونې خو نه دې؟ خلقو عرض اوكړو چه زمونږ په نزد دې روغ دې ، د دې نه پس رسول الله ﷺ د دې ځوان نه تپوس اوكړو چه ته محصن ئې؟ هغه د محصن كيدو اقرار اوكړو ، رسول الله ﷺ د هغه د رجم كولو حكم اوفرمائيلو. راوى وائي چه مونږ دا ځوان بوتلو او د هغه دپاره مو كنده اوكنستله تردې چه مونږ د هغه په رجم باندې قابو بيا موندلو ، پس مونږ د هغه رجم اوكړو تردې چه هغه يخ شو ، لږ ساعت پس يو سړې د دې مرجوم په باره كښ تپوس كولو سره راغلو مونږ هغه رسول الله ﷺ ته بوتلو او مونږ عرض اوكړو چه دا سړې د دې خبيث په باره كښ تپوس كوى ، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ؛

**قوله:** ﴿ لَهُوَ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ ﴾ چه قسم په الله هغه د الله پاک په نزد د مشكو د خوشبويۍ نه هم زيات پاک دې ، ﴿ فاذا هو ابوه ﴾ يعنى معلومه شوه چه هغه سړې د دې مرجوم پلاردې پس مونږ دهغه امداد اوكړو دهغه مرجوم په غسل اودهغه په تكفين دفن باندې ، د مانځهٔ په باره كښ د راوى شک دې چه په روايت كښ د هغې ذكر شته يا نه.

په دې حديث كښ د سړي د رجم دپاره د حفر ذكر دې ، په حاشيه د بذل كښ دى: فيه الحفر للرجل.... وقال الموفق ١٢٢/٨ لا يحفر للرجل اجماعا اهـ د دې جواب دا كيدې شى والله تعالى اعلم ، چه بعض صحابه كرامو ﷺ به په خپل اجتهاد سره داسې كړې وى.

والحديث اخرجه النسائى ، قاله المنذرى

[٤٤٣٦](١)حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ جَمِيعًا، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، وَقَالَ هِشَامٌ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الشُّعَيْثِيُّ، عَنْ مَسْلَمَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْجُهَنِيِّ، عَنْ خَالِدِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعْضِ هَذَا الْحَدِيثِ.

دمسلمه بن عبد الله الجهنى ﷺ نه روايت دې فرمائي چه خالد بن الحلاج دخپل پلار نه په دې سند سره د تير شوي حديث بعضې حصه بيان كړيده.

[٤٤٣٧](٢)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَجُلًا أَتَاهُ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ سَمَّاهَا لَهُ، فَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَرْأَةِ، فَسَأَلَهَا عَنْ ذَلِكَ؟ فَأَنْكَرَتْ أَنْ تَكُونَ زَنَتْ، فَجَلَدَهُ الْحَدَّ وَتَرَكَهَا".

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١١٧١) (حسن الإسناد)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٧٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٣٩، ٣٤٠)، ويأتي برقم (٤٤٦٦) (صحيح)

د سهل بن سعد ﷛ نه روايت دې چه يو سړې نبی کريم ﷺ ته راغې اقرار ئې اوکړو چه ده د يوې ښځې سره زنا کړې ده، چه دهغې نوم ئې واخستلو، نو نبی کريم ﷺ هغه ښځه راوغوښتله او دهغې نه ئې دده باره کښې تپوس اوکړو، نو هغې ددې خبرې نه انکار اوکړو چه ده زنا کړې ده، نو نبی کريم ﷺ په دغه سړي باندې حد نافذ کړو، او ښځه ئې پريخوده.

[٤٤٣٨]([1])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ح حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ الْمَعْنَى، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ: "أَنَّ رَجُلًا زَنَى بِامْرَأَةٍ فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجُلِدَ الْحَدَّ، ثُمَّ أُخْبِرَ أَنَّهُ مُحْصَنٌ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ الْبُرْسَانِيُّ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، مَوْقُوفًا عَلَى جَابِرٍ، وَرَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، بِنَحْوِ ابْنِ وَهْبٍ، لَمْ يَذْكُرِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ رَجُلًا زَنَى فَلَمْ يُعْلَمْ بِإِحْصَانِهِ فَجُلِدَ ثُمَّ عُلِمَ بِإِحْصَانِهِ فَرُجِمَ.

د جابر ﷛ نه روايت دې چه يو سړي د يوې ښځې سره زنا اوکړه نو نبی کريم ﷺ دهغه متعلق حکم ورکړو نوهغه ته په حد کښې کوړې اولګولې شوې، بيا ورته اووئيلې شو چه دا خو واده کړې وو، نو نبی کريم ﷺ حکم ورکړوچه دا رجم کړې شی، نو هغه رجم کړې شو، ابوداؤد وائی: دا حديث محمد بن بکر برسانی د ابن جريج نه په جابر باندې موقوفا روايت کړې دې، ابوعاصم د ابن جريج نه داسې روايت کړې دې څنګه چه ابن وهب روايت کړې دې، په هغې کښې دوی د نبی کريم ﷺ ذکر نه دې کړې، په هغې کښې دی چه يو سړی زنا اوکړه دهغه د واده علم نه وو، نو هغه ته کوړې اولګولې شوې، بيا پته اولګيده چه هغه واده کړې دې، نو رجم کړې شو.

قوله: ﴿ عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلاً زَنَى بِامْرَأَةٍ فَأَمَرَ بِهِ رسول الله –صلى الله عليه وسلم– فَجُلِدَ الْحَدَّ ثُمَّ أُخْبِرَ أَنَّهُ مُحْصَنٌ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ ﴾

ملا علی قاری ﷫ فرمائی چه د دې نه معلومه شوه چه جلد د رجم قائم مقام نه شی کيدې، خو د دې عکس کيدې شی، څکه چه په کوم صورت کښې جلد مائة کفاره کيدې شی نو رجم به په طريق اولی وی سره د زيادت نه.

[٤٤٣٩]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَبُو يَحْيَى الْبَزَّازُ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ: "أَنَّ رَجُلًا زَنَى بِامْرَأَةٍ فَلَمْ يُعْلَمْ بِإِحْصَانِهِ فَجُلِدَ ثُمَّ عُلِمَ بِإِحْصَانِهِ فَرُجِمَ".

د جابر ﷛ نه روايت دې فرمائی چه يو کس ديوې زنانه سره زنا وکړه اودده محصن کيدل معلوم نشونوپه درووهې شوبياچه کله دده محصن کيدل معلوم شو نورجم کړې شو.

## په حديث باندې يو اشکال او د هغې جواب:

په بذل کښې په دې حديث باندې اشکال کړې دې چه رسول الله ﷺ هغه زانی ته کوړې ورکړې د هغه د محصن کيدو د وجې نه، بيا چه کله رسول الله ﷺ ته خبر ورکړې شو چه هغه محصن دې نو رسول الله ﷺ هغه رجم کړو، چه د هغې تقاضا دا ده چه د جلد خطاء وقوع اوشوه حال دا چه د امت په دې باندې اتفاق دې چه رسول الله ﷺ د خطاء د صدور نه پس په

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٨٣٢) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٨٣٢) (ضعيف)

هغې باندې قائم او برقرار نه شي پاتې کيدې. (لا يقر على الخطاء) او دا اشکال على مذهب الجمهور دې، او د کومو علماء کرامو په نزد چه جمع بين الجلد والرجم جائز ده د هغوی د مسلک په لحاظ هيڅ اشکال نشته،

حضرت د دې اشکال هيڅ جواب نه دې ليکلې، د بذل په عبارت ﴿ وهذا اقرار على الخطاء ﴾ باندې مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله ليکلي دی : فيه نظر لانه عليه الصلوة والسلام علم خطاه باخبار الناس اهـ يعنی رسول الله ﷺ په خطاء باندې کله قائم پاتې شو هغوی د خپلې خطاء نه خبر شوې وو د خلقو په خبرولو باندې، احقر وائی چه د مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله خبره په خپل ځائې صحيح ده خو د صاحب البذل مراد خو د خطاء نه تحقق الجلد مع الرجم دې وهو خطاء على مسلک الجمهور، خو دې ته به اقرار على الخطاء نه شي وئيلې کيدې اقرار على الخطاء به هله وې چه رسول الله ﷺ ته د هغه د محصن کيدو خبر نه وې او د هغه زانی رجم نه وې شوې فتامل.

## باب فی المرأة التی امر النبی صلی الله علیه وسلم برجمها من جهینة

### باب د هغه جهينی ښځې بيان چه نبی عليه السلام دهغې د رجم کولو حکم کړې وو

په کتب حديث کښې د زنا متعلق دوه قصې زياتې مشهورې دی يو د ماعز بن مالک اسلمی رضی الله عنه، او دويمه دا واقعه چه په هغې باندې مصنف رحمه الله مستقل ترجمه قائم کړې ده يعنی د امراة جهينة. په احاديثو کښې د دې زنانه صفت غامديه رضی الله عنها هم راځی او بارقيه هم، پس وړاندې په کتاب کښې راځی ﴿ قال الغسانی وغامد وبارق واحد ﴾ په حاشيه د ابن الجوزی کښې د تلقيح صفحه ٣٦٢ نه نقل کړی دی اسمها سبيعه قيل ابيه بنت فرج.

﴿ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ جُهَيْنَةَ - أَتَتِ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَتْ إِنَّهَا زَنَتْ وَهِيَ حُبْلَى الخ ﴾

[٤٤٤٠] ([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَنَّ هِشَامًا الدَّسْتُوَائِيَّ، وَأَبَانَ ابْنَ يَزِيدَ، حَدَّثَاهُمُ الْمَعْنَى، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ: أَنَّ امْرَأَةً، قَالَ فِي حَدِيثِ أَبَانَ: مِنْ جُهَيْنَةَ، أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "إِنَّهَا زَنَتْ وَهِيَ حُبْلَى، فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِيًّا لَهَا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَحْسِنْ إِلَيْهَا فَإِذَا وَضَعَتْ فَجِئْ بِهَا، فَلَمَّا أَنْ وَضَعَتْ جَاءَ بِهَا، فَأَمَرَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشُكَّتْ عَلَيْهَا ثِيَابُهَا، ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَرُجِمَتْ، ثُمَّ أَمَرَهُمْ فَصَلُّوا عَلَيْهَا، فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ تُصَلِّي عَلَيْهَا وَقَدْ زَنَتْ، قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ قُسِّمَتْ بَيْنَ سَبْعِينَ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَوَسِعَتْهُمْ، وَهَلْ وَجَدْتَ أَفْضَلَ مِنْ أَنْ جَادَتْ بِنَفْسِهَا" ، لَمْ يَقُلْ: عَنْ أَبَانَ، فَشُكَّتْ عَلَيْهَا ثِيَابُهَا.

دعمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه د جهينه قبيلې يوه ښځه نبی عليه السلام ته راغله او هغې ووئيل چه ما زنا کړې ده او هغه حامله وه نو نبی عليه السلام دهغې يو وارث را اوغوښتو او

[1] ): صحيح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٦)، سنن الترمذي/الحدود ٩ (١٤٣٥)، سنن النسائي/الجنائز ٦٤ (١٩٥٩)، سنن ابن ماجه/الحدود ٩ (٢٥٥٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٧٩، ١٠٨٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٢٠، ٤٣٥، ٤٣٧، ٤٤٠)، دي/الحدود ١٨ (٢٣٧٠) (صحيح)

ورته ئې اوفرمائيل ددې سره ښه سلوک کوه اوکله چه ددې ولادت وشي نوماته ئې راوله ، هرکله چه دهغې ولادت وشو نونبی ﷺ ته ئې راوستله نونبی ﷺ دهغې متعلق حکم وکړونوهغې په خپل ځان پورې خپلې جامې راټولې کړې او بيا ئې دهغې درجم کولوحکم وکړو او رجم کړې شوه اوبيائې صحابه کراموته حکم وکړو نوهغوی ورباندې جنازه وکړله عمر رضی الله عنه ووئيل اې دالله رسوله ته خو په دې باندې جنازه کوې اوحال دادې چه دې خوزنا کړې ده نبی ﷺ اوفرمائيل په هغه ذات مې دې قسم وي دچا په قبضه کښې چه زما روح دې چه دې زنانه داسې توبه کړې ده که چرې دا توبه دمدينې په اويا کسانوباندې تقسيم کړې شي نوددوی دپاره به کافي وي، نوايادډې نه هم بله ښه خبره کيدې شي چه دې خپل ځان قربان کړو(يعنی په خپله درجم دپاره دربارنبوي ته حاضره شوه) راوی دابان نوم نه دی اخستلې اوبيا په دې زنانه پورې ددې جامې ور وتړلې شوې.

**مضمون الحديث** :

يعنی دې امراة جهينه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره د خپلې زنا او بيا د هغې نه د حمل اقرار اوکړو، رسول الله ﷺ د هغې ولی راطلب کړو او وې فرمائيل چه دې سره ښه سلوک کوه او کله چه د دې وضع د حمل اوشي نو بيا دا راوله، پس هغه د وضع حمل نه پس هغه راوستله، رسول الله ﷺ د رجم نه مخکښې هدايت اوفرمائيلو چه د دې د بدن جامې دې د هغې نه په ښه طريقه تاؤ کړې شی او بيا ئې رجم کړه، بيا رسول الله ﷺ خلقو ته اوفرمائيل چه په دې دې مونځ اوکړې شي. پس خلقو په هغې باندې مونځ اوکړو، سيدنا عمر رضی الله عنه اوفرمائيل يا رسول الله ﷺ! آيا مونږ په دې باندې مونځ اوکړو حال دا چه دې زنا کړې ده؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه قسم دې په هغه ذات باندې چه د چا په قبضه کښې زما روح دې دې زنانه داسې توبه کړې ده چه هغه د مدينې په اويا کسانو باندې (چا چه د کبائرو ارتکاب کړې وی) تقسيم کړې شی نو د ټولو دپاره به کافی شی، او آيا د دې نه به غوره او افضل خبره نوره څۀ وی چه دې په خپل اختيار باندې خپل ځان اوبخلو.

[٤٤٤١][1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، قَالَ: فَشُكَّتْ عَلَيْهَا ثِيَابُهَا يَعْنِي فَشُدَّتْ.

وليد وائی چه اوزاعي وئيلی دی چه د شکت نه مراد شدت دی يعنی ددې جامې ورپورې وروتړلې شوې.

مصنف رحمه الله دې واقعې له په ډيرو طرقو او مختلفو الفاظو سره چرته بتمامها او چرته په اختصار سره ذکر فرمائيلې ده، دا ړومبی روايت چه د هغې راوی عمران بن حصين رضی الله عنه دې دا خو مجمل وو، د دې نه په روستو روايت کښې تفصيل دې چه د هغې راوی بريدة بن الحصيب رضی الله عنه دې، پس د هغې مضمون دا دې چه:

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٨٨١) (صحيح)

[٤٤٤٢]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ امْرَأَةً يَعْنِي مِنْ غَامِدٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "إِنِّي قَدْ فَجَرْتُ، فَقَالَ: ارْجِعِي فَرَجَعَتْ، فَلَمَّا أَنْ كَانَ الْغَدُ أَتَتْهُ، فَقَالَتْ: لَعَلَّكَ أَنْ تَرُدَّنِي كَمَا رَدَدْتَ مَاعِزَ بْنَ مَالِكٍ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَحُبْلَى، فَقَالَ لَهَا: ارْجِعِي فَرَجَعَتْ، فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ أَتَتْهُ، فَقَالَ لَهَا: ارْجِعِي حَتَّى تَلِدِي فَرَجَعَتْ، فَلَمَّا وَلَدَتْ أَتَتْهُ بِالصَّبِيِّ، فَقَالَتْ: هَذَا قَدْ وَلَدْتُهُ، فَقَالَ لَهَا: ارْجِعِي فَأَرْضِعِيهِ حَتَّى تَفْطِمِيهِ فَجَاءَتْ بِهِ وَقَدْ فَطَمَتْهُ وَفِي يَدِهِ شَيْءٌ يَأْكُلُهُ، فَأَمَرَ بِالصَّبِيِّ فَدُفِعَ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، وَأَمَرَ بِهَا فَحُفِرَ لَهَا وَأَمَرَ بِهَا فَرُجِمَتْ، وَكَانَ خَالِدٌ فِيمَنْ يَرْجُمُهَا فَرَجَمَهَا بِحَجَرٍ فَوَقَعَتْ قَطْرَةٌ مِنْ دَمِهَا عَلَى وَجْنَتِهِ فَسَبَّهَا، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَهْلًا يَا خَالِدُ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ، وَأَمَرَ بِهَا فَصُلِّيَ عَلَيْهَا فَدُفِنَتْ".

دعبدالله بن بریده دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه یوه غامدیه ښځه نبی ﷺ ته راغله او عرض ئي وکړوچه مابدفعلی کړې ده نبی ﷺ ورته اوفرمائیل واپس لاړه شه نوهغه واپس لاړه کله چه صباشو نوبیا ورته راغله او وي وئیل کیدي چه تاسوماهم دما عزپه شان واپس کړئ (یعنی حدبه راباندې جاري نکړئ) اوزه حامله شوې یم نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل واپس لاړه شه تردې چه ولادت دي اوشي نوهغه واپس لاړه اوکله چه دهغې ماشوم پیداشونوماشوم پې ورته راوستو او وئې وئیل چه هغه ماشوم دادې نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل واپس لاړه شه او ده ته تي ورکړه تردې چه دتي نه ئې وارووي نوهغه واپس لاړه او چه کله ئي دتي نه وارولونوبیا راغله اوهغه ماشوم ئې دځان سره راوستواوپه لاس کښې ئې دخوراک څه شي ووچه خوړلوئي نوماشوم پې یو مسلمان ته حواله کړو اوددې دپاره یوه کنده وکنستلې شوه او په دې باندې ئې د رجم حکم وکړواوهغه رجم کړې شوه اوخالد هم په هغه کسانوکښې ووچاچه دارجم کړې وه اوچه کله ئې په یوه ګټه وویشتله نوددې دوینویو څاڅکي دده په مخ ولګیدو نوهغه دې ښځې ته کنځل وکړل نبی ﷺ خالد ؓ ته اوفرمائیل اې خالده اودریږه په هغه ذات مې دې قسم وي دچا په قبضه کښې چه زماروح دې یقینادې ښځې داسې توبه کړې ده که چرې یوظالم او دخلقو دحقوقو پالونکي داسې توبه کړې وې نوهم به ورته مغفرت شوې روبیادنبی ﷺ په حکم باندې په دې باندې جنازه وکړې شوه او دفن کړې شو.

د قبیله غامد یوې زنانه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغله او د خپلې زنا اقرار ئې اوکړو رسول الله ﷺ هغې ته د واپس کیدو حکم اوفرمائیلو هغه دې وخت کښې لاړه او په بله ورځ باندې بیا حاضره شوه او عرض ئې اوکړو چه کیدې شی چه تاسو به ما واپس کوئ هم دغه شان څنګه مو چه ماعز بن مالک ؓ واپس کړې وو زه قسم خوړلو سره وایم چه زه حبلی من الزنی یم، رسول الله ﷺ ورته دې وخت کښې هم دغه اوفرمائیل چه واپس شه، پس هغه واپس شوه او په بله ورځ باندې بیا دریم ځل راغله، دې ځل رسول الله ﷺ هغه په دې وینا باندې واپس کړه چه د وضع حمل نه پس راشه پس هغه لاړه او چه څو ورځې پس ئې وضع د حمل اوشو نو هغې ماشوم رسول الله ﷺ ته راوستلو، هغوی په دې وینا باندې

[1]): صحیح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٩٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٥٤٧، ٣٤٨)، سنن الدارمي/الحدود ١٤ (٢٣٦٦) (صحیح)

واپس کړه چه دې ماشوم ته پئ ورکوه او د رضاعت د مودې پوره کیدو نه پس راشه، پس هغه د فطام نه پس بیا راغله او د هغه ماشوم په لاس کښې څه څیز د خوراک وو، رسول الله ﷺ د ماشوم په باره کښې اوفرمائیل چه دې څوک په خپل کفالت کښې واخلئ. ﴿ وَأَمَرَ بِهَا فَحُفِرَ لَهَا وَأَمَرَ بِهَا فَرُجِمَتْ ﴾ رسول الله ﷺ د هغې دپاره د کندې کنستلو حکم اوفرمائیلو او بیا ئې د رجم، د هغې په رجم کونکو کښې خالد بن ولید رضي الله عنه هم وو، د رجم کولو په وخت د وینې یو قطره د هغه په مخ باندې راغله په دې باندې هغوی هغې ته سخت الفاظ اووئیل، رسول الله ﷺ په اوریدو باندې اوفرمائیل: ﴿ مَهْلاً يَا خَالِدُ فَوَالَّذِى نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ ﴾ اې خالده منع شه! په الله پاک قسم چه دې داسې توبه کړې ده چه که داسې توبه صاحب د مکس هم اوکړی نو د هغه به هم بخښنه اوشی او بیا پرې رسول الله ﷺ د مانځه حکم اوکړو او د هغې نه روستو دفن کړې شو.

د صاحب مکس نه مراد هغه عشار دې کوم چه په ناجائز طریقې سره عشر وصول کړی، یعنی ناجائز ټیکس، د کتاب الخراج په شروع کښې د سیدنا عقبة بن عامر رضي الله عنه حدیث مرفوع تیر شوې دې: ﴿ لا يدخل الجنة صاحب مكس ﴾

والحديث اخرجه مسلم والنسائي وحديث مسلم اتم من هذا، قاله المنذري.

[٤٤٤٣](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، عَنْ زَكَرِيَّا أَبِي عِمْرَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ شَيْخًا يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَمَ امْرَأَةً فَحُفِرَ لَهَا إِلَى الثَّنْدُوَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَفْهَمَنِي رَجُلٌ، عَنْ عُثْمَانَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ الْغَسَّانِيُّ: جُهَيْنَةُ، وَغَامِدٌ، وَبَارِقٌ وَاحِدٌ.

ابوبکره دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه نبی علیه السلام یوه ښځه رجم کړې وه او دهغې دپاره ئې یوه کنده ویستلې وه دسینې پورې. امام ابوداؤد فرمائی دا روایت ماته یوکس د عثمان رضي الله عنه نه بیان کړې دې ابوداؤد وئیلی دی چه غساني وئیلی دی چه جهینة اوغامدیه اوبارق یوشې دي.

﴿عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– رَجَمَ امْرَأَةً فَحُفِرَ لَهَا إِلَى الثَّنْدُوَةِ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ په خلقو د یوې زنانه د رجم کولو دپاره یو کنده اوکنستله د سرې د سینې پورې، او د دې نه په روستو روایت کښې دی. ﴿ ثُمَّ رَمَاهَا بِحَصَاةٍ مِثْلَ الْحِمَّصَةِ ثُمَّ قَالَ « ارْمُوا وَاتَّقُوا الْوَجْهَ » ﴾ یعنی رسول الله ﷺ د هغې د رجم شروع پخپله د چنړئ برابر کانړی نه اوکړه او بیا ئې نورو خلقو ته اوفرمائیل چه اوس تاسو دا رجم کړئ یعنی د رجم په ذریعه ئې هلاکه کړئ، او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل چه په مخ دې او نه ویشتلې شی.

**دخبلی د رجم متعلق څو اختلافی مسائل:**

په دې احادیثو کښې څو داسې مسائل دی:

**(د وضع حمل نه پس به رجم کله کولې شی؟)**

اول دا چه چه د حاملې رجم دې د وضع حمل نه پس اوکړې شی دا خو متفق علیه ده اوس دا

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦/٥، ٤٢، ٤٣) (صحيح)

چه د وضع حمل نه پس به رجم کله کولې شي؟ امام نووي رحمه الله په شرح د مسلم کښې ليکلي دي چه د امام شافعي او احمد او مالک رحمهم الله مشهور قول دا دې چه ترڅو پورې ئې د رضاعت انتظام نه وي شوی نو نه به شي رجم کولې، او که څوک ورکونکې نه وي نو بيا دې زنانه خپله هغې ته پئ ورکوي په موده د رضاعت کښې او بيا د فطام نه پس دې د هغې رجم اوکړې شي، او امام ابوحنيفه او امام مالک رحمهما الله فی رواية فرمائي چه د وضع حمل نه پس به رجم کولې شي او د بيوې مرضعې د حصول انتظار به نه شي کولې. الی آخر ما ذكر. وفي الهداية : وإذا زنت الحامل لم تحد حتى تضع حملها كيلا يؤدي إلى هلاك الولد وهو نفس محترمة وإذا كان حدها الجلد لم تجلد حتى تتعالى من نفاسها وعن أبي حنيفة رحمه الله أنه يؤخر إلى أن يستغني ولدها عنها إذا لم يكن أحد يقوم بتربيته لأن في التأخير صيانة الولد عن الضياع وقد روي أنه عليه الصلاة والسلام قال للغامدية بعد ما وضعت ارجعي حتى يستغني ولدك اھ وفي الدر المختار : ويقام على الحامل بعد وضعها لا قبله أصلا (فإن كان حدها الرجم جمت حين وضعت) إلا إذا لم يكن للمولود من يربيه، قال ابن عابدين : (قَوْلُهُ إلَّا إذَا لَمْ يَكُنْ إلَخْ) هَذِهِ رِوَايَةٌ عَنْ الْإِمَامِ اقْتَصَرَ عَلَيْهَا صَاحِبُ الْمُخْتَارِ قَالَ فِي الْبَحْرِ : وَظَاهِرُهُ أَنَّهَا هِيَ الْمَذْهَبُ وَفِي النَّهْرِ : وَلَعَمْرِي أَنَّهَا مِنْ الْحُسْنِ بِمَكَانٍ، معلومه شوه چه د احنافو په دې کښې دوه قوله دي په متن هدايه کښې ئې هم دا اختيار کړې دې، کوم د احنافو مذهب چه امام نووي رحمه الله نقل کړې دې، دويم روايت په دې کښې د جمهورو موافق دې د علامه شامي د کلام نه معلوميږي چه راجح قول هم دا دې دا خو دي مذاهب ائمه، او دلته په کتاب کښې د غامديه په باره کښې دوه مختلف روايتونه راغلي دي د عمران بن حصين رضي الله عنه د ظاهر روايت نه معلوميږي چه رجم بعد الوضع فورا اوکړې شو او د بريده په روايت کښې د فطام تصريح ده، امام نووي رحمه الله د دې اختلاف د ذکر کولو نه پس فرمائي ﴿ فوجب تاويل الاولى الى الثانية لتتفقا ﴾ كذا في البذل. او د دې خلاف د امام ابن الهمام رائې د ترجيح ده چه هغوي اول روايت ته اصح وئيلې دې، وقال لان في الثانية بشيرا فيه مقال اھ من هامش البذل.

### (د حفر مسئله)

دويمه مسئله دلته د حفر ده د مرجوم دپاره، حافظ ليکي : وعند الشافعية لا يحفر للرجل وفي وجه يتخير الامام وهو أرجح لثبوته في قصة ماعز والمثبت مقدم على النافي وفي المرأة أوجه ثالثها الأصح ان ثبت زناها بالبينة استحب لا بالإقرار وعن الأئمة الثلاثة في المشهور عنهم لا يحفر وقال ابو يوسف وأبو ثور يحفر للرجل وللمرأة او ابن قدامه رحمه الله د امام احمد مذهب دا نقل کړې دې چه د سړي دپاره به حفر نه شي کولې او د زنانه په باره کښې هم د امام احمد ظاهري کلام دا دې چه د هغې دپاره دې حفر نه شي کولې، او بيا ئې دويم قول هم هغه ليکلې کوم چه د شوافعو په نزد اصح دې، وفي الهداية: الرجل والمرأة في ذلك سواء لأن النصوص تشملهما، وإن حفر لها في الرجم جاز لأنه عليه الصلاة والسلام حفر للغامدية إلى ثندوتها، قال الباجي قال مالك لا يحفر للمرجوم ولا سمعت احدا ممن مضى يحب ذلك، وقال الشافعي يحفر للمرأة... الى

آخر ما في الاوجز ۵/۶، د ﴿ ان نقول ﴾ نه معلومه شوه چه د ائمه ثلاثه په نزد حفر مطلقا نشته لا للرجل ولا المرأة او د شوافعو په نزد د سړي په حق کښې دوه قوله دي په اثبات او نفي کښې او اول قول راجح دې، او د زنانه په باره کښې درې روايتونه دی د اثبات او د نفي او دريم روايت کوم چه اصح دې هغه هم هغه دې کوم چه پورته تير شوې دې الفرق بين ثبوت الزنا بالاقرار وبالبنية... والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

[۴۴۴۴]([1]) قَالَ أَبُو دَاوُد: حُدِّثْتُ عَنْ عَبْدِ الصَّمَدِ بْنِ عَبْدِ الْوَارِثِ، قَالَ: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ سُلَيْمٍ بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ، زَادَ ثُمَّ رَمَاهَا بِحَصَاةٍ مِثْلِ الْحِمِّصَةِ، ثُمَّ قَالَ: ارْمُوا وَاتَّقُوا الْوَجْهَ، فَلَمَّا طَفِئَتْ أَخْرَجَهَا فَصَلَّى عَلَيْهَا، وَقَالَ فِي التَّوْبَةِ نَحْوَ حَدِيثِ بُرَيْدَةَ.

زکريا بن سليم په خپل سندسره دتيرشوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګردددې اضافې سره چه بيا ئې په ګيټوباندې ووېشتله چه دچڼې برابر وې، بيا ئې اوفرمائيل چه ويشتل کو خودمخ نه ځان ساتئ هرکله چه مړه شوه نود دوغل نه ئې راوويستله اوجنازه ئې درباندې وکړله اودتوبې متعلق ئې هم هغه خبره ارشاد اوفرمائيله کومه چه دبريده په حديث کښې تيره شوه.

[۴۴۴۵]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهُمَا أَخْبَرَاهُ "أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَحَدُهُمَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللَّهِ، وَقَالَ الْآخَرُ وَكَانَ أَفْقَهَهُمَا: أَجَلْ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللَّهِ وَائْذَنْ لِي أَنْ أَتَكَلَّمَ، قَالَ: تَكَلَّمْ، قَالَ: إِنَّ ابْنِي كَانَ عَسِيفًا عَلَى هَذَا وَالْعَسِيفُ الْأَجِيرُ فَزَنَى بِامْرَأَتِهِ، فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي الرَّجْمَ فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَبِجَارِيَةٍ لِي، ثُمَّ إِنِّي سَأَلْتُ أَهْلَ الْعِلْمِ فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ وَإِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَأَتِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللَّهِ، أَمَّا غَنَمُكَ وَجَارِيَتُكَ فَرَدٌّ إِلَيْكَ وَجَلَدَ ابْنَهُ مِائَةً وَغَرَّبَهُ عَامًا، وَأَمَرَ أُنَيْسًا الْأَسْلَمِيَّ أَنْ يَأْتِيَ امْرَأَةَ الْآخَرِ فَإِنِ اعْتَرَفَتْ رَجَمَهَا، فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا".

دابي هريره او زيد بن خالد الجهنی رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه دوه کسانونبی عليه السلام ته جګړه راوړله نو وئيل يوکس پدوی کښې اې د الله رسوله فيصله وکړه زمونږ په مينځ کښې د الله تعالی په کتاب باندې اوپه دوی کښې دويم کس ووئيل کوم چه پوهووپدوی کښې په مونږ کښې د الله په کتاب باندې فيصله وکړه او ماته دخبرو کولو دپاره اجازت راکړه، نبی عليه السلام ورته ووئيل خبرې شروع کړه هغه ووئيل زماځوي دده سره مزدور وو اودده دښځې سره ئې زنې وکړه نو ماته عالمانو ووئيل چه زما په ځوي باندې سل درې اويوکال دملک نه شړل دي نوما دهغه نه په سلو ګډو او يوې وينځې باندې فديه ورکړله کومه چه زماوه، بيا ې داهل

---

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٦٨٤) (ضعيف)

[2]): صحيح البخاري/الوكالة ١٣ (٢٣١٤)، الصلح ٥ (٢٦٥٥)، الشروط ٩ (٢٧٢٤)، الأيمان ٣ (٦٦٣٣)، الحدود ٣٠ (٦٨٢٧)، ٣٤ (٦٨٣٥)، ٣٨ (٦٨٥٩)، ٤٦ (٦٨٦٠)، الأحكام ٤٣ (٧١٩٣)، الأحاد ١ (٧٢٥٨)، صحيح مسلم/الحدود ٥ (١٦٩٧)، سنن الترمذي/الحدود ٨ (١٤٣٣)، سنن النسائي/آداب القضاة ٢١ (٥٤١٢)، سنن ابن ماجه/الحدود ٧ (٢٥٤٩)، (تحفة الأشراف: ٣٧٥٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحدود ١ (٦)، مسند احمد (١١٥/٤، ١١٦)، سنن الدارمي/الحدود ١٢ (٢٣٦٣) (صحيح)

علمونه تپوس وکړوهغوی راته ووئیل چه زماپه ځوي باندې سل درې اویو کال دملک نه شړل دي اودده په ښځه باندې رجم دې، نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل زما دې قسم وي په هغه ذات باندې دچاپه قبضه کښې چه زماروح دې ضروربه زه فیصله کوم دالله په کتاب باندې هرچه ګډان اووینځه ده نوهغه به واپس کړې شي تاته اودده ځوي ته ئې سل درې ورکړې اودیوکال دپاره ئې دملک نه وشړلو، او انیس اسلمي ته ئې حکم وکړوچه ددغه بل کس ښځه راولي که چرې اعتراف ئې وکړو نورجم ئې کړئ نوهغې اعتراف وکړو او رجم کړې شوه.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّهُمَا أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَ أَحَدُهُمَا يَا رَسُولَ اللَّهِ اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللَّهِ. وَقَالَ الآخَرُ وَكَانَ أَفْقَهَهُمَا أَجَلْ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللَّهِ وَأْذَنْ لِى أَنْ أَتَكَلَّمَ. قَالَ « تَكَلَّمْ » الخ﴾

**مضمون الحديث:**

د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه او د زید بن خالد الجهنی رضی الله عنه نه روایت دې چه دوه کسان د چا چه خپل مینځ کښې جهګړه وو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راغلل، په هغوی کښې یو اووې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ ترمینځه د کتاب الله موافق فیصله اوفرمایئ، بل اووې: کوم چه په دوی کښې زیات پوهه وو او یا رسول الله صلی الله علیه وسلم د کتاب الله مطابق فیصله اوکړئ، او ماته اجازت راکړئ چه زه واقعه بیان کړم.

راوی په دې دواړو کښې یو ته افقه اووې یا خو د خپل علم سابق په بناء باندې چه هغه دا دواړه د مخکښې نه پیژندل یا ئې د هغه د طرز کلام وغیره خبرو نه اندازه اولګوله په دې وجه هغه اجازت طلب کړو د واقعې د بیانولو او په قاعده کښې ئې پوره واقعه بیان کړه، واقعه هغه دا بیان کړه چه زما ځوئې دلته په مزدورئ باندې لګیدلې وو کار ئې کولو هغه دهغه ښځې سره زنا اوکړه، بعضو خلقو ماته اووې چه زما ځوئې به رجم کولې شي نو ما د رجم په بدل کښې په طور د فدئې هغه سړی لره (د مزنیه خاوند ته) سل بیزې او یو وینځه ورکړه [1] بیا ما د نورو اهل علم نه دې باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی ماته اوئیل چه زما د ځوی حد خو سل درې او تغریب عام دې او رجم خو فی الواقع د هغه سړي په ښځه باندې دې د دې هرڅه اوریدلو نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه زه به د کتاب الله مطابق فیصله کوم بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فیصله اوفرمائیله چه ستا ګډې بیزې او وینځه تاته واپس کولې شي، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه ځوی ته سل کوړې ورکړې او هغه ئې د یو کال دپاره د ښهر نه ویستلو، ﴿وَأَمَرَ أُنَيْسًا الأَسْلَمِيَّ أَنْ يَأْتِىَ امْرَأَةَ الآخَرِ الخ﴾ او رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل خادم انیس اسلمی ته حکم ورکړو چه د دې بل سړی ښځې ته لاړ شی که هغه هم اعتراف د زنا اوکړی نو هغه دې رجم کړې شی، پس هغې اعتراف اوکړو او هغه رجم کړې شوه.

**یو اشکال سره د جواب نه:**

دلته یو مشهور اشکال دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه زنانه ته سړې اولیږلو چه که هغه اقرار د

---

[1] قال الحافظ: الضمير في قوله فافتديت منه لخصمه وكأنهم ظنوا أن ذلك حق له يستحق أن يعفو عنه علي مال يأخذه وهذا ظن باطل)

زنا اوکړی نو هغه به رجم کولې شی حال دا چه د زنا په باره کښې خو تجسس نه شی کولې بلکه د هغې خلاف تلقین مستحب دې چه څو پورې کیدې شی د حد ثبوت اونشی نه ، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه په دې واقعه کښې د دې عسیف یعنی د مزدور پلار د رسول الله ﷺ په مجلس کښې یا د هغوی مخکښې دا اووې چه زما ځوی د دې سړی ښځې سره زنا کړې ده، د هغه دا قول د قذف او تهمت حیثیت لری ځکه چه د هغه دا وینا بغیر د ګواهانو نه وه لهذا. په دې صورت کښې دې زنانه ته د معلومیدو نه پس (چه په ما باندې د زنا تهمت لګولې شوې دې) د حد قذف د مطالبې حق ملاویږی په دې شرط چه هغه د زنا اقرار اونکړی نو د رسول الله ﷺ دا لیږل په دې اعتبار سره وو نه په هغه اعتبار سره کوم چه په اعتراض کښې ذکر شوې دی (چه که هغه د زنا اقرار اوکړی نو هغه دې رجم کړې شی)

د انیس په لیږلو دې دا اشکال اونکړې شی چه توکیل فی الحدود جائز نه دې د احنافو په نزد ففی الهدایة : وتجوز الوكالة بالخصومة في سائر الحقوق وكذا بإيفائها واستيفائها إلا في الحدود والقصاص فإن الوكالة لا تصح باستيفائها مع غيبة الموكل عن المجلس، ځکه چه کوم توکیل ناجائز دې هغه خو هغه دې کوم چه خپله د خصم د طرف نه وی، یعنی احد الخصمین د حد په معامله کښې بل چالره وکیل جوړولو سره قاضی ته اولیږی د استیفاء دپاره ځکه چه دلته دا صورت نشته، دلته خو خپله رسول الله ﷺ یعنی والی او حاکم خپل سړې د حد دپاره د حاکم په حیثیت لیږلې دې او دا جائز ده، په دې کښې هیڅ اشکال نشته.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## باب في رجم اليهوديين

### باب د یهودیانو د رجم بیان

**(ایا اسلام د احصان د شرائطو څنې دې؟)**

هم دا هغه مسئله ده چه د هغې په وجه باندې امام شافعی او احمد رحمهما الله د دې خبرې قائل دی چه اسلام د شرائط احصان نه نهٔ دې، په خلاف د احنافو او مالکیانو د هغوی په نزد اسلام په شرائط احصان کښې داخل دې او د حدیث الباب یعنی رجم الیهودیین جواب د هغوی د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه د رسول الله ﷺ دا فیصله د تورات په حکم باندې وه یعنی د توراة دحکم د وجې نه، یعنی تر دغه وخته پورې د رجم حکم نه وو نازل شوې او په توراة کښې د رجم حکم عام دې په محصن او غیر محصن باندې، او په رسول الله ﷺ باندې به چه د یو څیز په باره کښې څه حکم نه وو نازل شوې نو په اتباع بما فی التوراة باندې مامور وو، کذا فی البذل نقلا عن الحافظ، پس وراندې په روایت کښې تصریح ده چه : فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « فَإِنِّى أَحْكُمُ بِمَا فِى التَّوْرَاةِ ». فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا. قَالَ الزُّهْرِيُّ فَبَلَغَنَا أَنَّ هَذِهِ الآيَةَ نَزَلَتْ فِيهِمْ (إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا) كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- مِنْهُمْ. او په کوکب ۲۰۳ کښې دې باره کښې لیکلی دی: قوله رجم يهوديا ويهودية وكان تعزير الشيوع الفحشاء فيما بينهم والا فالاحصان منتف ههنا فلم يبق الا الجلد، وقد

ورد في الرواية من اشرك بالله فليس بمحصن اهـ ﴾ په دې صورت كښ به د دې وينا ضرورت نه وی چه دا واقعه د شروع ده په اسلام كښ د رجم د حكم د نزول نه د مخكښ ده.

[٤٤٤٦]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا لَهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْهُمْ وَامْرَأَةً زَنَيَا، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الزِّنَا؟ فَقَالُوا: نَفْضَحُهُمْ وَيُجْلَدُونَ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: كَذَبْتُمْ إِنَّ فِيهَا الرَّجْمَ، فَأَتَوْا بِالتَّوْرَاةِ فَنَشَرُوهَا فَجَعَلَ أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ، ثُمَّ جَعَلَ يَقْرَأُ مَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا، فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: ارْفَعْ يَدَيْكَ، فَرَفَعَهَا فَإِذَا فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ، فَقَالُوا: صَدَقَ يَا مُحَمَّدُ فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ، فَأَمَرَ بِهِمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَا، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَحْنِي عَلَى الْمَرْأَةِ يَقِيهَا الْحِجَارَةَ".

دابن عمرنه روايت دې فرمائي چه يوڅويهوديان نبي عليه السلام ته راغلل اوری وئيل چه پدوی كښې يوسړې اويوې ښځې زناكړې ده نبي عليه السلام ورنه تپوس وكړو چه په تورات كښې دزنا دپاره څه حكم دې؟هغوی ووئيل مونږئې شرموو او په دروئې وهلوعبد الله بن سلامه ورته ووئيل دروغ مو ووئيل په دې كښې رجم دې نوهغوی تورات راوړو اوبيرته ئې كړونوپدوی كښې يوكس درجم په ايت باندې لاس كيخودواوبيائې لوستل شروع كړل دپټ كړې شوې ځائې مخكښې او وروستنه ، عبد الله بن سلام ورته ووئيل لاس دې پورته كړه ، نوچه الاس ئې پورته كړو نوهلته درجم ايت ووهغوی ووئيل اې محمده دې رښتيا وائي په دې كښې درجم ايت دې ، نونبي عليه السلام ددوی درجم كولوحكم وكړو اودوی رجم كړې شول عبد الله بن عمر رضي الله عنهما وائي چه ماهغه سړې ليدلو چه په دغه ښځو راتيتيدو اودكانړونه به ئې بچ كوله.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ إِنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا إِلَى رسول الله -صلى الله عليه وسلم- فَذَكَرُوا لَهُ أَنَّ رَجُلاً مِنْهُمْ وَامْرَأَةً زَنَيَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الزِّنَا ». فَقَالُوا نَفْضَحُهُمْ وَيُجْلَدُونَ الخ ﴾

يعنی يو ځل څه يهود د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښ راغلل او راتلو سره ئې د يو يهودی او يهوديه د زنا ذكر اوكړو، رسول الله صلى الله عليه وسلم تپوس اوكړو چه په توراة كښ د زنا څه حكم ليكلې شوې دې؟ هغوی جواب وركړو دا دې چه هغوی رسوا كړې شی او كوړې وركړې شی په دې باندې عبد الله بن سلام رضي الله عنه اوفرمائيل چه تاسو دروغژن يئ، په توراة كښ خو د رجم حكم موجود دې، هغوی توراة راوړلو او هغه ئې پرانستلو يو يهودی په هغه ځائې باندې چرته چه د رجم حكم وو خپل لاس كيخودلو او آيت د رجم پريخودلو سره ئې د هغې ماقبل او مابعد لره لوستل شروع كړل، عبد الله بن سلام رضي الله عنه اوفرمائيل خپل لاس اوچت كړه، چه كله هغه لاس اوچت كړو نو هلته د رجم آيت موجود وو، روستو هغه اووې صدق يا محمد صلى الله عليه وسلم فيها اية الرجم، رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغوی د رجم حكم اوفرمائيلو: ﴿ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَحْنِي عَلَى الْمَرْأَةِ يَقِيهَا الْحِجَارَةَ ﴾ سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه ما

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ٦٠ (١٣٢٩)، المناقب ٢٦ (٣٦٣٥)، الحدود ٢٤ (٦٨٤٨)، صحيح مسلم/الحدود ٦ (١٦٩٩)، سنن الترمذي/الحدود ١٠ (١٤٣٦)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٠ (٢٥٥٦)، (تحفة الأشراف: ٨٠١٤، ٨٣٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٧/٦٣، ٧٦)، موطا امام مالك/الحدود ١(١)، سنن الدارمي/الحدود ١٥ (٢٣٦٧) (صحيح)

هغه يهودي اوليدو چه ښکته کيدو يعني د رجم په وخت په هغه يهوديه باندې د رجم نه د بچ کولو دپاره چه هغه په کانړو باندې او نه لګي. والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٤٤٧] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "مَرُّوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَهُودِيٍّ قَدْ حُمِّمَ وَجْهُهُ وَهُوَ يُطَافُ بِهِ، فَنَاشَدَهُمْ: مَا حَدُّ الزَّانِي فِي كِتَابِهِمْ؟ قَالَ: فَأَحَالُوهُ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ، فَنَشَدَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا حَدُّ الزَّانِي فِي كِتَابِكُمْ؟ فَقَالَ: الرَّجْمُ، وَلَكِنْ ظَهَرَ الزِّنَا فِي أَشْرَافِنَا، فَكَرِهْنَا أَنْ يُتْرَكَ الشَّرِيفُ وَيُقَامَ عَلَى مَنْ دُونَهُ، فَوَضَعْنَا هَذَا عَنَّا، فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَوَّلُ مَنْ أَحْيَا مَا أَمَاتُوا مِنْ كِتَابِكَ".

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دنبي عليه السلام په وړاندې يو يهودي تير شو اومخ ئې تور کړې شوې وونبي عليه السلام يهوديان راوغوښتل اوددوبنه ئې تپوس اوکړو چه ايا تاسو په تورات کښې دهغه چا دپاره چه زنا ئې کړې وی دا سزا ليدلې ده؟ هغوی اووئيل هو، نبی عليه السلام ددوی يوعالم راوغوښتو اوهغه ته ئې په هغه الله باندې قسم ورکړو چاچه په موسی عليه السلام باندې تورات نازل کړې دې او ورته ئې اوفرمائيل ايا تاسو په تورات کښې دزنا کونکي دپاره دا سزا وينئ (چه مخ ئې تور کړې شي او په خلقو کښې وګرځولې شي) نوهغه اووئيل نه اوکه چرې تا ماته دومره لوې قسم نه وې راکړې نومابه درته دانه وو بيان کړې (يعنی صحيح خبره به مې درته نه وه کړې) زمونږ په کتاب کښې دزناکونکي حد رجم کول دي، ليکن کله چه په اميرانو کښې زنا عامه شوه نوکله چه به يو عزتمند سړي په دې جرم کښې اونيولې شو نوهغه به پريخودلې شو اوکله چه به يوغريب اوکمزورې کس په دې جرم کښې اونيول شو نوپه هغه به ئې حد جاري کولو ، بيا مونږه مشهوره اوکړه چه راشئ او ټول به په يوه سزا باندې اتفاق اوکړو اوداسې يوه خبره به خوښه کړو چه په عزتمند اوکمزوري دواړوباندې ئې جاري کولې شي نو په دې سلسله کښې مونږه په مخ توررولو اودرو وهلوباندې اتفاق اوکړو او سنګسار کول مو پريخودل، نبی عليه السلام چه دا واوريدل نو وئې فرمائيل اې الله زه په تما موخلقو کښې اول ستاحکم ژوندي کونکي يم کله چه دې خلقو کالعدم ګرځولې وو.

[٤٤٤٨] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "مُرَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَهُودِيٍّ مُحَمَّمٍ مَجْلُودٍ، فَدَعَاهُمْ، فَقَالَ: هَكَذَا تَجِدُونَ حَدَّ الزَّانِي؟ فَقَالُوا: نَعَمْ، فَدَعَا رَجُلًا مِنْ عُلَمَائِهِمْ، قَالَ لَهُ: نَشَدْتُكَ بِاللَّهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى أَهَكَذَا تَجِدُونَ حَدَّ الزَّانِي فِي كِتَابِكُمْ؟ فَقَالَ: اللَّهُمَّ لَا وَلَوْلَا أَنَّكَ نَشَدْتَنِي بِهَذَا لَمْ أُخْبِرْكَ، نَجِدُ حَدَّ الزَّانِي فِي كِتَابِنَا الرَّجْمَ، وَلَكِنَّهُ كَثُرَ فِي أَشْرَافِنَا فَكُنَّا إِذَا أَخَذْنَا الرَّجُلَ الشَّرِيفَ تَرَكْنَاهُ، وَإِذَا أَخَذْنَا الرَّجُلَ الضَّعِيفَ أَقَمْنَا عَلَيْهِ الْحَدَّ، فَقُلْنَا: تَعَالَوْا فَنَجْتَمِعُ عَلَى شَيْءٍ نُقِيمُهُ عَلَى الشَّرِيفِ وَالْوَضِيعِ، فَاجْتَمَعْنَا عَلَى التَّحْمِيمِ وَالْجَلْدِ وَتَرَكْنَا الرَّجْمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَوَّلُ مَنْ أَحْيَا أَمْرَكَ إِذْ أَمَاتُوهُ، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ إِلَى قَوْلِهِ يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَذَا فَخُذُوهُ وَإِنْ لَمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوا سورة المائدة آية

(١): صحيح مسلم/الحدود ٦ (١٧٠٠)، سنن ابن ماجه/الأحكام ١٠ (٢٣٢٧)، الحدود ١٠ (٢٥٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٦٧٤، ٢٩٠، ٣٠٠) (صحيح)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٧١) (صحيح)

إِلَى قَوْلِهِ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ فِي الْيَهُودِ إِلَى قَوْلِهِ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ سورة المائدة آية ٤٤-٤٥ فِي الْيَهُودِ، إِلَى قَوْلِهِ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ سورة المائدة آية ٤٧"، قَالَ: هِيَ فِي الْكُفَّارِ كُلُّهَا يَعْنِي هَذِهِ الْآيَةَ.

د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی ﷺ په وړاندې يو يهودي تير شو چه مخ ئې تور کړې شوې وو اوپه دُرو وهلې شوې وو، نبی ﷺ يهوديان راوغوښتل اوددوينه ئې تپوس اوکړو چه آيا تاسو په تورات کښې دهغه چا دپاره چه زنا ئې کړې وي دا سزا ليدلې ده؟ هغوی اووئيل هو،نو نبی ﷺ ددوی دعالمانو نه يو عالم راوغوښتو اوهغه ته ئې په هغه الله باندې قسم ورکړو چاچه په موسی ﷺ باندې تورات نازل کړې دې او ورته ئې اوفرمائيل ايا تاسوپه تورات کښې دزنا کونکي دپاره دا سزا وينئ (چه مخ هې- تور کړې شي او په خلقو کښې وګرځولې شي) نوهغه اووئيل نه اوکه چرې تا ماته دومره لوي قسم نه وې راکړې نومابه درته دانه وو بيان کړي (يعنی صحيح خبره به مې درته نه وه کړې) زمونږ په کتاب کښې دزناکونکي حد رجم کول دي، ليکن کله چه په اميرانو کښې زنا عامه شوه نوکله چه به يو عزتمند سړې په دې جرم کښې مونږ اونيولو نوهغه به مو پريخودلو اوکله چه به يوغريب اوکمزورې کس په دې جرم کښې اونيولو نوپه هغه به مرحد جاري کولو ، بيا مونږه مشهوره اوکړه چه راشي او ټول به په يوه سزا باندې اتفاق اوکړو اوداسې يوه خبره به خوښه کړو چه په عزتمند اوکمزوري دواړوباندې ئې جاري کولې شو نو په دې سلسله کښې مونږه په مخ تورولو اودرو وهلوباندې اتفاق اوکړو او سنګسار کول موپريخودل، نبی ﷺ چه دا واوريدل نو وئې فرمائيل اې الله زه په ټولو خلقو کښې اول ستاحکم ژوندي کونکي يم کله چه دې خلقو کالعدم ګرځولې وونوددغه کس درجم کولو حکم ئې وکړواو رجم کړې شونو په دې وخت کښې الله تعالی دا آيت نازل کړ: «يا أيها الرسول لا يحزنك الذين يسارعون في الكفر» نه تر «يقولون إن أوتيتم هذا فخذوه وإن لم تؤتوه فاحذروا» پورې اود «ومن لم يحكم بما أنزل الله فأولئك هم الظالمون» پورې. يعنی (ديهوديانو په باره کښې) اود «ومن لم يحكم بما أنزل الله فأولئك هم الظالمون» نه تر (ديهوديانو په کښې) «ومن لم يحكم بما أنزل الله فأولئك هم الفاسقون» پورې ، راوي وائی چه دا ايت د کفارو په باره کښې دي.

﴿عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ مُرَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِيَهُودِيٍّ مُحَمَّمٍ مَجْلُودٍ فَدَعَاهُمْ فَقَالَ « هَكَذَا تَجِدُونَ حَدَّ الزَّانِي ». فَقَالُوا نَعَمْ. فَدَعَا رَجُلاً مِنْ عُلَمَائِهِمْ الخ ﴾

رسول الله ﷺ ته يو يهودي راغلو د چا مخ چه تور کړې شوې وو، رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه آيا ستاسو په نزد د زانی حد هم دا دې هغوی اوفرمائيل او هم دا دې په دې باندې رسول الله ﷺ يو عالم را اوغوښتلو، يعنی عبدالله بن صوريا لره، رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه زه ستا نه د هغه رب په ذات قسم اخلم چا چه په موسی ﷺ باندې تورات نازل کړې دې چه آيا په توراة کښ د زنا حد هم دا دې؟ هغه جواب ورکړو قسم په الله نه! او وې وئيل چه که تاسو ماته دومره لوئې قسم نه وې راکړې نو ما به درته نه وو وئيلې، خبره دا ده چه زمونږ په کتاب کښ د زنا حد خو رجم دې خو زمونږ په شريفانو کښ د

زنا کثرت شروع شو نو کیدل به دا چه که یو شریف او معزز سړي به په زنا کښې اونیولې شو نو هغه به مونږ پریخودلو او که څوک کمزوري او کم حیثیته سړي به اونیولې شو نو په هغه باندې به مو حد قائمولو. ﴿ فَقُلْنَا تَعَالَوْا فَنَجْتَمِعُ عَلَى شَيْءٍ نُقِيمُهُ عَلَى الشَّرِيفِ وَالْوَضِيعِ فَاجْتَمَعْنَا عَلَى التَّحْمِيمِ وَالْجَلْدِ وَتَرَكْنَا الرَّجْمَ ﴾

## د رجم کوم بدل چه یهودو د خپل ځان نه تجویز کړې وو:

زمونږ مشوره روستو دا شوه چه خپل مینځ کښې په اتفاق دې یو داسې سزا تجویز کړې شي کومه چه په شریف او غیر شریف دواړو باندې قائم کړې شي، نو زمونږ اتفاق په تحمیم او جلد باندې اوشو. یعنی د زانی او زناکارې د دواړو مخونه تورول او هغوی ته سل کوړې ورکول. او وړاندې په روایت مفصله کښې د ﴿ تجبیه ﴾ ذکر هم راغلې دې او د هغې تفسیر هم هغه چه زانی او زانیه دې په یو خر باندې سوارۀ کړې شي او په هغې باندې دې داسې کینولې شي چه د دواړو ملا د ملا سره اولګی د یو مخ دې د سورلئ طرف ته وی او د بل دې بل طرف ته، او دغه شان دې هغوی په خر باندې سورولو سره په پوره ښهر کښې اوګرځولې شی. او د جلد په باره کښې په یو بل روایت کښې داسې راځی. ﴿یضرب مئة بحبل مطلی بقار ﴾ یعنی کوړې دې په تارکولو کښې لوندولو سره ورکړې شي، رسول الله ﷺ د هغوی په دې خبره اوریدلو باندې اوفرمائیل: ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَوَّلُ مَنْ أَحْيَا أَمْرَكَ إِذْ امَاتُوهُ ﴾ چه یا الله بیشکه ما د ټولو نه مخکښې ستا دا امر ژوندې او جاری کړو کوم چه دې یهودو ختم کړې وو، او بیا رسول الله ﷺ د رجم حکم اوفرمائیلو، په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو، ﴿ وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ الاية ﴾ والحدیث اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه بنحوه، قاله المنذري.

[۴۴۴۹] (1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ حَدَّثَهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: أَتَى نَفَرٌ مِنْ يَهُودَ فَدَعَوْا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْقُفِّ فَأَتَاهُمْ فِي بَيْتِ الْمِدْرَاسِ، فَقَالُوا: "يَا أَبَا الْقَاسِمِ إِنَّ رَجُلًا مِنَّا زَنَى بِامْرَأَةٍ، فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ، فَوَضَعُوا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِسَادَةً فَجَلَسَ عَلَيْهَا، ثُمَّ قَالَ: ائْتُونِي بِالتَّوْرَاةِ فَأُتِيَ بِهَا، فَنَزَعَ الْوِسَادَةَ مِنْ تَحْتِهِ فَوَضَعَ التَّوْرَاةَ عَلَيْهَا، ثُمَّ قَالَ: آمَنْتُ بِكِ وَبِمَنْ أَنْزَلَكِ، ثُمَّ قَالَ: ائْتُونِي بِأَعْلَمِكُمْ، فَأُتِيَ بِفَتًى شَابٍّ"، ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةَ الرَّجْمِ، نَحْوَ حَدِيثِ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ.

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه څه کسان دیهودیانو نه مدینې ته راغلل او نبی ﷺ یې قف مقام ته راوغوښتو نبی ﷺ بیت المدراس ته راغې دوی اووئیل اې ابوالقاسم په مونږ کښې یو کس دیوې ښځې سره زنا کړې ده ته ددې فیصله وکړه اودوی دنبی ﷺ دپاره یوه تکیه کیخوده نبی ﷺ ورباندې کښیناستو اووئې فرمائیل ماته تورات راوړئ چنانچه تورات راوړلې شو نبی ﷺ دلاندې نه هغه تکیه راواغسته او تورات ئې ورباندې کیخودو اوبیا ئې اوفرمائیل هغه کس راولی څوک چه په تاسوکښې زیات علم لري نو یونوجوان راوغوښتلې شو، اوددینه پس ئې دسنګسارولو واقعه بیان کړه.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۷۳۰) (حسن)

﴿أَتَى نَفَرٌ مِنْ يَهُودَ فَدَعَوْا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى الْقُفِّ فَأَتَاهُمْ فِي بَيْتِ الْمِدْرَاسِ﴾
يعنې څو يهوديان رسول اللهﷺ ته راغلل او هغوى ته ئې دعوت ورکړو وادى قف ته د تلو، پس رسول اللهﷺ د هغوى يو مدرسې ته لاړو چه په هغې کښې به هغوى د تورات درس ورکولو، يهودو رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو چه مونږ ته د يو زنانه او د يو سړى د زنا قصه راپيښه شوې ده په هغې کښې فيصله اوفرمايئ په دې موقع باندې هغوى د رسول اللهﷺ دپاره تکيه هم راطلب کړه د رسول اللهﷺ د ډډې وهلو دپاره، رسول اللهﷺ هلته د کيناستلو نه پس اوفرمائيل چه ماته تورات راوړئ پس هغه راوړلې شو، چه کله تورات رسول اللهﷺ ته راوړلې شو نو رسول اللهﷺ د خپل ځان نه لاندې تکيه راويستله او مخې ته ږدلو سره ئې په هغې باندې تورات په ډير په احترام سره کيخودلو او د تورات په باره کښې ئې اوفرمائيل: زه په تا باندې ايمان لرم او په هغه ذات هم چا چه ته نازل کړې ئې او بيا ئې اوفرمائيل چه خپل يو لوئې عالم ماته راطلب کړئ پس يو ځوان عالم راوستلې شو، يعنې عبدالله بن صوريا.

[٤٤٥٠] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ. ح وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، قَالَ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ سَمِعْتُ رَجُلًا مِنْ مُزَيْنَةَ مِمَّنْ يَتَّبِعُ الْعِلْمَ وَيَعِيهِ ثُمَّ اتَّفَقَا، وَنَحْنُ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، فَحَدَّثَنَا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَهَذَا حَدِيثُ مَعْمَرٍ، وَهُوَ أَتَمُّ، قَالَ: "زَنَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ، وَامْرَأَةٌ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: اذْهَبُوا بِنَا إِلَى هَذَا النَّبِيِّ فَإِنَّهُ نَبِيٌّ بُعِثَ بِالتَّخْفِيفِ، فَإِنْ أَفْتَانَا بِفُتْيَا دُونَ الرَّجْمِ قَبِلْنَاهَا وَاحْتَجَجْنَا بِهَا عِنْدَ اللَّهِ، قُلْنَا: فُتْيَا نَبِيٍّ مِنْ أَنْبِيَائِكَ، قَالَ: فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي أَصْحَابِهِ، فَقَالُوا: يَا أَبَا الْقَاسِمِ مَا تَرَى فِي رَجُلٍ وَامْرَأَةٍ زَنَيَا؟ فَلَمْ يُكَلِّمْهُمْ كَلِمَةً حَتَّى أَتَى بَيْتَ مِدْرَاسِهِمْ، فَقَامَ عَلَى الْبَابِ، فَقَالَ: أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى، مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ عَلَى مَنْ زَنَى إِذَا أَحْصَنَ؟ قَالُوا: يُحَمَّمُ وَيُجَبَّهُ وَيُجْلَدُ وَالتَّجْبِيهُ أَنْ يُحْمَلَ الزَّانِيَانِ عَلَى حِمَارٍ وَتُقَابَلَ أَقْفِيَتُهُمَا وَيُطَافُ بِهِمَا، قَالَ: وَسَكَتَ شَابٌّ مِنْهُمْ، فَلَمَّا رَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَكَتَ أَلَظَّ بِهِ النِّشْدَةَ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِذْ نَشَدْتَنَا فَإِنَّا نَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ الرَّجْمَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَمَا أَوَّلُ مَا ارْتَخَصْتُمْ أَمْرَ اللَّهِ، قَالَ: زَنَى ذُو قَرَابَةٍ مِنْ مَلِكٍ مِنْ مُلُوكِنَا فَأَخَّرَ عَنْهُ الرَّجْمَ، ثُمَّ زَنَى رَجُلٌ فِي أُسْرَةٍ مِنَ النَّاسِ فَأَرَادَ رَجْمَهُ فَحَالَ قَوْمُهُ دُونَهُ، وَقَالُوا: لَا يُرْجَمُ صَاحِبُنَا حَتَّى تَجِيءَ بِصَاحِبِكَ فَتَرْجُمَهُ، فَاصْطَلَحُوا عَلَى هَذِهِ الْعُقُوبَةِ بَيْنَهُمْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَإِنِّي أَحْكُمُ بِمَا فِي التَّوْرَاةِ، فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا"، قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَبَلَغَنَا أَنَّ هَذِهِ الْآيَةَ نَزَلَتْ فِيهِمْ إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا سورة المائدة آية ٤٤ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ.

يونس او محمد بن مسلم دواړه وائى چه ما د مزينه قبيلې يو کس نه اوريدلى دى څوک چه ددوى نه وو اوعلم ئې حاصلولو او په باقى راويت کښې دواړه متفق دي فرمائى چه مونږ دسعيد بن مسيب سره موجود وو چه مونږه ته ئې دابوهريرهؓ نه حديث بيان کړو چه په يهوديانو کښې يونارينه اويوه زنانه زنا کړيوه نوپه دوى دواړو کښې يوبل ته اووئيل چه دې رسول ته به ورشو ځکه چه دا رسول دبوج کمولو دپاره رالېږلې شوې دې که چرې دسنگسار رولو نه ئې دکمې درجې دسزا حکم وکړو نومونږ به ئې اومنو او دالله تعالى په وړاندې به

(١): تفرد به أبوداود، انظر حديث (٤٨٨) (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٢) (ضعيف)

زمونږ عذر جوړ شي چه ستا په انبیاو کښې مونږ دیونبي حکم منلي وو نو په دې سلسله کښې هغوی ټول دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول اونبی ﷺ دصحابه کرامو سره په مسجد کښې ناست وو یهودیانو اووئیل اې ابوالقاسم تاسودهغه نارینو اوزنانو په باره کښې څه حکم کوئ چه زنائې کړې وی نبی ﷺ چه دا واوریدل نو هیڅ جواب ئې ورنکړو اودې خلقوسره دمدرسې طرف ته لاړو هلته په دروازه اودریدو اووئې فرمائی چه زه تاسوته قسم درکوم په هغه الله باندې چاچه په موسی ﷺ باندې تورات نازل کړې دې چه تاسودزناد پاره په تورات کښې څه حکم مومئ؟ خوکله چه هغه شادي شده وي یهودیانو اووئیل چه دداسې کس مخ تورولې شي او په خر سور کړې شي او په بازار کښې وګرځولې شي اوپه درو اووهلې شي لیکن په دوی کښې چه یونوجوان داخبره واوریده نوخاموش پاتې شو کله چه نبی ﷺ ده لره خاموش اولیدو نونبی ﷺ ده ته دوباره قسم ورکړو نو په دې وخت کښې دغه کس اووئیل کله چه تا مونږ ته پوره قسم راکړو (نواوس به درته پوره خبره وکړو) چه مونږ په تورات کښې دسنګسارولو حکم لیدلې دې نبی ﷺ اوفرمائیل بیا تاسو دکوم وخت نه دالله تعالی داحکم په سپک ګڼړلوسره پریخودلې دې؟ دغه کس اووئیل: په مونږ کښې یوځل دیو بادشاه رشته دار زنا وکړه نوبادشاه هغه سنګسار نکړو ، بیایوبل عام کس زنا وکړه نوبادشاه وغوښتل چه دې سنګسار کړي لیکن دهغه دقوم خلق رامخکښې شول اوبادشاه ته ئې اووئیل چه زمونږه سر به نه شي سنګسارولې ترڅو چه تاسو مخکښې خپل سړې سنګسار نکړئ ، بهر حال ټولو خلقو اتفاقي فیصله وکړه چه سزا همدا (مخ تورول په خر سورول په بازار کښې ګرځول) مناسب ده، نبی ﷺ اوفرمائیل زه خوبه هغه حکم کوم کوم چه په تورات کښې موجود دې اوبیانبی ﷺ حکم وکړو هغه یهودي سړې اوښځه سنګسار کړې شول، زهري وئیلی دی چه ماته داخبر رارسیدلې دې چه دا ایت کریمه: «إنا أنزلنا التوراة فیها هدی ونور یحکم بها النبیون الذین أسلموا» ددغه کسانو په باره کښې نازل شوې دې.

**قوله:** ﴿ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اذْهَبُوا بِنَا إِلَى هَذَا النَّبِيِّ فَإِنَّهُ نَبِيٌّ بُعِثَ بِالتَّخْفِيفِ الخ ﴾

یعنی په یهودو کښې د زنا د یوې واقعې د پیښیدو نه پس بعضو نورو بعضو ته اووې چه مونږ دې نبی ﷺ ته بوځئ ځکه چه د هغوی په دین کښې تخفیف دې پس که هغوی مونږ ته د رجم نه علاوه د بل څه خیز فتوی راکړی نو هم هغه به قبول کړو او د قیامت په ورځ باندې به الله پاک ته دا عذر پیش کړو چه دا هم ستا د یو نبی ﷺ فتوی ده پس هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل او رسول الله ﷺ په مسجد کښې ناست وو ، او راتلو سره ئې د زنا حکم اوتپوسلو ، په دې باندې رسول الله ﷺ خاموش پاتې شو او هیڅ خبره ئې اونکړه بلکه نیغ د هغوی مدرسې ته اورسیدلو او په دروازه باندې رسیدو سره اودریده، او د هغوی نه ئې قسم ورکولو سره تپوس اوکړو چه په توراة کښې د زنا څۀ حکم دې چه کله زانی محصن وی؟ (١) هغوی د تحمیم او تجبیه او د جلد مائة ذکر اوکړو (دلته په روایت کښې د تجبیه صورت

(١) د دې نه معلومیږی چه د رجم دپاره احصان په یهودو کښې هم شرط وو، د دې نه مخکښې......له

هم مذکور دي کوم چه مونږ وړاندي ليکلي دي) خو يو ځوان په دې کښې خاموش پاتې شو، چه کله رسول الله ﷺ هغه خاموش اوليدو ﴿ أَلَظَّ بِهِ النِّشْدَةَ ﴾ نو رسول الله ﷺ هغه ته قسم ورکړو او تپوس ئې ترې نه اوفرمائيلو، هغه عرض اوکړو چه کله تاسو ماته قسم راکولو سره تپوس کړې دې (نو اوس به ئې زه خامخا وايم او بيا) هغه اووې چه په تورات کښې د رجم حکم دې، نو رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه د ټولو نه مخکښې تاسو کله دا حکم معمولي اوګڼړلو او عمل مو پرې پريخودلو؟ ﴿ فَمَا أَوَّلُ مَا ارْتَخَصْتُمْ أَمْرَ اللَّهِ ﴾ (اى جعلوه رخيصا وسهلا) (عون) هم دې ځوان د دې وجه دا بيان کړه چه په شروع کښې يو ځل داسې شوې وه چه زمونږ د بادشاه يو رشته دار زنا کړې وه نو هغه بادشاه په هغه باندې رجم جاري نه کړو، د دې نه پس په عام خلقو کښې يو کس زنا اوکړه بادشاه د هغه د رجم اراده اوکړه چه په دې باندې د هغه قوم حائل شو او هغه خلقو اوئيل ترڅو چه ته د خپل سړي رجم اونکړې زمونږ د سړي به هم نه کوې، نو هغه وخت د رجم په ځائې په دې سزا باندې خپل مينځ کښې اتفاق او شو، ﴿ فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم « فَإِنِّي أَحْكُمُ بِمَا فِي التَّوْرَاةِ ». فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا ﴾

[٤٤٥١]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى أَبُو الْأَصْبَغِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَجُلًا مِنْ مُزَيْنَةَ، يُحَدِّثُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "زَنَى رَجُلٌ وَامْرَأَةٌ مِنَ الْيَهُودِ وَقَدْ أُحْصِنَا حِينَ قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ، وَقَدْ كَانَ الرَّجْمُ مَكْتُوبًا عَلَيْهِمْ فِي التَّوْرَاةِ، فَتَرَكُوهُ وَأَخَذُوا بِالتَّجْبِيهِ يُضْرَبُ مِائَةً بِحَبْلٍ مَطْلِيٍّ بِقَارٍ وَيُحْمَلُ عَلَى حِمَارٍ وَجْهُهُ مِمَّا يَلِي دُبُرَ الْحِمَارِ، فَاجْتَمَعَ أَحْبَارٌ مِنْ أَحْبَارِهِمْ، فَبَعَثُوا قَوْمًا آخَرِينَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: سَلُوهُ عَنْ حَدِّ الزَّانِي، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، فَقَالَ فِيهِ: قَالَ: وَلَمْ يَكُونُوا مِنْ أَهْلِ دِينِهِ فَيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ، فَخُيِّرَ فِي ذَلِكَ، قَالَ: فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ سورة المائدة آية ٤٢".

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زني وکړه يو سړي اويوي ښځې ديهوديانونه اودواړه شادي شده رو کله چه دوی په مدينه نبي عليه السلام ته راغلل اورجم پدوی باندې مقررشوي وو په تورات کښې نودوی هغه پريخودو او په خرباني ئې التنه سورکړواوسل پيري به ئې په غوړه کړي شوي رسئ باندې وهلواوپه خرباندې به يې په داسې طريقه سورکړوچه مخ به ئې دخرکوني ته نزدې وونوددوی په عالمانوکښې يوڅوعالمان را جمع شول اونبي عليه السلام ته ئې يووفد راوليږو اوهغوی ته ئې ووئيل چه دزنا دحد متعلق ورنه تپوس وکړئ اوحديث ئې تر آخره پورې بيان کړو، او په دې کښې داسې دی چه چونکه هغوی دنبي عليه السلام په دين نه وو نوځکه نبي عليه السلام ته اختيار ورکړي شو چه که ته ددوی فيصله وکړي اوکه ونکړي الله تعالى فرمائي: «فإن جاءوك فاحكم بينهم أو أعرض عنهم» که چرې ته ددوی فيصله ونکړي نودوی تاته ضررنشي رسولي اوکه فيصله ئې

---

٦..... د حافظ په کلام کښې تير شوي دی چه د هغوی په نزد دا شرط نه وو خو چرته چه حافظ وئيلي وو هلته د اسلام بحث شروع وو ممکنه ده چه حافظ هم په دې لحاظ سره نفي کړې وی بلکه هم دا متعين ده او دلته د احصان نه په ظاهر کښې نکاح مراد ده پس هيڅ اختلاف نشته

[1]: تفرد به أبوداود، انظر حديث(٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٢) (ضعيف)

وکړي نو په انصاف فيصله وکړه او يا ددوی نه مخ واړوه.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ زَنَى رَجُلٌ وَامْرَأَةٌ مِنَ الْيَهُودِ وَقَدْ أُحْصِنَا الخ ﴾

په دې حديث کښې د تجبيه او د سلو کوړو په تارکولو کښې د لت پت کولو نه پس د لګولو او د تجبيه صورت ذکر دې. ﴿ قَالَ فِيهِ قَالَ وَلَمْ يَكُونُوا مِنْ أَهْلِ دِينِهِ فَيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ فَخُيِّرَ فِي ذَلِكَ قَالَ (فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ په دې حديث کښې چه کومه مسئله ذکر ده په هغې باندې مصنف رحمه الله مستقل ترجمه قائم کړې ده په کتاب القضاء کښې باب الحکم بين اهل الذمة او هلته دا ليکلې شوې دی يعنی مسلمان قاضی لره په دارالاسلام کښې د ذميانو فيصله کول پکار دی يا نه، د امام مالک رحمه الله رائې په دې کښې د تخيير ده او د احنافو په نزد د مرافعه په صورت کښې د فيصلې حکم دې هم داسې نه، او د امام شافعي رحمه الله په دې کښې دوه قوله دی يو هم دا يعنی د وجوب عند المرافعة، او دويم دا چه مطلقا واجب دې.

[٤٤٥٢]([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَ: مُجَالِدٌ أَخْبَرَنَا، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "جَاءَتِ الْيَهُودُ بِرَجُلٍ وَامْرَأَةٍ مِنْهُمْ زَنَيَا، فَقَالَ: ائْتُونِي بِأَعْلَمِ رَجُلَيْنِ مِنْكُمْ فَأَتَوْهُ بِابْنَيْ صُورِيَا، فَنَشَدَهُمَا: كَيْفَ تَجِدَانِ أَمْرَ هَذَيْنِ فِي التَّوْرَاةِ؟ قَالَا: نَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ إِذَا شَهِدَ أَرْبَعَةٌ أَنَّهُمْ رَأَوْا ذَكَرَهُ فِي فَرْجِهَا مِثْلَ الْمِيلِ فِي الْمُكْحُلَةِ رُجِمَا، قَالَ: فَمَا يَمْنَعُكُمَا أَنْ تَرْجُمُوهُمَا، قَالَا: ذَهَبَ سُلْطَانُنَا فَكَرِهْنَا الْقَتْلَ، فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّهُودِ، فَجَاءُوا بِأَرْبَعَةٍ فَشَهِدُوا أَنَّهُمْ رَأَوْا ذَكَرَهُ فِي فَرْجِهَا مِثْلَ الْمِيلِ فِي الْمُكْحُلَةِ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجْمِهِمَا".

د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه يهوديانو يو زناکار سړې او ښځه په دربار نبوي کښې حاضر کړل نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل دخپل دين والا دوه زيات علم والا عالمان راولئ نو هغوی دصوريا دوه ځامن راوستل نبی عليه السلام دوی دواړو ته قسم ورکړو او تپوس ئې ورنه وکړو چه ددوی دپاره په تورات کښې څه حکم دې دې؟هغوی ووئيل چه مونږ خو په تورات کښې دحکم ليدلې دې چه کله څلور ګواهان ګواهی ورکړي چه دوی دسړې ذکر دښځې په شرمګاه کښې داسې ليدلې دې لکه چه سلائې په ننجرومه کښې وي نو بيا ددوی دپاره درجم حکم دې بيا تاسو دوی دواړه ولې رجم نکړل؟ هغوی ووئيل چه اوس خو زمونږ حکومت باقی نه دی شوې نو په دې وجه مونږ قتل بد ګڼړو، پس نبی عليه السلام ګواهان څلور ګواهان را اوغوښتل هغوی داسې ګواهی ورکړله چه دوی دسړې دښځې په شرمګاه کښې داسې ليدلې دې لکه سلائې په ننجرومه کښې وي نو بيائې ددوی درجم کولو حکم وکړو.

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ جَاءَتِ الْيَهُودُ بِرَجُلٍ وَامْرَأَةٍ مِنْهُمْ زَنَيَا فَقَالَ ائْتُونِي بِأَعْلَمِ رَجُلَيْنِ مِنْكُمْ فَأَتَوْهُ بِابْنَيْ صُورِيَا ﴾

د دې روايت نه معلومه شوه چه په تيرو رواياتو کښې چه کوم لفظ شاب يا په لفظ د اعلم رجل منکم سره راغلې دې د هغې نه مراد ابن صوريا دې لکه چه هلته شارحينو ليکلی دی په دې روايت کښې تصريح ده چه د ثبوت زنا دپاره په تورات کښې هم د څلورو سړو

[1]): سنن ابن ماجه/الأحكام (٢٣٢٨)، (تحفة الأشراف: ٢٣٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٨٧)، صحيح مسلم/الحدود ٦(٢٣٧٤) (صحيح)

شهادت معتبر وو څنګه چه زمونږ په نزد دي او د دې روايت نه دا هم معلوميږي چه په تورات کښې هم د ثبوت زنا دپاره د صريح الفاظو کيدل ذکر دی.

﴿ قال فَمَا يَمْنَعُكُمَا أَنْ تَرْجُمُوهُمَا قَالاَ ذَهَبَ سُلْطَانُنَا فَكَرِهْنَا الْقَتْلَ ﴾ رسول الله ﷺ تري نه تپوس اوفرمائيلو چه تاسو رجم ولې ترک کړو نو هغوی جواب ورکړو چه زمونږ حکومت او زور ولې ختم شو څکه چه د قتل سزا مونږ نه خوښوله چه کم به شو او د بې وسئ ژوند کښې به راشو. والحديث اخرجه ابن ماجه، مختصرا، قاله المنذري.

[٤٤٥٣](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ هُشَيْمٍ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، وَالشَّعْبِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، لَمْ يَذْكُرْ فَدَعَا بِالشُّهُودِ فَشَهِدُوا.

ابراهيم اوشعبي دنبی ﷺ نه روايت بيان کړې دې دتير شوي روايت په شان مګردانې پکښې نه دی ذکرکړي چه ګواهان ئې را اوغوښتل اوګواهی ئې ورکړه.

[٤٤٥٤](2) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ هُشَيْمٍ، عَنِ ابْنِ شُبْرُمَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ بِنَحْوٍ مِنْهُ.

ابن شبرمه هم دشعبي تيرشوی روايت په شان روايت بيان کړې دې.

[٤٤٥٥](3) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَسَنٍ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الزُّبَيْرِ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "رَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِنَ الْيَهُودِ وَامْرَأَةً زَنَيَا".

دجابر بن عبدالله نه روايت دي فرمائی چه نبی ﷺ ديهوديانو يوسړې او يوه ښځه رجم کړې وو چه زنا ئې کړې وه.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَزْنِي بِحَرِيمِهِ

### بابد محرماتوسره د زنا کولو د سزا بيان

او د دې نه پس باب راځی باب الرجل يزنی بجارية امرأته، په هر دوه بابونو کښې چه مصنف رحمه الله کوم حديث راوړې دې هغه د حنابله مستدل دې، مصنف رحمه الله هم حنبلی دې.

### مذاهب ائمه :

که يو سړې خپل محرمې زنانه سره نکاح اوکړی نو د امام احمد رحمه الله په نزد دا ده چه انه يقتل کما فی حديث الباب، او د شوافعو او د مالکيانو په نزد به په هغه باندې د قاعدې مطابق حد جاری کيږی (د محصن کيدو په صورت کښې او که غير محصن وی نو جلد) او هم دا رائې ده د صاحبينو، او د امام صاحب په نزد په دې کښې تعزير دې اشد التعزير لاجل الشبهة بسبب النکاح، اګر چه نکاح صحيح نه دې، والحديث عند الجمهور محمول علی المستحل فلذا قتل لاجل الارتداد.

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٣٤٦، ١٨٤٠٢، ١٨٨٧١) (صحيح)

(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٣٤٦، ١٨٨٧١، ١٨٤٠٢)

(3): صحيح مسلم/الحدود ٦ (١٧٠١)، (تحفة الأشراف: ٢٨١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٢١، ٣٨٦) (صحيح)

[٤٤٥٦]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ، عَنْ أَبِي الْجَهْمِ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "بَيْنَا أَنَا أَطُوفُ عَلَى إِبِلٍ لِي ضَلَّتْ إِذْ أَقْبَلَ رَكْبٌ أَوْ فَوَارِسُ مَعَهُمْ لِوَاءٌ، فَجَعَلَ الْأَعْرَابُ يَطِيفُونَ بِي لِمَنْزِلَتِي مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذْ أَتَوْا قُبَّةً فَاسْتَخْرَجُوا مِنْهَا رَجُلًا فَضَرَبُوا عُنُقَهُ، فَسَأَلْتُ عَنْهُ فَذَكَرُوا أَنَّهُ أَعْرَسَ بِامْرَأَةِ أَبِيهِ".

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه زما اوښان ورک شوي وو اوزه دهغوی په تالاش پسې وتلې وم چه په دې دوران کښې يوخوسواره کسان را ورسيدل اوددوی سره يو جهندا وه اوباندچيان زمانه چاپيره کرځيدل ، زمادهغه مقام په وجه چه ماته دنبی عليه السلام دقربت په وجه حاصل وو، بياهغه خلق يوې تبې ته ورغلل اودهغې نه ئې يوسړې راوويستلو او دهغه سرئې کټ کړو، پدې باره کښې ماددوی نه تپوس وکړوهغوی ووئيل چه ده دخپلې مورسره زنا کړې وه.

## مضمون الحديث :

**قوله:** ﴿ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا أَطُوفُ عَلَى إِبِلٍ لِي ضَلَّتْ إِذْ أَقْبَلَ رَكْبٌ أَوْ فَوَارِسُ مَعَهُمْ لِوَاءٌ﴾ سيدنا براء رضي الله عنه فرمائی چه زما اوښ کوم چه ورک شوې وو زه د هغې په لټون کښ ګرځيدم چه ناڅاپه زما مخې ته يو جماعت د سورو کسانو راغلو چه هغوی سره جهنډه هم وه (چه د هغې نه معلومه شوه چه دا دسته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرف نه راليږلې شوې ده ځکه چه جهنډه د امارت علامت دې) ډير اعراب او باندچيان زما نه خواوشا جمع شو زما د هغه مرتبې او قرب د وجې نه کومه چه مې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وه، پس ناګهانه هغه دسته د سورو کسانو يو قبې ته اورسيده او د هغې نه ئې يو سړې راويستلو او د هغه سټ ئې اوهلو، دلته د دې روايت په سياق کښ څه تقديم او تاخير معلوميږی، ځکه چه د ﴿ فجعل الاعراب ﴾ تعلق د جمله سابقه ﴿اذا قبل ركب ﴾ سره هيڅ هم نشته هم دغه شان وړاندې ﴿ اذا تواقبتة﴾ کښ ضمير اقرب يعنی د اعراب طرف ته نه واپس کيږی بلکه د دې تعلق د رکب سره دې.

د دې روايت په سياق او الفاظو کښ ډير اختلاف دې د ترمذی او نسائی وغيره په رواياتو کښ لکه څنګه چه په بذل کښ ذکر دی ﴿ فسالت عنه ﴾ سيدنا براء رضي الله عنه فرمائی چه ما د هغوی نه د دې قتل سبب معلوم کړو نو هغوی اووې چه دې سړی د خپلې ميرنئ مور سره نکاح کړې وه، يعنی د جاهليت د زمانې د دستور مطابق چه د پلار د مرګ نه پس به د هغه مشر ځوی د مور سره نکاح کوله، غالباً هغه هم داسې جائز او حلال ګنړلو سره اوکړل چه د هغې په وجه باندې هغه مرتد شو، وفی الابواب والتراجم ٦/٢٢٢ فی "باب رجم المحصن" قال الحافظ : واشهر حديث في الباب حديث البراء لقيت خالي ومعه الراية فقال بعثني رسول الله صلى الله عليه و سلم إلى رجل تزوج امراة ابيه ان اضرب عنقه اخرجه احمد واصحاب السنن وفي سنده اختلاف كثير اهـ قال ابن قدامة : وَإِنْ تَزَوَّجَ ذَاتَ مَحْرَمٍ ، فَالنِّكَاحُ بَاطِلٌ بِالْإِجْمَاعِ فَإِنْ وَطِئَهَا ، فَعَلَيْهِ الْحَدُّ فِي قَوْلِ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ ؛ مِنْهُمْ الْحَسَنُ ، وَجَابِرُ بْنُ زَيْدٍ وَمَالِكٌ ، وَالشَّافِعِيُّ ، وَأَبُو يُوسُفَ ،

[1]: سنن الترمذي/الأحكام ٢٥ (١٣٦٢)، سنن النسائي/النكاح ٥٨ (٣٣٣٣)، سنن ابن ماجه/الحدود ٣٥ (٢٦٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٤، ١٧٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٩٢، ٢٩٥، ٢٩٧)، سنن الدارمي/النكاح ٤٣ (٢٢٨٥) (صحيح)

وَمُحَمَّدٌ ، وَإِسْحَاقُ، وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ ، وَالثَّوْرِيُّ : لَا حَدَّ عَلَيْهِ ؛ لِأَنَّهُ وَطْءٌ تَمَكَّنَتْ الشُّبْهَةُ مِنْهُ ، فَلَمْ يُوجِبْ الْحَدَّ، ثم قال وإِذَا ثَبَتَ هَذَا ، فَاخْتُلِفَ فِي الْحَدِّ ، فَرُوِيَ عَنْ أَحْمَدَ أَنَّهُ يُقْتَلُ عَلَى كُلِّ حَالٍ، وَالرِّوَايَةُ الثَّانِيَةُ ، حَدُّهُ حَدُّ الزَّانِي وَبِهِ قَالَ الْحَسَنُ ، وَمَالِكٌ ، وَالشَّافِعِيُّ ؛ لِعُمُومِ الْآيَةِ وَالْخَبَرِ، وَالْقَوْلُ فِي مَنْ زَنَى بِذَاتِ مَحْرَمِهِ مِنْ غَيْرِ عَقْدٍ ، كَالْقَوْلِ فِي مَنْ وَطِئَهَا بَعْدَ الْعَقْدِ الى اخر ما بسط ﴾ وفي الهداية : ومن تزوج امرأة لا يحل له نكاحها فوطئها لا يجب عليه الحد عند أبي حنيفة رحمه الله ولكن يوجع عقوبة إذا كان علم بذلك وقال أبو يوسف ومحمد والشافعي رحمهم الله عليه الحد إذا كان عالما بذلك لأنه عقد لم يصادف محله فيلغو اهـ ﴾

(مذاهب ائمه)

معلومه شوه چه په دې مسئله کښې درې مذاهب شو يو د امام احمد يعنې د قتل لکه چه په حديث الباب کښې دی، دويم د امام شافعی ([1]) او د صاحبينو چه په هغه باندې حد د زنا دې، او دريم د امام صاحب چه په دې کښې تعزير دې، او د موفق په کلام کښې هم تير شوی دی چه په دې مسئله کښې نکاح او عدم نکاح دواړه برابر دی، يعنې که دا وطی د عقد نه پس وی او که بغير د عقد نه وی خو دا د موفق په کلام کښې دی کوم چه حنبلي دې خو زمونږ په نزد دا په هغه صورت کښې ده چه کله وطی بعد العقد وی ځکه چه شبهه خو د عقد د وجې نه پيدا شوې ده هم په دې وجه حد ساقط شوی دې، او که بغير د عقد نه ئې هغې سره وطی اوکړه نو بيا به حد جاری کيږی پس په شامی کښې دی :

﴿ تَزَوَّجَ امْرَأَةً مِمَّنْ لَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا فَدَخَلَ بِهَا لَا حَدَّ عَلَيْهِ وَإِنْ فَعَلَهُ عَلَى عِلْمٍ لَمْ يُحَدَّ أَيْضًا وَيُوجَعُ عُقُوبَةً فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وقال ان علم بذلک فعليه الحد فی ذوات المحارم اهـ ﴾

هم دغه شان په درمختار کښې دی ولا حد ايضا بشبهة العقد ای عقد النکاح عند الامام کوطئ محرم نکحها وقالا ان علم الحرمة حد وعليه الفتوی.

د جمهورو د طرف نه د حديث جواب پورته تير شو چه د هغوی په نزد دا په مستحل باندې محمول دې، او د جمهورو د مذهب دليل دا آيت کريمه دې : ﴿ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا الاية ﴾ او هم دغه شان هغه حديث کوم چه په شروع کښې تير شوې دې ﴿ الثيب بالثيب جلد مائة والرجم الحديث ﴾ ځکه چه دا نکاح باطل او کالعدم دې لهذا زنا کيدل په دې باندې صادق شو. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٤٥٧] ([2]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ قُسَيْطٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْبَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَقِيتُ عَمِّي وَمَعَهُ رَايَةٌ، فَقُلْتُ لَهُ: أَيْنَ تُرِيدُ، قَالَ: "بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةَ أَبِيهِ، فَأَمَرَنِي أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ وَآخُذَ مَالَهُ".

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه ما دخپل تره سره ملاقات وکړو او دهغه سره يو جنده وه ما ورته ووئيل چرته ځې؟ هغه ووئيل نبی عليه السلام په يو کس پسې ليږلې يم چاچه دمور سره بدفعلی کړې ده ما ته ئې حکم کړې دې چه سرئې پريکړم او مال ئې واخلم.

[1]) وهو رواية عن احمد كما تقدم عن الموفق)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٤) (صحيح)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَزْنِي بِجَارِيَةِ امْرَأَتِهِ

### بابه څوک چه د خپلې ښځې د وینځې سره زنا اوکړی دهغې بیان

[٤٤٥٨]( )حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ ،قَالَ: حَدَّثَنَا أَبَانُ ،عَنْ قَتَادَةَ ،عَنْ خَالِدِ بْنِ عُرْفُطَةَ ،عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ ،أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حُنَيْنٍ وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ، فَرُفِعَ إِلَى النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ وَهُوَ أَمِيرٌ عَلَى الْكُوفَةِ، فَقَالَ: "لَأَقْضِيَنَّ فِيكَ بِقَضِيَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِنْ كَانَتْ أَحَلَّتْهَا لَكَ جَلَدْتُكَ مِائَةً، وَإِنْ لَمْ تَكُنْ أَحَلَّتْهَا لَكَ رَجَمْتُكَ بِالْحِجَارَةِ". فَوَجَدُوهُ أَحَلَّتْهَا لَهُ فَجَلَدَهُ مِائَةً. قَالَ قَتَادَةُ: كَتَبْتُ إِلَى حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ فَكَتَبَ إِلَيَّ بِهَذَا.

دحبیب بن سالم رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دعبدالرحمن بن حنین په نوم باندې یو کس دخپلې ښځې دوینځې سره زنا وکړله نو دامقدمه نعمان بن بشیر ته پیش شوه او هغه دکوفې امیر وو، هغه ووئیل ضرور به زه په تاسو کښې درسول الله فیصله کوم ،که چرې ستا ښځې خپله وینځه ستادپاره حلاله کړې وی نو په سلو درو باندې به دې وهم او که چرې داسې نه وې نو په کانړو باندې بدې رجم کړم نو معلومه شوه چه دهغه ښځې دده دپاره حلاله کړې وه نو په سلو درو ئې ووهلو، قتاده وائی په دې باره کښې مې حبیب بن سالم ته ولیکل نو هغه راته همدا حدیث لیکل شوې راولیږلو

**قوله:** ﴿ عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ أَنَّ رَجُلاً يُقَالُ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حُنَيْنٍ وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ فَرُفِعَ إِلَى النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ وَهُوَ أَمِيرٌ عَلَى الْكُوفَةِ فَقَالَ لأَقْضِيَنَّ فِيكَ بِقَضِيَّةِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ یعنی کوم سړی چه د خپلې ښځې د وینځې سره وطی کړې وه د هغه په باره کښې نعمان بن بشیر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د فیصلې مطابق دا فیصله اوکړه چه د هغه د ښځې نه دې معلومه کړې شی چه که هغه داسې اوائی چه زما د طرف نه د دې وطی اجازت دې نو بیا خو به سل کوړې د هغه سزا وی او که د هغې د طرف نه اجازت نه وی نو بیا د دې سزا رجم دې، پس د هغه د ښځې نه معلومه کړې شوه نو هغې اوویې چه زما د طرف نه اجازت وو پس هغه ته سل کوړې ورکړې شوې.

[٤٤٥٩]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عُرْفُطَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ يَأْتِي جَارِيَةَ امْرَأَتِهِ، قَالَ: "إِنْ كَانَتْ أَحَلَّتْهَا لَهُ جُلِدَ مِائَةً، وَإِنْ لَمْ تَكُنْ أَحَلَّتْهَا لَهُ رَجَمْتُهُ".

نعمان بن بشیر دنبی عليه السلام نه دهغه کس په باره کښې روایت بیان کړې دې څوک چه دخپلې ښځې دوینځې سره کوروالي وکړي، نبی عليه السلام اوفرمائیل که چرې ښځې دخپل خاوند دپاره خپله وینځه حلاله کړې وی نو په سلو درو باندې به وهلي شي، او که چرې داسې نه وې نو رجم کولې به شي.

[1]): سنن الترمذي/الحدود ٢١ (١٤٥١)، سنن النسائي/النكاح ٧٠ (٣٣٦٢)، سنن ابن ماجه/الحدود ٨ (٢٥٥١)، (تحفة الأشراف: ١١٦١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٢/٦، ٢٧٦، ٢٧٧)، دي /الحدود ٢٠ (٢٣٧٤) (ضعيف)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٦١٣) (ضعيف)

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :

په دې مسئله کښې مذاهب ائمه دا دی چه د امام احمد رحمه الله مسلک خو هم هغه دې کوم چه په حديث الباب کښې تير شو يعنی په يو صورت کښې صرف جلد او په يو صورت کښې رجم، او د شوافعو او مالکيانو په نزد به د قاعدې مطابق حد جاري کولې شي د تحليل او عدم تحليل اعتبار نشته، او د احنافو مسلک دا دې چه که هغه دا کار حلال ګنړلو سره کړې وی نو بيا خو به حد ساقط شي او د شبهې د وجې نه به د تعزير مستحق وی او که وطی ئې د حرام ګنړلو باوجود کړې وی نو بيا به په هغه باندې حد وی، د جمهورو د طرف نه د حديث الباب جواب دا دې چه امام ترمذی رحمه الله فرمائی د دې په سند کښې اضطراب دې، او امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دا حديث غير متصل دې، وفی الاوجز ٥٢/٦ حديث النعمان بن بشير ضعفه المحدثون، قال الترمذی فی اسناده اضطراب سمعت محمدا يعنی البخاری : يقول لم يسمع قتادة من حبيب، وابوالبشر لم يسمعه ايضا من حبيب بن ابی ثابت وسالت محمد بن اسماعيل عنه فقال انا انفی هذا الحديث (وفی المنذری انا اتقی هذا الحديث ) وقال النسائی هو مضطرب کما حکاه عنه ابن القيم فی الهدی کذا ضعفه البيهقی وغيره والحديث الذی ذکره ابن عبدالبر اخرجه ابوداؤد عن سلمة بن المحبق، قال النسائی لا يصح هذا الحديث، وقال ابوداؤد سمعت احمد بن حنبل يقول الذی رواه عن سلمة بن المحبق شيخ لا يعرف – الی اخر ما فی الاوجز ٥٢/٦... دا د سلمه بن المحبق حديث وړاندې په کتاب کښې راځی.

[٤٤٦٠]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي رَجُلٍ وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ: إِنْ كَانَ اسْتَكْرَهَهَا فَهِيَ حُرَّةٌ وَعَلَيْهِ لِسَيِّدَتِهَا مِثْلُهَا، فَإِنْ كَانَتْ طَاوَعَتْهُ فَهِيَ لَهُ وَعَلَيْهِ لِسَيِّدَتِهَا مِثْلُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، وَمَنْصُورُ بْنُ زَاذَانَ، وَسَلَّامٌ عَنْ الْحَسَنِ، هَذَا الْحَدِيثَ بِمَعْنَاهُ، لَمْ يَذْكُرْ يُونُسُ، وَمَنْصُورٌ قَبِيصَةَ.

دسلمه بن محبق نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام دهغه کس په حق کښې دافيصله کړې وو چاچه دخپلې ښځې دوينځې سره جماع کړې وه ، اوهغه داسې که چرې جماع ئې ورسره په زورباندې کړې وی نووينځه آزاده ده او په ده باندې ددې وينځې مالې ته داسې وينځه ورکول لازم شول اوکه چرې هغې په رضاباندې دده سره جماع کړې وی نو داوينځه دده شوه او په ده باندې ددې دمالې دپاره ددې وينځې په برابر تاوان ورکول لازم دي. امام ابوداؤد فرمائی چه دا روايت يونس بن عبيد اوعمروبن دينار او منصور بن زاذان اوسلام دحسن نه ددې په شان بيان کړې دې، اويونس اومنصور په خپل روايت کښې دقبيصه ذکرنه دې کړې.

**قوله:** ( عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَضَى فِي رَجُلٍ وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ إِنْ كَانَ اسْتَكْرَهَهَا فَهِيَ حُرَّةٌ وَعَلَيْهِ لِسَيِّدَتِهَا مِثْلُهَا فَإِنْ كَانَتْ طَاوَعَتْهُ فَهِيَ لَهُ وَعَلَيْهِ لِسَيِّدَتِهَا مِثْلُهَا )

يعنی رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه سړی په باره کښې چا چه د خپلې ښځې د وينځې سره وطی کړې وه

[1]: سنن النسائي/النكاح ٧٠ (٣٣٦٥)، سنن ابن ماجه/الحدود ٨ (٢٥٥٢)، (تحفة الأشراف: ٤٥٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧٦/٣، ٦/٥) (ضعيف)

دا فيصله اوفرمائيله چه که هغه د وينځې سره وطی جبرا کړې وی نو بيا به هغه وينځه آزاده شی او د دې واطی دپاره به د هغې وينځې د مالکې په ضمان کښې هم د دې په شان وينځه واجب وی، او که هغه دې وينځې سره وطی د هغې په رضا باندې کړې ده نو هغه وينځه به د واطی دپاره شی او په دې واطی باندې به هم هغه شان وينځه واجب وی د مالکې دپاره، د دې حديث په باره کښې امام خطابی فرمائی : ﴿ لا اعلم احدا من الفقهاء يقول به، وفيه امور يخالف الاصول الى آخر ما فى البذل ﴾ يعنی د دې حديث يو فقيه هم قائل نه دې، او په دې کښې ډير څيزونه د اوصولو خلاف دی، او په حاشيه د بذل کښې دی : وما ل ابن القيم فی الهدی ١٩١/١ الى تصحيح هذا الحديث وقال قواعد الشرع تقتضيه وضعف حديث سلمة بن المحبق الآتی وبسط الكلام عليهما.

[٤٤٦١] ()حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ الدِّرْهَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: وَإِنْ كَانَتْ طَاوَعَتْهُ فَهِيَ وَمِثْلُهَا مِنْ مَالِهِ لِسَيِّدَتِهَا.

سلمه بن محبق د نبی عليه السلام نه د تير شوي روايت په شان روايت بيان کړې دې مګر د دې اضافي سره چه که چرې وينځې په خوشئ سره صحبت کړې وی نو هغه وينځه او د هغې په شان يوه بله وينځه به ښځې ته د خاوند د مال نه ورکولي شي.

حديث النعمان بن بشير رضي الله عنه اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وحديث سلمة بن المحبق اخرجه النسائی، وقال لا تصح هذه الاحاديث

وحديث الحسن اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِيمَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ

### د لواطت د حرمت بيان

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :

لواطت د جمهورو په نزد د زنا په حکم کښې دې لهذا په هغې باندې به حد زنا جاری کيږی، پس که محصن وی نو رجم کيږی به او که غير محصن وی نو جلد، د امام شافعی او د صاحبينو رحمهما الله مسلک هم دا دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد د هغې حد مطلقا رجم دې، او د امام احمد رحمه الله په دې کښې دوه روايتونه دی يو د امام مالک رحمه الله په شان يعنی مطلقا د رجم، او دويم په مثل د شافعی، او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد لواطت د زنا په حکم کښې نه دې په دې وجه د هغوی په نزد په دې کښې صرف تعزير دې، وفی حاشية الترمذی من عمل عمل قوم لوط فلا حد عليه عند ابی حنيفة ولکنه يعزر ويسجن حتى يموت او يتوب ولو اعتاد اللواطة قتله الامام محصنا كان او غير محصن سياسة، وقالا ای الصاحبان هو كالزنا فيحد جلدا ان لم يكن احصن، ورجما ان احصن ولابی حنيفة انه ليس بزنا ولا فی معناه فلا يثبت فيه حده، وذلک لان الصحابة اختلفوا فی موجبه ومنهم من اوجب التحريق بالنار ومنهم من قال يهدم عليه الجدار، ومنهم من نكسه من مكان مرتفع مع اتباع الحجارة فلو كان زنا او فی معناه لم يختلفوا...

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٥٩) (ضعيف)

[٤٤٦٢](١)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو مِثْلَهُ، وَرَوَاهُ عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَفَعَهُ، وَرَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَفَعَهُ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه رسول اکرم فرمائیلی دی هرهغه کس څوک چه تاسو دقوم لوط په عمل باندې ولیدو نوفاعل او مفعول دواړه قتل کړئ ، امام ابوداؤد فرمائی چه دا روایت عمرو بن ابی عمرو په همدي سند سره بیان کړې دې او عباد بن منصور دعکرمه نه اوهغه دابن عباس په واسطه مرفوعا بیان کړې دي او ابن جریج دابراهیم نه هغه د داود نه هغه دعکرمه نه اوهغه دابن عباس په واسطه مرفوعا بیان کړې دي.

﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهِ » ﴾ او د دې نه په روستو روايت کښې داسې دی : ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي الْبِكْرِ يُوجَدُ عَلَى اللُّوطِيَّةِ قَالَ يُرْجَمُ ﴾

[٤٤٦٣](٢)حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ رَاهَوَيْهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ خُثَيْمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ، وَمُجَاهِدًا يُحَدِّثَانِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "فِي الْبِكْرِ يُؤْخَذُ عَلَى اللُّوطِيَّةِ، قَالَ: يُرْجَمُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ عَاصِمٍ يُضَعِّفُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه که چرې يونوجوان لوند په بچه بازی کښې ونيولی شي نورجم کولې بشي.

اول حديث مرفوع وو او دا موقوف، بله دا چه په اول روايت کښې د قتل لفظ وو او په دې کښې د رجم، ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ حَدِيثُ عَاصِمٍ يُضَعِّفُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو ﴾ دا عبارت دلته بې محل دې، د عمرو بن ابی عمرو او عاصم د دواړو احاديث په راروان باب، باب من اتی بهيمة کښې را روان دي، حافظ منذری هم په دې باندې دا اشکال کړې دې، د عمرو بن ابی عمرو حديث خو دا دې :

(٣)(٤)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ"، قَالَ: قُلْتُ لَهُ: مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ؟ قَالَ: مَا أُرَاهُ قَالَ ذَلِكَ، إِلَّا أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يُؤْكَلَ لَحْمُهَا وَقَدْ عُمِلَ بِهَا ذَلِكَ الْعَمَلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَيْسَ هَذَا بِالْقَوِيِّ.

---

[1]: سنن الترمذي/الحدود ٢٤ (١٤٥٦)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٢ (٢٥٦١)، (تحفة الأشراف: ٦١٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٩/١، ٣٠٠) (حسن صحيح)

[2]: انظر ما قبله (صحيح الإسناد)

[3]) دا او وروستي حديث دا دواړه په راروان باب کښې موجود دی. دلته ددې احاديثو ذکر شوې وو نو خکه نقل کړې شو. مترجم.

[4]: انظر حديث رقم (٤٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٧٦) (حسن صحيح)

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه دځناورسره جماع وکړله نوهغه لره مړ کړئ اوهغه ځاروي هم مهکړئ عکرمه وائی چه ما د ابن عباس نه تپوس وکړوچه ددې ځاروي څه قصوردي؟ عکرمه په خپله وائی چه زما خيال دي چه هغه داخبره په دې وجه وکړه چه دکوم ځناورسره بدفعلی شوي وي نو ابن عباس دهغه غوښه خوړل ښه نه ګڼړي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ » ﴾ او د عاصم حديث داسې دی:

[٤٤٦٥]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، أَنَّ شَرِيكًا، وَأَبَا الأَحْوَصِ، وَأَبَا بَكْرِ بْنَ عَيَّاشٍ، حَدَّثُوهُمْ عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَيْسَ عَلَى الَّذِي يَأْتِي الْبَهِيمَةَ حَدٌّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا قَالَ عَطَاءٌ، وَقَالَ الْحَكَمُ: أَرَى أَنْ يُجْلَدَ وَلَا يُبْلَغَ بِهِ الْحَدَّ، وَقَالَ الْحَسَنُ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الزَّانِي، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ عَاصِمٍ يُضَعِّفُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چاچه دځناورسره بدفعلی وکړله نوپه هغه باندې حد نشته. امام ابوداؤد فرمائي چه عطاء هم دا روايت په دې سندسره بيان کړې دې اوحکم وئيلی دی چه داکس به په درو وهلي شي ليکن دحد ددرونه کم، حسن وئيلی دی چه دداسې کس سزا دزناکاردسزاپه شان ده. امام ابوداؤد وئيلی دی چه دعاصم روايت دعمرو د روايت تضعيف کوي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي رَزِينٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَيْسَ عَلَى الَّذِي يَأْتِي الْبَهِيمَةَ حَدٌّ ﴾

په دواړو کښې مخالفت ښکاره دې چه په اول حديث کښې د اتيان بهيمة سزا ذکر ده يعنی قتل او په بل حديث کښې د مطلقا حد نفی ده، بله دا چه دا د ابن عباس رضي الله عنهما حديث موقوف دې ګويا دا د هغوی خپله رائې او فتوی ده، هم په دې وجه مصنف رحمه الله فرمائي چه د عاصم په حديث سره د حديث عمرو تضعيف کيږي، زمونږ دا خبره د حافظ منذری د رائې سره خو موافق ده خو د حضرت ګنګوهي په تقرير کښې بل څه دی د هغوی په رائې کښې دا ﴿ قال ابوداؤد ﴾ بې محل نه دې او د هغې وجه دا ده چه په اصل کښې د عمرو بن ابی عمرو دوه احاديث دی يو په اول باب کښې چه په هغې کښې د لواطت ذکر دې او يو د عمرو بن ابی عمرو حديث هغه دې کوم چه به په راروان باب ﴿ باب فيمن اتی بهيمة ﴾ کښې راروان دې نو حضرت د مصنف رحمه الله په کلام کښې د عمرو بن ابی عمرو د حديث نه د مخکښې باب والا حديث مراد کړې دې چه د هغې مضمون دا دې چه په لواطت کښې فاعل او مفعول به دواړه قتل کړې شی، او د عاصم د حديث مضمون خو دا دې چه د ابن عباس خپل قول دې ﴿ ليس علی الذی ياتی البهيمة حد ﴾ نو حضرت فرمائي چه هر کله د ابن عباس رضي الله عنهما په نزد د اتيان بهمية په صورت کښې حد نشته نو بيا به د هغوی په نزد په لواطت کښې هم حد نه دی کيدل پکار ځکه چه قضاء الشهوة فی غير محل الحرث په دواړو ځايونو کښې موندلې شي، لهذا د اول باب حديث د ابن عباس رضي الله عنهما د رائې خلاف شو او ګويا دې دويم حيث راتلو سره د اول

(): سنن الترمذي/الحدود ٢٣ (١٤٥٥)، انظر حديث رقم (٤٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٧٦) (حسن)

باب د حديث تضعيف اوکړو، خو زمونږ په نزد ظاهره د شارحينو رائې ده. [1] منذری وغيره او په دې کتاب کښې يعنی په سنن ابی داؤد کښې نور هم داسې په بعض ځايونو کښې شوی دی چه د قال ابوداؤد ذکر فی غير محله شوې دې زمونږ په ذهن کښې د دې مثالونه شته يو ځائې په کتاب الحج کښې داسې شوې دی او يو ځائې په کتاب الصلوة کښې په ابواب صلوة الخوف کښې...... والله تعالی اعلم.

## بَابٌ فِيمَنْ أَتَى بَهِيمَةً

### باب: د ځارووسره د بدکارئ کولو د سزا بيان

د دې باب دواړه احاديث د دې نه مخکښې باب کښې نقل شوی دی. چه د هغې مضمون دا دې چه کوم سړی د يو حيوان سره بدفعلی اوکړه نو بد فعلی کونکې او هغه حيوان دواړه قتل کړئ، او بيا د شاګرد په تپوسلو باندې د قتل حيوان مصلحت ابن عباس رضی الله عنهما دا بيان کړو چه کيدې شی په دې وجه چه د رسول الله ﷺ دا خوښه نه وه چه د داسې حيوان غوښه دې اوخوړلې شی د کوم سره چه دا ګنده کار کړې شوې دې، شراح د دې نور هم ډير مصلحتونه ليکلی دی مثلاً دا چه چرته داسې اونشی چه د دې فعل نه پس د دې ځاروی داقسم بچې پيدا شی کوم چه د دې ځناور مشابه وی، او وئيلې شوې دی چه که هغه حيوان ژوندې وو نو ترڅو چه په هغه باندې نظر پريوځی نو د هغه فعل تصور او تذکره به کيږی، او د هغه فاعل د شرمندګئ باعث به وی.

[٤٤٦٤] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ"، قَالَ: قُلْتُ لَهُ: مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ؟ قَالَ: مَا أُرَاهُ قَالَ ذَلِكَ، إِلَّا أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يُؤْكَلَ لَحْمُهَا وَقَدْ عُمِلَ بِهَا ذَلِكَ الْعَمَلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَيْسَ هَذَا بِالْقَوِيِّ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چاچه دځناورسره جماع وکړله نوهغه لره مړ کړئ اوهغه ځاروي هم مهکړئ عکرمه وائی چه ماد ابن عباس نه تپوس وکړوچه ددې ځاروي څه قصوردي؟ عکرمه په خپله وائی چه زما خيال دي چه هغه داخبره په دې وجه وکړه چه دکوم ځناورسره بدفعلی شوي وي نو ابن عباس دهغه غوښه خوړل ښه نه ګڼړي.

[٤٤٦٥] ([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، أَنَّ شَرِيكًا، وَأَبَا الْأَحْوَصِ، وَأَبَا بَكْرِ بْنَ عَيَّاشٍ، حَدَّثُوهُمْ عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَيْسَ عَلَى الَّذِي يَأْتِي الْبَهِيمَةَ حَدٌّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا قَالَ عَطَاءٌ، وَقَالَ الْحَكَمُ: أَرَى أَنْ

---

[1] ) ځکه چه حضرت د عمرو بن ابی عمرو د حديث نه مخکښې باب والا حديث مراد اخلی نو مصنف رحمه الله د هغې تضعيف څنګه کولې شی ځکه چه مصنف رحمه الله د عمرو بن ابی عمرو د اول حديث د هغې په متابعاتو او د نورو طرقو په ذريعه په اول باب کښې تقويت بيان کړې وو، پس مصنف رحمه الله هلته وئيلې وو قال ابوداؤد رواه سليمان بن بلال عن عمرو بن ابي عمرو ومثله ورواه عباد بن منصور عن كرمة عن ابن عباس رفعه، ورواه ابن جريج عن ابراهيم عن داؤد بن الحصين عن عكرمة عن ابن عباس رفعه)

[2] ): انظر حديث رقم (٤٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٧٦) (حسن صحيح)

[3] ): سنن الترمذي/الحدود ٢٣ (١٤٥٥)، انظر حديث رقم (٤٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٧٦) (حسن)

يُجْلَدَ وَلَا يَبْلُغَ بِهِ الْحَدَّ، وَقَالَ الْحَسَنُ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الزَّانِي، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ عَاصِمٍ يُضَعِّفُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو.

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چاچه دځناورسره بدفعلي وکړله نوپه هغه باندې حد نشته. امام ابوداؤد فرمائي چه عطاء هم دا روايت په دې سندسره بيان کړې دې اوحکم وئيلى دى چه داکس به په درو وهلې شي ليکن دحد ددرونه کم، حسن وئيلى دى چه دداسې کس سزا دزناکاردسزاپه شان ده. امام ابوداؤد وئيلى دى چه دعاصم روايت دعمرو د روايت تضعيف کوي.

**توضيح:** د دې نه پس دا پيژندل پکار دى چه په اتيان بهيمه کښې د جمهور علماء او ائمه اربعه مذهب صرف تعزير دې د چا په نزد هم په دې کښې حد نشته، پس په بذل کښې دى فذهب الائمة الاربعة الى ان من اتى بهيمة يعزر ولا يقتل، والحديث محمول على الزجر والتشديد اهـ خو په حاشيه د بذل کښې دى چه د امام احمد په يو روايت کښې د دې حکم په مثل د لواطت دې کما في الهدى لابن القيم (ينظر احكام القرآن ٣/٢٦٣)

## بَابٌ إِذَا أَقَرَّ الرَّجُلُ بِالزِّنَا وَلَمْ تُقِرَّ الْمَرْأَةُ

**بابـ چه سړې د زنا اقرار اوکړي او ښځه ئې اونه کړي دهغې بيان**

[٤٤٦٦] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَجُلًا أَتَاهُ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ سَمَّاهَا لَهُ، فَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَرْأَةِ، فَسَأَلَهَا عَنْ ذَلِكَ فَأَنْكَرَتْ أَنْ تَكُونَ زَنَتْ، فَجَلَدَهُ الْحَدَّ وَتَرَكَهَا".

سهل بن سعد دنبي کريم ﷺ نه روايت کوي فرمائي چه نبي ﷺ ته يوکس راغې اودنبي ﷺ په وړاندې ئې دزنې اقرارو کړواوديوې ښځې نوم ئې واخستوچه دفلانۍ سره مې زنا کړې ده نونبي ﷺ په هغه زنانه پسې خوک وليږل اودهغې نه ئې تپوس وکړوددې کاريه باره کښې هغې دزنې کولونه انکار وکړو نونبي ﷺ سړې په درو ووهلو اوښځه ئې پريخودله.

﴿ أَنَّ رَجُلاً أَتَاهُ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ سَمَّاهَا لَهُ الخ ﴾

دا د سهل بن سعد رضي الله عنه حديث مرفوع دې چه يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره د يوې زنانه نوم واخستلو او هغې سره ئې د زنا اقرار اوکړو، رسول الله ﷺ هغه ښځې ته سړې اوليږلو او د هغې نه ئې معلومه کړه نو هغې د زنا نه انکار اوکړو نو رسول الله ﷺ په هغه زانى اقرار کونکي باندې د سلو کوړو حد جارى کړو (هغه به غير محصن وو) او زنانه ئې په خپل حال باندې پريخودله هغې سره ئې هيڅ کار اونه لرلو، په ظاهر کښې په دې وجه چه هغې د قذف مطالبه نه وه کړې، که مطالبه ئې کړې وه نو په دې زانى باندې به حد قذف هم جارى کړې شوې وې او دا هم ممکنه ده چه هغې د قذف مطالبه کړې وى، او په هغه سړى باندې حد قذف هم جارى کړې شوې وو خو راوى د هغې ذکر اونکړو. (بذل) په بذل کښې خو صرف هم دومره دى.

(١): انظر حديث رقم: (٤٤٣٧)، (تحفة الأشراف: ٤٧٠٥) (صحيح)

## مسئله مترجم بها کښې مذاهب ائمه :

خو حضرت په حاشیه د بذل کښې په ترجمة الباب والا مسئله کښې د جمهورو او د احنافو اختلاف نقل کړې دې هغه دا چه په دې صورت کښې په اقرار کونکي باندې حد د جمهورو او د صاحبین په نزد دې او د امام صاحب په نزد نشته، پس په در مختار کښې دي : (ویثبت أیضا (بإقراره) صریحا صاحیا ولم یکذبه الآخر قال ابن عابدین ۱۴۳/۳ فَلَوْ أَقَرَّ بِالزِّنَا بِفُلَانَةَ فَكَذَّبَتْهُ دُرِئَ الْحَدُّ عَنْهُ سَوَاءٌ قَالَتْ تَزَوَّجَنِي أَوْ لَا أَعْرِفُهُ أَصْلًا ، وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ إنْ ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ ، وَإِنْ أَقَرَّتْ بِالزِّنَا بِفُلَانٍ فَكَذَّبَهَا فَلَا حَدَّ عَلَيْهَا أَيْضًا عِنْدَهُ خِلَافًا لَهُمَا فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ ﴾ (د بحث) ([1]) او دویمه مسئله دلته داده چه دښځې دانکار نه پس به حد قذف په سړي باندې جاري کیږي اوکه نه؟ نو پورته د بذل المجهود په حواله تیر شو چه دا دهغه په مطالبه باندې موقوف دی چه که مطالبه اوکړي نو حد قذف به هم پرې جاري کیږي ګنی نه به جاري کیږي، په دې کښې د نور امامانو اختلاف دې، لکه چه په حاشیه د بذل کښې دی چه: قال القیم فی الحدیث امران احدهما وجوب الحد علی الرجل وان کذبته المرأة خلافا لأبی حنیفة انه لا یحد، والثانی لایجب علیه حد القذف، وحدیث ابن عباس الآتی منکر..الخ، ددې نه معلومه شوه چه دحنابله ؤ په نزد په دې صورت کښې سړي باندې حد قذف نشته، اود ابن عباس رضی الله عنهما کوم روایت چه دلته په کتاب کښې وړاندې راروان دې په هغې کښې دادی: "أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَكْرِ بْنِ لَيْثٍ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ،فَجَلَدَهُ مِائَةً وَكَانَ بِكْرًا ثُمَّ سَأَلَهُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمَرْأَة، فَقَالَتْ: كَذَبَ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَجَلَدَهُ حَدَّ الْفِرْيَةِ ثَمَانِينَ". د حنابله په نزد چونکه په دې صورت کښې حد قذف نشته په دې وجه ابن قیم ددې جواب دا ورکړې چه دا حدیث منکردې، لکه چه پورته تیرشو، د نورو امامانو مذاهب په دې کښې پاتې دی، د امام نووی دکلام نه معلومیږی چه د شوافعو په نزد په دې صورت کښې حد قذف دې ځکه چه امام نووی رحمه الله ﴿ وامر انیس الاسلمی ان یاتی امراة الاخر ﴾ په شرح کښې چه کوم اشکال نقل کړې دې چه په حد زنا کښې تجسس نه وی او بیا ئې د هغې چه کوم جواب کړې دې چه دا لیږل د اقامت حد دپاره نه وو بلکه زنانه ته د دې وینا دپاره وو چه فلانی سړي په تا باندې د زنا تهمت لګولې دې نو که ته د دې انکار کړې نو ستا دپاره د حد قذف د مطالبې حق دې، او بیا د دې نه روستو فرمائی : ﴿ وقد اخرج ابوداؤد والنسائی عن ابن عباس الخ﴾ یعنی هم هغه حدیث کوم چه پورته ذکر شو، د دې نه پس فرمائی : ﴿ وقد سکت علیه ابوداؤد وصححه الحاکم واستنکره النسائی ﴾ د دې نه د شوافعو مذهب هم معلوم شو، چه د هغوی په نزد هم په

---

[1]) یعنی که سړې دا اقرار اوکړي چه ما د فلانۍ زنانه سره زنا کړې ده نو د امام صاحب په نزد به په هغه سړي باندې حد زنا هله وی چه کله هغه زنانه د هغه تصدیق اوکړي ګینی نه به وی، هم دغه شان د زنانه هم دا حکم دې چه که هغه د زنا اقرار اوکړي چه فلانی سړي سره ما زنا کړې ده خو سړي د هغې تکذیب کوی نو په زنانه باندې به هم د زنا حد نه جاري کیږي، او د صاحبینو او د جمهورو په نزد به په دواړو مسئلو کښې په اقرار کونکي باندې حد جاري کیږي. که بل څوک ئې تصدیق کوی او که نه کوی.

دې صورت کښې حد قذف دې څنګه چه د احنافو په نزد دې خو د حنابله په نزد نه دې.

[٤٤٦٧]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ هَارُونَ الْبُرْدِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ فَيَّاضٍ الأَبْنَاوِيِّ، عَنْ خَلَّادِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَكْرِ بْنِ لَيْثٍ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ، فَجَلَدَهُ مِائَةً وَكَانَ بِكْرًا ثُمَّ سَأَلَهُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمَرْأَةِ، فَقَالَتْ: كَذَبَ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَجَلَدَهُ حَدَّ الْفِرْيَةِ ثَمَانِينَ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه دبکربن ليث قبيلې يوکس نبي عليه السلام ته راغې او څلور ځلې ئې اقرار وکړوچه ماديوې ښځې سره زنا کړې ده نونبي عليه السلام دسلو در وسزا ورکړه اودې لوند وواوبيانې دهغه نه په ښځه باندې ګواهان وغوښتل هغې ووئيل چه دروغ ئې وئيلې دي په الله قسم نونبي عليه السلام په ده باندې د تهمت حد چه اتيادرې دې جارې کړو.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُصِيبُ مِنَ الْمَرْأَةِ دُونَ الْجِمَاعِ فَيَتُوبُ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَهُ الإِمَامُ

### باب: دهغه کس د سزا بيان چه دښځې سره د جماع نه علاوه هرڅه اوکړي خود نيولو نه مخکښې توبه اوباسي

[٤٤٦٨]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالأَسْوَدِ، قَالَا: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي عَالَجْتُ امْرَأَةً مِنْ أَقْصَى الْمَدِينَةِ فَأَصَبْتُ مِنْهَا مَا دُونَ أَنْ أَمَسَّهَا فَأَنَا هَذَا فَأَقِمْ عَلَيَّ مَا شِئْتَ، فَقَالَ عُمَرُ: قَدْ سَتَرَ اللَّهُ عَلَيْكَ لَوْ سَتَرْتَ عَلَى نَفْسِكَ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا، فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ فَأَتْبَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا، فَدَعَاهُ فَتَلَا عَلَيْهِ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ سورة هود آية ١١٤ إِلَى آخِرِ الآيَةِ، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَهُ خَاصَّةً أَمْ لِلنَّاسِ كَافَّةً؟ فَقَالَ: لِلنَّاسِ كَافَّةً".

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه يوکس نبي عليه السلام ته راغې او وئې وئيل چه مادمدينې دلاندې حصې ديوې ښځې نه فائده واخستله په ښکلولو اومعانقې وغيره سره اودجماع نه علاوه مې ورسره هرڅه وکړل ، زه ستا په وړاندې حاضريم زماد پاره چه څه سزاوې ماته ئې راکړه ، عمر رضي الله عنه ورته ووئيل يقيناًپتاباندې الله تعالى پرده اچولې وه خوکاش چه تاپه خپل ځان باندې په خپله پرده اچولې وې ، اونبي عليه السلام ورته هيڅ جواب ورنکړواودې روان شو، بيا ورپسې نبي عليه السلام څوک ورولېګلو اودې ئې راوغوښتلواو دا ايت کريمه ئې ورته تلاوت کړون «وأقم الصلاة طرفی النهار وزلفا من الليل» ايت تر آخره پورې نوپه خلقو کښې يوکس ووئيل اې دالله رسوله ايا داحکم دده دپاره خاص دې اودهر چادپاره دې؟نبي عليه السلام اوفرمائيل بلکه دهر چادپاره دې.

**قوله:** ﴿ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ إِنِّي عَالَجْتُ امْرَأَةً مِنْ أَقْصَى الْمَدِينَةِ فَأَصَبْتُ مِنْهَا مَا دُونَ أَنْ أَمَسَّهَا ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٦٤) (منكر)

[2]: صحيح مسلم/التوبة ٧ (٢٧٦٣)، (تحفة الأشراف: ٩١٦٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/مواقيت الصلاة ٤ (٥٢٦)، التفسير ٤ (٤٦٨٧)، سنن الترمذي/التفسير ١٢ (٣١١٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩٣ (١٣٩٨) (حسن صحيح)

**مضمون الحديث** :

عبدالله بن مسعود ﷛ فرمائی چه یو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه ما د مدينې په لرې طرف کښې یعنی د مسجد نبوی ﷺ نه په ډیره فاصله باندې یو زنانه اوچیړله او سوا د زنا نه مې هغې سره هر څه اوکړل، لهذا زه حاضر یم کومه سزا چه تاسو ماته راکول غواړئ هغه راکړئ، هلته سیدنا عمر فاروق ﷛ هم موجود وو هغوی اوفرمائیل چه که چرې دا معامله په راز کښې ساتلې وی لکه څنګه چه الله پاک دا راز فاش نه کړو نو دا به زیاته غوره وې، خو رسول الله ﷺ خاموش شو او هغه سړې لاړو (هم په دې وخت کښې په هغوی باندې وحی نازله شوه) نو رسول الله ﷺ د یو سړی په ذریعه ئې هغه راطلب کړو او د هغه د راتلو نه پس رسول الله ﷺ هغه ته دا آیت واورولو ﴿ أَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ ﴾ چه د دې نه معلومه شوه چه د دې سړي دا ګناه د هغه د اعمال حسنه د وجې نه معاف شوه، په حاضرینو کښې یو سړی تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دا حکم یعنی د معاف کیدو بشارت صرف هم د دې سړی دپاره دې یا که د ټولو خلقو دپاره دې؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ﴿ بل للناس كافة ﴾ چه د ټولو دپاره دې.

**(دا صحابی څوک وو؟)**

د دې صاحب واقعه په نوم کښې په بذل کښې لیکلې دی، قيل هو ابو اليسر، وقيل بنهان التمار، وقيل عمرو بن غزية اهـ او په حاشیه د بذل کښې دی : وبه جزم صاحب التلقيح صفحه۳۶۷ اذ قال هو ابو اليسر كعب بن عمرو انصارى وقال النووى فى الاسماء واللغات ٣١١ ابو اليسر او عمرو بن غزية، وبسط الحافظ الاختلاف فى اسمه وحمله على التعدد، وكذا ذكر اختلاف الفاظ الرواية فى ذلك اهـ او په بذل کښې هم دی. ﴿ فقال رجل من القوم ﴾ په شرح کښې وفى رواية البخارى قال الرجل الى هذه وظاهره ان صاحب القصة هو السائل، وفى رواية عند مسلم: فقال يا رسول الله ﷺ اله وحد وللدارقطنى مثله ويحمل على تعدد السائلين، قاله الحافظ. والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي الْأَمَةِ تَزْنِي وَلَمْ تُحْصَنْ

### باب د ناواده شوې زناکارې وینځې د سزا بیان

ځان پوهه کړه چه د عبد او امة حد پنځوس کوړې دې که هغه بکر وی او که ثیب د څلورو واړو امامانو په نزد [1] ځکه چه حرية په شرائطو د احصان کښې دې لهذا د دوی رجم به په هیڅ حال کښې نه شی کولې، او د بعض علماء کرامو لکه ابوثور ﷫ په دې کښې اختلاف دې، هغوی فرمائی چه که دا دواړه ناوادهٔ کړی دی نو بیا خو هم دغه شان ده او که وادهٔ کړې وی نو دواړه به رجم کولې شی ځکه چه حرية د هغوی په نزد د شرائط احصان نه نه دې كما فى الاوجز، یا داسې اوایئ چه د غلام او وینځې احصان د ابوثور په نزد هم دا دې چه هغه دې وادهٔ کړې وی د دې نه پس اوس تاسو حديث الباب واخلئ.

[1] په دې کښې د نورو علماء کرامو اختلاف دې ينظر التفصيل في الاوجز ٣٤/٦)

[۴۴۶۹]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْأَمَةِ إِذَا زَنَتْ وَلَمْ تُحْصَنْ؟ قَالَ: إِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوهَا ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوهَا ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوهَا ثُمَّ إِنْ زَنَتْ فَبِيعُوهَا وَلَوْ بِضَفِيرٍ"، قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: لَا أَدْرِي فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ، وَالضَّفِيرُ: الْحَبْلُ.

د ابوهريره اوزيد بن خالد الجهني ﷠ نه روايت دي فرمائي چه دنبي ﷺ نه دغيرشادي شده وينځې د زنا د سزا متعلق تپوس وکړې شونبي ﷺ اوفرمائيل کله چه زنا وکړي نوپه دروئې ووهئ، بياچه کله زنا وکړي نوپه دروئې ووهئ، بياچه کله، زنا وکړي نونوخرڅه ئې کړئ اګردوړئ په يو پړي باندې وي، ابن شهاب وائې چه زه نه پوهيږم چه داسې ئې ورته په دريم اوکه په څلورم ځل باندې ووئيل ، اوضفير رسئ ته وئيلي شي.

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- سُئِلَ عَنِ الْأَمَةِ إِذَا زَنَتْ وَلَمْ تُحْصَنْ قَالَ « إِنْ زَنَتْ فَاجْلِدُوهَا الخ»﴾

## شرح الحديث من حيث الفقه :

د رسول الله ﷺ نه د هغه وينځې په باره کښې تپوس اوکړې شو کومې چه زنا اوکړه او حال دا چه هغه محصنه نه وه نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که هغه زنا اوکړي نو هغې ته دې کوړې ورکړې شی، او که بيا زنا اوکړي نو بيا دې هم کوړې ورکړې شی، په روايت کښې هم دغه شان درې کرته دی او وراندې دا دی چه که د دې نه پس هم زنا اوکړي نو هغه خرڅه کړئ اګر چه د يوې رسئ د ټکړې په بدل کښې ولې نه وی.(۲)

ضفير يعنی شعر مضفور، کمسئ ويښته د کوم نه چه د رسئ کار اخستلې شی، دلته دا مشهور اشکال دې چه د دې وينځې بيع د هغه حديث خلاف ده چه په هغې کښې دا دی ﴿ لا يومن احدکم حتى يرضى لاخيه ما يرضى لنفسه ﴾ چه کوم څيز د ځان دپاره خوښوی هم هغه دې د خپل مسلمان رور دپاره خوښ کړی نو هر کله چه هغه دې وينځې لره د خپل ځان دپاره نه خوښوی نو د چا په لاس ئې چه خرڅوی د هغه دپاره ئې ولې خوښوی، د دې اول جواب خو دا دې چه دا ممانعت په هغه صورت کښې دې چه کله هغه بل خپله هغه څيز د ځان دپاره خوښ نه کړی او چه کله ئې مشتری خپله خوښوی سره د هغه عيب نه، ځکه چه په بيع کښې د مبيع د عيب اظهار ضروری دې کما يشير اليه بقوله ولو بضفير... نو بيا په دې کښې د حديث مخالفت نشته، او دويم جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه ﴿ ان لتبدل الايدی د خلافی ازالة هٰذه الخصال ﴾ چه دا ضروری نه ده چه دې وينځې ته چه د کومې بې حيايئ جرأت دې مالک سره کيږی هغه دې د بل مالک سره هم کوی. کذا فی هامش البذل عن الکوکب الدری، وفيه ايضاً، واجاب عنه الحافظ ۱۳۴/۱۲ بوجوه اخر.

---

(۱): خ بالحدود ۲۲ (۶۸۳۷ و ۶۸۳۸)، صحيح مسلم بالحدود ۶ (۱۷۰۳)، سنن ابن ماجه بالحدود ۱۴ (۲۵۶۵)، (تحفة الأشراف: ۳۷۵۶)، وقد أخرجه: سنن الترمذي بالحدود ۱۳ (۱۴۳۳)، موطا امام مالک بالحدود ۳ (۱۴)، دي الحدود ۱۸ (۲۳۷۱) (صحيح)

(۲) دا امر بالبيع د جمهورو په نزد د استحباب دپاره دي وزعم ابن الزمعة انه للوجوب ولکن نسخ (کذا في البذل) وفي هامشه: وبالوجوب زعم داؤد کما قال النووي ۷۰/۲

په دي حديث کښ ﴿ اذا زنت ولم تحصن ﴾ دي. [1] د دي لم تحصن د قيد نه معلوميږي په طور د مفهوم مخالف چه که وينځه محصنه وی نو بيا د هغې دا حکم يعنی جلد نه دې بلکه رجم دې، او دا خبره د ائمه اربعه د مسلک خلاف ده خو د ابوثور نه د دې تائيد کيږي چه د هغه په دې مسئله کښ د جمهورو سره اختلاف دې، د دې خبرې د جمهورو د طرف نه ډير جوابونه کړې شوې دی يو دا چه دا لفظ په دې حديث کښ شاذ دې صرف د امام مالک رحمه الله په روايت کښ دې قاله الشراح الموطاء، يو جواب دا ورکړې شوې دې چه مفهوم مخالف معتبر نه دې او يا دې دا اوئيلې شی چه د احصان نه مرد دلته عتق دې يا عفت، ځکه چه احصان په څلورو معانی کښ مستعمل دې، ۱: عفة، ۲: التزوج، ۳: العتق، ۴: الاسلام.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٤٧٠] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا زَنَتْ أَمَةُ أَحَدِكُمْ فَلْيَحُدَّهَا وَلَا يُعَيِّرْهَا ثَلَاثَ مِرَارٍ، فَإِنْ عَادَتْ فِي الرَّابِعَةِ فَلْيَجْلِدْهَا وَلْيَبِعْهَا بِضَفِيرٍ أَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعْرٍ".

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دي کله چه په تاسو کښې ديوکس وينځه زنا وکړي نوحد دې ورباندې جاري کړې اوصرف په شرمولودې ئې نه پريږدی اوداخبره ئې درې پيرې اوفرمائيله ارکه چرې په څلورم ځل ئې بيازنا وکړه نوپه درودې ووهل شي او خرڅه دې کړې اګرکه په يوپړې وي يادوړئ په پړي باندې.

د دې نه روستو حديث کښ دا زيادت دې: ﴿ فَلْيَضْرِبْهَا كِتَابَ اللَّهِ وَلاَ يُثَرِّبْ عَلَيْهَا ﴾

[٤٤٧١] ([3]) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِي كُلِّ مَرَّةٍ: فَلْيَضْرِبْهَا كِتَابَ اللَّهِ وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا، وَقَالَ فِي الرَّابِعَةِ: فَإِنْ عَادَتْ فَلْيَضْرِبْهَا كِتَابَ اللَّهِ ثُمَّ لِيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعْرٍ.

ابوهريره رضی الله عنه دنبی عليه السلام نه روايت کوی فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی اوهمدا تيرشوي حديث ئې بيان کړو مګردا اضافه ئې وکړه چه په هرځل کښې به ئې ورته فرمائيل چه پس ودې وې دې لره اودا دالله پاک دطرف نه مقرره شوې سزا ده، اوصرف په رټلو باندې ئې مه پريږدئ اوکه چرې داوينځه بياپه څلورم ځل زناوکړي نودالله حد ورباندې جاري کړئ او بيا ئې خرڅه کړې اګر که دوړئ په پړي باندې وي.

يعنی رسول الله صلی الله عليه وسلم دا اوفرمائيل چه هر ځل دې دهغې د زنا نه پس د کتاب الله مطابق اووهی يعنی حد دې پرې جاری کړې شی، قال تعالى: ﴿ فعليهن نصف ما على المحصنات من العذاب ﴾

---

[1]) وفي الاوجز عن العيني قوله ولم تحصن ومفهومه أنها إذا أحصنت لا تجلد بل ترجم كالحرة لكن الأمة تجلد محصنة كانت أو غير محصنة ولكن لا اعتبار للمفهوم حيث نطق القرآن صريحا بخلافه في قوله تعالي فإذا أحصن فإن أتين بفاحشة فعليهن نصف ما علي المحصنات من العذاب فالحديث دل علي جلد غير المحصن والآية علي جلد المحصن لأن الرجم لا ينصف فيجلدان عملا بالدليلين الي آخر ما في الاوجز ٣٤/٦)

[2]): صحيح مسلم/الحدود ٦ (١٧٠٣)، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢٩٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٦/٢) (صحيح)

[3]): انظر حديث رقم: ٤٤٦٩، (تحفة الأشراف: ١٤٣١٩) (صحيح)

او د دې نه په مخکښې روايت کښې د ﴿ لا يثرب عليها ﴾ په ځائې ﴿ ولا يعيرها ﴾ دې په بذل کښې ليکلې شوې دی چه مطلب دا دې چه هغې ته په سزا ورکولو کښې دې صرف په تعيير او سب وشتم باندې اکتفا نه کوی، بلکه حد دې پرې قائم کړی، وقيل المراد النهى عن التثريب بعد الجلد فان الجلد صارت كفارة (بذل) والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی بنحوه، قاله المنذری.

**په حديث الباب کښې يوه بله اختلافی مسئله:**

په دې حديث کښې چه دا راغلی دی ﴿ اذا زنت امة احدکم فليحدها ﴾ د دې نه او هم دغه شان د دې نه پس چه کوم په کتاب کښې راروان دی ﴿ اقيموا الحدود على ما ملکت ايمانکم ﴾ سره ائمه ثلاث په دې باندې استدلال کړې دې چه مولی ته په خپل مملوک باندې د حد د قائم کولو حق شته ،داحنافو په نزد غير امام ته داقامت حدحق نشته، هم په دې وجه هغوی دا حديث په تسبيب باندې حمل کوی ای لکن سببا لجلدها رافعا الى الامام يعنى دا مطلب نه دې چه خپله دې جاری کړی بلکه د قاعدې مطابق حد جاری کول مراد دی، د احنافو استدلال د هغه روايت نه دې کوم چه د ابومسعود او ابن عباس او ابن زبير رضی الله عنهم نه موقوفا او مرفوعا روايت دې: ﴿ اربع الى الولاة الحدود والصدقات والجمعات والفیء ﴾ (من البذل)

## باب في إقامة الحد على المريض

### باب: په مريض باندې د حد جاری کولو بيان

يعنی کوم سړې چه د حد مستحق دې که هغه مريض وی نو په هغه باندې به دې حالت کښې حد جاری کولې شی يا که پس د جوړيدو او صحت نه؟ جواب دا دې چه که د مريض حد داسې وی چه په هغې کښې مقصود د هغه تلف کول وی لکه چه په رجم کښې وی نو د صحت د انتظار کولو ضرورت نشته، او که د مريض حد جلد وی نو د صحت انتظار ضروری دې چه هلاکت ته خبره او نه رسی، کذافی الهداية ۲/ ۳۴۹.

[٤٤٧٢] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو أُمَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْأَنْصَارِ: "أَنَّهُ اشْتَكَى رَجُلٌ مِنْهُمْ حَتَّى أُضْنِيَ، فَعَادَ جِلْدَةً عَلَى عَظْمٍ فَدَخَلَتْ عَلَيْهِ جَارِيَةٌ لِبَعْضِهِمْ فَهَشَّ لَهَا فَوَقَعَ عَلَيْهَا، فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ رِجَالُ قَوْمِهِ يَعُودُونَهُ أَخْبَرَهُمْ بِذَلِكَ، وَقَالَ: اسْتَفْتُوا لِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّي قَدْ وَقَعْتُ عَلَى جَارِيَةٍ دَخَلَتْ عَلَيَّ، فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالُوا: مَا رَأَيْنَا بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ مِنَ الضُّرِّ مِثْلَ الَّذِي هُوَ بِهِ لَوْ حَمَلْنَاهُ إِلَيْكَ لَتَفَسَّخَتْ عِظَامُهُ مَا هُوَ إِلَّا جِلْدٌ عَلَى عَظْمٍ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْخُذُوا لَهُ مِائَةَ شِمْرَاخٍ فَيَضْرِبُوهُ بِهَا ضَرْبَةً وَاحِدَةً".

امامه بن سهل بن حنيف په انصارو صحابه کرامو کښې ديو کس رضی الله عنه نه روايت کوی فرمائی چه په دوی کښې يو کس بيمار شو تردې چه کمزورې شو په هډوکوئې صرف ځرمن پاتې شوه نو په دې وخت کښې پدرې کښې ديو کس وينځه په ده باندې داخله شوه ده چه وليدله نو خوښه ئې شوه نو جماع ئې ورسره وکړله اووده دقوم خلق دده دبيمارپرسئ دپاره دده

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٢٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الحدود ١٨ (٢٥٧٤) (صحيح)

کورته په دغه وخت ورغلل نودوی ته ئې ددې واقعې خبر ورکړو او وئې وئيل چه زما دپاره دنبی علیه السلام نه فتوی اوغواړئ چه ما د يوې وينځې سره جماع کړې ده ،صحابه کرامو ددې خبرې ذکرنبی علیه السلام ته وکړو اوهغوی داهم ووئيل چه مونږ چرته دده نه سخت بيمارنه وو ليدلې که چرې مونږ تاته راوړلې نو هډوکی به ئې ختلې ووپه هډوکوئې صرف څرمن خوره وه نونبی علیه السلام دده متعلق حکم وکړوچه سل لختې راواخلئ اودې ورباندې يوګذار ووهئ.

﴿ أَخْبَرَنِى أَبُو أُمَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مِنَ الأَنْصَارِ أَنَّهُ اشْتَكَى رَجُلٌ مِنْهُمْ حَتَّى أُضْنِىَ فَعَادَ جِلْدَةً عَلَى عَظْمٍ فَدَخَلَتْ عَلَيْهِ جَارِيَةٌ لِبَعْضِهِمْ فَهَشَّ لَهَا فَوَقَعَ عَلَيْهَا الخ ﴾

ابو امامه رحمه الله د چا نوم چه سهل بن سعد بن حنيف دې هغوی د بعض انصاری صحابه کرامو رضی الله عنهم نه روايت کوی چه په هغوی کښې يو سړې بيمار شو او د بيمارئ نه دومره کمزورې شو چه د هډوکو او څرمنې نه علاوه پرې هيڅ هم باقی پاتې نه شو خو د هغې باوجود يو وينځه هغه ته لاړه او د هغې په ليدو باندې هغه کښې تازګی پيدا شوه او هغې سره ئې وطی اوکړه، د دې نه پس چه کله خلق هغه ته د تپوس دپاره راغلل نو دې مريض صحابی هغوی ته اووې چه زما باره کښې چه څه مانه شوې دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د هغې په باره کښې تپوس اوکړئ، دې خلقو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغه صحابی ضعف او کمزوری بيانولو سره د هغه د حکم تپوس اوکړو، او دا ئې هم اووې که مونږ هغه تاسو ته راولو نو د هغه هډوکی به هم روغ پاتې نه شی، رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه دپاره دا فيصله اوفرمائيله : ﴿أَنْ يَأْخُذُوا لَهُ مِائَةَ شِمْرَاخٍ فَيَضْرِبُوهُ بِهَا ضَرْبَةً وَاحِدَةً ﴾ چه د کهجورې سل څانګئ واخلئ او په يو ځل ئې د هغوی بدن ته راواچوئ، يعنی په داسې طريقه چه د هغه ټولو ښاخونو د هغه په بدن باندې لګيدل معلوم شی.

## په حيله مذکوره فی الحديث باندې د کوم امام عمل دې :

په امامانو کښې د دې حديث صرف امام شافعی رحمه الله قائل دې، امام مالک او احناف د دې قائل نه دی، د هغوی په نزد په حد کښې صحيح او مريض يو شان دی د جمهورو د طرف نه امام خطابی رحمه الله فرمائی چه که په مريض کښې دا صورت جائز وې نو په حامله کښې هم دا صورت جائز کيدې شو، خو د حاملې په باره کښې د ټولو اتفاق دې چه په هغې کښې دا صورت کافی نه دې، كذا في المنهل عن الخطابي..........

خو په مذکوره صورت کښې يعنی کله چه په مريض کښې د جلد تحمل نه وی او د صحت ئې هم توقع نه وی په دې صورت کښې احناف هم د امام شافعی رحمه الله سره دی څنګه چه ابن الهمام وئيلی دی، علامه شوکانی رحمه الله فرمائی چه دا عمل په هغه حيلو کښې دې کومې چه شرعا جائز دی او د دا قسم حيلو اجازت الله پاک هم ورکړې دې پس ارشاد دې، ﴿ وخذ بيدک ضغثا ﴾ الاية اه دا آيت کريمه د سيدنا ايوب علیه السلام په قصه کښې په سورة ص کښې ذکر دې چه هغوی د خپلې بی بی په يو خبره باندې ناراض کيدو سره دا قسم خوړلې وو چه زه به تا سل ګزاره وهم، الله پاک په قرآن کريم کښې د هغې حيله دا بيان اوفرمائيله : ﴿ وخذ بيدک

ضغثا فاضرب به ولا تحنث ﴾ چه اې ایوب ته په خپل لاس کښې يو جارو واخله چه په هغې کښې سل ډکې وی او خپله بی بی په هغې باندې اوهه، او خپل قسم مه ماتوه. پس د دې آيت کريمه په رنړا کښې د احنافو مسلک دا دې چه که يو سړې د سلو ګزارو ورکولو قسم اوخوری او روستو بيل بيل د سلو ګزارونو وهلو په ځائې د تولو ډکو يو موټې جوړ کړی او يو ځل ئې پرې اوهی نو په دې سره قسم پوره کيږی، خو د دې دپاره دوه شرطونه ضروری دی، کما قال ابن الهمام، يو خو دا چه د هغه سړی په بدن باندې هره چوکه طولا او عرضا ضرور اولګی، دويمه دا چه د هغې نه څۀ نه څه تکليف ورته ضرور محسوس شی، او که دومره سپک ئې بدن ته اولګوی چه بالکل ورته تکليف نه وی نو قسم به پوره نشی. (ملخصا من معارف القرآن)

[٤٤٧٣](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِي جَمِيلَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "فَجَرَتْ جَارِيَةٌ لِآلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا عَلِيُّ انْطَلِقْ فَأَقِمْ عَلَيْهَا الْحَدَّ، فَانْطَلَقْتُ فَإِذَا بِهَا دَمٌ يَسِيلُ لَمْ يَنْقَطِعْ فَأَتَيْتُهُ، فَقَالَ: يَا عَلِيُّ أَفَرَغْتَ؟ قُلْتُ: أَتَيْتُهَا وَدَمُهَا يَسِيلُ، فَقَالَ: دَعْهَا حَتَّى يَنْقَطِعَ دَمُهَا ثُمَّ أَقِمْ عَلَيْهَا الْحَدَّ، وَأَقِيمُوا الْحُدُودَ عَلَى مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى، وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الْأَعْلَى، فَقَالَ فِيهِ قَالَ: لَا تَضْرِبْهَا حَتَّى تَضَعَ، وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ.

د علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام په اهل بيتو کښې ديو کس وينځې بدفعلی وکړله نبی عليه السلام اوفرمائيل اې علی لاړ شه او په دې بانده حدجاري کړه علی رضی الله عنه وائی چه زه لاړم نودهغې نه وينه جاري وه کومه چه نه بنديدله نوزه نبی عليه السلام ته ورغلم اونبی عليه السلام رانه تپوس وکړو چه ايا دحد نافذولونه فارغ شوې؟ علی په جواب کښې ووئيل زه چه ورغلم نودهغې نه وينه جاري وه ، نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل پرې ئې ږده چه وينه ئې ودريږي بيابه پرې حدجاري کړې، او په خپلو وينځو باندې حدونه جاري کوئ. امام ابوداؤد وائی چه دا روايت ابو الاحوص هم عبدالاعلی نه نقل کړې دې، اوشعبه هم دعبدالاعلی نه بيان کړې دې خوشعبه په روايت کښې دی چه نبی عليه السلام اوفرمائيل- مه ئې وهه ترڅوچه ولادت ئې وشي ليکن اولنې روايت زيات صحيح دې-

﴿ عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه قَالَ فَجَرَتْ جَارِيَةٌ لآلِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَ « يَا عَلِيُّ انْطَلِقْ فَأَقِمْ عَلَيْهَا الْحَدَّ ». فَانْطَلَقْتُ فَإِذَا بِهَا دَمٌ يَسِيلُ الخ ﴾

علی رضی الله عنه فرمائی چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم يوې وينځې د زنا ارتکاب اوکړو، هغوی فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل چه اې علی لاړ شه او په دې باندې حد قائم کړه، ما هغه بوتله نو اومې کتل چه د هغې نه وينه روانه ده، زه واپس د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم نو هغوی تپوس اوکړو چه آيا د هغه کار نه فارغ شوې؟ ما عرض اوکړو چه زه هغه وينځې ته تلې اوم خو د هغې نه وينه روانه ده نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل بنها هغه فی الحال پريږده، روستو پرې حد جاري کړه او دا ئې هم اوفرمائيل : وَأَقِيمُوا الْحُدُودَ عَلَى مَا

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٨٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحدود ٧ (١٧٠٥)، سنن الترمذي/الحدود ١٣ (١٤٤١)، مسند احمد (١/٨٩، ٩٥، ١٣٥، ١٣٦، ١٤٥) (صحيح)

مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ د حديث په دې اخرى ټكړه بآندې كلام اوس اوس تير شوې دې او اختلاف د علماء كرامو هم، والحديث اخرجه النسائي ومسلم والترمذي معناه.

## بَابٌ فِي حَدِّ الْقَذْفِ

### باب د دروغو تهمت لګونكى د سزا بيان

**د قذف تعريف او دقذف د احصان مصداق:**

د قذف لغوى معنى د رمى ده وفى الشرع نسبة من احصن الى الزنا صريحا او دلالة (هامش البذل) يعنى محصن شخص لره د زنا طرف ته منسوب كول، كه نسبت صراحة وى يا دلالة، لهذا په غير محصن باندې تهمت لګولو سره به په قاذف باندې قذف نه جارى كيږى او د احصان معنى وړاندې د هدايه نه راځى څنګه چه د رجم دپاره په زانى كښ د صفت احصان موندلې كيدل ضرورى دى بغير د هغې نه نه رجم كيږى هم دغه شان د حد قذف دپاره هم په مقذوف كښ د صفت احصان موندلې كيدل ضرورى دى. وفى الهداية ص ٥٢٩ ج٢: وإذا قذف الرجل رجلا محصنا أو امرأة محصنة بصريح الزنا وطالب المقذوف بالحد حده الحاكم ثمانين سوطا إن كان حرا لقوله تعالى { والذين يرمون المحصنات } إلى أن قال { فاجلدوهم ثمانين جلدة } ويشترط مطالبة المقذوف لأن فيه حقه من حيث دفع العار وإحصان المقذوف لما تلونا، والإحصان أن يكون المقذوف حرا عاقلا بالغا مسلما عفيفا عن فعل الزنا اه دا چه د احصان تعريف دلته ذكر دې دا احصان القذف دې، او هغه احصان كوم چه په باب الرجم كښ تير شوې دې هغه احصان الرجم وو هم په دې وجه دواړو كښ فرق دې، وقد سبقت الاشارة اليه هناك اه.

[٤٤٧٤] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، وَمَالِكُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ الْمِسْمَعِيُّ، وَهَذَا حَدِيثُهُ: أَنَّ ابْنَ أَبِي عَدِيٍّ حَدَّثَهُمْ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "لَمَّا نَزَلَ عُذْرِي، قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَذَكَرَ ذَاكَ وَتَلَا تَعْنِي الْقُرْآنَ فَلَمَّا نَزَلَ مِنَ الْمِنْبَرِ أَمَرَ بِالرَّجُلَيْنِ وَالْمَرْأَةِ فَضُرِبُوا حَدَّهُمْ".

ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه كله چه زما د پاكدامنئ په سلسله كښې آيت كريمه نازل شو نونبى ﷺ په منبر باندې اودريدو اوددې ذكر ئې وكړو اودقران كريم تلاوت ئې وكړو ددې نه پس نبى ﷺ دمنبرنه كوز شو او دواړو سړو اوښځې ته ئې دحدحكم وكړو اوبيا خلقو په هغوى باندې حد جارى كړو.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ لَمَّا نَزَلَ عُذْرِى قَامَ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى الْمِنْبَرِ فَذَكَرَ ذَاكَ وَتَلاَ - تَعْنِى الْقُرْآنَ - فَلَمَّا نَزَلَ مِنَ الْمِنْبَرِ أَمَرَ بِالرَّجُلَيْنِ وَالْمَرْأَةِ فَضُرِبُوا حَدَّهُمْ او د دې نه په روستو روايت كښ دى: مِمَّنْ تَكَلَّمَ بِالْفَاحِشَةِ حَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ وَمِسْطَحِ بْنِ أُثَاثَةَ. قَالَ النُّفَيْلِىُّ وَيَقُولُونَ الْمَرْأَةُ حَمْنَةُ بِنْتُ جَحْشٍ ﴾

(١): سنن الترمذي/تفسير النور ٢٥ (٣١٨١)، سنن ابن ماجه/الحدود (٢٥٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٥، ٦١، ٢٨٦٧٤) (حسن)

[٤٤٧٥]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، لَمْ يَذْكُرْ عَائِشَةَ، قَالَ: فَأَمَرَ بِرَجُلَيْنِ وَامْرَأَةٍ مِمَّنْ تَكَلَّمَ بِالْفَاحِشَةِ: حَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ، وَمِسْطَحِ بْنِ أُثَاثَةَ، قَالَ النُّفَيْلِيُّ: وَيَقُولُونَ: الْمَرْأَةُ حَمْنَةُ بِنْتُ جَحْشٍ.

د محمد بن اسحق نه ددې په شان روايت مروی دې او په دې روايت کښې دا ذکر شوي دي چه نبی ﷺ دواړه سړو اوښځې ته چاچه بدې خبرې کړې وې هغه حسان بن ثابت او مسطح بن اثاثه وو نفيلي ويلي چه خلقو وئيلی دی چه زنانه حمنه بنت جحش وه.

**حديث الافک:**

په دې باب کښې مصنف رحمه الله په دې امت کښې چه کومه د تهولو نه لويه د قذف او تهمت واقعه کيدې شی د هغې متعلق د حديث يو جزء راوړې دې، حديث الافک يعنی په عائشې رضی الله عنها باندې لګيدلې تهمت چه د هغې تفصيلی واقعه په صحيح بخاری کتاب المغازی صفحه ۵۹۳ او په صحيح مسلم کتاب التوبة کښې په باب فی حديث الافک وقبول توبة القاذف:.. او د ترمذی په کتاب التفسير په تفسير د سورة النور کښې په څو صفحاتو کښې ذکر ده.

د افک دا واقعه په غزوه نبی المصطلق کښې پيښه شوې وه په ۵ هجری کښې کما فی تاريخ الخميس ۱/۴۷۵، وفی التلقيح لابن الجوزی ٦ هجری، او د حديث الافک ذکر په ابوداؤد کښې هم په باب من لم يرالجهر ببسم الله الرحمن الرحيم کښې هم اشارة راغلې دې.

ولفظه : عَنْ عَائِشَةَ وَذَكَرَ الإِفْكَ قَالَتْ جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهِ وَقَالَ « أَعُوذُ بِالسَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ (إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ) ». الآيَةَ،

دلته په دې باب کښې دا دی : سيده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله زما د براءة په باره کښې آيتونه نازل شو نو رسول الله ﷺ منبر ته تشريف يوړلو او د دې آيتونو د نزول ذکر ئې اوفرمائيلو او دا آيتونه ئې تلاوت اوفرمائيل (چه لس آيتونه د سورة نور دی) او بيا ئې د منبر نه د راکوزيدو نه پس په دوه سړو او يو زنانه باندې د حد قذف د جاری کولو حکم اوفرمائيلو يعنی حسان بن ثابت او مسطح بن اثاثه او حمنة بنت جحش رضی الله عنهم.....

**په عبدالله بن ابی باندې حد قذف جاری کړې شو يا نه؟:**

په دې روايت کښې د عبدالله بن ابی ذکر نه دې راغلې حال دا چه هم د هغه په باره کښې په قرآن کريم کښې دی ﴿ والذی تولی کبره منهم له عذاب اليم ﴾ په کتب صحاح کښې خو نه په عبدالله بن ابی باندې د حد د جاری کيدو ذکر شته او نه د تهمت لګولو، د قاضی عياض رائې دا ده چه د هغه نه قذف ثابت نه دې، خو هغه دا مسئله خوروله ضرور او په مجالسو کښې به ئې بيانوله، (بل الذی ثبت انه کان يستخرجه ويتوشيه ﴾ خو حافظ په دې باندې اعتراض کولو سره فرمائی : قلت وقد ورد أنه قذف صريحا ووقع ذلك في مرسل سعيد بن جبير عند بن أبي حاتم وغيره وفي مرسل مقاتل بن حيان عند الحاكم في "الأكليل" "بلفظ" فرماها عبد الله بن أبي، او حافظ فرمائی چه دا هم په بعض روايات مرسله کښې راغلی دی چه په هغه باندې حد جاری

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٨٩٨) (حسن)

کړې شو اخرجه الحاکم في الاکلیل..او د حافظ په کلام کښې دا هم دی چه ابن القیم رحمه الله هم په هغه خلقو کښې دي د چا چه رائې دا ده چه په عبدالله بن ابی باندې حد قذف جاری نه کړې شو، او بیا هغوی د دې یو حکمت هم بیان کړو، بیا حافظ د دې رائې رد کولو سره هم هغه خبره اولیکله کومه چه پورته تیره شوه. (من البذل)

## بَابُ الْحَدِّ فِي الْخَمْرِ

### باب د شرابو د حد بیان

د حد زنا په یو صورت کښې کوړې او په یو صورت کښې رجم دې او دا دواړه حکمونه په قرآن کریم کښې موجود دی، خو آیت د رجم منسوخ التلاوة دې، او حد د زنا سل کوړې دی لکه چه په قرآن کریم کښې د دې تصریح ده: ﴿ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ﴾ او هم دغه شان حد قذف اتیا کوړې دې چه د هغې په قرآن کریم کښې تصریح ده ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً ﴾ خو د حد شرب خمر چه د هغې دا باب شروع کیږي د هغې هیڅ حد او سزا په قرآن کریم کښې نه ده ذکر شوې صرف د خمر تحریم ذکر دې: ﴿ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ خو حد شرب د احادیثو نه ثابت دې خو په احادیث مرفوعه کښې د دې څه خاص مقدار معین طریقې سره ثابت نه دې لکه چه د باب د اول حدیث نه چه ثابتیږي.

[٤٤٧٦](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَقِتْ فِي الْخَمْرِ حَدًّا"، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: شَرِبَ رَجُلٌ فَسَكِرَ فَلُقِيَ يَمِيلُ فِي الْفَجِّ فَانْطُلِقَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا حَاذَى بِدَارِ الْعَبَّاسِ انْفَلَتَ فَدَخَلَ عَلَى الْعَبَّاسِ فَالْتَزَمَهُ، فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكَ، وَقَالَ: أَفَعَلَهَا وَلَمْ يَأْمُرْ فِيهِ بِشَيْءٍ؟، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْمَدِينَةِ: حَدِيثُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ هَذَا.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دشرابو په څکلو باندې څه حدنه دې مقرر کړې ابن عباس له وئیلی دی چه یوسړې شراب وڅکل اونشه شو دلیونوپه شان په لارې په ګډا روان وو نونبی علیه السلام ته بوتلې شو کله چه دعباس دکوربرابرئ ته ورسیدو نوهغه ئې دم وتښتیدو اودابن عباس کورته داخل شواوپټ شو اوبیا داقصه رسول الله ته بیان کړې شوه نبی علیه السلام وخندل او بیا ئې اوفرمائیل ایاده همداسې کړې دې؟ اووده متعلق ئې په دې باب کښې څه حکم ونکړو ، امام ابوداؤد فرمائی چه دا حدیث دحسن بن علی داسې حدیث دې په کوم کښې چه اهل مدینة متفرد دې.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَمْ يَقِتْ فِي الْخَمْرِ حَدًّا ﴾

**شرح الحدیث:**

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم په خمر کښې د حد مقدار معین نه دې فرمائیلې. دا مطلب نه دې چه د دې دپاره رسول الله صلی الله علیه وسلم بالکل څه حد نه دې مقرر فرمائیلې لکه چه بعض خلقو ته د دې نه

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٢١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٢/١) (ضعيف)

هم دا وهم پيدا شوې دې او هغوی وئيلی دی چه په خمر کښې يو حد واجب نشته بلکه په دې کښې صرف تعزير دې خو دا غلطه خبره ده ځکه چه د صحابه کرامو ﷺ نه په دې کښې په وجوب حد باندې اجماع نقل ده، او دا چه وړاندې د ابن عباس ﷺ په حديث کښې راغلی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې يو سړی شراب اوڅکل چه په هغې سره هغه نشه شو او په لاره کښې يو خوا بل خوا غورځيدلو سره او ښکته پورته کيدو سره هغه اوليدلې شو، خلقو هغه اونيولو او رسول الله ﷺ ته ئې راوستلو، چه کله په لاره کښې د عباس ﷺ د کور مخې ته تير شو نو د خلقو د لاسونو نه وتلو سره د عباس ﷺ کور ته داخل شو او په هغوی پورې اونختلو، خلقو د دې څيز ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړو، رسول الله ﷺ په دې باندې مسکې شو او وې خندل چه آيا واقعی هغه داسې کړې دی، او نور ئې د هغه په باره کښې څه حکم نافذ او نه فرمائيلو.

د دې قصې نه په عدم الحد فی الشرب باندې استدلال صحيح نه دې، بلکه د دې نه خو دا ثابتيږی چه د امام دپاره دا ضروری نه ده چه صرف د خلقو په خبر ورکولو سره په يو سړی باندې حد جاری کړی يا د هغې په باره کښې بحث او تفتيش اوکړی تر څو چه هغه خپله د امام مخکښې د موجب حد اقرار اونکړی يا په ګواهي د ګواهانو سره ثابت نه شی، او په دې واقعه کښې دا څيز بيا نه موندلې شو.

### په حد د خمر کښې مذاهب ائمة :

اوس دا خبره چه د شرب خمر د حد مقدار شرعا څومره دې؟ په دې کښې د ائمه اختلاف دې د امام ابوحنيفه او امام مالک په نزد اتيا کوړې دی، او د امام شافعي او احمد په نزد څلويښت کوړې دی، دواړه روايات مختلفه وړاندې په کتاب کښې راروان دی.

والحديث سكته عليه المنذري، وقد رواه النسائي كما في تعليق الشيخ محمد عوامه.

[٤٤٧٧]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو ضَمْرَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ، فَقَالَ: اضْرِبُوهُ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ، وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ، وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: أَخْزَاكَ اللَّهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُولُوا هَكَذَا، لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ".

دابو هريره ﷺ نه روايت دې فرمائی چه نبی ﷺ ته يو کس راوستل شو چه شراب ئې څکلي وو نبی ﷺ اوفرمائيل دې اووهئ ابوهريره وائی چاپه لاسونو اووهلو اوچاپه پيزارونو او چاپه جاموباندې کله چه مونږه دده دوهلونه فارغ شو نوبعضې خلقو ورته اووئيل الله تعالى دې وشرموه، نبی ﷺ اوفرمائيل داسې مه وائی دده په خلاف دشيطان مدد مه کوئ.

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ فَقَالَ « اضْرِبُوهُ » الخ ﴾ يعنی رسول الله ﷺ ته يو شارب خمر راوستلې شو رسول الله ﷺ اوفرمائيل دې اووهئ، سيدنا ابوهريره ﷺ فرمائی چه بعضو په مونږ کښې هغه په لاس باندې اووهلو او بعضو په پيزار باندې، او بعضو په خپلې کپړې باندې، يعنی هغې لره راتاوولو سره او د

[1]: صحيح البخاري/الحدود ٤ (٦٧٧٧)، ٥ (٦٧٨١)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٩٩، ٣٠٠) (صحيح)

کوړې په شان جوړلو سره (پښتو کښې ورته ډبلۍ وائی) چه کله هغه سړې روان شو نو بعض خلقو اووې چه ﴿ اخزاک الله ﴾ الله پاک دې رسوا کړه نو رسول اللهﷺ د داسې وینا نه منع اوفرمائیله، او وې فرمائیل چه د هغه په باره کښې د شیطان مدد مه کوئ، ځکه چه الله پاک دې رسوا کړی نو هم دغه شان به په ګناهونو کښې مشغول وی کوم چه د شیطان عین مقصود دې، لهذا په دې کښې د شیطان اعانت دې. والحدیث اخرجه البخاری، قاله المنذری.

د دې نه په روستو روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ د وهلو نه پس خلقو ته اوفرمائیل چه هغه ته زجر او توبیخ ورکړئ، په دې باندې خلقو هغه ته اووې چه ته د الله پاک نه نۀ ویریږې، ستا د الله پاک نه ویره نه کیږی، او د رسول اللهﷺ نه هم نه شرمیدې؟ بیا په آخر کښې رسول اللهﷺ اوفرمائیل: ﴿ قُولُوا اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ ﴾

[٤٤٧٨](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ أَبِي نَاجِيَةَ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَحَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، وَابْنُ لَهِيعَةَ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ بِإِسْنَادِهِ، وَمَعْنَاهُ قَالَ فِيهِ بَعْدَ الضَّرْبِ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: بَكِّتُوهُ، فَأَقْبَلُوا عَلَيْهِ، يَقُولُونَ: مَا اتَّقَيْتَ اللَّهَ مَا خَشِيتَ اللَّهَ وَمَا اسْتَحْيَيْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ أَرْسَلُوهُ، وَقَالَ فِي آخِرِهِ: وَلَكِنْ قُولُوا: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ، وَبَعْضُهُمْ يَزِيدُ الْكَلِمَةَ وَنَحْوَهَا.

ابن الهاد پخپل سند سره دتیر شوي روایت په شان بیان کړې دې مګر ددې اضافي سره کله چه خلق دده دهلونه فارغ شول نونبی علیه السلام صحابه کراموته اوفرمائیل دې ښه اووهئ او وئي رټئ نوخلقو ورته داسې اووئیل آیا ته دالله نه نه یریږې ، اوته دالله نه خوف نه کوې اوتا دنبی علیه السلام نه شرم او حیا ونکړه اوبیا ئي پریخودو ، ددې روایت په اخرکښې داسې دی چه نبی علیه السلام اوفرمائیل الیکن اې خلقو داسې اووائی چه اې الله دې کس ته بخنه وکړې او په ده باندې رحم وکړې بعضې نورو خلقو ته روایت د کمی او زیاتی سره بیان کړې دې.

[٤٤٧٩](٢) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامٍ الْمَعْنَى، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَدَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيدِ وَالنِّعَالِ وَجَلَدَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَرْبَعِينَ، فَلَمَّا وَلِيَ عُمَرُ دَعَا النَّاسَ، فَقَالَ لَهُمْ: إِنَّ النَّاسَ قَدْ دَنَوْا مِنَ الرِّيفِ، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: مِنَ الْقُرَى وَالرِّيفِ فَمَا تَرَوْنَ فِي حَدِّ الْخَمْرِ؟ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ: نَرَى أَنْ تَجْعَلَهُ كَأَخَفِّ الْحُدُودِ فَجَلَدَ فِيهِ ثَمَانِينَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ جَلَدَ بِالْجَرِيدِ وَالنِّعَالِ أَرْبَعِينَ، وَرَوَاهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ضَرَبَ بِجَرِيدَتَيْنِ نَحْوَ الْأَرْبَعِينَ.

د انس بن مالک رضی الله عنه نه نقل شوي دي چه نبی علیه السلام په پیزارونو اودکجورو په لختوسره یوشرابي ته حد ورکړو او ابوبکرصدیق نه یوشرابي څلويښت کوړې وهلې وو ، بیاچه کله دعمرفاروق رضی الله عنه دخلافت دور راغې نوهغه صحابه کرام راوغوښتل خلق اباد وته رانزدې شول ، مسدد وئیلي دی چه دکې آبادئ ته خلقوته ئې اووئیل دشرابي دحدپه باره کښې ستاسوڅه خیال دې؟ عبدالرحمن بن عوف نه په جواب کښې اووئیل چه زمونږ رائې خوداده

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٩٩٩) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الحدود ٢ (٦٧٧٣)، صحيح مسلم/الحدود ٨ (١٧٠٦)، سنن الترمذي/الحدود ١٤ (١٤٤٣)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٦ (٢٥٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٥/٣، ١٨٠)، سنن الدارمي/الحدود ٩ (٢٣٥٧) (صحيح)

چه دټولونه کم سپک او وړوکي حد دي هغه دي ددې دپاره متعين شي چنانچه نبی ﷺ داتیاکوړو وهلو حکم وکړو، امام ابوداؤد فرمائی ابن عروبه دقتاده رضي الله عنه نه روايت کړي دي چه نبی ﷺ دکجورو په لختو او پیزارونوباندې څلويښت پيرې وهل کړي وو شعبه وئيلی دی چه دې به په دوه لرګوباندې څلويښت پيرې او وهلې شي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- جَلَدَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيدِ وَالنِّعَالِ وَجَلَدَ أَبُو بَكْرٍ رضى الله عنه أَرْبَعِينَ فَلَمَّا وَلِيَ عُمَرُ دَعَا النَّاسَ فَقَالَ لَهُمْ إِنَّ النَّاسَ قَدْ دَنَوْا مِنَ الرِّيفِ – وَقَالَ مُسَدَّدٌ مِنَ الْقُرَى وَالرِّيفِ – فَمَا تَرَوْنَ فِي حَدِّ الْخَمْرِ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ نَرَى أَنْ تَجْعَلَهُ كَأَخَفِّ الْحُدُودِ. فَجَلَدَ فِيهِ ثَمَانِينَ ﴾

## مضمون الحديث :

د انس رضي الله عنه روايت دي چه رسول الله ﷺ د شرب خمر په سزا کښې په جريد او نعال سره وهل اوکړل (په دې روايت کښې د هغې مقدار نه دې ذکر) او ابوبکرصديق رضي الله عنه څلويښت کوړې ورکړې او بيا چه کله عمر رضي الله عنه خليفه شو نو هغوی صحابه کرام رضي الله عنهم راجمع کړل او د هغوی مخکښې ئې دا خبره کيخوده چه اوس خلق باغونو او پټو ته نزدې شوې دی، مقصد دا دې چه اوس د ميوو او انګورو د کثرت د وجې نه شراب څکل ډير شوی دی، نو هغوی تپوس اوکړو چه اوس ستاسو رائې د حد خمر په باره کښې څه ده نو په دې باندې عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اوفرمائيل چه زمونږ رائې دا ده چه په حدود ثابته کښې چه کوم د ټولو نه خفيف حد دې هغه دې مقرر کړې شی، پس په دې باندې اتيا کوړې مقرر شوې. والحديث اخرجه مسلم بتمامه، واخرج البخاري المسند وفعل الصديق فقط واخرجه ابن ماجه المسند منه فقط قاله المنذري.

[٤٤٨٠]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ الدَّانَاجُ، حَدَّثَنِي حُضَيْنُ بْنُ الْمُنْذِرِ الرَّقَاشِيُّ هُوَ أَبُو سَاسَانَ، قَالَ: "شَهِدْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ وَأُتِيَ بِالْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ، فَشَهِدَ عَلَيْهِ حُمْرَانُ، وَرَجُلٌ آخَرُ، فَشَهِدَ أَحَدُهُمَا أَنَّهُ رَآهُ شَرِبَهَا يَعْنِي الْخَمْرَ وَشَهِدَ الْآخَرُ أَنَّهُ رَآهُ يَتَقَيَّأُ، فَقَالَ عُثْمَانُ: إِنَّهُ لَمْ يَتَقَيَّأْ حَتَّى شَرِبَهَا، فَقَالَ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَقِمْ عَلَيْهِ الْحَدَّ، فَقَالَ عَلِيٌّ لِلْحَسَنِ: أَقِمْ عَلَيْهِ الْحَدَّ، فَقَالَ الْحَسَنُ: وَلِّ حَارَّهَا مَنْ تَوَلَّى قَارَّهَا، فَقَالَ عَلِيٌّ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ: أَقِمْ عَلَيْهِ الْحَدَّ، قَالَ: فَأَخَذَ السَّوْطَ فَجَلَدَهُ وَعَلِيٌّ يَعُدُّ فَلَمَّا بَلَغَ أَرْبَعِينَ، قَالَ: حَسْبُكَ جَلَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعِينَ، أَحْسَبُهُ قَالَ: وَجَلَدَ أَبُو بَكْرٍ أَرْبَعِينَ، وَعُمَرُ ثَمَانِينَ، وَكُلٌّ سُنَّةٌ وَهَذَا أَحَبُّ إِلَيَّ".

دحصين بن منذر الرقاشي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه زه دعثمان بن عفان نه خواته موجود وم چه په دې وخت کښې وليد بن عقبه راوستل شو او په ده باندې عمران (څوک چه آزاد کړې شوې غلام وو) او يو بل حبشي ګواهي ورکړه نويوکس اووئيل مادې په داسې حال کښې ليدلې وو چه شراب ئې څکلی وو اوبل کس داسې ګواهی ورکړه چه ما وليد په داسې حال کښې وليدو چه دشرابو څکلو په وجه ئې قې کولو عثمان اوفرمائيل دشرابو ئې خود هله کړې دې کله چه ده شراب څکلی وو عثمان رضي الله عنه عليه ته په ده باندې دحدقائمولو

[1] ): صحيح مسلم/الحدود ٨ (١٧٠٧)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٦ (٢٥٧١)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٢، ١٠٠٨٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحدود ٤ (٦٧٧٣)، مسند احمد (١/٨٢، ١٤٠، ١٤٤)، سنن الدارمي/الحدود ٩ (٢٣٥٨) (صحيح)

حکم وکړو حسن به جواب ورکړو ځوک چه دخلافت مزي ځي نوهغه له بوج ورل هم پکاردي ددي مطلب داور چه عثمان رضي الله عنه دي پخپله حد ورکړي یا دي خپل کوم رشته دار ته حکم وکړي بیا علی رضي الله عنه عبدالله بن جعفر ته اوونیل ته ورباندي حد قائم کړه ، هغه دره راوغستله اوددې شرابي په وهلوبې شروع وکړه اوعلی نه به ورته بار بار وئیل کله چه څلویښتوته ورسي نوداکافي دي ځکه چه نبی علیه السلام به شرابیانو له څلویښت درې وهل ورکول او ابوبکر صدیق رضي الله عنه به هم څلویښت درې وهلواو عمرفاروق نه به ورباندې داتیادرو حد جاري کولو اوداټول سنت دي اوزه څلویښت درې وهل خوښوم.

﴿قال ابوداؤد رواه ابن ابی عروبة الخ ﴾ او بیا د هشام په روایت کښې د قتاده نه دا راغلی دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په باره کښې ﴿ انه جلد فی الخمر بالجرید والنعال ﴾ بغیر د ذکر د تعداد نه، مصنف رحمه الله فرمائی چه د ابن ابی عروبه په روایت کښې د دې تعداد ذکر دې یعنی اربعین، او د شعبه په روایت کښې د قتاده نه ﴿ ضَرَبَ بِجَرِیدَتَیْنِ نَحْوَ الأَرْبَعِینَ ﴾ دې، نو ګویا اوس درې قسمه روایتونه شو یو مطلق بغیر د ذکر د عدد نه او په یو کښې دی ﴿جَلَدَ بِالْجَرِیدِ أَرْبَعِینَ ﴾، او په دریم باب کښې دی ﴿ بِجَرِیدَتَیْنِ نَحْوَ اَرْبَعِینَ ﴾، په دې دریم روایت کښې به د ضرب تعداد اتیا کرته شی ځکه چه هر ضرب به متضمن وی دوه ضربونو لره د دوه ښاخونو د مجموعه کیدو د وجې نه، په دې حدیث کښې راغلل، ﴿ کاخف الحدود﴾ یعنی کوم حدود چه په قرآن کریم کښې منصوص دی او هغه درې دی یو حد السرقة قطع ید، او حد الزناء جلد مائة، او حد القذف ثمانون جلدة، دا حدیث په حد خمر کښې د احنافو او مالکیانو دلیل دې چه د هغوی په نزد حد قذف اتیا کوړې دی. حدیث ابی عروبة مرسل وحدیث شعبة اخرجه مسلم والترمذی واخرجه البخاری ولم یذکر اللفظ، قاله المنذری.

**قوله**: ﴿عن حصین بن المنذر ابوساسان قَالَ شَهِدْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ وَأُتِيَ بِالْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ فَشَهِدَ عَلَيْهِ حُمْرَانُ وَرَجُلٌ آخَرُ فَشَهِدَ أَحَدُهُمَا أَنَّهُ رَآهُ شَرِبَهَا – يَعْنِي الْخَمْرَ – وَشَهِدَ الآخَرُ أَنَّهُ رَآهُ يَتَقَيَّأُهَا فَقَالَ عُثْمَانُ إِنَّهُ لَمْ يَتَقَيَّأْهَا حَتَّى شَرِبَهَا ﴾

## مضمون الحدیث :

ابوساسان فرمائی چه زه د عثمان رضي الله عنه سره موجود اوم زما مخکښې هغوی ته ولید بن عقبة راوستلې شو چه په هغه باندې حمران د عثمان رضي الله عنه غلام او یو بل سړی ګواهی ورکړه، یو ګواهی ورکړه چه ما دې په شرابو ځکلو باندې لیدلې دې او بل اووې چه ما دې د شرابو په قئ کولو باندې لیدلې دې، عثمان رضي الله عنه اوفرمائیل چه د شرابو ځکلو نه بغیر خو د هغې قئ نه شی کولې، ګویا د دې شهادت ئې اعتبار اوفرمائیلو، بیا ئې علی رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه په هغه باندې حد جاري کړه، هغوی خپل ځوی حسن رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه ته په هغه باندې حد جاري کړه، هغوی په دې باندې ډیر کلک جواب ورکړو ﴿ وَلِّ حَارَّهَا مَنْ تَوَلَّى قَارَّهَا ﴾ [1]

[1] وفي هامش البذل مثل معروف وقد قال عمر رضي الله عنه لابي مسعود اذ ساله اما يبلغني انك تقضي ولست بامير فقال نعم ول حارها من تولي قارها، كذا في ازالة الخفا ١١٩/٢)

چه په ښه څيزونو باندې چه تاسو کوم انسان امير کړې وو په بدو څيزونو باندې هم هغه امير کړئ، په دې باندې علی رضی الله عنه عبدالله بن جعفر رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه ته حد قائم کړه، هغوی کوړه اوچته کړه او وهل ئې شروع کړل او علی رضی الله عنه شميرل کول، چه کله څلويښت پوره شوې نو علی رضی الله عنه هغه منع کړو او وې فرمائيل ﴿ حسبک ﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم څلويښت کوړې ورکړې دی او هم دغه شان ابوبکر رضی الله عنه هم او عمر رضی الله عنه اتيا کوړې ورکړې دی، او دواړه مشروع دی زما په نزد دا زيات خوښ عمل دې يعنی څلويښت، او په صحيح مسلم کښې هم دغه شان دی يعنی اربعين.

## جمع بين الروايات المختلفة:

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دې روايت نه معلوميږی خو هم دا چه سيدنا علی رضی الله عنه وليد بن عقبة رضی الله عنه ته څلويښت کوړې ورکړې او په صحيح بخاری کښې دی د عبيدالله بن عدی بن الخيار په روايت کښې چه علی رضی الله عنه هغه ته اتيا کوړې ورکړې حال دا چه قصه يوه ده. قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه د علی رضی الله عنه مشهور مذهب په شرب خمر کښې د اتيا کوړو دې. لهذا جمع بين الروايتين دې هم دغه شان اوکړې شی کوم چه په يو روايت کښې راځی. ﴿ انه جلده بسوط له راسان فضربه براسيه اربعين ﴾ يعنی په يو روايت کښې راځی چه هغوی کومه کوړه استعمال کړې وه او څلويښت ئې لګولې وې د هغې دوه سرونه وو، لهذا په يو ځل کښې دوه کوړې اولګيدې پس مجموعه اتيا شوه او په دې صورت کښې به ﴿ وهذا احب الی ﴾ نه اشاره د عمر رضی الله عنه فعل ته يعنی د ثمانين طرف ته وی.

دا وليد بن عقبة د چا چه دا قصه ده د عثمان رضی الله عنه اخيافی رور وو، دفتح مکه په ورځ ئې اسلام قبول کړې وو، د عثمان رضی الله عنه سره لوئې شو، تردې چه هغوی د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د معزول کولو نه پس هغه د کوفې والی مقرر کړو، وقصة صلاته بالناس اربعا وهو سكران مشهورة، وقصة عزله بعد ان ثبت عليه شرب الخمر ايضا مخرجة فی الصحيحين، وعزله عثمان بعد جلده عن الكوفة، ولما قتل عثمان اعتزل الوليد الفتنة فلم يشهد مع علی ولا مع غيره، ولكنه كان يحرض معاوية علی قتال علی بكتبه وبشعره (بذل) د دې حديث نه معلوميږی چه د شرابو نه قئ کول د حد د ثبوت دپاره کافی کيږی لکه چه د امام مالک رحمه الله مذهب دې، امام نووی رحمه الله فرمائی چه زمونږ مذهب دا دې چه صرف په دې باندې به حد نه شی جاری کولې ځکه چه په دې کښې مختلف احوال دی مثلا دا چه کيدې شی هغه په بې خبرئ کښې څکلی وی، شراب ئې نه وی ګڼړلې او څکلې وی، يا پرې چا په زور څکلی وی وغير ذلک من الاعذار المسقطة للحد، او وراندې هغوی فرمائی چه د امام مالک رحمه الله دليل دلته قوی دې ﴿لان الصحابة اتفقوا علی جلد الوليد بن عقبة المذكور فی الحديث ﴾ او زمونږ اصحاب د دې دا جواب ورکوی چه غالبا سيدنا عثمان رضی الله عنه ته د وليد دشرب علم وو ﴿ فقضی بعلمه وهذا تاويل ضعيف ﴾ اهـ (بذل) په حاشيه د بذل کښې ليکلی دی چه په دې کښې چه کوم مذهب د شوافعو دې هم هغه د احنافو دې کما فی الهداية.

[٤٤٨١]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنِ الدَّانَاجِ، عَنْ حُضَيْنِ بْنِ الْمُنْذِرِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "جَلَدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمْرِ وَأَبُو بَكْرٍ أَرْبَعِينَ وَكَمَّلَهَا عُمَرُ ثَمَانِينَ، وَكُلٌّ سُنَّةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ الْأَصْمَعِيُّ: وَلِّ حَارَّهَا مَنْ تَوَلَّى قَارَّهَا وَلِّ شَدِيدَهَا مَنْ تَوَلَّى هَيِّنَهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا كَانَ سَيِّدَ قَوْمِهِ حُضَيْنُ بْنُ الْمُنْذِرِ أَبُو سَاسَانَ.

دعلی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام دشرابو په حد کښې مجرم ته درې ورکړې وې او ابوبکر څلویښت درې ورکړې وې او عمر رضی الله عنه به پوره اتیا درې ورکولې اودا ټول سنت دي امام ابوداؤد فرمائی اصمعي وئیلی دی د «من تولی قارها وَلِّ شدیدها من تولی هینها» مطلب دادې چه چا دخلافت سهولیات حاصل کړې وی نوده لره دمشکلاتو برداشت کولوته پریږدئ.

**قوله:** ﴿عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه قَالَ جَلَدَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْخَمْرِ وَأَبُو بَكْرٍ أَرْبَعِينَ وَكَمَّلَهَا عُمَرُ ثَمَانِينَ وَكُلٌّ سُنَّةٌ﴾ د دې حديث مضمون مخکښې تیر شو.

## بَاب إِذَا تَتَابَعَ فِي شُرْبِ الْخَمْرِ

### باب: باربار د شرابو څکلو د سزا بیان

[٤٤٨٢]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ ذَكْوَانَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا شَرِبُوا الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاقْتُلُوهُمْ".

دمعاویه بن ابی سفیان رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی کله چه خلق شراب اوڅي نو په درو ئې ووهئ چه کله ئې دوباره بل وخت بیا اوڅکي نوبیا ئې په درو ووهئ او چه بل وخت ئې بیا اوڅي نو بیا سې په درو ووهئ خوکه څرې ددې نه پس ئې بیا اوڅکل نوقتل ئې کړئ.

**قوله:** ﴿عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ رضی الله عنهما قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِذَا شَرِبُوا الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاجْلِدُوهُمْ ثُمَّ إِنْ شَرِبُوا فَاقْتُلُوهُمْ »﴾

یعنی درې کرته دې په شرب خمر کښې کوړې ورکړې شی بیا که په څلور ځل اوڅکي نو قتل دې کړې شي د دې نه پس د ابن عمر رضی الله عنهما روایت دې چه په هغې کښې دی ﴿ وَأَحْسِبُهُ قَالَ فِي الْخَامِسَةِ « إِنْ شَرِبَهَا فَاقْتُلُوهُ »﴾

[٤٤٨٣]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بِهَذَا الْمَعْنَى، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ قَالَ فِي الْخَامِسَةِ: إِنْ شَرِبَهَا فَاقْتُلُوهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا فِي حَدِيثِ أَبِي غُطَيْفٍ فِي الْخَامِسَةِ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه رسول الله فرمائیلی دی دحدیث متن د تیر

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٠) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الحدود ١٥ (١٤٤٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٧ (٢٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ١١٤١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٥/٤، ٩٦، ١٠٠) (حسن صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٦٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٦/٢) (ضعيف الإسناد)

شوي روايت په شان دي مګر په دې کښې دا اضافه ده زما ګمان دې چه داسې ئې اوئيل که چرې په پنځلم ځل باندې ئې بيا وڅکل نوقتل ئې کړئ ، امام ابوداؤد فرمائی اوهمدارنګې په حديث د ابوعطيف کښې دی چه دې په پنځم ځل باندې قتل کړئ.

[٤٤٨٤](١)حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا سَكِرَ فَاجْلِدُوهُ ثُمَّ إِنْ سَكِرَ فَاجْلِدُوهُ ثُمَّ إِنْ سَكِرَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ الرَّابِعَةَ فَاقْتُلُوهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا حَدِيثُ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ الرَّابِعَةَ فَاقْتُلُوهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا حَدِيثُ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنْ شَرِبُوا الرَّابِعَةَ فَاقْتُلُوهُمْ، وَكَذَا حَدِيثُ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَا حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالشَّرِيدِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَفِي حَدِيثِ الْجَدَلِيِّ: عَنْ مُعَاوِيَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَإِنْ عَادَ فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ.

د ابوهريره ﷺ نه روايت دې فرمائی چه رسول الله فرمائيلی دی کله چه څوک شراب وڅکي نوپه دروئې ووه ، بياکه چرې بل ځل بيا وڅکي نو په دروئې ووهئ، بياکه چرې بل ځل بيا وڅي نوپه دروبې ووهې، بياکه چرې په څلورم ځل ئې بيا وڅکي نوقتل ئې کړئ امام ابوداؤد فرمائی اوهمدارنګې حديث دعمر بن ابی سلمه دې دخپل پلار نه اودابوهريره رضي الله عنه نه چه هغه دنبی عليه السلام نه نقل کړې دې که چرې څوک شراب اوڅکې نوپه دروئې ووهئ خو که په څلورم ځل ئې بيا اوڅکل نه قتل ئې کړئ، امام ابوداؤد فرمائی همدا رنګې حديث سهل دې دابوصالح نه اوهغه دابوهريره رضي الله عنه نه اوهغه دنبی عليه السلام نه که چرې په څلورم ځل ئې شراب اوڅکل نوقتل ئې کړئ ، اوهمدارنګې حديث دابونعيم دې دابوعمر نه اوهغه دنبی عليه السلام نه اوهمدا رنګې حديث دعبدالله بن عمرو دې دنبی عليه السلام نه اوهمدارنګې روايت د شريد دې دنبی عليه السلام نه او په حديث دجدلي کښې دی دمعاويه نه چه نبی عليه السلام اوفرمائيل که چرې په دريم يا څلورم ځل ئې بيا اوڅکل نو قتل ئې کړئ.

وړاندې هم مصنف رحمه الله د طرق اختلاف په خامسه او رابعه کښې بيانوی، وړاندې د قبيصه بن ذويب په روايت کښې راځی، ﴿ فَأُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ وَرَفَعَ الْقَتْلَ فَكَانَتْ رُخْصَةً ﴾ يعنی په څلورم ځل رسول الله ﷺ شارب خمر ته کوړې ورکړې، لهذا د قتل حکم کوم چه د رسول الله ﷺ د طرف نه قولا وو هغه د رسول الله ﷺ په عمل سره منسوخ شو.

## د قتل شارب فی الرابعة د نسخ بحث :

منذری د امام شافعی نه نقل کوی : والقتل منسوخ بهذا الحديث وغيره، او امام خطابی رحمه الله فرمائی کيدې شی چه د حديث الامر بالقتل نه مقصود زجر و تهديد وی لکه چه په دې حديث کښې دی ﴿ مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ ﴾ هغوی فرمائی او دا هم احتمال

(١): سنن النسائي/الأشربة ٤٣ (٥٧٦٥)، سنن ابن ماجه/الحدود ١٧ (٢٥٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٨٠، ٢٩١، ٥٠٤، ٥١٩) (حسن صحيح)

دي چه قتل فی الخامسة واجب وی او بیا په اجماع د امت سره منسوخ شوې وی، خو یو طائفة شاذه د قتل قائل دی د څلورو کرتو نه پس په پنځم ځل کښې (بذل عن المنذری) [1]
امام ترمذی رحمه الله هم د نسخ قول اختیار کړې دې هم د دې قبیصه بن ذویب د حدیث د وجې نه، او هم د دې مضمون بل حدیث چه د هغې راوی جابر بن عبد الله رضی الله عنهما دې د هغې نه روستو امام ترمذی فرمائی : ومما یقوی هذا ما روی عن النبی صلی الله علیه وسلم من اوجه کثیرة انه قال لا یحل دم امرئ مسلم یشهد أن لا إله إلا اله وأني رسول الله إلا بإحدى ثلاث الثیب الزاني والنفس بالنفس والتارك لدینه اه او په حاشیه د بذل کښې دی : وانکر الدمنتی علی الترمذی ۲٦٧/١ نسخ القتل وبسط الکلام ورجح القتل اهـ... دا دمنتی یعنی علی بن سلیمان الدمنتی المالکی دی هغوی کوم چه د علامه سیوطی رحمه الله حواشی دی په کتب ستة باندې د هر یو بیل بیل تخلیص کړې دې، د سیوطی حاشیه کومه چه په ترمذی باندې ده د هغې نوم قوت المغتذی دې او دمنتی د تخلیص نوم نفع قوت المغتذی دې، هم دغه شان په ابوداؤد باندې چه کومه حاشیه ده د سیوطی، "مرقاة الصعود" د هغې کوم تخلیص چه دمنتی اوکړو د هغې نوم ئې کیخودلو، "ادرجات مرقاة الصعود" دې علامه دمنتی په دې خپله حاشیه کښې ډیر روایات د قتل شارب بعد الرابعة په ثبوت کښې ذکر کړی دی او بیا په آخر کښې لیکی : ﴿ فهذه بضعة عشر حدیثا کلها صحیحة صریحة فی قتله بالرابعة ولیس لها معارض صریح وقول من قال بالنسخ لا یعضده دلیل، وقولهم انه صلی الله علیه وسلم اتی برجل قد شرب بالرابعة فضربه ولم یقتله، لا یصلح لرد هذه الاحادیث لوجوه، الاول انه مرسل، الی اخر ما بسط فی ذلک ﴾ حافظ په فتح الباری کښې د منکرین نسخ د اشکالاتو جوابات کښې ورکړی دی په بذل کښې د خطابی نه نقل کړې ؤو، ﴿واجمعوا علی انه لا یقتل اذا تکرر منه ﴾ په دې باندې په حاشیه د بذل کښې دی فقد ذکر الحافظ ۵۱/۱۲ ان النعیمان جلد فی الخمر اکثر من خمسین مرة ﴾ او په حاشیه کښې دا هم دی : ﴿ وبدلالة الاجماع استدل فی تدریب الراوی ۱۹٦ علی النسخ وبسط له قرائن ﴾ د دې نعیمان بعض واقعات په فتح الباری کښې ذکر دی د دې باب د لاندې باب ما یکره من لعن شارب الخمر.... چه په هغې کښې امام بخاری رحمه الله دا حدیث راوړې دې : ﴿ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ رَجُلاً عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم كَانَ اسْمُهُ عَبْدَ اللهِ ، وَكَانَ يُلَقَّبُ حِمَارًا ، وَكَانَ يُضْحِكُ رَسُولَ اللهِ : وَكَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم قَدْ جَلَدَهُ فِي الشَّرَابِ فَأُتِيَ بِهِ يَوْمًا فَأَمَرَ بِهِ فَجُلِدَ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ اللَّهُمَّ الْعَنْهُ مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَى بِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم : لاَ تَلْعَنُوهُ فَوَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ أَنَّهُ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَه ﴾ دا عبد الله د چا لقب چه حمار دې دا او نعیمان دواړه یو دی او که بیل بیل په دې باندې کلام دې په فتح الباری کښې اوکتلې شی ﴿ وکان یضحک رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ چه دوی به رسول الله صلی الله علیه وسلم خندولو په خپلو عجیبه او نااشنا خبرو سره، د هغه بعض ښکلې واقعات په فتح الباری کښې ذکر دی.

[1] قال الحافظ وکان اشار الي بعض اهل الظاهر فقد نقل عن بعضهم واستمر علیه ابن حزم منهم واحتج له وادعي ان الاجماع الخ)

[٤٤٨٥](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: الزُّهْرِيُّ أَخْبَرَنَا، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ، فَأُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ فَجَلَدَهُ وَرَفَعَ الْقَتْلَ، وَكَانَتْ رُخْصَةً"، قَالَ سُفْيَانُ: حَدَّثَ الزُّهْرِيُّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَعِنْدَهُ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، وَمُخَوَّلُ بْنُ رَاشِدٍ، فَقَالَ لَهُمَا: كُونَا وَافِدَيْ أَهْلِ الْعِرَاقِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الشَّرِيدُ بْنُ سُوَيْدٍ، وَشُرَحْبِيلُ بْنُ أَوْسٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو غُطَيْفٍ الْكِنْدِيُّ، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

دقبيصة بن ذويب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی څوک چه شراب اوڅښي نوپه درو ئې ووهئ که چرې بيا ئې اوڅکي نوبيا ئې په درو اووهئ اوکه چرې په دې باندې هم منع نه شو او په دريم څلورم ځل ئې بيا وڅکل نوقتل ئې کړئ، يوځل صحابه کرامو يوکس راوستو چه شراب ئې څکلي وو نونبی علیه السلام په درو اووهلو بل ځل بيا دغه کس راوستلي شو نوبيا ئې په درو اووهلو چه په دريم ځل بيا راوستلی شو نوبيا ئې په درو اوهلو چه په څلورم ځل بيا راوستلی شو نو په درو ئې ووهلو اودده دقتل کولو حکم ئې پورته کړو کوم چه درخصت متعلق وو. سفيان وئيلی دی چه دا حديث زهري په هغه وخت کښې بيان کړې دې کله چه دهغه سره منصور او مخول ناست وو دوی ته زهری بيان کړو چه تاسو ددې ځائې نه عراقيانوته دا حديث په تحفه کښې يوسئ.

﴿ قَالَ سُفْيَانُ حَدَّثَ الزُّهْرِيُّ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَعِنْدَهُ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ وَمُخَوَّلُ بْنُ رَاشِدٍ فَقَالَ لَهُمَا كُونَا وَافِدَيْ أَهْلِ الْعِرَاقِ بِهَذَا الْحَدِيثِ ﴾

يعنی امام زهری رحمه الله چه کله دا پورتني حديث بيان کړو نو هغوی سره دغه وخت کښې منصور او مخول ناست وو نو امام زهری هغوی ته اوفرمائيل چه زما د طرف نه دا حديث اهل عراق ته واوروئ، او وفد جوړيدو سره هغوی ته لاړ شئ، د هغې وجه په بذل کښې دا ليکلی ده چه په عراق کښې څه خوارج وو چه د هغوی عقيده وه چه د کبيره مرتکب کافر دې اوس ښکاره ده چه د دې تقاضه دا ده چه شارب خمر دې په اول ځل کښې قتل کړې شی حال دا چه رسول الله ﷺ په پنځم ځل څکلو باندې هم قتل نه کړو

[٤٤٨٦](٢)حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ عُمَيْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "لَا أَدِي أَوْ مَا كُنْتُ لِأَدِيَ مَنْ أَقَمْتُ عَلَيْهِ حَدًّا إِلَّا شَارِبَ الْخَمْرِ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسُنَّ فِيهِ شَيْئًا إِنَّمَا هُوَ شَيْءٌ قُلْنَاهُ نَحْنُ".

دعلی رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه په چاباندې چه زه حد قائم کړم اوهغه (د حد قائمولو په وجه) مړ شي نوزه دهغه ديت نه ورکوم مګر دشرابو څکونکي ځکه چه رسول الله دشرابو څکلو دسزا دپاره څه حد نه دې مقرر کړې او څه چه مقرر شوي دي هغه مونږ مقرر کړي دي.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه قَالَ لاَ أَدِي أَوْ مَا كُنْتُ الأَدِيَ مَنْ أَقَمْتُ عَلَيْهِ حَدًّا إِلاَّ شَارِبَ الْخَمْرِ الخ ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١١) (ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/ الحدود ٥ (٦٧٧٨)، صحيح مسلم/ الحدود ٨ (١٧٠٧)، سنن ابن ماجه/ الحدود ١٦ (٢٥٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٢٥، ١٣٠) (صحيح)

سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه زه په یو سړی باندې حد جاري کړم (یعنی حد الجلد چه په هغې کښې اهلاک مقصود نه وی) او بیا د حد د جاري کیدو د وجې نه هغه مړ شی نو زه به د هغې دیت نه ادا کوم، سوا د شرب خمر نه چه که هغه د شرب خمر د وجې نه مړ شی نو زه به د هغه دیت ورکوم ځکه چه د شرب خمر حد د رسول الله ﷺ د طرف نه متعین نه وو، هغه مونږ خلقو خپل مینځ کښې په مشوره باندې مقرر کړې وو، او هغه چه په دې سلسله کښې د عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه ذکر راغلې وو چه هغوی په دې باره کښې د اخف الحدود مشوره ورکړې وه په بعض روایاتو کښې په ځائې د عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د علی رضی الله عنه نوم ذکر دې لکه چه د موطاء په روایت کښې دی، امام نووی رحمه الله فرمائی: وكلاهما صحيح واشار جميعا، چه د دواړو ذکر دلته صحیح دې چه دې دواړو حضراتو دا مشوره ورکړې وه.

[٤٤٨٧](١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ الْمِصْرِيُّ ابْنُ أَخِي رِشْدِينَ بْنِ سَعْدٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ حَدَّثَهُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ، قَالَ: "كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْآنَ وَهُوَ فِي الرِّحَالِ يَلْتَمِسُ رَحْلَ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ، فَقَالَ لِلنَّاسِ: اضْرِبُوهُ، فَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالنِّعَالِ وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْعَصَا وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْمِيتَخَةِ، قَالَ ابْنُ وَهْبٍ: الْجَرِيدَةُ الرَّطْبَةُ، ثُمَّ أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرَابًا مِنَ الْأَرْضِ فَرَمَى بِهِ فِي وَجْهِهِ".

دعبدالرحمن بن ازهر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ماته داسې ښکاري لکه چه زه اوس هم نبی علیه السلام وینم ، هغه داوښانو په قطار کښې ولاړ وو اودخالد بن ولید ، داوښې کجاوه ئې لټوله نو په دې وخت کښې نبی علیه السلام ته یوکس راوستلی شو چاچه شراب څکلی وو، نبی کریم % خلقوته حکم وکړو که دا کس په څه څیز باندې اووهئ نوچاپه پیزارونو او چاپه لوړو اووهلو اوچا دکجورو په الختوباندې، ابن وهب وئیلی دی یعنی دکجورو دونو په هغه لختو چه کچه اوتازه وي اودپاڼړونه بغیر وي په دې ئې شرابي او وهلو، بیانبی علیه السلام دزمکې نه لړه خاوره راواخسته اودغه کس په مخ ئې وروشیندله.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ قَالَ كاني انظرُ الى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الان وهو فى الرحال يلتمس رحل خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ ﴾ او په یو بل روایت کښې کوم چه د ابوداؤد په بعض نسخو کښې دې، د بذل په حاشیه باندې هم شته په هغې کښې دا زیادت دې، ﴿ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- غَدَاةَ الْفَتْحِ وَأَنَا غُلَامٌ شَابٌّ يَتَخَلَّلُ النَّاسَ يَسْأَلُ عَنْ مَنْزِلِ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ﴾

[٤٤٨٩](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةَ الْفَتْحِ وَأَنَا غُلَامٌ شَابٌّ يَتَخَلَّلُ النَّاسَ يَسْأَلُ عَنْ مَنْزِلِ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، فَأُتِيَ بِشَارِبٍ فَأَمَرَهُمْ فَضَرَبُوهُ بِمَا فِي أَيْدِيهِمْ فَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالسَّوْطِ وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِعَصًا وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِنَعْلِهِ، وَحَثَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ، فَلَمَّا كَانَ أَبُو بَكْرٍ أُتِيَ بِشَارِبٍ فَسَأَلَهُمْ عَنْ ضَرْبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي ضَرَبَهُ فَحَزَرُوهُ أَرْبَعِينَ، فَضَرَبَ أَبُو بَكْرٍ أَرْبَعِينَ، فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ كَتَبَ إِلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ: إِنَّ النَّاسَ قَدِ انْهَمَكُوا فِي الشُّرْبِ وَتَحَاقَرُوا الْحَدَّ وَالْعُقُوبَةَ، قَالَ: هُمْ عِنْدَكَ فَسَلْهُمْ وَعِنْدَهُ الْمُهَاجِرُونَ

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٦٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٨٧، ٨٨، ٣٥٠، ٣٥١) (حسن صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: (٤٤٨٧)، (تحفة الأشراف: ٩٦٨٥) (حسن)

الْأَوَّلُونَ، فَسَأَلَهُمْ فَأَجْمَعُوا عَلَى أَنْ يَضْرِبَ ثَمَانِينَ، قَالَ: وَقَالَ عَلِيٌّ: إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا شَرِبَ افْتَرَى فَأَرَى أَنْ يَجْعَلَهُ كَحَدِّ الْفِرْيَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَدْخَلَ عُقَيْلُ بْنُ خَالِدٍ بَيْنَ الزُّهْرِيِّ، وَبَيْنَ ابْنِ الْأَزْهَرِ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ: عَبْدَ اللهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَزْهَرِ، عَنْ أَبِيهِ.

عبدالرحمن بن ازهر وائی چه ما د فتح مکې په دویمه ورځ د سحر رسول الله ﷺ اولیدلو، زه ماشوم ووم، په خلقو کښې به پټ پټ تلم راتلم، نبی کریم ﷺ د خالد بن ولید رضی الله عنه خیمه لټوله، چه په دې کښې یو شرابی راوستلې شو، نبی کریم ﷺ دهغه د وهلو حکم ورکړو، نو دخلقو په لاسونو کښې چه څه څیز هم وو، هم په هغې ئې هغه وهلو، چا هغه په درې سره، چا په چوکه سره، چا په څپلئ سره، او نبی کریم ﷺ دهغه په مخ خاورې واچولې، بیا کله چه د ابوبکر رضی الله عنه زمانه راغله، نو هغوی ته یو شرابی راوستلې شو نو هغوی دخلقو نه د نبی کریم ﷺ دهغې وهلو متعلق تپوس اوکړو کوم چه نبی کریم ﷺ وهلې وو، نوخلقو دهغې اندازه اولګوله چه هغه به څلویښت کوړې وهلې شوې وی، نو ابوبکر رضی الله عنه دهغه حد څلویښت کوړې مقرر کړې، بیا کله چه د حضرت عمر رضی الله عنه زمانه راغله نو خالد بن ولید هغه ته اولیکل چه خلقو په کثرت سره شراب څکل شروع کړی دی او ددې حد او سزا ته هیڅ اهمیت نه ورکوی، او وئې لیکل چه خلق تاسو سره دی دهغوی نه تپوس اوکړئ، دغه وخت دهغوی سره مهاجرین اولین موجود وو، عمر رضی الله عنه دهغوی نه تپوس اوکړو نو دټولو په دې خبره باندې اتفاق اوشو چه اتیا دُرې به وهلې شی، علی رضی الله عنه اووئیل: سړې چه کله شراب څکی نو بهتان لګوی په دې وجه زما رائې داده چه دهغه حد د بهتان حد (برابر) کړې شی.

د دې نه معلومه شوه چه دا د سفر واقعه ده د فتح مکه د ورځې.

عبدالرحمن بن ازهر فرمائی چه د فتح مکه د ورځې خبره ده چه رسول الله ﷺ په خیمو کښې د خالد بن الولید رضی الله عنه خیمه لټوله او دا منظر ګویا زما د سترګو دوړاندې دې، په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ ته یو سړې راوستلې شو چه شراب ئې څکلی وو نو رسول الله ﷺ خلقو ته اوفرمائیل چه دې اوهئ، پس خلقو د هغه وهل شروع کړل، بعضو هغه په پیزار سره وهلو او بعضو په ډنډو سره او بعضو د کهجورې په شنو ښاخونو باندې او بیا رسول الله ﷺ په اخر کښې د زمکې نه خاورې اوچته کړه او د هغه په مخ ئې ویشتله.

د دې حدیث د شروع ټکړه ضمنا او استطرادا راوی ذکر کړې ده د خپل حفظ د پوخ والی د بیانولو دپاره پس په بذل کښې دی والمقصود بهذا الکلام بیان شدة حفظه اهـ.

او د دې نه پس چه کوم روایت راروان دې په هغې کښې د حنیین ذکر دې چه رسول الله ﷺ ته یو شارب خمر راوستلې شو چه کله هغوی په حنیین کښې وو او په هغې کښې دا زیادت دې ﴿ فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ –صلى الله عليه وسلم– ثُمَّ جَلَدَ أَبُو بَكْرٍ فِي الْخَمْرِ أَرْبَعِينَ ثُمَّ جَلَدَ عُمَرُ أَرْبَعِينَ صَدْرًا مِنْ إِمَارَتِهِ ثُمَّ جَلَدَ ثَمَانِينَ فِي آخِرِ خِلَافَتِهِ ثُمَّ جَلَدَ عُثْمَانُ الْحَدَّيْنِ كِلَيْهِمَا ثَمَانِينَ وَأَرْبَعِينَ ثُمَّ أَثْبَتَ مُعَاوِيَةُ الْحَدَّ ثَمَانِينَ ﴾

[۴۴۸۸]()حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، قَالَ: وَجَدْتُ فِي كِتَابِ خَالِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَزْهَرِ أَخْبَرَهُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَارِبٍ وَهُوَ بِحُنَيْنٍ، فَحَثَى فِي وَجْهِهِ التُّرَابَ ثُمَّ أَمَرَ أَصْحَابَهُ فَضَرَبُوهُ بِنِعَالِهِمْ وَمَا كَانَ فِي أَيْدِيهِمْ، حَتَّى قَالَ لَهُمْ: ارْفَعُوا فَرَفَعُوا، فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ جَلَدَ أَبُو بَكْرٍ فِي الْخَمْرِ أَرْبَعِينَ، ثُمَّ جَلَدَ عُمَرُ أَرْبَعِينَ صَدْرًا مِنْ إِمَارَتِهِ، ثُمَّ جَلَدَ ثَمَانِينَ فِي آخِرِ خِلَافَتِهِ، ثُمَّ جَلَدَ عُثْمَانُ الْحَدَّيْنِ كِلَيْهِمَا ثَمَانِينَ وَأَرْبَعِينَ، ثُمَّ أَثْبَتَ مُعَاوِيَةُ الْحَدَّ ثَمَانِينَ".

عبدالرحمن بن ازهر دخپل پلارنه روایت کوی فرمائی چه دنبی علیه السلام په خدمت کښې یو شرابي حاضر شو اونبی علیه السلام په عزوه حنین کښې مصروف وو، نبی علیه السلام ددغه کس په خوله باندې اوبه واړولې اوصحابه کراموته ئې دده دوهلو حکم وکړو نوهغوی په خپلو پیزارونو باندې دا شرابي أووهلو اودپیزارونونه علاوه څه چه ددوی په لاسونوکښې وو یا ورته نزدې وو په هغې ئې هم ووهلو تردې چه نبی علیه السلام اوفرمائیل بس کړئ نو په دې خبره باندې خلقو دې پریخودو بیاچه کله نبی علیه السلام وفات شو نودهغه نه پس ابوبکر صدیق نه به دشرابو په حد کښې مجرم څلویښت درې وهلو اور عمر فاروق به هم په ابتداء د دور خلافت کښې څلویښت کوړې ورکولې اوبیا ئې دخپل خلافت په اخرکښې اتیاکوړې سزا مقرر کړه اوعثمان رضی الله عنه به هم اتیاکوړې ورکولې اوکله کله به ئې څلویښت ورکولې او معاویه به هم اتیا درې مقرر کړې وې.

یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند کښې خو هم داسې کیدل چه باقاعده به په شرب خمر باندې کوړې نه شوې ورکولې په متعین طریقې سره بلکه په مختلفو څیزونو سره به هغه وهلې شو د چا په لاس کښې چه به څه وو مثلا څپلۍ، ډنډا، د کهجورې څانګه، خو د هغوی د وفات نه روستو د خلفاء راشدینو په زمانه کښې په دې کښې کوړې أستعمال کړې شوې اګر چه په تعداد کښې اختلاف وو، صدیق اکبر رضی الله عنه اربعین اختیار کړو او عمرفارق رضی الله عنه په شروع کښې اربعین او په آخیر کښې ثمانین او عثمان غنی رضی الله عنه دواړه، خو بیا په آخر کښې د دې استقرار د معاویه رضی الله عنه په زمانه کښې په ثمانین باندې اوشو.

## بَابٌ فِي إِقَامَةِ الْحَدِّ فِي الْمَسْجِدِ

### بابه په جومات کښې د حد قائمولو بیان

[۴۴۹۰]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ يَعْنِي ابْنَ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الشُّعَيْثِيُّ، عَنْ زُفَرَ بْنِ وَثِيمَةَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، أَنَّهُ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُسْتَقَادَ فِي الْمَسْجِدِ، وَأَنْ تُنْشَدَ فِيهِ الْأَشْعَارُ، وَأَنْ تُقَامَ فِيهِ الْحُدُودُ".

دحکیم بن حزام رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام منع فرمائیلې ده ددې خبرې نه چه په جومات کښې قصاص واغستلی شي یا په کښې شعرونه اووئیلې شي او یاپه کښې حد قائم کړې شي (ددې دپاره چه په مسجد کښې شور او غوغا اوغوبل جوړ نشي).

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۶۸۵) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۴۴۸۷)، (تحفة الأشراف: ۳۴۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۴/۳) (حسن)

﴿ عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ أَنَّهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يُسْتَقَادَ فِي الْمَسْجِدِ وَأَنْ تُنْشَدَ فِيهِ الأَشْعَارُ وَأَنْ تُقَامَ فِيهِ الْحُدُودُ ﴾

يعنى رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله په مسجد كښې د قصاص اخستلو (او نامناسب) اشعار وئيلو نه او د دې نه چه په دې كښې حدود قائم كړې شى، ځكه چه په دې كښې د تلويث مسجد قوى احتمال دې تلويث بالدم وغيره (بذل) مونږ سره په كتاب كښې په كتاب الايمان والنذور كښې په باب ما جاء فى تعظيم اليمين عند منبر النبى ﷺ كښې تير شوې دى چه د رسول الله ﷺ فيصلې به عموما د مسجد شريف د منبر په خوا كښې كيدلې اګر چه هغه فيصلې د حدود او قصاص سره متعلق ولې نه وى، خو د دې حدود او قصاص اجراء او استيفاء دا د مسجد نه بهر كيدل پكار دى كوم چه مصنف رحمه الله په دې باب كښې بيان كړى دى.

## باب فِي ضَرْبِ الْوَجْهِ فِي الْحَدِّ[1]

### باب په حد كښې د مخ د وهلو د مما نعت بيان

په دې باب كښې مصنف رحمه الله د ابوهريره رضي الله عنه دا حديث مرفوع ذكر كړې دې. ﴿ إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَّقِ الْوَجْهَ ﴾

[۴۴۹۳] ([2])حَدَّثَنَا أَبُوكَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُوعَوَانَةَ، عَنْ عُمَرَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَّقِ الْوَجْهَ".

ابوهريره رضي الله عنه دنبى كريم ﷺ نه روايت كوى چه فرمائيل ئې كله چه څوک چالره وهي نو په مخ باندې دې دوهلونه ځان اوساتي.

يعنى د وهلو په وخت دې مخ بچ كوى په هغې دې وهل نه كوى، دا حكم عام دې حد ته هم شامل دې لكه چه د مصنف رحمه الله د ترجمې نه ثابتيږى.

والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذرى.

---

[1] ) تر دې ځاني پورې د حدود بيان وو اوس مصنف رحمه الله تعزير شروع كوى مصنف رحمه الله په كتاب الحدود كښې ټول شپږ قسمه حدود بيان كړل د ټولو نه اول ردة، د هغې نه پس حرابة، د هغې نه پس حد سرقة، بيا حد زنا بيا حد قذف او حد خمر، او قصاص لره وراندې مصنف رحمه الله د كتاب الديات د لاندې بيان كړې دې. په كومو كومو څيزونو كښې په شريعت كښې حد ثابت دې د دې په باره كښې په اوجز كښې د حافظ نه نقل كړې دې چه بعض علماء كرامو دا په اولس څيزونو كښې منحصر كړې دې چه په هغې كښې بعض متفق عليه دى او بعض مختلف فيه، فمن المتفق عليه الردة والحرابة ما لم يتب قبل القدرة والزنا والقذف بالزنا وشرب الخمر سواء أسكر اولم يسكر والسرقة، د دې شپږو بيان په كتاب كښې تيرشو. ومن المختلف فيه جحد العارية وشرب ما يسكر كثيره من غير الخمر والقذف بغير الزنا والتعريض بالقذف واللواط ولو بمن يحل له نكاحها وإتيان البهيمة والسحاق وتمكين المرأة القرد وغيره من الدواب من وطئها والسحر وترك الصلاة تكاسلا والفطر في رمضان وهذا كله خارج عما تشرع فيه المقاتلة كما لو ترك قوم الزكاة ونصبوا لذلك الحرب اهـ په دې مختلف فيه حدود كښې مصنف رحمه الله جحد العارية هم ذكر كړې ده او هم دغه شان لواطت او اتيان البهيمة هم)

[2] ): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۴۹۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۴۴، ۲۵۱، ۴۳۴) (صحيح)

# بَابٌ فِي التَّعْزِيرِ

## باب د تعذیر بیان

**د تعزیر تعریف او د هغې ثبوت او مشروعیت :**

فقهاء کرام هم د کتاب الحدود نه د بیان د فراغت نه پس د تعزیر دپاره مستقل فصل قائموی، د تعزیر په باره کښې ئې لیکلی دی چه ﴿ والتعزیر تادیب دون الحد ﴾ چه تعزیر د هغه سزا او تادیبی کارروایئ نوم دې کوم چه د حد شرعی نه کم وی، دا اخستلې شوې دې د عزر نه په معنی د رد او ردع یعنی منع کول او تړکل، قال البابرتی ٢١١/٤ والاصل فی هذا ان من قذف غیره بکبیرة لیس فیها حد مقدر یجب التعزیر، یعنی کوم سړې چه د یو سړی طرف ته د داسې کبیره گناه نسبت اوکړی چه د هغې دپاره شرعا څه حد مقرر نشته نو هلته تعزیر واجب وی، ابن الهمام فرمائی : هُوَ مَشْرُوعٌ بِالْكِتَابِ ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى { فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا } أَمَرَ بِضَرْبِ الزَّوْجَاتِ تَأْدِيبًا وَتَهْذِيبًا وَفِي الْكَافِي قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { لَا تَرْفَعْ عَصَاكَ عَنْ أَهْلِكَ }الی اخر ما ذکر.([1])

[٤٤٩١]([2]) أَخْبَرَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ إِلَّا فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

د ابوبرده نه روایت دې فرمائی چه رسول الله و به فرمائیل دالله تعالی دمقرر کړې شوو حدودونه علاوه د تعزیر په طور باندې دې څوک د لسو درونه زیات ونه وهلې شي.

﴿ عَنْ أَبِى بُرْدَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لاَ يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ إِلاَّ فِى حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ » ﴾

**د تعزیر په باره کښې د ائمة مذاهب تحقیق :**

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه سړی ته حق حاصل دې چه

---

[1]) وَرُوِيَ « أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَزَّرَ رَجُلًا قَالَ لِغَيْرِهِ يَا مُخَنَّثُ » وَفِي الْمُحِيطِ : رُوِيَ عَنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ « رَحِمَ اللَّهُ امْرَأً عَلَّقَ سَوْطَهُ حَيْثُ يَرَاهُ أَهْلُهُ » وَأَقْوَى مِنْ هَذِهِ الْأَحَادِيثِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ « لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرٍ إلَّا فِي حَدٍّ » وَقَوْلُهُ « وَاضْرِبُوهُمْ عَلَى تَرْكِهَا لِعَشْرٍ » فِي الصِّبْيَانِ ، فَهَذَا دَلِيلُ شَرْعِيَّةِ التَّعْزِيرِ وَأَجْمَعَ عَلَيْهِ الصَّحَابَةُ، وَبِالْمُغْنِي وَهُوَ أَنَّ الزَّجْرَ عَنْ الْأَفْعَالِ السَّيِّئَةِ كَيْ لَا تَصِيرَ مَلَكَاتٍ فَيَفْحُشُ وَيَسْتَدْرِجُ إلَى مَا هُوَ أَقْبَحُ وَأَفْحَشُ فَهُوَ وَاجِبٌ، وَذَكَرَ التُّمُرْتَاشِيُّ عَنْ السَّرَخْسِيِّ أَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ مُقَدَّرٌ بَلْ مُفَوَّضٌ إلَى رَأْيِ الْقَاضِي ، لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهُ الزَّجْرُ ، وَأَحْوَالُ النَّاسِ مُخْتَلِفَةٌ فِيهِ فَمِنْهُمْ مَنْ يَنْزَجِرُ بِالصَّيْحَةِ وَمِنْهُمْ يَحْتَاجُ إلَى اللَّطْمَةِ وَإِلَى الضَّرْبِ ، وَمِنْهُمْ مَنْ يَحْتَاجُ إلَى الْحَبْسِ. ((وَفِي الشَّافِي)): التَّعْزِيرُ عَلَى مَرَاتِبَ: تَعْزِيرُ أَشْرَافِ الْأَشْرَافِ وَهُمْ الْعُلَمَاءُ وَالْعَلَوِيَّةُ بِالْإِعْلَامِ وَهُوَ أَنْ يَقُولَ لَهُ الْقَاضِي بَلَغَنِي أَنَّكَ تَفْعَلُ كَذَا وَكَذَا فَيَنْزَجِرُ بِهِ ، وَتَعْزِيرُ الْأَشْرَافِ وَهُمْ الْأُمَرَاءُ وَالدَّهَاقِينُ بِالْإِعْلَامِ الْجَرُّ إلَى بَابِ الْقَاضِي وَالْخُصُومَةُ فِي ذَلِكَ ، وَتَعْزِيرُ الْأَوْسَاطِ وَهُمْ السُّوقَةُ بِالْجَرِّ وَالْحَبْسِ ، وَتَعْزِيرُ الْأَخِسَّاءِ بِهَذَا كُلِّهِ وَبِالضَّرْبِ، وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ : يَجُوزُ التَّعْزِيرُ لِلسُّلْطَانِ بِأَخْذِ الْمَالِ ، وَعِنْدَهُمَا (الطرفين) وَبَاقِي الْأَئِمَّةِ الثَّلَاثَةِ لَا يَجُوزُ.)

[2]): صحيح البخاري /الحدود ٤٢ (٦٨٤٨)، صحيح مسلم /الحدود ٩ (١٧٠٨)، سنن الترمذي /الحدود ٣٠ (١٤٦٣)، سنن ابن ماجه /الحدود ٣٢ (٢٦٠١)، (تحفة الأشراف: ١١٧٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٦٧، ٤٥/٤)، سنن الدارمي /الحدود ١١ (٢٣٦٠) (صحيح)

هغه خپل غلام اوهي په ترک صلاة وغيره معصيت باندې، خو د لسو کوړو نه دې زيات نه وهي، او هم دا قول دې د اسحاق بن راهويه، او امام شافعي رحمه الله فرمائي چه تعزير څلويښتو کوړو ته نه دې رسيدل پکار، او هم دا قول دې د امام ابوحنيفه او د امام محمد رحمه الله، او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي چه تعزير د جرم د حيثيت په اعتبار سره دې د کومې درجې چه جرم وي او د هغې دپاره چه کومه سزا حاکم مناسب ګڼړي د اتيا کوړو نه کمه کمه، او د امام مالک رحمه الله نه روايت دې چه تعزير د جرم په اعتبار سره وي، پس که د هغه جرم د قذف نه هم زيات وي نو سل او د سلو نه زياتې کوړې هم ورکولې شي. اهـ

په دې کښې د امام شافعي رحمه الله مذهب هغه دې کوم چه علامه قسطلاني ليکلې دې چه ادنی حد ته دې نه رسوی د هغې نه دې کم وي، او ادنی الحدود د هغوی په نزد حد شرب دې څلويښت کوړې، اوس دا چه د حد حر اعتبار دې او که د حد عبد؟ قسطلاني فرمائي چه په دې کښې د هغوی دواړه اقوال دی، که حد الحر واخستلې شي نو د تعزير زيات نه زيات مقدار به د هغوی په نزد يو کم څلويښت کوړې وي، او که حد العبد واخستلې شي نو نورلس کوړې به وي، او په در مختار کښې دی چه زيات نه زيات د هغې مقدار يو کم څلويښت کوړې دې يعنی د حد العبد نه کم، او کم از کم درې کوړې، او په هدايه کښې هم داسې دی، او په دې کښې د امام ابويوسف رحمه الله قول دا ليکلې شوې دې چه د تعزير مقدار تر پنځه اويا کوړو پورې کيدلې شي. وړاندې په دې کښې دی چه طرفين د حد القذف فی الحد اعتبار سره کولو سره د هغې نه يو کوړه کمه کړه په يو روايت کښې وهو قول زفر وهو القياس. او په بل روايت کښې پنځه کوړې کمولو سره د هغې مقدار پنځه اويا کوړې مقرر کړې شوې دې [1] او په درمختار کښې دا هم دی ﴿ التعزير ليس فيه تقدير بل هو مفوض الى راۓ القاضی لان المقصود منه الزجر واحوال الناس فيه مختلفة ، په دې باندې علامه شامي فرمائي ای ليس فی انواعه تقدير ﴾ يعنی زيات نه زيات خو د دې مقدار متعين دې چه مادون الحد کيدل پکار دی، خو د کوم نوع تعزير دې وی مثلاً ضرب حبس يا فرک الاذن؟ په دې لحاظ سره دې کښې تعين نشته، (من الابواب والتراجم ٦/٢٣١) او حديث الباب د امام احمد او چا چه د هغه موافقت کړې دې دليل دې، او د جمهورو د طرف نه ددې حديث جواب په بذل کښې د لمعات نه دا نقل کړې دې چه دا حديث منسوخ دې ځکه چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه تجاوز عن العشرة ثابت دې، او بعضو دا جواب ورکړې دې چه دا د رسول الله ﷺ د زمانې په اعتبار سره دې. (ځکه چه هغه خير القرون وه) والحديث اخرجه البخاري والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٤٩٢] ([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ بُكَيْرَ بْنَ الْأَشَجِّ حَدَّثَهُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَابِرٍ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا بُرْدَةَ الْأَنْصَارِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ

---

[1] ) په خلاصة المذاهب کښې د دې په باره کښې دادی: امام احمد ١٠ کوړې، امام شافعي رحمه الله نولس يا نهه ديرش کوړې، طرفين (ابوحنيفه ومحمد) نهه ديرش کوړې، ابويوسف رحمه الله نهه اويا يا پنځه اويا کوړې، امام مالک رحمه الله علي راي الامام بحسب الجرم وان زاد علي المائة)

[2] ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٧٢٠) (صحيح)

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

دابوبرده رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول كريم ق نه مې اوريدلى دى چه فرمائيل ئې، اوبيا ئې دتير شوي روايت په شان روايت بيان كړو.

اخر كتاب الحدود

...................

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الديات

## د ديت داحكامو بيان

امام بخاري رحمه الله د كتاب الحدود نه پس د كتاب الديات نه مخكښ كتاب المحاربين من اهل الكفر والردة مستقلا ذكر كړې دې او امام ابوداؤد رحمه الله ردة او حرابه په كتاب الحدود كښ ذكر كړې دى.

### د ديت تعريف :

قال القسطلاني : والدية هي المال الواجب بالجناية على الحر في نفس او فيما دونها، وهي ماخوذة من الودى وهو دفع الدية اه وقال الحافظ : وهي ما جعل في مقابلة النفس وسمي دية تسمية بالمصدر يعني دية په اصل كښ ودى وو چه مصدر دې د ودى يدى يعني دية ادا كول او ديت هغه مال دې كوم چه د نفس په بدل كښ وى، او يو وى ارش يعني هغه مال كوم چه د نفس نه د كم بدله وى ففي الدر المختار : الدية في الشرح اسم للمال الذي هو بدل النفس والارش اسم للواجب فيما دون النفس اه خو قسطلانى د دية په تعريف كښ نفس او مادون النفس دواړه ذكر كړى دى، لكه چه اوس تير شو خو هغوى د ديت په تعريف كښ يو قيد زيات كړو هغه دا چه په جناية على الحر سره چه كوم مال واجب كيږى هغې ته ديت وائى. چه د هغې نه معلوميږى چه د جناية على العبد نه چه كوم مال واجب كيږى هغه ديت نه دې، ځكه چه د حر ديت خو متعين دې په خلاف د عبد چه د هغه ديت متعين نه دې بلكه د عبد چه كوم قيمت وى هغه به د هغه ديت وى او ښكاره خبره ده چه د غلامانو قيمت كم او زياتيږى د منافع په حساب سره، پس فقهاء كرامو د جناية على العبد فصل بيل منعقد كړې دې، په تنوير الابصار او د هغې په شرح درمختار كښ دى : دية العبد قيمته فان بلغت هي دية الحر وبلغت قيمة الامة دية الحرة نقص من كل من دية عبد وامة عشرة دراهم اظهار الانحطاط رتبة الرقيق عن الحر وتعيين العشرة باثر ابن مسعود رضي الله عنه وعنه من الائمة خمسة، يعني په كوم عبد باندې چه جنايت كړې شوې دې او هغه تلف كړې شوې دې نو د هغه ديت به د هغه بازارى قيمت وى د هغه غلام چه په بازار كښ هرڅه قيمت وى په دې شرط چه هغه د حر د ديت مقرره نه كم وى او كه د هغې برابر وى يعنى لس زره درهم نو په هغې كښ به لس درهمه كمولې شى د عبد دمرتبې د انحطاط د ښكاره كولو دپاره، لكه څنګه چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه منقول دى. مصنف رحمه الله د ديات د لاندې قصاص هم بيان كړې دې هم دغه شان امام بخارى هم، حافظ فرمائي:

﴿ وأورد البخاري تحت هذه الترجمة (كتاب الديات) ما يتعلق بالقصاص لأن كل ما يجب فيه القصاص يجوز العفو عنه على مال فتكون الدية أشمل﴾ يعنى په كومو كوموخيزونو كښې چه قصاص واجب كيږي هلته قصاص معاف كولو سره مال اخستل جائز دى او د دية حقيقت هم مال دې په دې وجه د ديت عنوان اعم او اشمل دې، وړاندې حافظ فرمائى : وترجم غيره كتاب القصاص وأدخل تحته الديات بناء على أن القصاص هو الأصل في العمد اهـ يعنى د عمدا جنايت كولو په صورت كښې اصل حكم قصاص دې، قصاص معاف كولو سره مال اخستل هغه بل امر دې [١] وفى البدائع : والاصل فيه نصّ الْكِتَابِ الْعَزِيزِ ، وَهُوَ قَوْلُهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى { وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ } وَالنَّصُّ وَإِنْ وَرَدَ بِلَفْظِ الْخَطَإِ لَكِنَّ غَيْرَهُ مُلْحَقٌ بِهِ... (من الابواب والتراجم ٦/٢٣٣)

## باب النَّفْسِ بِالنَّفْسِ

### باب: يو نفس د بل نفس په بدل كښې د قتلولو بيان

يعنى د قصاص بالنفس بيان:

[٤٤٩٤] ([٢]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، عَنْ عَلِيِّ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ قُرَيْظَةُ، وَالنَّضِيرُ، وَكَانَ النَّضِيرُ أَشْرَفَ مِنْ قُرَيْظَةَ فَكَانَ إِذَا قَتَلَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْظَةَ رَجُلًا مِنَ النَّضِيرِ قُتِلَ بِهِ وَإِذَا قَتَلَ رَجُلٌ مِنَ النَّضِيرِ رَجُلًا مِنْ قُرَيْظَةَ فُودِيَ بِمِائَةِ وَسْقٍ مِنْ تَمْرٍ، فَلَمَّا بُعِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتَلَ رَجُلٌ مِنَ النَّضِيرِ رَجُلًا مِنْ قُرَيْظَةَ، فَقَالُوا: ادْفَعُوهُ إِلَيْنَا نَقْتُلْهُ، فَقَالُوا: بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَوْهُ، فَنَزَلَتْ: وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ سورة المائدة آية ٤٢، وَالْقِسْطُ النَّفْسُ بِالنَّفْسِ، ثُمَّ نَزَلَتْ: أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ سورة المائدة آية ٥٠"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قُرَيْظَةُ، وَالنَّضِيرُ جَمِيعًا مِنْ وَلَدِ هَارُونَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَام.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائى چه په بنونضير اوبنو قريظه كښې زورور بنو نضير وو، كله چه به دبنو قريظه والا يو كس دبنو نضير والا يوكس مړ كړونودده په عوض كښې به په بنوقريظه كښې به دغه كس په طور دقصاص قتل كيدې شو ، او كله چه به دبني قريظه يوكس دبنو نضير يوكس مړ كړونوسل وسقه كجورې به ئې په فديه كښې اداكولې ، كله چه نبى كريم ﷺ مبعوث شو نودقبيله بنونضيريوكس دبنو قريظه يوكس لره مړ كړو دبنو قريظه خلقو اووئيل چه قاتل مونږ ته حواله كړئ تردې چه مونږ ئې قتل كړو دبنونضير والاخلقو د پخواپه شان دقاتل دحواله كولونه انكار وكړو بيا دوى اووئيل راشئ چه نبى عليه السلام ته لاړ شو هغه چه هرڅنګه فيصله وكړي منئ به يې، تول كسان نبى عليه السلام ته لاړل نو په

[١] حاصل دا چه بعض مصنفينو د كتاب الديات عنوان ذكر كولو سره قصاص د هغې د لاندې ذكر كړې دې په دې حيثيت سره چه په ديت كښې عموم او شمول دې ځكه چه د قصاص په ځائې ديت اخستلې كيدې شي او د دې برعكس (د ديت په ځائې قصاص نه) او بعض مصنفينو د دې برعكس د قصاص عنوان اختيارولو سره ديت د هغې د لاندې ذكر كړې دې په دې حيثيت سره چه قصاص هميشه اصلي وى د ديت بدل نه شي كيدې، په خلاف د ديت چه هغه كله اصلي وى او كله د قصاص بدل وى لهذا ديت لره د قصاص تابع كول پكار دى نه د دې عكس

[٢]: سنن النسائي/القسامة ٤(٤٧٣٦)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٩) (صحيح)

دي وخت کښې دا ایت کریمه : «وإن حکمت فاحکم بینهم بالقسط» نازل شو ، اوانصاف دادې چه یونفس دي دبل نفس په بدل کښې قتل کړې شي بیا دا ایت کریمه نازل شو «أفحکم الجاهلیة یبغون» امام ابوداؤد فرمائی بنوقریظه اوبنو نضیر دواړه دهارون علیه السلام داولاد نه دي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ قُرَيْظَةُ وَالنَّضِيرُ - وَكَانَ النَّضِيرُ أَشْرَفَ مِنْ قُرَيْظَةَ - فَكَانَ إِذَا قَتَلَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْظَةَ رَجُلاً مِنَ النَّضِيرِ قُتِلَ بِهِ وَإِذَا قَتَلَ رَجُلٌ مِنَ النَّضِيرِ رَجُلاً مِنْ قُرَيْظَةَ فُودِىَ بِمِائَةِ وَسْقٍ مِنْ تَمْرٍ ﴾ یعنی په مدینه منوره کښې د یهودو دوه قبیلې قریظه او بنو نضیر وې، چه په هغوی کښې بنو نضیر شریف ګنړلې کیدل د بنو قریظه په مقابله کښې، پس که یو قرظی سړی به په بنو نضیر کښې څوک قتل کړل نو په قصاص کښې به هغه قتل کولې شو ، او که په بنو نضیر کښې به چا څوک قرظی قتل کړو نو په دې صورت کښې به په قصاص کښې سل وسق کهجورې د هغه په فدیه کښې ورکولې شوې، په شروع کښې هم داسې وه، بیا چه کله د رسول الله ﷺ بعثت اوشو او هغوی مدینې طیبې ته تشریف راوړلو نو یو نضیری یهودی یو قرظی قتل کړو. نو د بنو قریظه یهودو اووې بنو نضیر ته چه دا خپل قاتل مونږ ته حواله کړئ چه مونږ دې قصاص کړو، هغوی اووې چه زمونږ او ستاسو ترمینځه به محمد ﷺ حکم وی په هغوی باندې دې فیصله اوکړې شی پس دوی دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو، ﴿ وان حکمت فاحکم بینهم بالقسط ﴾ چه که تاسو د دوی ترمینځه فیصله کوئ نو په عدل کوئ، راوی د حدیث وائی چه قسط چه کوم دې هغه هم دا دې چه نفس دې د نفس په بدل کښې واخستلې شی، ثم نزلت ﴿ افحکم الجاهلیة یبغون ﴾ یعنی چه کله هغه یهودو د دې آیت حکم خوښ نه کړو او خپل مینځ کښې ئې نزاع شروع کړه نو په هغې باندې دا دویم آیت کریمه نازل شو چه آیا دوی د جاهلیت قوانین لټوی.

په دې حدیث کښې یو مسئله د قضاء بین اهل الذمة ده چه که مسلمان قاضی به د اهل کتاب په مینځ کښې فیصله کوی یا به نه کوی چه په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف دې، په باب الرجم کښې مسئله تیره شوې.

دلته په بعض نسخو کښې دا دی : قَالَ أَبُو دَاوُدَ قُرَيْظَةُ وَالنَّضِيرُ جَمِيعًا مِنْ وَلَدِ هَارُونَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلاَمُ، چه یهود دا دواړه قبیلې د هارون علیه السلام په اولاد کښې دی، ام المومنین صفیه رضی الله عنها هم د هغوی نه ده لکه چه په باب سهم الصفی کښې تیر شوې دی سیدة قریظه والنضیر، والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## باب لاَ يُؤْخَذُ الرَّجُلُ بِجَرِيرَةِ أَخِيهِ أَوْ أَبِيهِ

**باب د پلار یا د ورور په ګناه کښې به څوې یا ورور نه شی نیولې کیدې**

[٤٤٩٥] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ إِيَادٍ، حَدَّثَنَا إِيَادٌ، عَنْ أَبِي رِمْثَةَ، قَالَ: "انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي نَحْوَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي: ابْنُكَ هَذَا؟ قَالَ: إِي

(١): انظر حدیث رقم (٤٢٠٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٧) (صحیح)

وَرَبِّ الْكَعْبَةِ، قَالَ: حَقًّا، قَالَ: أَشْهَدُ بِهِ، قَالَ: فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَاحِكًا مِنْ ثَبْتِ شَبَهِي فِي أَبِي وَمِنْ حِلْفِ أَبِي عَلَيَّ، ثُمَّ قَالَ: أَمَا إِنَّهُ لَا يَجْنِي عَلَيْكَ وَلَا تَجْنِي عَلَيْهِ، وَقَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى سورة الأنعام آية ١٦٤".

دابو رمثه رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه زه دخپل پلار سره دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نبی ﷺ زما پلارته اوفرمائيل ايا دا ستا ځوي دې؟ زماپلار اووئيل هو، زما دې دبيت الله شريف په رب باندې قسم وي نبی ﷺ اوفرمائيل رښتيا وائې؟ زما پلار په جواب کښې اووئيل يقينا زه ددې خبرې ګواهي ورکوم ، نبی ﷺ اوخندل ځکه چه زه په مکمل طور دخپل پلار هم شکل وم او زما پلار قسم وکړو چه زه دهغه ځوي يم ، ددينه پس نبی ﷺ اوفرمائيل خبردار نه به دې ستاپه ګناه باندې نيولې کيږي اونه به ته دده په ګناه باندې نيولې کيږې ، اونبی ﷺ داايت کريمه ولوستلو: «ولا تزر وازرة وزرأخرى».

**قوله**: ﴿ عَنْ أَبِي رِمْثَةَ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ أَبِي نَحْوَ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ لأَبِي « ابْنُكَ هَذَا ». قَالَ إِى وَرَبِّ الْكَعْبَةِ قَالَ « حَقًّا ». قَالَ أَشْهَدُ بِهِ الخ ﴾

## شرح الحديث:

سيدنا ابورمثه رضي الله عنه فرمائی چه زه د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم (چه کله رسول الله ﷺ مونږ دواړو ته اوکتل نو هغوی زما په باره کښې زما د پلار نه تپوس اوکړو چه آيا دا ستا ځوئې دې؟ نو هغوی اوفرمائيل جی د کعبې په رب مې دې قسم وی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل آيا واقعی داسې ده؟ هغوی جواب ورکړو او جی زه د دې خبرې ګواهي ورکوم، په دې باندې رسول الله ﷺ اوخندل چه د هغې وجه هغوی خپله بيانوی د دوه وجو نه يو خو زما د خپل پلار سره د ډير مشابهت د وجې نه، دويم زما د پلار د دې قسم خوړلو د وجې نه، په دې موقع باندې رسول الله ﷺ زما پلار ته دا خبره هم ارشاد اوفرمائيله چه نه خو په تا باندې ستا ځوئې جنايت کوی او نه ته په خپل ځوی باندې جنايت کوې، مطلب دا دې چه په تاسو دواړو کښې به د يو د جنايت سزا بل ته نه ملاويږی، بلکه چه څوک هم جنايت کوی که پلار وی او که ځوئې، د هغې قصاص او ضمان به هم په هغه باندې وی، يعنی اسلامی قانون دا دې او د زمانه جاهليت والا طريقه په اسلام کښې جائز نه ده چه په هغه زمانه کښې به دا کيدل چه د جنايت سزا صرف د جانی سره خاص نه وه بلکه دجانی څوک هم ملاوشی پلار يا رور ياد هغه ځوئې يا د د هغه دقبيلې يو سړې، او په اسلام کښې دا دی: ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى ﴾ او هم دغه شان ﴿ولكم فى القصاص حياة ﴾

دا حديث د دې نه مخکښې هم تير شوې دې، باب فى الخضاب کښې خو مختصرا او د هغې نه مخکښې هم په باب فى الخضرة کښې، په دې حديث باندې په حاشيه د بذل کښې دی چه ابن قدامة ددې حديث نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه د عمدا جنايت ديت خپله په جانی باندې دې، په عاقله باندې نه واجب کيږی اهـ...... مسئله زمونږ په نزد هم دا ده پس په درمختار کښې دی:

(و) اعلم انه (لا تعقل عاقلة جناية عبد ولا عمد) (قَوْلُهُ جِنَايَةَ عَبْدٍ) مِنْ إضَافَةِ الْمَصْدَرِ إلَى فَاعِلِهِ وَأَمَّا

إِذَا جَنَى حُرٌّ عَلَى نَفْسِ عَبْدٍ فَسَيَأْتِي (قَوْلُهُ وَلَا عَمْدٍ) أَيْ فِي النَّفْسِ أَوْ الطَّرَفِ فَإِنَّ الْعَمْدَ لَا يُوجِبُ التَّخْفِيفَ بِتَحَمُّلِ الْعَاقِلَةِ فَوَجَبَ الْقَوَدُ بِهِ ١هـ﴾ دا مسئله په اصل كښ د كتاب الديات ده هلته هم راروانه ده. والحديث أخرجه الترمذي والنسائي مختصرا ومطولا، وقال الترمذي: حسن غريب لا نعرفه الامن حديث عبيدالله بن زياد، قاله المنذري.

## بَابُ الْإِمَامِ يَأْمُرُ بِالْعَفْوِ فِي الدَّمِ

### باب: حاكم چه دچا د خون معاف كولو حكم اوكړي

يعنى په كوم صورت چه قصاص واجب كيږي كه د هغه قصاص تعلق د نفس سره وي يا په طرف سره نو په دې صورت كښ رسول الله ﷺ ولي د دم ته چاته چه د قصاص د اخستلو حق رسيږي هميشه به ئې ورته د عفو او د ترک قصاص ترغيب وركولو پس په دې باب كښ د اول حديث نه علاوه څومره چه احاديث دي په هغې كښ د رسول الله ﷺ د طرف نه د قصاص په ځائې مطلقا د عفو يا د عفو باخذ الدية ترغيب ذكر شوې دې، خو د باب په اول حديث كښ دى كوم چه د ابو شريح خزاعى نه مرفوعا روايت دې.

[٤٤٩٦] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ فُضَيْلٍ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَبِي الْعَوْجَاءِ، عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أُصِيبَ بِقَتْلٍ أَوْ خَبْلٍ فَإِنَّهُ يَخْتَارُ إِحْدَى ثَلَاثٍ: إِمَّا أَنْ يَقْتَصَّ وَإِمَّا أَنْ يَعْفُوَ وَإِمَّا أَنْ يَأْخُذَ الدِّيَةَ، فَإِنْ أَرَادَ الرَّابِعَةَ فَخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ، وَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ".

دابوشريح الخزاعى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام فرمائيلى دى په چاباندې چه دقتل افت راشي يا وربانديې په جسم كښې ديواندام دكټ كولو مصيبت راشي نودغه كس ته په درې خبرو كښې ديوې دخوښولو اختيار دې يا قصاص اغستل يا معاني كول يادیت اغستل اوكه چرې دغه كس ددينة علاوه كومه بله څلورمه خبره اختيارول غواړي نو دده لاسونه ونيسئ (يعنى منع ئې كړئ) اوڅوک چه دحد نه تجاوز اوكړي نودهغه دپاره دردناک عذاب دې.

**قوله:** ﴿ مَنْ أُصِيبَ بِقَتْلٍ أَوْ خَبْلٍ فَإِنَّهُ يَخْتَارُ إِحْدَى ثَلَاثٍ الخ ﴾ د قتل تعلق د نفس سره دې او د خبل د طرف سره، يعنى قطع د عضو، يعنى كوم جنايت چه عمدا وي كه د هغې تعلق د نفس سره وي يا د اندام سره نو هلته به مجنى عليه يا د هغه ولي ته درې اختيارات حاصل دي يا خو دې قصاص واخلي او يا دې مطلقا معاف كړي او يا دې ترې نه ديت واخلي، ﴿ فَإِنْ أَرَادَ الرَّابِعَةَ فَخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ ﴾ او كه هغه د دې درې څيزونو نه علاوه څلورم صورت اختيار كړي نو هغه منع كړئ، په دې حديث كښ خو ګويا رسول الله ﷺ د قاعدې مطابق د مقتول ولي ته چه كوم شرعا حق حاصل دې هغه بيان اوفرمائيلو چه هغه ته په دريو كښې د يو-اختيار حاصل دې كوم چه هغه اختياروى، د دې دريو نه علاوه دلته بل څيز نشته، اوس دا چه په

(١): سنن ابن ماجه/الديات ٣ (٢٦٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٤)، سنن الدارمي/الديات ١ (٢٣٩٦) (ضعيف)

دي دريو کښې اولی کوم څيز دې د دې ذکر په روستو روايت کښې راځي هغه دا چه رسول الله ﷺ به په دې دريو کښې اولا بخښنې او دويم ديت ته ترجيح ورکوله لکه د مصنف رحمه الله په ترجمة الباب کښې چه دی.

## په قتل عمد کښې د قصاص په ځائې د ديت اخستلو حق د مقتول ولی ته کله حاصل دې؟

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی چه په دې حديث کښې يو مختلف فيه مسئله ده، د ﴿واما ان ياخذ الدية ﴾ په باره کښې هغه دا چه د قتل عمد په صورت کښې اصل حکم خو د قصاص دې چه د مقتول ولی دې د قاتل نه قصاص واخلی، او په قتل عمد کښې د ديت اخستلو اختيار د دوه امامانو په نزد خو مطلقا دې يعنی د امام شافعی او احمد رحمهما الله، او دا يو روايت دې د امام مالک رحمه الله هم، او د امام مالک او امام ابوحنيفه رحمهما الله په نزد د مقتول ولی ته د ديت د اخستلو په هغه صورت کښې دی چه کله قاتل په ديت ورکولو باندې راضی وی، او که هغه راضی نه وی نو د اخذ ديت حق ئې نشته، دا حديث په دې مسئله کښې د شوافعو او حنابله موافق دې، په دې مسئله باندې مستقل باب وړاندې راروان دې، باب ولی العمد ياخذ الدية، د احنافو دليل به هلته وړاندې راشی، دلته په حديث الباب کښې دی، ﴿ ومن اعتدى بعد ذلک فله عذاب اليم ﴾ يعنی کوم سړې چه د دې امور ثلاثه نه څلورم ته تجاوز اوکړی پس د هغې نه يعنی هغه ته د دې خبرې د رسيدو نه پس چه اختيار صرف په درې امورو کښې دې، هغه څلورم څيز څه کيدې شی مثلا د معاف کولو نه پس يا د ديت اخستلو نه پس بيا قتل اوکړی يا ئې په شروع کښې مطلقا معاف کړو بغير د ديت نه بيا ئې ديت هم طلب کول شروع کړل. والحديث اخرجه ابن ماجه وحديث انس الاتی اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

> [۴۴۹۷](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُفِعَ إِلَيْهِ شَيْءٌ فِيهِ قِصَاصٌ إِلَّا أَمَرَ فِيهِ بِالْعَفْوِ".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مانبی عليه السلام اوليد و چه کله به هغه ته يوه داسې مقدمه پيش شوه په کومه کښې چه قصاص لازم وي نونبی عليه السلام به د معاف کولو ترغيب ورکولو يعنی د مقتول وارثانو ته د قاتل د معاف کولو.

> [۴۴۹۸](2) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "قُتِلَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرُفِعَ ذَلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَفَعَهُ إِلَى وَلِيِّ الْمَقْتُولِ، فَقَالَ الْقَاتِلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا أَرَدْتُ قَتْلَهُ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْوَلِيِّ: أَمَا إِنَّهُ إِنْ كَانَ صَادِقًا ثُمَّ قَتَلْتَهُ دَخَلْتَ النَّارَ، قَالَ: فَخَلَّى سَبِيلَهُ، قَالَ: وَكَانَ مَكْتُوفًا بِنِسْعَةٍ فَخَرَجَ يَجُرُّ نِسْعَتَهُ فَسُمِّيَ ذَا النِّسْعَةِ".

---

[1]: سنن النسائي/القسامة ۲۳ (۴۷۸۷، ۴۷۸۸)، سنن ابن ماجه/الديات ۳۵ (۲۶۹۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۳/۳، ۲۵۲) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الديات ۱۳ (۱۴۰۷)، سنن النسائي/القسامة ۳ (۴۷۲۶)، سنن ابن ماجه/الديات ۳۴ (۲۶۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۰۷) (صحيح)

د ابوهريره ﷺ نه روايت دې فرمائى چه دنبى ﷺ په زمانه كښې يو كس قتل كړې شو اونبى ﷺ ته دهغه مقدمه پيش كړې شوه نونبى ﷺ قاتل لره دمقتول وارثانوته حواله كړو قاتل عرض اوكړو اې دالله رسوله مادغه سړې د قتل كولو په اراده باندې نه دې قتل كړې ، نبى ﷺ دمقتول وارثانوته اوفرمائيل اوګورئ كه چرې دې رښتونې وي او تاسو ئې قتل كړئ نودوزخ ته به لاړ شئ دوى چه دا خبره واوريده نوقاتل ئې پريخودو اودده دواړه لاسونه په پړي تړل شوي وو دې په داسې حال كښې اووتو چه پړې يي په ځان پسې راښكلونو په دې وجه په ده باندې ذا الشعير نوم كيخودې شو يعنى دپړي والا.

**قوله:**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قُتِلَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَرُفِعَ ذَلِكَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم الخ ﴾

## شرح الحديث :

يعنى د رسول اللهﷺ په زمانه كښ يو سړې قتل كړې شو نو دا واقعه رسول اللهﷺ ته راورسولې شوه په دې باندې رسول اللهﷺ هغه قاتل د مقتول ولى ته اوسپارلو ، دې قاتل رسول اللهﷺ ته دا عرض اوكړو يا رسول اللهﷺ !قسم په الله زما اراده د هغه د قتل كولو نه وه (صرف د وهلو وه) خو هغه مړ شو، نو په دې باندې رسول اللهﷺ ولى د مقتول ته اوفرمائيل چه دا قاتل كه په خپل قول كښ رښتينې وى او بيا هم تا قتل كړو نو ته به جهنم ته ځې، د مقتول ولى په دې خبره اوريدلو باندې هغه پريخودلو، راوى وائى چه هغه سړې د ځرمنې د يوې تسمې سره مكتوف وو،([1]) هغه چه پرانستلې شو نو اوتختيدلو د هغه په تيختې سره هغه رسئ هم په هغه پسې راښكلې كيده په دې وجه د هغه نوم ذوالنسعة كيخودلې شو (تسمې والا)

د دې حديث نه معلومه شوه چه په كوم قتل باندې د قتل عمد تعريف صادقيږى نو هلته د قاتل دا وينا چه زما اراده د قتل نه وه دا قضاء معتبر نه ده، خو كه هغه قاتل په خپل قول كښ صادق وى نو د هغې دا قول به ديانة قابل قبول وى ګڼې د هغه وبال به د مقتول په ولى باندې وى (بذل) والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذرى

[٤٤٩٩]([2])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ الْجُشَمِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا حَمْزَةُ أَبُو عُمَرَ الْعَائِذِيُّ، حَدَّثَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ وَائِلٍ، حَدَّثَنِي وَائِلُ بْنُ حُجْرٍ، قَالَ: "كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جِيءَ بِرَجُلٍ قَاتِلٍ فِي عُنُقِهِ النِّسْعَةُ، قَالَ: فَدَعَا وَلِيَّ الْمَقْتُولِ، فَقَالَ: أَتَعْفُو؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَتَأْخُذُ الدِّيَةَ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَتَقْتُلُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: اذْهَبْ بِهِ، فَلَمَّا وَلَّى، قَالَ: أَتَعْفُو؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَتَأْخُذُ الدِّيَةَ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَتَقْتُلُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: اذْهَبْ بِهِ، فَلَمَّا كَانَ فِي الرَّابِعَةِ، قَالَ: أَمَا إِنَّكَ إِنْ عَفَوْتَ عَنْهُ يَبُوءُ بِإِثْمِهِ وَإِثْمِ صَاحِبِهِ، قَالَ: فَعَفَا عَنْهُ، قَالَ: فَأَنَا رَأَيْتُهُ يَجُرُّ النِّسْعَةَ".

---

[1]) مكتوف وائى هغه سړى ته چه د هغه دواړه لاسونه شاته بوتلو سره په رسئ وغيره باندې اوتړلې شى د هغه زمانې د هتكړو طريقه هم دا وه.

[2]): صحيح مسلم/القسامة ١٠ (١٦٨٠)، سنن النسائي/القسامة ٣ (٤٧٢٨)، القضاء ٢٥ (٥٤١٧)، (تحفة الأشراف: ١١٧٦٩)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الديات ٨ (٢٤٠٤) (صحيح)

د وائل بن حجر رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی چه زه د نبی عليه السلام سره موجود وم چه يو قاتل راوستل شو او دهغه په مرئ کښې پړی اچولي شوې وو نبی عليه السلام د مقتول وارث طلب کړو او تپوس ئي ورنه اوکړو چه ايا ته دي معاف کوي هغه اووئيل نه بياورته نبی عليه السلام اوفرمائيل ايا ديت اخلي هغه اووئيل نه، بيانبی عليه السلام اوفرمائيل اياده لره قتل کول غواړي؟ ده اووئيل هو نبی عليه السلام اوفرمائيل دي بوځه کله چه ده روان کړو نبی عليه السلام ورته او فرمائيل ايا ته دي معاف کوي هغه اووئيل نه، بيا ئي ورته اووئيل ايا ديت اخلي هغه جواب ورکړو نه بيا ئي ورته اووئيل ايا دده قتل کول غواړي هغه جواب ورکړو هو، بيا ئي ورته اوفرمائيل ده لره بوځه، بيا ئي ورته په څلورم ځل اووئيل اوګوره که چرې ته دي معاف کړې نودې به خپله ګناه اودقتل شوي ګناه پخپل ځان باندي رابار کړي دمقتول وارثانوچه دا واوريدل نودې يي پر يخودو وائل اووئيل ماهغه کس اوليدو چه پړې يي په ځان پسي راښکلو.

**قوله:**﴿ حَدَّثَنِي وَائِلُ بْنُ حُجْرٍ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- إِذْ جِيءَ بِرَجُلٍ قَاتِلٍ فِي عُنُقِهِ النِّسْعَةُ الخ ﴾

## مضمون الحديث مع الشرح :

وائل بن حجر رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره اوم، يو قاتل هغوی ته راوستلي شو چه د هغه په غاړه کښې د چمړې تسمه پرته وه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د قاتل ولی راطلب کړو او ترتيب وار ئي د هغه مخې ته دري خبرې کيخودلي اول د عفو خبره چه آيا ته معافی کولې شي؟ هغه انکار اوکړو، د دې نه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم د ديت د اخستلو اوفرمائيل، هغه د دې نه هم انکار اوکړو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل آيا ته قتل کول غواړئ نو هغه اووې او، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل ښه څه دې بوځه، هم دغه شان د سوال او جواب نوبت د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه قاتل ترمينځه راغلو، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل : ﴿ أَمَا إِنَّكَ إِنْ عَفَوْتَ عَنْهُ يَبُوءُ بِإِثْمِهِ وَإِثْمِ صَاحِبِهِ﴾ که تا دې معاف کړې وې نو هغه به واپس شوې وې د خپلو تيرو ګناهونو سره، او د دې صاحب واقعه يعنی د مقتول د ګناهونو سره يعنی د هغه د قتل د ګناه سره د "إِثْمِ صَاحِبِهِ" نه مراد "اثم قتل صاحبه" دې او خپله د مقتول ګناه مراد نه ده يعنی دا مطلب نه دې چه که ته دا قاتل معاف کړې نو هغه به د مقتول د ګناهونو سره واپس کيږی، يعنی د مقتول ګناه به په هغه باندې واچولې شی، ځکه چه دا مطلب د ﴿ ولا تزر وازرة وزر اخرى ﴾ خلاف دې په دې اوريدلو سره د مقتول ولی دا قاتل معاف کړو او پرې ئي خودلو، هغه خپله تسمه راښکلو سره په تيختنه شو، د دې جملې دا مطلب په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقرير نه هم دا نقل کړې شوې دې، او حضرت دا هم ليکلی دی چه مراد خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا دې کوم چه مونږ ليکلې دې خو عبارت رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې راوړلو چه هغه موهم دې نورو معنو لره کوم چه غير مقصود دی (د مقتول ګناهونه په قاتل باندې اچول) د مقتول ولی لره په عفو باندې د تيارولو دپاره، او علامه سندی رحمه الله هم د دې حديث معنی مراد هم دا ليکلی دی، او د هغې سره ئي دا هم ليکلې دی چه په دې مطلب کښې د عفو دترغيب سره څه خاص مناسبت نشته. پس هغوی فرمائی : وهذا المعنى لا يصلح للترغيب الا

ان يقال الترغيب باعتبار ايهام الكلام بالمعنى الظاهر ويجوز الترغيب بمثله توسلا به الى العفو واصلاح ذات البين كما يجوز التعريض في محله اهـ او دا خبره يعنى د ايهام كلام والا د حضرت په تقرير كښې تيره شوې ده، حاصل دا چه د دې حديث كومه ظاهرى معنى ده نو په هغې كښې خو واقعى ترغيب او عفو ښه ښكاره ده خو هغه معنى د اصولو خلاف ده لهذا ظاهرى معنى پريخودلو سره د هغې تاويل ضرورى دې، او د تاويل نه پس د حديث معنى هم هغه كيږى كومې چه پورته ليكلې شوې دى، پاتې شوه خبره د ترغيب نو هغه د ايهام كلام نه حاصليدې شى، او د صحيح مسلم او د نسائى د يو روايت الفاظ دا دى : ﴿ان يبوء باثمك واثم صاحبك﴾ اى اثم قتل صاحبك، د صاحبک نه مراد خو مقتول دې لكه چه دلته د ابوداؤد په روايت كښې ذكر دى خو په دې روايت كښې د باثمه په ځائې باثمک دې چه د هغې نه مراد د مقتول ولى دې ځكه چه خطاب هم هغه ته دې د دې توجيه دا كړې شوې ده چه چونكه د دې قتل ناحق په وجه باندې د مقتول ولى ته غم او تكليف رسيدلې دې، او د هغې باوجود هغه معافى كړې ده چه په هغې سره د دې مقتول دولى گناه معاف او زائل شوه نو په دې ازاله د گناهونو كښې د قاتل قتل لره هم فى الجمله دخل دې نو په دې حيثيت سره اوئيلې شو ﴿يبوء باثمک﴾ يعنى د قاتل دا قتل او بيا ستا عفو به د معاصى د ختمولو ذريعه شى.

[٤٥٠٠]([1])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جَامِعُ بْنُ مَطَرٍ، حَدَّثَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ وَائِلٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ.

علقمه بن وائل رضي الله عنه نه دتير شوي روايت په شان روايت نقل شوي دي.

[٤٥٠١]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ الْحَجَّاجِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ عَطَاءٍ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحَبَشِيٍّ، فَقَالَ: إِنَّ هَذَا قَتَلَ ابْنَ أَخِي، قَالَ: كَيْفَ قَتَلْتَهُ؟ قَالَ: ضَرَبْتُ رَأْسَهُ بِالْفَأْسِ وَلَمْ أُرِدْ قَتْلَهُ، قَالَ: هَلْ لَكَ مَالٌ تُؤَدِّي دِيَتَهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَفَرَأَيْتَ إِنْ أَرْسَلْتُكَ تَسْأَلُ النَّاسَ تَجْمَعُ دِيَتَهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: فَمَوَالِيكَ يُعْطُونَكَ دِيَتَهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ لِلرَّجُلِ: خُذْهُ، فَخَرَجَ بِهِ لِيَقْتُلَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِنَّهُ إِنْ قَتَلَهُ كَانَ مِثْلَهُ، فَبَلَغَ بِهِ الرَّجُلُ حَيْثُ يَسْمَعُ قَوْلَهُ، فَقَالَ: هُوَ ذَا فَمُرْ فِيهِ مَا شِئْتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَرْسِلْهُ، وَقَالَ مَرَّةً: دَعْهُ يَبُوءُ بِإِثْمِ صَاحِبِهِ وَإِثْمِهِ فَيَكُونُ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ، قَالَ: فَأَرْسَلَهُ".

علقمه بن وائل دخپل پلارنه روايت كوى فرمائى چه يوكس يوحبشي لره نبى عليه السلام ته راوستو او عرض ئې وكړو چه ده زما ورارہ وژلې دې نبى عليه السلام ورنه تپوس اوكړو چه تا دده وراره څنگه وژلې دې ده اووئيل مادهغه سر په تبر وهلې دې او مړ شو ليكن مادده دوژلو اراده نه وه كړې ورته ئې اوفرمائيل اياخه مال درسره شته چه ديت ورباندې ادا كړې شي؟ هغه اووئيل نه ورته ئې اوفرمائيل كه چرې زه دې پريږدم نودخلقونه په سوال ديت را جمع كولې شې هغه اووئيل نه بيا ئې ورته وفرمائيل ايا ستارشته داران به تاته مال دركړې هغه اووئيل نه، نو په دې وخت كښې نبى عليه السلام دقتل شوي تره ته اووئيل دې بوځه اوهغه د قتل

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٧٦٩)
[2]: انظر حديث رقم: (٤٤٩٩)، (تحفة الأشراف: ١١٧٦٩) (صحيح)

په اراده باندې دځان سره بوتلو نبی ﷺ اوفرمائیل که چرې دې دغه کس قتل کړې نودې به هم دهغه په شان شي دمرې تره چه کله دا واوریدل نودغه حبشي ئې بیا دوباره راوستو او عرض ئې وکړو دادې حاضر کړې مې دې ستاسو چه څه خوښه وي دده متعلق فیصله وکړئ نبی ﷺ اوفرمائیل دې پریږده ، ده به خپله ګناه اوستادواړه ګناه په سر باندې اغستلي وي او په دوزخ کښې به وي نودقاتل وارث چه دا واوریدل نوحبشي ئې پریخودو.

﴿قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– بِحَبَشِيٍّ فَقَالَ إِنَّ هَذَا قَتَلَ ابْنَ أَخِي. قَالَ « كَيْفَ قَتَلْتَهُ ». قَالَ ضَرَبْتُ رَأْسَهُ بِالْفَأْسِ وَلَمْ أُرِدْ قَتْلَهُ. قَالَ « هَلْ لَكَ مَالٌ تُؤَدِّى دِيَتَهُ ». قَالَ لاَ الخ﴾

په روایت کښې چه کوم لفظ د "حبشی" راغلې دې هغه په بذل المجهود کښې په ضمه د حاء او په سکون د باء سره ضبط کړې شوې دې او دا چه حبشی د یو ځائې نوم دې جبل باسفل مکة، بينه وبين مكة ستة اميال الخ خو ظاهره دا ده چه دلته دا لفظ منسوبا یعنی په یاء نسبت سره واقع دې یعنی برجل حبشی، لهذا دا نسبت د حبشې طرف ته شو او د حبشه طرف ته نسبت الحبشی په بفتحین مشهور دې لکه بلال حبشی رضی اللہ عنہ.... پس په نسخه د منذری مطبوعه کښې "حبشی" مشګل کولو سره لیکلې شوې دې.

**شرح الحدیث:**

مضمون د حدیث دا دې : وائل بن حجر رضی اللہ عنہ فرمائی چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یو سړی یو حبشی راوستلو او وې وئیل چه دې سړی زما ورارهٔ قتل کړې دې، رسول الله ﷺ د هغوی نه تپوس اوفرمائیلو چه تا هغه څنګه قتل کړو هغه اووې ما د هغه په سر باندې د تبر ګزار اوکړو خو زما اراده د هغه د وژلو نه وه، او د مسلم په روایت کښې دی چه هغه داسې اووې چه مونږ دواړو د یوې اونې نه پانړې راسندلې هغه ماته په څه خبره باندې کنځل اوکړل چه په هغې باندې ماته غصه راغله، په دې باندې چه ما سره کوم تبر په لاس کښې وو هغه مې د هغه سر ته راوچولو چه په هغې سره هغه مړ شو رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه تاسره ډومره مال شته چه په هغې سره ته د هغه دیت ادا کړې شې؟ هغه اووې نه ،په دې باندې په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی چه دا دلیل دې په دې خبره باندې چه په قتل عمد کښې دیت د قاتل په مال کښې وی نه په عاقله باندې، وهو مجمع علیه... بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه که زه تا پریږدم نو ته دخلقو نه په غوښتلو غوښتلو سره ددې دیت جمع کولې شې؟ هغه اووئیل نه، بیا نبی علیه السلام تپوس اوکړو چه ستا مالکان تاته د هغه دیت درکولې شی؟ هغه د دې نه هم انکار اوکړو، رسول الله ﷺ د مقتول ولی ته اوفرمائیل چا چه دا قاتل راوستلې وو چه دې اونیسه او بوځې څه د قتلولو دپاره، چه کله هغه دې بوتلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل که دا سړی دې قتل کړو نو دې به هم د قاتل په شان شی، د دې جملې شارحینو دوه مطلبه لیکلی دی یو دا چه د مرتبې په لحاظ به دواړه یو شی اود مقتول ولی ته به په قاتل باندې هیڅ فوقیت اوفضیلت نه وی، دخپل حق د اخستلو د وجې نه، دویم مطلب دا چه په ګناه او ظلم کښې به دواړه برابر شی، ځکه چه قاتل دا خبره کړې ده چه زما مقصود د هغه هلاکول نه وو، پس دا قتل قتل خطاء شو یا شبه عمد چه په هغې کښې

قصاص نشته، ذکر الوجهين الامام الخطابی، خو په بذل کښ اول معنی اختيار کړې شوې ده او په حاشيه د بذل کښ دی وبه جزم فی احکام القرآن ۱۵۶/۱.

**قوله:** ﴿ فَبَلَغَ بِهِ الرَّجُلُ حَيْثُ يَسْمَعُ قَوْلَهُ ﴾ يعنی د مقتول ولی هغه قاتل هغه ځائې ته بوتلو د چرته نه ئې چه د رسول اللهﷺ آواز اوريدلې وو او هغوی ته رسيدو سره ئې عرض اوکړو واخلئ دا قاتل حاضر دې د دۀ په باره کښ چه څه فيصله موخوښه وی اوکړئ، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه دې پريږده، د خپل ګناهونو سره به واپس شی، او جهنم ته به ځی، په دې باندې هغه سړی قاتل پريخودلو.

دا د وائل بن حجر رضی الله عنه حديث دې کوم چه مصنف رحمه الله په څو طرقو سره په اختلاف د الفاظو سره ذکر کړې دې، دا په ظاهر کښ هم يوه واقعه ده د امام نسائی رحمه الله د طرز نه هم دا په فهم کښ راځی. والحديث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۴۵۰۲]()[1] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ عُثْمَانَ وَهُوَ مَحْصُورٌ فِي الدَّارِ، وَكَانَ فِي الدَّارِ مَدْخَلٌ مَنْ دَخَلَهُ سَمِعَ كَلَامَ مَنْ عَلَى الْبَلَاطِ، فَدَخَلَهُ عُثْمَانُ فَخَرَجَ إِلَيْنَا وَهُوَ مُتَغَيِّرٌ لَوْنُهُ، فَقَالَ: إِنَّهُمْ لَيَتَوَاعَدُونَنِي بِالْقَتْلِ آنِفًا، قَالَ: قُلْنَا: يَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَ: وَلِمَ يَقْتُلُونَنِي؟ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ: كُفْرٌ بَعْدَ إِسْلَامٍ، أَوْ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ، أَوْ قَتْلُ نَفْسٍ بِغَيْرِ نَفْسٍ"، فَوَاللَّهِ مَا زَنَيْتُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا فِي إِسْلَامٍ قَطُّ، وَلَا أَحْبَبْتُ أَنَّ لِي بِدِينِي بَدَلًا مُنْذُ هَدَانِي اللَّهُ، وَلَا قَتَلْتُ نَفْسًا، فَبِمَ يَقْتُلُونَنِي؟"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا تَرَكَا الْخَمْرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ.

د سهل بن ابی امامه رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ د عثمان بن عفان له سره موجود وو او هغه په کور کښې بند کړې شوې وو او په دغه کور کښې د داخليدو يوه خفيه لاره څوک چه به ورته ورننوتونو خبرې به ئې هغه چا اوريدې څوک چه به د ددې لارې د خولې سره ووا و عثمان رضی الله عنه ورته ورداخل شو او مونږ ته راووتلو اورنګ ئې تغيرشوي وو او اووئې وئيل چه دوی لږ مخکښې زما د مرګ خبرې کولې مونږ ورته ووئيل اې امير المومنين الله تعالی به ستاد ملګرتيا د پاره کفايت وکړي، عثمان رضی الله عنه ووئيل دوی ماولې وژنې؟ ما د نبی عليه السلام نه آوريدلی دی چه فرمائيل ئې :دیوسړې قتلول نه دی جائز مګرپه يو ددرې کارونوسره پس د اسلام نه په کفر اختيارولوسره او په شادي شده حالت کښې په زنا کولوسره او د يونفس په وژلوسره کوم چه د بل نفس په بدل کښې نه وي ، په الله قسم ماخونه په جاهليت کښې زنا کړې ده اونه په اسلام کښې، اونه مې د دين د بدلولوخواهش کړې دې د کله نه چه ماته الله تعالی دين اسلام ته هدايت کړې دې، اونه مې څوک قتل کړې دې، نودوی ماپه څه باندې وژنې؟ امام ابوداؤد فرمائی عثمان اوابوبکر رضی الله عنهما په جاهليت کښې شراب پريخودلې وو.

[1] ): سنن الترمذي/الفتن ۱ (۲۱۵۸)، سنن النسائي/المحاربة ٦ (٤٠٢٤)، سنن ابن ماجه/الحدود ۱ (۲۵۳۳)، (تحفة الأشراف: ۹۷۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/٦۱، ٦۲، ٦٥، ۷۰)، دي/الحدود ۲ (۲۳٤۳) (صحيح)

[٤٥٠٣]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، فَحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: سَمِعْتُ زِيَادَ بْنَ ضُمَيْرَةَ الضُّمَرِيَّ. ح وأَخْبَرَنَا وَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ، أَنَّهُ سَمِعَ زِيَادَ بْنَ سَعْدِ بْنِ ضُمَيْرَةَ السُّلَمِيَّ، وَهَذَا حَدِيثُ وَهْبٍ وَهُوَ أَتَمُّ، يُحَدِّثُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ مُوسَى، وَجَدِّهِ، وَكَانَا شَهِدَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا، ثُمَّ رَجَعْنَا إِلَى حَدِيثِ وَهْبٍ: أَنَّ مُحَلِّمَ بْنَ جَثَّامَةَ اللَّيْثِيَّ قَتَلَ رَجُلًا مِنْ أَشْجَعَ فِي الْإِسْلَامِ، وَذَلِكَ أَوَّلُ غِيَرٍ قَضَى بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَكَلَّمَ عُيَيْنَةُ فِي قَتْلِ الْأَشْجَعِيِّ لِأَنَّهُ مِنْ غَطَفَانَ، وَتَكَلَّمَ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ دُونَ مُحَلِّمٍ لِأَنَّهُ مِنْ خِنْدِفَ، فَارْتَفَعَتِ الْأَصْوَاتُ وَكَثُرَتِ الْخُصُومَةُ وَاللَّغَطُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عُيَيْنَةُ أَلَا تَقْبَلُ الْغِيَرَ؟ فَقَالَ عُيَيْنَةُ: لَا وَاللَّهِ حَتَّى أُدْخِلَ عَلَى نِسَائِهِ مِنَ الْحَرْبِ وَالْحُزْنِ مَا أَدْخَلَ عَلَى نِسَائِي، قَالَ: ثُمَّ ارْتَفَعَتِ الْأَصْوَاتُ وَكَثُرَتِ الْخُصُومَةُ وَاللَّغَطُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عُيَيْنَةُ أَلَا تَقْبَلُ الْغِيَرَ؟ فَقَالَ عُيَيْنَةُ مِثْلَ ذَلِكَ أَيْضًا، إِلَى أَنْ قَامَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي لَيْثٍ يُقَالُ لَهُ مُكَيْتِلٌ عَلَيْهِ شِكَّةٌ وَفِي يَدِهِ دَرَقَةٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي لَمْ أَجِدْ لِمَا فَعَلَ هَذَا فِي غُرَّةِ الْإِسْلَامِ مَثَلًا إِلَّا غَنَمًا وَرَدَتْ فَرُمِيَ أَوَّلُهَا فَنَفَرَ آخِرُهَا اسْنُنِ الْيَوْمَ وَغَيِّرْ غَدًا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَمْسُونَ فِي فَوْرِنَا هَذَا وَخَمْسُونَ إِذَا رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ، وَذَلِكَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ، وَمُحَلِّمٌ رَجُلٌ طَوِيلٌ آدَمُ وَهُوَ فِي طَرَفِ النَّاسِ، فَلَمْ يَزَالُوا حَتَّى تَخَلَّصَ فَجَلَسَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَيْنَاهُ تَدْمَعَانِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي قَدْ فَعَلْتُ الَّذِي بَلَغَكَ وَإِنِّي أَتُوبُ إِلَى اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى فَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَقَتَلْتَهُ بِسِلَاحِكَ فِي غُرَّةِ الْإِسْلَامِ! اللَّهُمَّ لَا تَغْفِرْ لِمُحَلِّمٍ بِصَوْتٍ عَالٍ، زَادَ أَبُو سَلَمَةَ: فَقَامَ وَإِنَّهُ لَيَتَلَقَّى دُمُوعَهُ بِطَرَفِ رِدَائِهِ"، قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ: فَزَعَمَ قَوْمُهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَغْفَرَ لَهُ بَعْدَ ذَلِكَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ: الْغِيَرُ الدِّيَةُ.

عروه بن زبير دخپل پلار اوهغه دده دنیکه نه روایت کوي اوهغوی دواړه په غزوه حنین کښې درسول الله سره موجود وو اوس موږ دوباره دوهب حدیث ته راځو ، چه په لیث قبیله کښې د محلم بن جثامه په نوم باندې یوکس داسلام په دور کښې دقبیله اشجع نه یوکس قتل کړو او دا دتهولونه اولنې دیت دې دکوم چه نبی ﷺ فیصله کړې وه نوعیینه قبیلې د اشجعي دطرف نه خبرې وکړې ځکه چه دهغه تعلق دعطفان قبیلې سره وو، اواقرع بن حابس دمحلم دطرف نه خبرې وکړې ځکه چه دهغه تعلق دخندف سره وو، په دې وخت کښې اوازونه ډیر تیز شول (ددواړو ډلو دطرف نه) اوشور اوچغې جوړې شوې نبی ﷺ اوفرمائیل اې دعیینه قبیلې خلقو ایا تاسو دیت نه اخلئ دعیینه والا اووئیل نه، په الله قسم زه دیت نه اخلم ترڅوچه ددغه کس ښځوته مې دغه شان تکلیف اوغم نه وي ورپیښ کړې کوم چه زماښځوته رسیدلې دې ، بیاوازونه نور هم تیز شول او ښه مضبوط جنګ اوشور او غوبل وشو، بیانبی ﷺ اوفرمائیل اې عیینه ایا ته دیت نه اخلې عیینه بیاهم په مخکښنې طریقه باندې جواب ورکړوتردې چه په لیث قبیله کښې یوکس پاڅیدو چه مکیتل به ورته وئیلې شو او هغه اصلحه په ځان پورې تړلې وو اوتوره اوډال ئې په لاس کښې نیولې وو ، عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله یقینا زه نه وینم دده دعمل مثال داسلام په شروع کښې نن ورځ

(یعنی د محلم) مګر داسې چه یوڅو چیلې داوبو څکلودپاره یوي چینې ته لاړي مګریو کس اولنۍ چیلی مړه کړه دکوي په وجه چه اخیرنی چیلی هم اوتښتیدله نوته نن یو قانون جوړ کړه اوصبائې ختم کړه نبی ﷺ اوفرمائیل پنځوس اوښان اوس ادا کړئ او پنځوس اوښان به کله چه مونږ مدینې ته واپس شو نور ورکوئ (چنانچه نبی ﷺ ددغه کس نه دیت ادا کړو) اودا واقعه دسفرپه دوران کښې پیښه شوي ده ، محلم یولوړ غنم رنګې سړې وو اودخلقونه یوطرف ته ناست وو اوخلق هم په دې خیال ناست وو چه دې بچ کړې شي په هرحال محلم نبی ﷺ ته راغې او دهغه په وړاندې کښیناستو دسترګونه ئې اوښکې روانې وې اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله مادغه ګناه کړې ده دکوي چه تاته خبر رارسیدلې دې. اوس زه الله تعالی ته توبه اوباسم ته زما دپاره دمغفرت دعا وغواړه نبی ﷺ اوفرمائیل ایاتاداسړې داسلام د دور په شروع کښې پخپله اصلحه باندې قتل کړې وو؟ اې الله محلم ته بخنه ونکړې اونبی ﷺ دا خیرې په چغه اوتیز اواز سره وکړې ، ابوسلمه راوی دا اضافه کړې ده کله چه محلم دا واوریدل نو اودریدو اودڅادر په پلوپې خپلې اوښکې پاکولې ابن اسحق راوی وئیلی دی چه دحلم قوم اووئیل چه بیا نبی ﷺ ددې نه پس د محلم دپاره د مغفرت دعا وغوښتله.

## د محلم بن جثامة اللیثی واقعه د قتل او د هغې تشریح :

اوس وړاندې د محلم بن جثاثه اللیثی د قتل واقعه په روایت کښې راروانه ده کومه چه مصنف رحمه الله په دوه طرقو سره ذکر کړې ده په اول طریق کښې د مصنف رحمه الله استاد موسی بن اسماعیل دې او په دویم کښې وهب بن بیان، او دواړه طرق په محمد بن جعفر بن الزبیر باندې یو ځائې کیږی، او محمد بن جعفر روایت کوی د زیاد بن سعد نه او زیاد بن سعد روایت کوی د خپل پلار (په طبع سابق کښې دلته بل شان وو دا د اصلاح نه پس دې) سعد بن ضمیره نه (لکه چه د وهب په روایت کښې دی) او د موسی په روایت کښې د عن ابیه نه پس وعن جده هم دې چه د هغې نه مراد ضمیر "ه" دې چه د هغې مطلب دا شو چه زیاد دا حدیث د خپل پلار سعد او نیکه ضمیر "ه" دواړو نه روایت کړې دې.

**قوله:**﴿ یحدث عروة بن الزبیر ﴾ د یحدث فاعل زیاد او عروه په ترکیب کښې مفعول دې او د دې جملې مطلب دا دې محمد بن جعفر وائی چه دا حدیث ما د زیاد بن سعد نه هغه وخت واوریدلو چه هغه دې روایت لره د عروه نه بیانولو یعنی قصدا خوئې هغه ئې عروه ته اورولو ضمنا ما هم واوریدلو، ﴿ وکانا شهدا مع رسول الله ﷺ حنینا ﴾ د موسی په روایت کښې دا دی چه دا دواړه سعد او ضمیره د رسول الله ﷺ سره په حنین کښې شریک وو،

**قوله:**﴿ثم رجعنا الی حدیث وهب ﴾ مصنف رحمه الله دلته په دې دواړو طرقو کښې طریق ثانی لره یعنی د وهب بن بیان الفاظ نقل کوی.

یعنی اګر چه روایت خومصنف رحمه الله ته د موسی او وهب دواړو نه رسیدلې دې خو دلته چه مصنف کوم الفاظ ذکر کوی هغه د وهب د روایت دی (تر دې ځائې پورې د سند حل او د هغې تشریح وه) ﴿ أَنَّ مُحَلِّمَ بْنَ جَثَّامَةَ اللَّيْثِيَّ قَتَلَ رَجُلاً مِنْ أَشْجَعَ فِي الإِسْلاَمِ وَذَلِكَ أَوَّلُ غِيَرٍ قَضَى

بِهِ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَتَكَلَّمَ عُيَيْنَةُ فِي قَتْلِ الأَشْجَعِيِّ لأَنَّهُ مِنْ غَطَفَانَ وَتَكَلَّمَ الأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ دُونَ مُحَلِّمٍ لأَنَّهُ مِنْ خِنْدِفَ فَارْتَفَعَتِ الأَصْوَاتُ وَكَثُرَتِ الْخُصُومَةُ وَاللَّغَطُ ﴾

راوی واقعه بیانوی چه محلم بن جثامة اللیثی د قبیله اشجع یو سړي قتل کړو چه د هغه نوم عامر بن الاضبط الاشجعی دي (وبه جزم فی مجمع الزوائد ٨/٧ وذکر القصة) دا د قتل قصه د ابتداء اسلام ده لکه چه وړاندې هم په دې روایت کښې راغې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ د دیت فیصله فرمائیلې وه چونکه دا د قتل اوله واقعه وه، لهذا د دیت فیصله هم اول اوشوه لکه څنګه چه راوی وائی ﴿ وذلک اول غیر ﴾ غیر کدیة لفظا ومعنی....

په دې باندې عیینة بن حصن او اقرع بن حابس اودریدلو، اول الذکر د مقتول د طرف نه چه د هغه د قبیلې وو او موخر الذکر قاتل یعنی د محلم د طرف نه، ځکه چه هغه د محلم د قبیلې نه وو، مطلب دا چه کوم سړې د قاتل د قبیلې نه وو یعنی اقرع بن حابس هغه خو دا غوښتل چه فیصله په څائې د قتل او قصاص په دیت باندې اوشی او کوم سړې چه د مقتول د طرف نه وو یعنی عیینة بن حصن هغه فیصله په څائې د دیت د قصاص غوښتله، په دواړو ډلو کښې ورانې راغلو او په مجلس کښې شور شو، په سیرة ابن هشام کښې دي چه کله رسول الله ﷺ د ماسپخین د مانځه نه فارغ کیدو سره چه کله هغوی د حنین په مقام کښې وو د یوې اونې د سورې لاندې ناست وو او هلته دا خبرې اترې په دواړو ډلو کښې اوشوې، رسول الله ﷺ عیینة ته اوفرمائیل چه آیا ته د دیت قبلولو دپاره تیار نه ئې؟ هغه اووې نه! قسم په الله ترڅو پورې چه زه د قاتل په کور والو باندې غم او مصیبت واقع نه کړم کوم چه هغه زمونږ د کور په خلقو واقع کړې دې، په دې باندې بیا شور او جنګ زیات شو رسول الله ﷺ عیینه ته بیا هم هغه خبره اوکړه هغه هم دغه شان جواب ورکړو چه مخکښې ئې ورکړې وو ﴿ إِلَى أَنْ قَامَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي لَيْثٍ يُقَالُ لَهُ مُكَيْتِلٌ عَلَيْهِ شِكَّةٌ وَفِي يَدِهِ دَرَقَةٌ ﴾ تردې چه یو سړې کوم چه لیثی یعنی د قاتل د قبیلې وو چه د هغه نوم مکیتل وو چه د هغه په بدن باندې وسله وه او په لاس کښې یو ډهال وو هغه په مجلس کښې اودریدلو او وې وئیل ﴿ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي لَمْ أَجِدْ لِمَا فَعَلَ هَذَا فِي غُرَّةِ الإِسْلاَمِ مَثَلاً إِلاَّ غَنَمًا وَرَدَتْ فَرُمِيَ أَوَّلُهَا فَنَفَرَ آخِرُهَا اسْنُنِ الْيَوْمَ وَغَيِّرْ غَدًا ﴾ هغه سړی اودریدو سره د تقریر په انداز کښې رسول الله ﷺ ته خطاب کولو سره عرض اوکړو چه د هغې خلاصه دا ده چه سره د دې چه هغه د قاتل د قبیلې دې خو هغه رسول الله ﷺ ته د قصاص د اخستلو مشوره ورکړه او د خپلې رائې د تائید او تقویت دپاره ئې دوه مثالونه پیش کړل په اول مثال کښې ئې د قصاص اخستلو فائده اوښودله او په دویم مثال کښې ئې د ترک قصاص ضرر، په اول مثال کښې دا دی لکه د ګډو بیزو کنډک چه د اوبو طرف ته ځی چه په هغې کښې یوه چیلئ وړاندې روانه وی او یو ښکاری د هغه ښکار اوکړی نو ښکاره ده چه روستو تولې ګډې بیزې به ځان بچ کولو سره اوتختی، دا مثال خو شو د قصاص اخستلو په فائده کښې په داسې طریقه چه دا واقعه د قتل په اسلام کښې رومبئ واقعه ده اوس که په دې کښې د قاتل نه قصاص واخستلې شو او هغه قتل کړې شو نو نور خلق کوم چه دا قسم حرکتونه کوی هغوی به قتلونه نه کوی او د دې نه به عبرت

حاصل کړی او بیا دپاره به هغوی د دې قسم وارداتو همت نه شی کولې.
او دویم مثال چه په هغې کښې د ترک قصاص ضرر لره بیانول مقصود وو هغه دا دې: ﴿اسنن اليوم وغير غدا﴾ (۱) چه که تاسو دې څل د قصاص په ځائې دیت قبول کړو او د دې نه پس بیا د قتل څه قصه راپیښه شوه نو هلته به هم د قاتل اولیاء هم په دې باندې اصرار کوی چه په دې موقع باندې دې هم د دیت فیصله اوکړې شی او قصاص دې وانخستلې شی، او که تاسو قصاص اخلئ نو بیا به هم خلق دې ته نه تیاریږی او وائی به چه دې څل دیت قبول کړئ او که د نن نه پس که د قتل څۀ قصه راپیښه شوه په هغې کښې تاسو قصاص واخلئ، حاصل د دې مثال دا دې چه دې څل به په ترک قصاص او دیت اخستلو سره به د بیا دپاره د دیت دروازه پرانستلې شی او بیا به هم دا سلسله شروع شی، خو رسول اللهﷺ د هغه د تقریر نه څه متاثر نه شو بلکه د دې نه پس هم رسول اللهﷺ د دیت فیصله اوفرمائیله او د هغه تقریر ئې قطعا نظر انداز کړو، پس په روایت کښې دی ﴿ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « خَمْسُونَ فِى فَوْرِنَا هَذَا وَخَمْسُونَ إِذَا رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ » وَذَلِكَ فِى بَعْضِ أَسْفَارِهِ ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه په دیت کښې به سل اوښان اخستلې شی پنځوس فی الحال او پنځوس مدینې ته په واپس کیدو باندې، وړاندې په روایت کښې دی ﴿ وَمُحَلِّمٌ رَجُلٌ طَوِيلٌ آدَمُ وَهُوَ فِى طَرَفِ النَّاسِ ﴾ یعنی هغه قاتل محلم یو لوړ سړې وو غنم رنګې، د مجلس په غاړه باندې ناست وو، د هغوی نه ګیر چاپیره چونکه خلق راجمع وو نو هغه محلم د خپل ځائې نه پاسیدو او ګویا د خلقو مجمعې لره ځیرې کولو سره د رسول اللهﷺ په خوا کښې کیناستلو، د هغه د سترګو نه اوښکې بهیدلې، هغه د خپل جرم اعتراف کولو سره د رسول اللهﷺ مخکښې توبه اوکړه او رسول اللهﷺ ته ئې د استغفار درخواست اوکړو، رسول اللهﷺ اوفرمائیل تا په ابتداء د اسلام کښې په خپلې تورې سره هغه په ناحقه قتل کړې دې، او بیا ئې خفه کیدو سره د استغفار په ځائې په اوچت آواز باندې اوفرمائیل : ﴿ اللَّهُمَّ لاَ تَغْفِرْ لِمُحَلِّمٍ ﴾ یا الله محلم ته بخښنه اونکړې، په دې باندې هغه محلم د خپل څادر په څوکه باندې خپلې اوښکې پاکولو سره پاسیدو، راوی د حدیث ابن اسحق فرمائی چه د محلم د قبیلې والا دا وائی چه رسول اللهﷺ د هغې نه روستو د محلم دپاره استغفار اوفرمائیلو.

د رسول اللهﷺ د دې بد دعاء او واقعې ذکر او حواله مونږ په ابواب المرور بين يدى المصلى کښې د یو حدیث د لاندې چه په هغې کښې رسول اللهﷺ خپلې مخې ته تیر شوی یو سړی ته فرمائیلې وو ﴿ اللهم اقطع اثره ﴾ هلته تیر شوی دی مکیتل چه په خپل تقریر کښې کوم دوه مثالونه بیان کړ ی دی د هغې په باره کښې په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ لیکلې شوی دی ذکر فی هامش ابی داؤد عدة معانی لقول مکیتل، فارجع اليه، یعنی د دې جملو په وضاحت کښې نور هم اقوال دی کوم چه په حاشیه د ابوداؤد کښې لیکلې شوې دی.

---

[۱] ، نن تاسوهغه طریقه اختیار کړئ (کومه چه مویه شروع کښې کړې وه یعنی دیت) بیا آئنده چه تاسوڅه غواړئ هغه تغیر اوکړئ.

او دا چه په روایت کښې راغلی دی د راوی په کلام کښې ﴿ ذلک اول غیر ﴾ چه دا د دیت اول فیصله ده، په دې کښې تسامح دې ځکه چه دا واقعه خو په غزوه حنین کښې پیښه شوې ده په اتمه هجرئ کښې لکه چه پورته تیر شو، لهذا دا اولیت اولیت اضافي کیدې شي په یو لحاظ سره، یا زیات نه زیات داسې اوایئ چه د اول مطلب دا دې چه د شروع قصه ده، والحدیث اخرجه ابن ماجه مختصرا، قاله المنذري.

## بَابُ وَلِيِّ الْعَمْدِ يَأْخُذُ الدِّيَةَ

### باب: د مقتول وارث چه کله د دیت په اخستلو راضي وي نو دیت اخستلې شي

یعنی د قتل عمد په صورت کښې که د مقتول ولی دیت اخستل غواړي نو اخستلې شي یعنې د قصاص په ځائې، خو دا دیت اخستل د احنافو او د امام مالک رحمه الله د مشهور قول مطابق د دواړو ډلو په رضامندئ باندې موقوف دی، لهذا بغیر د قاتل د رضامندئ نه د مقتول ولی ته د دیت د اخستلو حق نشته بلکه قصاص دې، او دریم حق یعني بخښنه خو بهر حال ده چه نه دیت واخلي او نه قصاص، او د امام شافعي او د امام مالک رحمه الله د یو قول مطابق او د داؤد ظاهري رحمه الله په نزد د مقتول ولی ته اختیار دې مطلقا، که قاتل غواړي او که نه غواړي، دا مسئله او په دې کښې اختلاف مخکښې هم تیر شوې، او دا خو د دې مسئلې اصل محل دې هم.

[۴۵۰۴] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا شُرَيْحٍ الْكَعْبِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا إِنَّكُمْ يَا مَعْشَرَ خُزَاعَةَ قَتَلْتُمْ هَذَا الْقَتِيلَ مِنْ هُذَيْلٍ وَإِنِّي عَاقِلُهُ، فَمَنْ قُتِلَ لَهُ بَعْدَ مَقَالَتِي هَذِهِ قَتِيلٌ فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيَرَتَيْنِ: أَنْ يَأْخُذُوا الْعَقْلَ، أَوْ يَقْتُلُوا".

دابو شریح کعبي رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: اې دخزاعه قبیلې خلقو تاسو دهذیل قبیلې یوکس قتل کړو او زه دهغه دیت ورکوم، زما ددې وینانه پس دچاچه کوم کس قتل کړې شي نودهغه وارثانو ته په دوه خبروکښې اختیار دې یابه دیت اخلي اویابه قاتل وژني.

**قوله:** ﴿ أَلاَ إِنَّكُمْ يَا مَعْشَرَ خُزَاعَةَ قَتَلْتُمْ هَذَا الْقَتِيلَ مِنْ هُذَيْلٍ وَإِنِّي عَاقِلُهُ الخ ﴾

### شرح الحدیث من حیث الفقه:

د کوم قتل د واقعې ذکر چه په دې روایت کښې دې هغه قتل د فتح مکه په کال باندې پیښ شوې وو چه د هغې ذکر مونږ سره په مقدمة العلم کښې د کتابة الحدیث په بحث کښې تیر شوې دې، د صحیح بخاری روایت دې په کتاب العلم کښې ﴿ أَنَّ خُزَاعَةَ قَتَلُوا رَجُلاً مِنْ بَنِي لَيْثٍ عَامَ فَتْحِ مَكَّةَ بِقَتِيلٍ مِنْهُمْ قَتَلُوهُ فَأُخْبِرَ بِذَلِكَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم فَرَكِبَ رَاحِلَتَهُ فَخَطَبَ الحديث ﴾ چه د هغې په آخر کښې هغه راغلې دی کوم چه دلته په روایت کښې ذکر دی، په دې اول روایت کښې هم او د دې نه په روستو کښې هم، حاصل دا چه یو خزاعی سړی یو هذلی

¹: سنن الترمذي/الديات ۱۳ (۱۴۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱/۴) (صحيح)

سړې هم په هغه ورځو کښې په مکه مکرمه کښې قتل کړو د زمانه جاهلیت د یو قتل په انتقام کښې کوم چه هذیل کړې وو چه کله رسول اللهﷺ په دې باندې خبر شو نو هغوی اوفرمائیل چه زه د خپل طرف نه د دې دیت ادا کوم، او بیا رسول اللهﷺ باقاعده د قاعدې کلیې په طور اوفرمائیل چه که د یو قوم عمدا قتل اوکړې شی نو د مقتول ولی ته دوه اختیاره دی یا دې دیت واخلی یا قصاص. ﴿أَنْ يَأْخُذُوا الْعَقْلَ أَوْ يَقْتُلُوه﴾ او په روستو روایت کښې هم دا دی د هغې لفظ دا دې ﴿إِمَّا أَنْ يُودَى أَوْ يُقَادَ﴾ یعنی د مقتول ولی ته دې یا دیت ورکړې شی او یا دې هغه قصاص واخلی، دا حدیث د خپل اطلاق او عموم د وجې نه د امام شافعی او د امام احمد دلیل دې په پورته ذکر شوې مسئله کښې، او د احنافو او د مالکیانو په نزد د دیت حکم مقید دې یعنی په دې شرط چه قاتل د دیت په ورکولو باندې راضی وی، د اکثرو روایاتو الفاظ خو داسې دی او د ترمذی په یو روایت کښې داسې دی کوم چه د دې باب اول روایت دې: ﴿باب ما جاء في حكم ولي القتيل في القصاص والعفو﴾ ذکر دې، په روایت د ابوهریرهرضی الله عنه: ومن قتل له قتيل فهو بخير النظرين إما أن يعفو وإما أن يقتل..... په دې کښې صرف عفو یا قصاص ذکر کړې شوې دې، او بل روایت هم هغه د ابو شریح دې چه د هغې الفاظ هم هغه دی کوم چه په ابوداؤد کښې تیر شوې دی: ﴿فمن قتل له قتيل بعد اليوم فأهله بين خيرتين إما أن يقتلوا أو يأخذوا العقل﴾ او په دریم روایت کښې داسې دی: ﴿من قتل له قتيل له أن يقتل أو يعفو أو يأخذ الدية﴾ په دې کښې درې واړه اختیارات ذکر شوې دی، امام ترمذیرحمه الله فرمائی: ذهب الى هذا (ای الاختيار بين الامور الثلاثة) بعض اهل العلم وهو قول احمد واسحق﴾ او د دې په حاشیه کښې د لمعات نه نقل کړې شوې دی: وهو مذهب الشافعی واحمد، وعند ابی حنيفة ومالک لا يثبت الدية الا برضا القاتل، وهو احد قولی الشافعی لان موجب القتل عمدا هو القصاص لقوله تعالى ﴿كتب عليكم القصاص فى القتلى﴾ الا انه تعمد (كذا فى الاصل والظاهر بدله بقيد) بوصف العمد لقوله صلى الله عليه وسلم العمد قود، اى موجبه فايجاب المال زيادة فلا يكون للولى اخذ الدية الا برضا القاتل، والمسئلة مختلفة فيها بين الصحابة ومن بعدهم ويمكن حمل الحديث على ذلک ايضا، فافهم.

## په مسئلة الباب د احنافو دلیل:

په بذل کښې د احنافو د طرف نه د امام طحاویرحمه الله دا جواب نقل کړې شوې دې قال الطحاوی : والحجة لهم حديث انس فى القصة الربيع عمته، فقال النبیﷺ كتاب الله القصاص، فانه حكم بالقصاص ولم يخير، ولو كان الخيار للولى لاعلمهم النبیﷺ الى آخر ما فى البذل، دا حدیث کوم چه د امام طحاوی په کلام کښې دې دا وړاندې په کتاب کښې په باب القصاص من السن کښې راروان دې: ولفظه : كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ أُخْتُ أَنَسِ بْنِ النَّضْرِ ثَنِيَّةَ امْرَأَةٍ فَأَتَوُا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَضَى بِكِتَابِ اللَّهِ الْقِصَاصَ فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ وَالَّذِى بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لاَ تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا الْيَوْمَ. قَالَ « يَا أَنَسُ كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ » الحديث او د دې حدیث جواب د احنافو د طرف نه دا کیدې شی چه دا حدیث مقید دې د نورو احادیثو په بناء باندې.

[٤٥٠٥]()حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنِي أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا حَرْبُ بْنُ شَدَّادٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَمَّا فُتِحَتْ مَكَّةُ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيلٌ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ: إِمَّا أَنْ يُودَى، أَوْ يُقَادَ، فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ يُقَالُ لَهُ أَبُو شَاةٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ اكْتُبْ لِي، قَالَ الْعَبَّاسُ: اكْتُبُوا لِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اكْتُبُوا لِأَبِي شَاةٍ"، وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ أَحْمَدَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: اكْتُبُوا لِي يَعْنِي خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي كله چه مكه فتح شوه نونبي عليه السلام اودريدو او وئي فرمائيل دهري قبيلي څوک کس چه قتل کړې شي نوهغوی ته اختيار دې چه دقاتل نه ديت اخلي اوکه قصاص اخلي ددې حکم په اوريدوسره يو يمني کس چه نوم ئې ابو شاه وو پاڅيدو اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله داحکم ماته ليکلي راکړه ، عباس بن وليد راوی وائی چه ابوشاه د اکتب لي په ځائې باندې اکتبوا لي اووئيل نبی عليه السلام اوفرمائيل ده ته ئې ليکلي ورکړی اودا داحمد دحديث الفاظ دي، امام ابوداؤد فرمائي چه دغه کس داسې اووئيل زمادپاره دنبی عليه السلام خطبه اوليکئ.

[٤٥٠٦]()حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ، وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا دُفِعَ إِلَى أَوْلِيَاءِ الْمَقْتُولِ، فَإِنْ شَاءُوا قَتَلُوهُ وَإِنْ شَاءُوا أَخَذُوا الدِّيَةَ".

**ترجمه**:عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوهغه دده دنيکه نه روايت کړې دي چه نبی عليه السلام فرمائيلي دی نه بشي وژلې مومن دکافر په بدل کښې ، او څوک چه يومومن په قصد سره مړ کړې نودا قاتل به دمقتول وارثانوته حواله کولې شي دهغوی خوښه ده چه وژني ئې اوکه ديت ورنه اخلي.

## بَابُ مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِ الدِّيَةِ

### باب: څوک چه د ديت اخستلو نه پس قاتل قتل کړي

[٤٥٠٧]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا مَطَرٌ الْوَرَّاقُ، وَأَحْسَبُهُ عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا أُعْفِي مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِهِ الدِّيَةَ".

جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی يقينا زه معافي نه کوم هغه کس ته چه دديت اخستلونه پس قاتل لره قتل کړي.

**قوله**:﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ أُعْفِي مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِهِ الدِّيَةَ »﴾

[1]: انظر حديث رقم: (٢٠١٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٨٣، ١٥٣٦٥) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/ القسامة ٢٧ (٤٨٠٥)، سنن ابن ماجه/الديات ٦ (٢٦٣٠)، ويأتي برقم (٤٥٤١)، (تحفة الأشراف: ٨٧٠٩) (حسن صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٢٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٣/٣) (ضعيف)

## شرح الحديث :

په دې ﴿ لا اعفى ﴾ کښې علامه سندی دوه احتماله ليکلی دی يو دا چه دا د ماضی مجهول صيغه ده په وزن د اکرم، يا د د مضارع معروف واحد متکلم د اعفاء نه (لا اعفى) په اول صورت کښې دا معنى ليکلې ده ای لاکثر ماله ولا استغنى.... يعنی الله پاک دې اوکړی چه د دې سړی په مال کښې کثرت او برکت نه وی چا چه د ديت د اخستلو نه پس قتل اوکړو. او په دويم صورت کښې به ئې دا مطلب وی چه زه نه معاف کوم هغه سړی (بلکه ضرور به سزا ورکوم) چا چه د ديت اخستلو نه پس قصاص واخستلو، او هم دغه شان بعينه په بذل المجهود کښې هم دی او صاحب نهايه په دې کښې صرف يو احتمال ليکلې دې او مونږ سره چه کومه د نهايه نسخه ده په هغې کښې ئې دا د لا اعفى د ماضی معروف په طور ليکلې ده، او ليکلې ئې دی هذا دعاء عليه ای لا کثر ماله ولا استغنى اهـ.

دا مضمون د حديث هم هغه دې کوم چه د دې نه مخکښې نزدې تير شو، فان اراد الرابعة فخذوا على يديه ومن اعتدى بعد ذلک فله عذاب اليم..

## بَابٌ فِيمَنْ سَقَى رَجُلاً سَمًّا أَوْ أَطْعَمَهُ فَمَاتَ أَيُقَادُ مِنْهُ

### باب: څوک چه چاله زهر ورکړی او مړی شی آيا قصاص به ترې اخستلې شی؟

[٤٥٠٨] (١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَرَبِيٍّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: "أَنَّ امْرَأَةً يَهُودِيَّةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ مَسْمُومَةٍ فَأَكَلَ مِنْهَا، فَجِيءَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهَا عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَتْ: أَرَدْتُ لِأَقْتُلَكَ، فَقَالَ: مَا كَانَ اللَّهُ لِيُسَلِّطَكِ عَلَى ذَلِكَ، أَوْ قَالَ: عَلَيَّ، فَقَالُوا أَلَا نَقْتُلُهَا؟ قَالَ: لَا، فَمَا زِلْتُ أَعْرِفُهَا فِي لَهَوَاتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يوې يهودنړې ښځې نبی عليه السلام ته په زهرو لړلې يوه چيلۍ راوړله اونبی عليه السلام دهغې نه خوراک اوکړو بيا دغه ښځه اونيولې شوه اوپه دربار نبوي کښې حاضره کړې شوه نبی عليه السلام ورنه تپوس اوکړو ددې په باره کښې نوهغې اووئيل ستا دوژلو دپاره نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل الله تعالى هيڅ کله تا دې کار کولو ته نه پرېږدی، اوکه داسې ئې ورته اوفرمائيل الله تعالى تاله په ما باندې نه مسلط کوې، صحابه کرامو عرض اوکړو اې دالله رسوله مونږ ته اجازت راکړه چه قتل ئې کړو؟ نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل نه، انس ته وئيلی دی چه بيابه ددې زهرو اثر هميشه دنبی عليه السلام په ورو کښې ښکاريدو.

[٤٥٠٩] (٢) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ ح وحَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّادٌ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، وَأَبِي سَلَمَةَ قَالَ هَارُونُ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الْيَهُودِ أَهْدَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةً مَسْمُومَةً، قَالَ: فَمَا عَرَضَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذِهِ أُخْتُ مَرْحَبٍ الْيَهُودِيَّةُ الَّتِي سَمَّتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

---

(١): صحيح البخاري/الهبة ٢٨ (٢٦١٧)، صحيح مسلم/السلام ١٨ (٢١٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨١/٣) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥١٤٠، ١٣١٢٢، ١٥١٤٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجزية ٧ (٣١٦٩)، المغازي ٤١ (٤٢٤٩)، الطب ٥٥ (٥٧٧٧) (صحيح)

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه يوې يهودنړې ښځې نبى ﷺ ته په زهرو لړلې يو چيلې راوليږلو اونبى ﷺ ددې ښځې سره هيڅ قسم چيرچاړ ونکړو امام ابوداؤد فرمائى دا ښځه دمرحب نوم سړي خوروه چاچه دنبى ﷺ دپاره د چيلۍ په غوښه کښې زهر اچولې وو.

[۴۵۱۰]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: كَانَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ يُحَدِّثُ: "أَنَّ يَهُودِيَّةً مِنْ أَهْلِ خَيْبَرَ سَمَّتْ شَاةً مَصْلِيَّةً ثُمَّ أَهْدَتْهَا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذِّرَاعَ فَأَكَلَ مِنْهَا وَأَكَلَ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِهِ مَعَهُ، ثُمَّ قَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ، وَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ فَدَعَاهَا، فَقَالَ لَهَا: أَسَمَمْتِ هَذِهِ الشَّاةَ، قَالَتِ الْيَهُودِيَّةُ: مَنْ أَخْبَرَكَ؟ قَالَ: أَخْبَرَتْنِي هَذِهِ فِي يَدِي لِلذِّرَاعِ، قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: فَمَا أَرَدْتِ إِلَى ذَلِكَ؟ قَالَتْ: قُلْتُ إِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَنْ يَضُرَّهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ نَبِيًّا اسْتَرَحْنَا مِنْهُ، فَعَفَا عَنْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُعَاقِبْهَا، وَتُوُفِّيَ بَعْضُ أَصْحَابِهِ الَّذِينَ أَكَلُوا مِنَ الشَّاةِ، وَاحْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى كَاهِلِهِ مِنْ أَجْلِ الَّذِي أَكَلَ مِنَ الشَّاةِ، حَجَمَهُ أَبُو هِنْدٍ بِالْقَرْنِ وَالشَّفْرَةِ، وَهُوَ مَوْلًى لِبَنِي بَيَاضَةَ مِنَ الْأَنْصَارِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه مروي دي چه خيبر اوسيدونکې يوې يهودنړې ښځې په يو وريت شوې چيلې کښې دنبى ﷺ دپاره زهر اچولې وو اونبى ﷺ ته ئې په تحفه کښې راليږلې وونبى ﷺ ددېنه ديو ولې غوښه اوخوړه اودنبى ﷺ سره يوڅوصحابه کراموهم خوړلې وه بيانبى ﷺ صحابه کراموته اوفرمائيل لاسونه اوچت کړئ (يعنى مه خورئ) او په دې ښځه پسې ئې څوک اوليږلو او راوبې غوښتله او بيا ئې ورنه تپوس اوکړو چه ايا تا په دې چيلې کښې زهر اچولې وو؟ هغې اووئيل تاته داچا اووئيل؟ نبى ﷺ ورته اوفرمائيل ماته دچيلې ولې اووئيل کوم چه زمالاس کښې وو (دمعجزې په طور) دې ښځې جواب ورکړو يقيناماپه کښې زهر اچولې وونبى ﷺ ورنه تپوس اوکړو چه په زهر اچولوکښې ستاڅه مقصد وو؟ هغې اووئيل ما پخپل زړه کښې دا اووئيل که چرې ته دالله پيغمبر يې نوتاته زهر نقصان نشي رسولې که چرې پيغمبر نه يې نومونږ به ستانه خلاص شو نونبى ﷺ ددې ښځې جرم معاف کړو اوهيڅ سزائې ورنکړه ، نبى ﷺ په صحابه کراموکښې چاچه ددغې غوښې نه خوړلې وو ددغه زهرو داثر په وجه مړه شول ، اونبى ﷺ ددې زهرو په وجه دخپلو دواړو اوږوپه مينځ کښې ښکر ولګوو ،ابوهند دغواښکر د چاړې په زريعه ولګوو، او ابوهند دقبيله بنو بياضه آزاد کړې غلام وو.

﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ امْرَأَةً يَهُودِيَّةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِشَاةٍ مَسْمُومَةٍ فَأَكَلَ مِنْهَا فَجِيءَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم.... او د باب په دريم روايت کښ دى : فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الذِّرَاعَ فَأَكَلَ مِنْهَا وَأَكَلَ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِهِ مَعَهُ ﴾

**په رسول الله ﷺ باندې د زهريله غوښې خوړلو قصه :**

دا قصه د ۷هجرى ده كما فى هامش البذل عن التلقيح پس په يو روايت كښ دى هم د دې باب چه ﴿ اهدت له يهودية بخيبر ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د غزوه خيبر د موقعې قصه ده، دحديث مضمون دادې چه يوه يهودنړه ښځه چه دهغې نوم زينب بنت الحارث ليکلې دې چه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۰۰۶)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/المقدمة ۱۱ (۶۹) (ضعيف)

د سلام بن مشکم ښځه وه هغې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د چیلئ وریته کړې شوې غوښه چه په زهرو ککړه وه پیش کړه، رسول الله ﷺ د هغې نه لاس (یعنی مخکښې خپه اوچتولو سره خوراک شروع کړو او رسول الله ﷺ سره د هغوی څو ملګرو هم اوخوړله او بیا ناځاپه رسول الله ﷺ د خوراک نه لاس اونیولو، او هغه یهودئې ته ئې یو سړې اولیږلو د راطلب کولو دپاره چه کله هغه حاضره شوه نو رسول الله ﷺ د هغې نه تپوس اوکړو چه تا په دې غوښه کښې زهر ګډ کړې دی؟ هغې اووې تاسو ته چا خبر درکړو نو رسول الله ﷺ هغه ذراع طرف ته اشاره اوفرمائیله کوم چه د هغوی لاس کښې وو چا ماته دې خبرې راکړې دې، په دې اوریدلو باندې هغې اعتراف اوکړو، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو ستا مقصود په دې سره څۀ وو؟ هغې جواب ورکړو چه ما دا سوچ اوکړو چه که دې واقعی د الله پاک نبی وی نو دۀ ته به هیڅ نقصان نه رسیږی او که په حقیقت کښې نبی نه دې (نو ښه ده مړ به شی او خلاص به شو ترې نه) رسول الله ﷺ دې جواب اوریدلو سره معافی اوکړه، او بیا روستو د باب په آخری حدیث کښې دی ﴿ فمات بشر بن البراء بن معرور ﴾

[۴۵۱۱]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْدَتْ لَهُ يَهُودِيَّةٌ بِخَيْبَرَ شَاةً مَصْلِيَّةً، نَحْوَ حَدِيثِ جَابِرٍ، قَالَ: فَمَاتَ بِشْرُ بْنُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُورٍ الْأَنْصَارِيُّ، فَأَرْسَلَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ: مَا حَمَلَكِ عَلَى الَّذِي صَنَعْتِ؟ فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ جَابِرٍ، فَأَمَرَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُتِلَتْ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَمْرَ الْحِجَامَةِ.

د ابوسلمه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوې یهودنړې ښځې نبی علیه السلام ته زهر الوده ګډ په خیبرکښې دتحفې په طور ورولیږلو، باقی دجابر دحدیث په شان دې لیکن په دې کښې دا اضافه ده چه ددې غوښې دخوړولو په وجه بشربن براء بن معرور انصاری صحابی مړشو، بیانبی علیه السلام دغه ښځه را اوغوښتله اوتپوس ئې ورنه وکړو چه داکار دې ولې کولو؟باقی دجابر د روایت په شان دې لیکن په دې روایت کښې داهم دې چه نبی علیه السلام ددې دقتل کولوحکم وکړو اوقتل کړې شوه اودښکرلګولو معامله ئې نه ده بیان کړې.

قوله: عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْدَتْ لَهُ يَهُودِيَّةٌ بِخَيْبَرَ شَاةً مَصْلِيَّةً، نَحْوَ حَدِيثِ جَابِرٍ...الخ،، چونکه د دې خوراک په خوړونکو کښې بشر بن براء بن معرور انصاری صحابی هم وو هغه د دې زهرو په اثر سره وفات شو نو بیا رسول الله ﷺ هغه یهودیه قصاصا قتل کړه، په روایت کښې راځی راوی وائی ﴿ فَمَا زِلْتُ أَعْرِفُهَا فِي لَهَوَاتِ رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم ﴾ چه د دې زهریله غوښې اثر به رسول الله ﷺ په خپل حلق کښې همیشه محسوس کولو، لهواتو جمع ده د لهات د حلق په بالکل اخیر کښې چه کومه د غوښې وړه شان ټکړه زوړنده وی چه هغې ته تالو وائی. او روستو په یو روایت کښې دا هم دی چه رسول الله ﷺ د هغې د زهرو د اثر نه د بچ کیدو دپاره علاجا د خپلو اوږې نزدې ښکر هم لګولې وو، دلته په دې باب کښې د ابوداؤد په بعض نسخو کښې څو مبارکې روایات زائد دی کوم چه د بذل المجهود په حاشیه باندې لیکلې شوې دی په هغې کښې په یو روایت کښې دا دې:

[1]: انظر حديث رقم (۴۵۰۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲۲) (حسن صحيح)

ثم قال في وجعه الذي مات فيه..الخ.

[۴۵۱۲]()حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ، وَلَا يَأْكُلُ الصَّدَقَةَ"، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبَلُ الْهَدِيَّةَ، وَلَا يَأْكُلُ الصَّدَقَةَ، زَادَ: فَأَهْدَتْ لَهُ يَهُودِيَّةٌ بِخَيْبَرَ شَاةً مَصْلِيَّةً سَمَّتْهَا، فَأَكَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا وَأَكَلَ الْقَوْمُ، فَقَالَ: ارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ فَإِنَّهَا أَخْبَرَتْنِي أَنَّهَا مَسْمُومَةٌ، فَمَاتَ بِشْرُ بْنُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُورٍ الْأَنْصَارِيُّ، فَأَرْسَلَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ: مَا حَمَلَكِ عَلَى الَّذِي صَنَعْتِ؟ قَالَتْ: إِنْ كُنْتَ نَبِيًّا لَمْ يَضُرَّكَ الَّذِي صَنَعْتُ وَإِنْ كُنْتَ مَلِكًا أَرَحْتُ النَّاسَ مِنْكَ، فَأَمَرَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُتِلَتْ، ثُمَّ قَالَ فِي وَجَعِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ: مَا زِلْتُ أَجِدُ مِنَ الْأَكْلَةِ الَّتِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ، فَهَذَا أَوَانُ قَطَعَتْ أَبْهَرِي.

ابوهریره رضی الله عنه وائی چه رسول الله ﷺ به هدیه قبلوله او صدقه به ئې نه خوړله، او همدې سند سره په یو بل مقام کښې د ابوهریره رضی الله عنه د ذکر نه بغیر صرف د ابوسلمه رضی الله عنه نه روایت دې هغه وائی چه: رسول الله ﷺ به هدیه قبلوله او صدقه به ئې نه خوړله، په هغې کښې دومره اضافه ده چه نبی کریم ﷺ ته یوې یهودی ښځې یوه وریت کړې شوې چیلې په تحفه کښې راولیږه، چه په هغې کښې هغې زهر ملاؤ کړې وو، رسول الله ﷺ دهغې نه خوراک اوکړو او خلقو هم اوخوړلو، بیا نبی کریم ﷺ خلقو ته اوفرمائیل: خپل لاسونه بند کړئ، دې (غوښې) ماته اووئیل چه دې کښې زهر دی، بیا بشر بن براء بن معرور انصاری مړ شو، نو نبی کریم ﷺ دغه یهودنړه ښځه راؤغوښتله، ورته ئې اوفرمائیل: په داسې کولو باندې تاسو څه خیز راضی کړې یئ؟ هغې اووئیل: که تاسو پیغمبر یئ نو کوم څه چه ما کړی دی هغه تاسو ته نقصان نه شي در رسولې، اوکه تاسو بادشاه یئ نو ما خلقو ته د ستاسو نه نجات ورکړو، نو رسول الله ﷺ حکم اوکړو نو هغه ښځه قتل کړې شوه، بیا نبی کریم ﷺ دخپل دغه تکلیف باره کښې اوفرمائیل په کوم کښې چه دهغوی ﷺ وفات اوشو چه ما به برابر د خیبر په دې خوراک کښې اثر محسوسولو، تر دې پورې چه اوس هغه وخت راغې چه دې زما د شا رګ کټ کړو.

[۴۵۱۳]()حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ أُمَّ مُبَشِّرٍ، قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ "مَا يُتَّهَمُ بِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَإِنِّي لَا أَتَّهِمُ بِابْنِي شَيْئًا إِلَّا الشَّاةَ الْمَسْمُومَةَ الَّتِي أَكَلَ مَعَكَ بِخَيْبَرَ، وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَأَنَا لَا أَتَّهِمُ بِنَفْسِي إِلَّا ذَلِكَ، فَهَذَا أَوَانُ قَطَعَتْ أَبْهَرِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُبَّمَا حَدَّثَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ بِهَذَا الْحَدِيثِ مُرْسَلًا، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُبَّمَا حَدَّثَ بِهِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَذَكَرَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: أَنَّ مَعْمَرًا كَانَ يُحَدِّثُهُمْ بِالْحَدِيثِ مَرَّةً مُرْسَلًا فَيَكْتُبُونَهُ وَيُحَدِّثُهُمْ مَرَّةً بِهِ فَيُسْنِدُهُ فَيَكْتُبُونَهُ وَكُلٌّ صَحِيحٌ عِنْدَنَا، قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: فَلَمَّا قَدِمَ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَلَى مَعْمَرٍ، أَسْنَدَ لَهُ مَعْمَرٌ أَحَادِيثَ كَانَ يُوقِفُهَا.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۹/۲) (حسن صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۹، ۱۹۸۱۵، ۱۸۳۵۸، ۱۸۳۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸/۶) (صحيح)

کعب بن مالک رضی الله عنه روایت کوی چه ام بشر رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته په هغه مرض کښې په کوم کښې چه هغوی ﷺ وفات شو اووئیل: اې دالله رسوله ﷺ! ستاسو شک دڅه څیز دې؟ زما د ځوی په سلسله کښې زما شک خو په هغه د زهرو ملاؤ شوی چیلئ باندې دې کوم چه هغه تاسو سره په خیبر کښې خوړلې وه، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: دځان باره کښې هم زما شک په همدغه باندې دې، او اوس هغه وخت راغلې دې چه هغې زما د شا رګ کټ کړې دې. ابوداؤد وائی: عبدالرزاق کله دا حدیث د معمر نه، معمر د زهری نه، زهری د نبی کریم ﷺ نه مرسلاً روایت کړې دې او کله معمر دا د زهری نه او زهری د عبدالرحمن بن کعب بن مالک په واسطه بیان کړې دې، او عبدالرزاق ذکر کړی دی چه معمر دا حدیث دهغوی نه کله مرسلاً روایت کولو نوهغه به لیکلو او کله به ئې مسنداً روایت کولو نو هم به ئې لیکلو، او زمونږ په نزد دواړه صحیح دی. عبدالرزاق وائی: کله چه ابن مبارک د معمر خواته راغې نو معمر هغه ټول احادیث کوم چه به هغوی موقوفاً روایت کول هغوی نه ئې متصلاً روایت کړل.

یعنی د بشر بن البراء مور د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضره شوه د رسول اللهﷺ په مرض الوفاة کښې او تپوس ئې اوکړو چه تاسو د دې بیمارئ په باره کښې څه خیال کوئ؟ زه خو د خپل ځوی په باره کښې هم دا خیال کوم چه په هغه کښې د هم هغه زهریله غوښې اثر دې کومه چه هغوی تاسو سره خوړلې وه نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه زما هم د خپل ځان په باره کښې هم دا خیال دې او بس دا زما د شه رګ د انقطاع وخت دې، په صحیح بخاری کښې هم په کتاب المغازی کښې باب مرضی النبی ﷺ ووفاته کښې د دې مضمون روایت دې:

﴿ قَالَتْ عَائِشَةُ ، رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا ، كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ يَا عَائِشَةُ مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ فَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السَّمِّ ﴾.

[۴۵۱۴]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا رَبَاحٌ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أُمِّهِ أُمِّ مُبَشِّرٍ، قَالَ أَبُو سَعِيدٍ بْنُ الْأَعْرَابِيِّ: كَذَا قَالَ: عَنْ أُمِّهِ، وَالصَّوَابُ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ مُبَشِّرٍ، دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مَخْلَدِ بْنِ خَالِدٍ، نَحْوَ حَدِيثِ جَابِرٍ، قَالَ: فَمَاتَ بِشْرُ بْنُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُورٍ، فَأَرْسَلَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ، فَقَالَ: مَا حَمَلَكِ عَلَى الَّذِي صَنَعْتِ؟، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ جَابِرٍ، فَأَمَرَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُتِلَتْ، وَلَمْ يَذْكُرِ الْحِجَامَةَ.

د ام بشر رضی الله عنها نه روایت دې چه هغه نبی کریم ﷺ ته راغله بیا راوی د مخلد بن خالد دحدیث مفهوم هغه شان ذکرکړو څنګه چه د جابر په روایت کښې دی، په هغې کښې دی چه بشر بن براء بن معرور مړ شو نو نبی کریم ﷺ یهودنړه ښځه راؤغوښتله او تپوس ئې ترې اوکړو: دا په داسې کولو ته کوم څیز راضې کړې وې؟ بیا راوی هغه خبرې ذکرکړې کومې چه د جابر په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ حکم اوکړو او هغه قتل کړې شوه، خو هغوی د ښکر لګولو ذکر اونه کړو.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۳۹، ۱۸۳۵۸) (صحيح)

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :

د مصنف رحمه الله غرض په دې احاديثو سره دې مسئلې لره بيانول دی کومه چه په ترجمة الباب کښې ذکر ده چه که يو سړې په چا باندې زهر اوخکی يا اوخوری او هغه مړ شی نو په دې صورت کښې قصاص شته يا نه؟ په دې مسئله کښې مذاهب په بذل المجهود کښې د امام خطابی رحمه الله نه دا نقل کړې شوې دی چه که يو سړې د چا په خوراک کښې زهر ګډ کړی او هغه ئې اوخوری او د خوړلو نه پس مړ شی نو د امام مالک رحمه الله په نزد په دې کښې هر صورت باندې قصاص دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد دا ده چه که زهر ګډولو سره په هغه اوڅکی يا اوخوی بغير د وينا نه نو په دې صورت کښې خو قصاص دې او که په خوراک کښې زهر ګډولو سره د هغه مخې ته کيږدی او دا او نه وائی چه ته دا اوخوره بلکه هغه پخپله خوراک څکاک اوکړی او مړ شی نو په دې صورت کښې قصاص نشته، دا د امام شافعی رحمه الله قول دې، او که په زوره پرې اوڅکي نو په دې صورت کښې د امام شافعی رحمه الله په نزد هم قصاص متعين دې او د امام ابوحنيفه رحمه الله مسلک دا دې چه صرف د څکولو په صورت کښې خو پرې قصاص نشته خو د ايجار په صورت کښې به پرې ديت واجب وی يعنی چالره څملؤلو سره د هغه په حلق کښې زهر واچوی نو بيا ديت شته ګيني نشته، په بدائع کښې هم د احنافو مذهب هم دا ليکلې شوې دې چه که يو سړې د چا مخې ته په خوراک يا څکاک کښې زهر ګډولو سره کيږدی او بل سړې ئې خپله په خپل لاس باندې اوخوری يا اوڅکی، نو په دې صورت کښې ديت نشته بلکه تعزير او تاديب دې، او که د ايجار صورت اختيار کړی نو په دې کښې به ديت واجب وی، پس حاصل دا شو چه د امام مالک رحمه الله په نزد په دې مسئله کښې مطلقا قصاص دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د اکراه په صورت کښې خو قصاص دې او بغير د اکراه نه دوه صورتونه دی يو دا چه د هغه مخې ته کيږدی او څه او نه وائی نو په دې صورت کښې قصاص نشته او که مخې ته ږدلو سره ورته د خوراک يا څکاک امر اوکړی نو په دې صورت کښې د هغوی يو قول دې چه قصاص به واجب وی، په دويم قول کښې نشته، او د احنافو په نزد قصاص خو په هيڅ صورت کښې نشته، او د عرض په صورت کښې صرف تعزير دې او د ايجار په صورت کښې د هغوی په نزد ديت دې.

په حديث الباب کښې چونکه قصاص اخستل ذکر شوې دی کوم چه د احنافو د مسلک خلاف دې بلکه د شوافعو د مسلک هم خلاف دې څکه چه د هغوی په نزد هم قصاص د اکراه په صورت کښې دې غالبا هم په دې وجه باندې امام خطابی د دې دا جواب ورکړې دې چه په دې رواياتو کښې چه په کومو کښې قصاص مذکور دې په هغې کښې اختلاف او اضطراب دې او په بعضو کښې انقطاع، او دويم جواب دا کيدې شی چه دلته د دې يهوديه قتل قصاصا نه وو بلکه تعزيرا وو....

حديث انس رضي الله عنه اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

..........

## بَاب مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ أَوْ مَثَّلَ بِهِ أَيُقَادُ مِنْهُ

**باب: څوک چه خپل غلام قتل کړي یا ترې اندام پریکړي نو آیا قصاص به ترې اخستلې شي؟**

یعنی کوم سړې چه خپل غلام قتل کړي یا د هغه یو اندام ضائع نو په دې کښ قصاص شته یا نه؟

[۴۵۱۵](١) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ، وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ".

د سمره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چاچه خپل غلام قتل کړو نو مونږ به هغه لره قتل کوواو څوک چه دخپل غلام غوږ پوزه وغیره پریکړي نومونږ دده سره همدغه عمل کوو.

**قوله:** ﴿ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ » ﴾

### د حدیث شرح او د مذاهب ائمه تفصیل:

د جدع معنی ده پوزه یا غوږ پریکول، او زیات تر د دې استعمال په قطع الانف کښ کیږي، رسول الله ﷺ فرمائي چه کوم سړې خپل غلام قتل کړي مونږ به هغه قتل کړو او چا چه د خپل غلام پوزه پرې کړه مونږ به د هغه پوزه پرې کړو،

د غلام او د هغه د مالک ترمینځځ قصاص چه د غلام دې د مولې نه قصاص واخستلې شی لکه چه په دې حدیث کښ دی داسې په ائمه اربعه کښ د چا په نزد هم نشته، خو بعض علماء کرام د دې قائل دی لکه سفیان ثوری، قال الثوری اذا قتل عبده او عبد غیره قتل به کذا فی البذل عن الخطابی.....(٢)

د احنافو په نزد خو دا حکم یعنی ترک دقصاص دخپل غلام باره کښې دې خوکه غلام دبل چا دې نو په حر او عبدغیر په مینځ کښې احناف دقصاص قائل دی.(٣) که خپل غلام وی اوکه د بل چا وی، خو دلته په په حدیث کښ خپله د مالک او د هغه د غلام ترمینځه د قصاص ثبوت دې کومه چه د ائمه اربعه خلاف دې.

### د جمهورو او ائمه اربعه د طرف نه د حدیث الباب توجیه:

د دې تاویل دا کولې شی چه دا په زجر او توبیخ باندې محمول دې (٤) چه خلق د دې اقدام

---

(١): سنن الترمذي/الديات ١٨ (١٤١٤)، سنن النسائي/القسامة ٦ (٤٧٤٠)، ٧ (٤٧٤٣)، ١٢ (٤٧٥٧)، سنن ابن ماجه/الديات ٢٣ (٢٦٦٣)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠/٥، ١١، ١٢، ١٨)، دي/الديات ٧ (٢٤٠٣) (ضعيف)

(٢) او اصل په خطابی کښ د دې نه پس دا دی: وقد اختلف عنه (اي عن الثوري) في ذلك وحكي انه قال مثل قول ابي حنيفة واصحابه)

(٣) یعنی قصاص فی النفس او قصاص فی مادون النفس بین الحر والعبد د دې احناف هم قائل نه دی ففي الهداية ٥٥٣/٤ ولا قصاص بين الرجل والمراءة فيما دون النفس ولا بين الحر والعبد ولا بين العبدين (اي فيما دون النفس)

(٤) علامه سندی فرمائي کوم تاویل او توجیه چه شارحین کوی چه په دې لفظ سره مقصود......له

همت اونکړې شي لکه د شارب خمر په باره کښې چه راغې چه هغه دې په پنځم ځل قتل کړې شي، او بل تاويل د دې حديث دا کړې شوې دې چه د دې عبد نه مراد خپل آزاد کړده دې يعنى کوم چه مخکښې د هغه عبد وو لکه په آيت کريمه کښې دى : ﴿ والذين يتوفون منكم ويذرون ازواجا ﴾ په دې آيت کريمه کښې په کنډې زنانه باندې د خاوند د وفات نه پس هم د زوج اطلاق کړې شوې دې يعنى د ماکان په اعتبار سره، او يو جواب د نسخ ورکړې شوې دې چه دا حديث د سمره منسوخ دې، او په دې حديث کښې د قتل نه پس دويم جزء د جدع دې اول يعنى قتل دا خو شو قصاص فى النفس او ثانى يعنى جدع دا شو قصاص فيما دون النفس، په دې دويم جزء کښې د علماء کرامو اتفاق دې چه قصاص فيما دون النفس بين العبد والحر مطلقا نشته که هغه خپل عبد وى او که عبد د غير وى. او که د بعض علماء کرامو اختلاف دې هم نو صرف په جزء اول يعنى قصاص فى النفس کښې، د بعضو نه مراد سفيان ثورى رحمه الله دې لکه چه مخکښې تير شو، هم په دې وجه بعض علماء کرامو وئيلې دى چه هر کله دا حديث د جزء ثانى په اعتبار سره منسوخ دې نو د جزء اول په اعتبار سره هم منسوخ دې، لما ثبتا ثبتا معا فلما نسخا نسخا معا (كذا فى البذل عن الخطابى) امام ترمذى رحمه الله د حديث الباب نه پس فرمائى : هذا حديث حسن غريب وقد ذهب بعض أهل العلم من التابعين منهم إبراهيم النخعي إلى هذا وقال بعض أهل العلم منهم الحسن البصري و عطاء بن أبي رباح ليس بين الحر والعبد قصاص في النفس ولا فيما دون النفس وهو قول أحمد و إسحق وقال بعضهم إذا قتل عبده لا يقتل به وإذا قتل عبد غيره قتل به وهو قول سفيان الثوري اهـ امام ترمذى رحمه الله په دې حديث باندې عمل د ابراهيم النخعى رحمه الله ذکر کړې دې او د ثورى مذهب ئې د احنافو موافق ليکلې دې په خلاف د خطابى چه هغوى په دې باندې عمل د ثورى ليکلې دې او د نخعى مذهب ئې د احنافو موافق ليکلې دې خو د خطابى نه هيره شوه چه د سفيان ثورى په دې کښې دوه قوله دى پس کيدې شى چه د نخعى نه هم دوه روايتونه وى لکه د سفيان ثورى په شان، والله تعالى اعلم.

[۴۵۱۶] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ خَصَى عَبْدَهُ خَصَيْنَاهُ، ثُمَّ ذَكَرَ مِثْلَ حَدِيثِ شُعْبَةَ، وَحَمَّادٍ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ هِشَامٍ، مِثْلَ حَدِيثِ مُعَاذٍ.

---

۲..... زجر او توبيخ ده د هغې نه خو دا مطلب دې چه د دې لفظ نه سوا د زجر نه بله معنى مراد نه ده خکه چه بيا خو به هغه لفظ مهمل شى او نه ئې دا مطلب دې چه دا لفظ مستعمل خو په معنى حقيقى کښې دې خو مقصود زجر دې خکه چه د دې خو به گويا مطلب دا شى چه مصلحة کذب جائز دې بلکه د دې توجيه مطلب دا دې چه دا لفظ د مقام سره مناسب يعنى معنى مجازى کښې مستعمل دې مثلا مطلق سزا او سخت لفظ استعمال کړې شوې دى د زجر او توبيخ دپاره اهـ..... ډيره غوره تشريح ده فلله دره..... يو ځل حضرت شيخ وئيلې وو چه ما د خپل پلار مخکښې د يو حديث په باره کښې دا اووې چه دا خو په تغليظ باندې محمول دې نو شيخ فرمائى چه زما پلار په دې باندې ډير زيات غصه شو او وې فرمائيل چه د تغليظ توجيه په اخبار کښې نه چليږى)

[۱]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۴۵۸۶) (ضعيف)

د قتاده ﷺ نه روایت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي:چاچه خپل غلام خصي کړو نو مونږبه ده لره خصي کړواوباقي روایت ئې دحماد اودشعبه د روایت په شان بیان کړو، امام ابوداؤد فرمائي اوهمدارنګې دا روایت ابوداؤد الطیالسي دهشام نه د معاذ دحدیث په شان بیان کړې دې.

د ائمه ثلاث استدلال کوم چه مطلقا د قصاص بين الحر والعبد قائل نه دی د دې آیت کریمه نه دې : كتب عليكم القصاص فى القتلى الحر بالحر والعبد بالعبد.... او د احنافو د طرف نه د دې جواب دا دې تخصيص الشئ بالذكر لا ينفى الحكم عما عداه....

[٤٥١٧]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، بِإِسْنَادِ شُعْبَةَ مِثْلَهُ، زَادَ: ثُمَّ إِنَّ الْحَسَنَ نَسِيَ هَذَا الْحَدِيثَ، فَكَانَ يَقُولُ: لَا يُقْتَلُ حُرٌّ بِعَبْدٍ.

قتاده دمخکني روايت په شان روايت دنبي ﷺ نه بيان کړې دې مګرددې اضافي سره اوبيا داحديث ددې حديث دراوی حسن نه هيرشوي دي اوهغه ووئيل چه آزاد به دغلام به بدل کښې نشي قتل کولې.

په روستو روايت کښ دا دی ﴿ ثُمَّ إِنَّ الْحَسَنَ نَسِيَ هَذَا الْحَدِيثَ فَكَانَ يَقُولُ « لاَ يُقْتَلُ حُرٌّ بِعَبْدٍ »﴾ قتاده کوم چه د حسن بصری رحمه الله شاګرد دې هغوی فرمائي چه زمونږ استاد د دې حديث د بيانولو نه پس هير کړو، پس هغوی به فرمائيل چه لا يقتل حر بعبد... امام خطابی رحمه الله فرمائي چه دا ضروری نه ده بلکه کيدې شی چه د هغوی په نزد حديث موؤل وی او په زجر او توبيخ باندې محمول وی، ځکه چه جمهور وائی يا به ئې بل څه تاويل کولو اهـ والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٥١٨]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: "لَا يُقَادُ الْحُرُّ بِالْعَبْدِ".

حسن وئيلی دی چه اصيل دغلام په بدل کښې نشي قصاص کولې.

[٤٥١٩]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ تَسْنِيمٍ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، أَخْبَرَنَا سَوَّارٌ أَبُو حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ مُسْتَصْرِخٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: جَارِيَةٌ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ: وَيْحَكَ مَا لَكَ؟ قَالَ: شَرًّا أَبْصَرَ لِسَيِّدِهِ جَارِيَةً لَهُ فَغَارَ فَجَبَّ مَذَاكِيرَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَيَّ بِالرَّجُلِ، فَطُلِبَ فَلَمْ يُقْدَرْ عَلَيْهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اذْهَبْ فَأَنْتَ حُرٌّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ عَلَى مَنْ نُصْرَتِي؟ قَالَ: عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ، أَوْ قَالَ: كُلِّ مُسْلِمٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الَّذِي عُتِقَ كَانَ اسْمُهُ رَوْحُ بْنُ دِينَارٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: الَّذِي جَبَّهُ زِنْبَاعٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا زِنْبَاعٌ أَبُو رَوْحٍ كَانَ مَوْلَى الْعَبْدِ.

عمرو بن شعيب دخپل پلار نه اوهغه دده دنيکه روايت کوی فرمائي چه نبی ﷺ ته يو کس په چغه راغې اووئې وئيل چه زما يوه وينځه وه اې دالله رسوله ، نبی ﷺ ورته اوفرمائيل هلاک شي دادرباندې څه وشول هغه ووئيل ډير بد وشول زما دمالک يوه وينځه وه ماهغه وليدله نوهغه دغيرت په وجه باندې زما اندام مخصوصه پريکړو، نبی ﷺ اوفرمائيل دده

¹: وانظر حديث رقم: (٤٥١٥)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٦) (صحيح)
²: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤٥١٥)، (تحفة الأشراف: ١٨٥٣٦) (صحيح)
³: سنن ابن ماجه/الديات ٢٩ (٢٦٨٠)، (تحفة الأشراف: ٨٧١٦، ٤٥٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٨٢، ٢٢٥) (حسن)

مالک را اوغواړئ هغه تلاش کړې شو لیکن پیدا نشو بیا نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ته آزاد شوې ده عرض وکړو اې دالله رسوله که چرې زما مالک په زوربانديٍ مابیسا غلام کړي نوزما امداد به څوک کوي؟نبی ﷺ اوفرمائیل هریو مسلمان یا هریومومن به ستا امداد کوي.

**مضمون الحديث :**

**قوله:**﴿عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مُسْتَصْرِخٌ إِلَى النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَ جَارِيَةٌ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ « وَيْحَكَ مَا لَكَ ». قَالَ شَرًّا أَبْصَرَ لِسَيِّدِهِ جَارِيَةً لَهُ فَغَارَ فَجَبَّ مَذَاكِيرَهُ الخ ﴾ یعنی یو سړې په چغو وهلو سره رسول الله ﷺ ته راغلو، او دا ئې وئیل جارية له یا رسول الله ﷺ ! چه د هغه وینځه یا رسول الله ﷺ...... یعنی د شدت تکلیف د وجې نه ئې پوره جمله ادا نه کړې شوه بس هم دومره ئې اووې چه د هغه وینځه، رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل خوار شې څه چل درباندې شوې دې؟ یعنی وړاندې خبره هم اوکړه کنه، په دې باندې هغه اووې چه ډیر بد اوشو ما د خپل مالک وینځه لیدلې وه چه په هغې باندې هغه ته غیرت ورغلو او زما ذکر هغه پرې کړو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل هغه سړې دې ما ته راوستلې شی، هغه تلاش کړې شو خو ملاؤ نه شو رسول الله ﷺ هغه غلام ته اووې ته لاړ شه ته آزاد ئې، هغه عرض اوکړو زما حمایت او امداد به څوک کوی یعنی که زما مالک ما اونیسی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ستا مدد په هر مسلمان باندې واجب دې.

په بذل کښې دی چه دا روایت په ابن ماجه کښې هم شته او په هغې کښې د دې چغې وهونکی غلام جواب دا ذکر شوې دې. ﴿ سیدی رانی اقبل جارية له فجب مذاکیری ﴾ او د ابوداؤد په بعض نسخو کښې دی چه د دې غلام دمولی نوم زنباع دې ابوروح، او په حاشیه د بذل کښې د ابن الجوزی د تلقیح نه نقل دی چه د دې غلام نوم سندر دې.

## بَابُ الْقَسَامَةِ

### بابد د قسامت بیان

### د قسامة په باره کښې مباحث اربعه :

دلته څلور بحثونه دی:

۱: د لفظ قسامة لغوی او شرعی معنی.

۲: د قسامت مشروعیت او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف.

۳: د قسامت کیفیت او طریقه.

۴: القصاص بالقسامة یعنی د قسامة نه د قصاص ثبوت هم کیدې شی یا نه. یا صرف دیت ثابتیږی.

**بحث اول : د قسامه لغوی او شرعی معنی**

وئیلې شوې دی چه قسامة مصدر دې په معنی د قسم، او وئیلې شوې دی چه دا مصدر دې، یقال اقسم یقسم قسامة، او د دې اطلاق په هغه جماعت باندې هم کیږی کوم چه قسمونه خوری، د امام الحرمین نه نقل دی چه قسامت د فقهاء کرامو په نزد خو نوم دې د آیمان، او

د اهل لغت په نزد د قسم خورو د جماعت، او شرعا قسامت نوم دې د هغه قسمونو کوم چه اولياء مقتول خوری په استحقاق د دم باندې (هذا عند الجمهور) يا د هغه قسمونو کوم چه مدعی عليهم خوری په نفی د قتل باندې (علی قول الحنفية).

## دويم بحث : د قسامت مشروعيت او اختلاف العلماء

قسامت په هغه امورو کښې دې کوم چه به د جاهليت په زمانه کښې موندلې شو او بيا اسلام هم دا برقرار اوساتل، ابن عبدالبر فرمائی : کانت فی الجاهلية فاقرها النبیﷺ علی ما کانت عليه فی الجاهلية. رواه عبدالرزاق..... او په صحيح بخاری کښې دی د ابن عباسؓ نه روايت دې چه په جاهليت کښې اولا چه کوم قسامت موندلې شوې وو هغه په مونږ بنو هاشم کښې موندلې شوې وو. کان رجل من بنی هاشم استاجره رجل من قريش من فخذ اخری الی اخر القصة امام بخاری په دې باندې عنوان قائم کړې دې ﴿القسامة فی الجاهلية﴾ او دا دې نه مخکښې باب دې ﴿باب ايام الجاهلية﴾ او دا دواړه ابواب د ابواب المناقب په ضمن کښې دی او د دې نه روستو بيا امام بخاریؒ د کتاب الحدود نه پس د کتاب الديات په ضمن کښې دوباره د کتاب القسامة باب قائم کړې دې

چه په هغې کښې هغوی په اسلام کښې د رسول اللهﷺ په زمانه کښې چه کوم قسامة پيښ شوې وو هغه ذکر فرمائيلې دې، او امام نسائی د کتاب البيوع نه پس متصلا د کتاب القسامة والقود والديات ذکر کړې دې او د هغې په شروع کښې ئې هم دا د ابن عباسؓ والا روايت د قسامة فی الجاهليت ذکر کړو، د دې نه پس ئې د قسامة دويم باب قائم کړو چه په هغې کښې ئې د يهود خيبر د قسامت ذکر اوکړو چه د قسامت فی الجاهلية والا قصه مونږ سره په ابوداؤد او ترمذی کښې نشته.

قاضی عياض فرمائی چه قسامة په اصولو د شرع کښې يو اصل دې، تقريبا ټول علماء کرام صحابه او تابعين د دې قائل دی اگر چه د دې په کيفيت کښې اختلاف دې، خو بعض علماء کرام د دې قائل نه دی لکه سالم او سليمان بن يسار، قتاده او ابن عليه او امام بخاری او د عمر بن عبدالعزيز نه په دې کښې دوه روايتونه دی او ابن رشد هم دا خبره ليکلې ده او د دې نه پس هغوی ليکی چه د جمهور علماء کرامو مستدل هغه حديث دې کوم چه د حويصه او محيصه د قصې نه ثابت دې.

وهو حديث متفق عليه صحته من اهل الحديث الا انهم مختلفون فی الفاظه او د دې نه پس ليکی : او دويمه ډله کومه چه د دې منکره ده هغوی وائی چه قسامة د شريعت د اصول مجمع عليها خلاف دې او بيا هغوی هغه ذکر کړل (کما فی الاوجزه/۵۱۸)

## د قسامة په باره کښې د امام بخاریؒ مسلک :

حضرت شيخ په حاشيه د لامع الدراری او په الابواب والترجم کښې ليکی چه قاضی عياض چه دا کومه خبره اوفرمائيله چه امام بخاریؒ د قسامة قائل نه دې، هم دغه شان د ابن المنير او علامه کرمانی په کلام کښې هم ده، او علامه قسطلانی د کتاب القسامة په شروع کښې هم داسې فرمائيلی دی خو په آخر باب کښې ئې په هغه چا باندې رد کړې دې چه وائی

امام بخاری رحمه الله د قسامة قائل نه دي، هم دغه شان حافظ رحمه الله هم دا خبره فرمائيلي ده چه دا وئيل چه امام بخاری رحمه الله د نفس قسامت قائل نه دي صحيح نه ده، د نفس قسامة خو هغوی قائل دی خو د قصاص بالقسامة قائل نه دی، او د دې خبرې هم قائل دی چه شروع د قسم دې د مدعی نه وی بلکه په دې کښې د هغوی رائې دا ده چه په دې مسئله کښې روايات مختلف دی په قصه د انصارو کښې. يعنی د بعضو نه معلوميږی ابتداء بالايمان بالمدعين، او د بعض نه ابتداء بالايمان بالمدعی عليهم، لهذا د دې اختلاف په صورت کښې هغوی امر متفق عليه اختيار کړې دې يعنی اليمين على المدعی عليه (¹) (والبينة على المدعی) الی اخر ما ذکر...
او هم دا خبره علامه عينی رحمه الله هم فرمائيلي ده چه امام بخاری رحمه الله د قصاص بالقسامة منکر دي نه د اصل قسامة، او حضرت شيخ فرمائی چه هم دا رائې زما د عمر بن عبدالعزيز په باره کښې هم ده چه هغوی هم د قصاص بالقسامة منکر دې نه د مطلق قسامت.

**بحث ثالث:**

**د قسامت کيفيت او طريقه او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف:**

او د احنافو او د جمهورو دليل او منشاء د اختلاف دا مِّن حيث الفقه يو اهم بحث دې، د حافظ په کلام کښې پورته تير شو چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د انصارو او د خيبر د يهودو ترمينځه چه د قسامة کومه قصه پيښه شوې وه په هغې کښې روايات مختلف دی، هغه اختلاف هم دا دې چه رسول الله ﷺ د قسم شروع د انصارو نه کوم چه مدعيين وو اوکړه او که د يهودو نه کوم چه مدعی عليهم وو؟ پس امام ابوداؤد رحمه الله دلته دوه ابواب قائم کړې دی او په دواړو کښې ئې د سهل بن ابی حثمه او د رافع بن خديج رضی الله عنهما حديث ذکر فرمائيلي دې، د اول باب حديث په طريق د يحيى بن سعيد عن بشير بن يسار. دې په دې طريق کښې خو شروع د قسم د مدعين نه ده پس د هغې الفاظ دا دی: ﴿« يُقْسِمُ خَمْسُونَ مِنْكُمْ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَيُدْفَعُ بِرُمَّتِهِ ». قَالُوا أَمْرٌ لَمْ نَشْهَدْهُ كَيْفَ نَحْلِفُ قَالَ « فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ »﴾ يعنی رسول الله ﷺ انصارو ته اوفرمائيل چه ستاسو نه دې پنځوس کسان قسم اوکړی په يهودو کښې په يو کس باندې نو بيا به هغه سرې پوره تاسو ته حواله کولې شی. انصارو عرض اوکړو چه مونږ څنګه قسم خوړلې شو چه مونږ د قتل مشاهده نه ده کړې، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بيا دې د يهودو نه پنځوس کسان قسم خوړلو تاسو د دې قسم خوړل د تکليف نه بری کړی (د قصې تکميل به مونږ بيا ذکر کوو) او په دويم باب کښې مصنف رحمه الله دا حديث په طريق د ﴿سعيد بن عبيد عن بشير بن يسار﴾ ذکر کړې دې کوم چه د دې اول روايت خلاف دې په هغې کښې داسې دی چه کله انصار د رسول الله ﷺ خدمت ته راورسيدل او دا د قتل واقعه ئې هغوی ته بيان کړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: « تَأْتُونِي بِالْبَيِّنَةِ عَلَى مَنْ قَتَلَ ». قَالُوا مَا لَنَا بَيِّنَةٌ. قَالَ « فَيَحْلِفُونَ لَكُمْ ». قَالُوا لاَ نَرْضَى بِأَيْمَانِ الْيَهُودِ﴾ اوګورئ په دې کښې انصار کوم چه مدعين وو د هغوی نه رسول الله ﷺ د بينة مطالبه کړې

¹) ګويا کومه رائې چه د احنافو ده په دې کښې هم هغې لره هغوی اختيار کړې ده.

ده، چه کله هغوی د بینة د پیش کولو نه عذر اوکړو نو بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اوس به یهود قسمونه خوری الی آخر القصة....... دا دوه مختلف روایتونه دی د یحیی بن سعید او د سعید بن عبید، په هغوی کښې جمهورو د یحیی بن سعید روایت اخستلې دې او احنافو د سعید بن عبید روایت لره، او امام بخاری رحمه الله په باب القسامة کښې هم دا دویم روایت ذکر فرمائیلې دې، هم په دې وجه شراح وائی چه امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې د احنافو موافقت کړې دې، هم دغه شان په نسائی کښې یو روایت دې د ﴿عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده﴾ په طریق باندې چه په هغې کښې داسې دی: ﴿فقال رسول الله صلى الله عليه و سلم: أقم شاهدين على من قتله أدفعه إليكم برمته قال يا رسول الله ومن أين أصيب شاهدين﴾ حافظ ابن القیم د مختصر سنن ابی داؤد په شرح تهذیب السنن کښې د جمهورو د طرف نه جواب ورکولو سره لیکلې دی: قَالَ النَّسَائِيُّ : لَا نَعْلَم أَحَدًا تَابَعَ عَمْرو بْن شُعَيْب عَلَى هَذِهِ الرِّوَايَة , وَلَا سَعِيد بْن عُبَيْد عَلَى رِوَايَته عَنْ بَشِير بْن يَسَار، والله تعالى اعلم. وَقَالَ مُسْلِم : رِوَايَة سَعِيد بْن عُبَيْد غَلَط وَيَحْيَى بْن سَعِيد أَحْفَظ مِنْه...... (خو پورته تاسو کتلی دی چه امام بخاری رحمه الله د قسامة په باره کښې د سعید بن عبید روایت اخستلې دې، یعنی کوم چه د اصل مسئلې محل دې هلته، او د یحیی بن سعید روایت هم اګر چه هغوی ذکر کړې دې خو په بل مقام کښې یعنی په ابواب الجزیة کښې....... (پس ابن المنیر فرمائی چه امام بخاری رحمه الله د یحیی بن سعید والا طریق، په باب القسامة کښې قصدا نه دې ذکر کړې چه څوک په مسئله د قسامة کښې ددې نه استدلال اونکړی) د دې نه پس حافظ ابن القیم رحمه الله په دې دواړو مختلف روایتونو کښې د امام بیهقی د طرف نه تطبیق داسې ورکړې دې د یحیی بن سعید روایت لره اصل منلو سره چه ممکنه ده د سعید بن عبید روایت کښې د بینه نه مراد د هغې متبادر معنی وی یعنی ګواه بلکه د دې نه دې مراد ایمان المدعین وی (١) چه د هغې تفسیر او بیان د یحیی بن سعید په روایت کښې راغلو. او یا دې داسې اوئیلې شی چه د سعید بن عبید په روایت کښې د بینة نه متبادر معنی مراد دی خو چه کله هغوی د بینة نه کیدو عذر پیش کړو نو رسول الله ﷺ په هغوی باندې ایمان پیش کړو لکه څنګه چه د یحیی بن سعید په روایت کښې دی (د دې دویمې توجیه حاصل دا شو چه په دې دواړو روایتونو کښې اختصار واقع شوې دې او واقعه دا ده چه د رسول الله ﷺ د طرف نه دا دواړه څیزونه موندلې شوې وو او د مجموعه روایتین نه هم دا ثابتیږی چه که د مقتول اولیاء سره که ګواهان نه وی نو د هغوی نه به قسمونه اخستلې شی، وهذا هو مسلک الجمهور)

ځان پوهه کړه چه د علماء کرامو یو جماعت لکه چه په بحث ثانی کښې تیر شو د قسامة بالکل انکار کړې دې په دې وینا چه دا د مجمع علیها اصولو خلاف دې او په هغه اصول کښې یو مجمع علیه دا هم دې ﴿البينة على المدعى واليمين على المدعى عليه﴾ احنافو چه کوم صورت د قسامة اختیار کړې دې په هغې کښې کم از کم د دې اصل مخالفت نشته

(١) څکه چه په مسئله د قسامة کښې ایمان د مدعین د بینة قائم مقام وی)

هغه طریقه د دې د مخالفت نه محفوظ ده، لهذا د احنافو مسلک په دې کښې معتدل شو، فتامل وتدبر ولاتکن من المستعجلین.

وړاندې په روایت کښې دی چه صحابه کرامو ﷺ چه کله رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه د دې یهودو د قسمونو څه اعتبار دې دوی خو به دروغ قسمونه اوخوری نو د هغې نه پس دا دی : ﴿ فَوَدَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ –صلی الله علیه وسلم– مِنْ قِبَلِه ﴾ چه کله انصارو د یهودو د قسمونو په باره کښې دا اوئیل چه هغه ناقابل اعتبار دی نو اوس مقدمه خارج شوه ځکه چه انصارو ته هم دغه دوه اختیارات حاصل وو (علی مسلک الجمهور) چه یا خو دې هغوی خپله قسمونه اوخوری او یا دې بیا د مدعی علیهم نه قسمونه واخستلې شی، خو هغوی دې دواړو ته تیار نه شو لهذا مقدمه خارج شوه.... خو چونکه هغوی غمژن وو د قتل په وجه باندې نو رسول الله ﷺ جبرا لخاطرهم یعنی د هغوی د زړهٔ ساتلو دپاره او د اختلاف د ختمولو دپاره او د اصلاح ذات البین دپاره د خپل طرف نه سل اوښان په دیت کښې انصارو ته ورکړل.

### د من عنده او من ابل الصدقة توجیه :

په یو روایت کښې خو دی : ﴿ من عنده ﴾ او په یو کښې دی ﴿ من ابل الصدقة ﴾ په دواړو روایتونو کښې جمع داسې کړې شوې ده چه رسول الله ﷺ هغه اوښان د زکوة اوښانو نه څه په بیع واخستل (اشتراها من ابل الصدقة بمال دفعه من عنده) او یا دې داسې اوئیلې شی د ﴿من عنده ﴾ نه مراد ذاتی مال نه دې بلکه د دې نه بیت المال مراد دې چه د هغې انتظام د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کښې وو په مصالحو کښې د خرچ کولو دپاره. (تحفة)

د دې کلې اختلافاتو د پیژندګلو نه پس اوس تاسو د جمهور علماء کرامو او د احنافو ترمینځه د قسامة په پوره صورت باندې ځان پوهه کړئ، صاحب هدایه فرمائی چه کله یو قتیل په یو محله کښې بیا موندلې شی (چه په هغه کښې د قتل وغیره اثر او نخښه وی) او قاتل معلوم نه وی نو په هغه اهل محله کښې دې د پنځوس کسانو نه قسم واخستلې شی چه د هغې انتخاب به د مقتول ولی کوی هغوی دې داسې قسم اوخوری ﴿بالله ماقتلناه ولا علمنا قاتلا ﴾ چه کله هغوی دا قسم اوخوری نو په هغوی باندې به د دیت فیصله اوکړې شی، او امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د هغوی د قسم خوړلو نه پس به په هغوی باندې دیت واجب نه وی ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وو ﴿ تبرئکم یهود بایمانها ﴾ او مونږ وایو چه رسول الله ﷺ د دیت او قسامة ترمینځه جمع فرمائیلې وه لکه چه په حدیث د سهل کښې دی او د رسول الله ﷺ دا ارشاد ﴿ تبرئکم یهود ﴾ محمول دې زمونږ په نزد په ابراء عن القصاص باندې، یعنی د یهود به په قسم خوړلو سره به تاسو د قصاص دمطالبې نه بری کړی نه د دیت نه، او بیا وړاندې صاحب هدایه لیکی چه په دې پنځوسو کښې چه کوم سړې د قسم خوړلو نه انکار اوکړی نو هغه به قید کولې شی تردې چه قسم اوخوری. اهـ

او د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاث په نزد د قسامة صورت دا دې چه اول دې دا اوکتلې شی چه د دواړو دلو ترمینځه لوث شته یا نه؟ د لوث مطلب دا دې چه هلته یو داسې قرینه

موندلې کيږي کوم چه د مدعين په صدق باندې دلالت کوي چه د هغوی دا خيال صحيح دې چه قاتلان به هم دا خلق وی، مثلا عداوت د هغوی دواړو ترمينځه، پس که لوث نه وی نو بيا خو د دې دعوی او مقدمې حکم هم هغه دې کوم چه د نورو دعوو وی او که مدعی بينة پيش کړی نو د هغه په حق کښ به فيصله کولې شی والا فالقول قول المنکر.... خو که د هغوی ترمينځه دشمنی او لوث وی نو په دې صورت کښ به اول د دم اولياء يعنی د مدعين نه د پنځوس کسانو نه قسم اخستلې شی، که هغوی قسمونه اوخوری نو دهغوی په حق کښ (۱) به د ديت فيصله اوکړې شی او که هغوی د قسم خوړلو نه انکار اوکړی نو بيا به د مدعی عليهم نه قسمونه اخستلې شی او د قسمونو خوړلو نه پس به هغوی بری شی، متن ابی شجاع کوم چه په فقه شافعی کښ دې په هغې کښ د قسامت په باره کښ صرف دومره دی چه کله د دعوی د دم سره لوث موندلې شی چه په هغې سره د صدق د مدعی گمان غالب وی نو مدعی دې پنځوس قسمونه اوخوری په دې باندې به هغه د ديت مستحق شی او که هلته لوث اوموندلې شی چه په هغې کښ د صدق گمان غالب وی نو مدعی دې پنځوس قسمونه اوخوری او په دې باندې به هغه د ديت مستحق شی او که هلته لوث نه وی نو بيا به يمين په مدعی عليه باندې راځی، او د شرح اقناع ۱۷۲/۲ نه معلوميږی چه د شوافعو په نزد که د مقتول وارث کوم چه مدعی دې هغه يو وی نو ځانله دې هغه پنځوس قسمونه اوخوری او که څو وارثان دی نو دا پنځوس قسمونه به په هغوی باندې تقسيم کړې شی د هغوی د حق وراثت په اعتبار سره، تفصيلات دې خپله د هغوی په کتابونو کښ اوکتلې شی، او امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې کښ د علماء کرامو اختلاف دې چه په قسامة کښ به قسمونه په چا باندې راځی د امام مالک او شافعی او جمهورو په نزد به د مقتول وارثان قسمونه خوری يعنی مدعين، او د هغوی په پنځوس قسمونو خوړلو سره به د هغوی حق ثابت شی، الی آخر ما ذکر من الکلام علی الدلائل..... د تير عبارت نه دا معلومه شوه چه د قسامة دپاره د ائمه ثلاث په نزد د لوث کيدل ضروری دی صرف په يو محله کښ د مقتول موندلې کيدل سبب د قسامت د هغوی په نزد نه دې، په خلاف د احنافو چه د هغوی په نزد صرف د قتيل موندلې کيدل کافی دی او په دې کښ د هغوی په نزد د لوث حاجت نشته. د دې نه علاوه د احنافو او د جمهورو په مذهب کښ دوه اختلافات نور هم ښکاره دی اول دا چه د جمهورو په نزد د قسم شروع د مدعين نه ده په ځائې د بينة او د احنافو په نزد د مدعين سره د بينة نه کيدو په صورت کښ يمين صرف په مدعی عليهم باندې راځی او دويم اختلاف دا چه د مدعی عليهم د قسمونو نه پس د جمهورو په نزد ديت ساقطيږی او د احنافو په نزد واجب وی، اول خبره د جمهورو خلاف قياس ده او دويمه خبره د احنافو خلاف قياس ده، خو مقصد د دواړو ډلو اتباع د حديث ده. شکر الله تعالی مساعيهم.

---

(۱) مطلقا د امام شافعی رحمه الله په نزد علي القول الاصح او د امام مالک او امام احمد رحمهما الله په نزد د قتل خطاء په صورت کښ او د قتل عمد په صورت کښ د قصاص فيصله په دې شرط چه معين سړی باندې دعوی وی)

### بحث رابع : یعنی په قسامت سره قصاص ثابتیږی یا نه؟

پس امام مالک او احمد او شافعی رحمهم الله په قدیم قول کښې د قصاص بالقسامة قائل دی چه کله دعوی د قتل عمد وی، او احناف او امام شافعی رحمه الله فی الجدید وهو الاصح عندهم.... د قسامة د قصاص قائل نه دی صرف د وجوب د دیت قائل دی، کذاقال النووی ۲/۵۵او ابن رشد فرمائی : وهل یجب بها الدیة او الدم او رفع مجرد الدعوی؟ فقال مالک واحمد یستحق بها الدم فی العمد والدیة فی الخطاء، وقال الشافعی والثوری وجماعة تستحق بها الدیة فقط، وقال بعض الکوفیین لا یستحق بها الا دفع الدعوی. دوی هم دغه خبره فرمائی چه د امام مالک او د امام احمد په نزد په قسامة سره د قصاص ثبوت راځی د قتل عمد په صورت کښې یعنی که د قتل عمد دعوی وی، او د قتل خطاء په صورت کښې د دیت ثبوت دې، او د امام شافعی او یو جماعت په نزد صرف د دیت ثبوت وی، او دریم قول په دې کښې د بعض کوفیانو دې (غیر احناف) چه قسامة یعنی د مدعی علیهم د قسمونو په ذریعه صرف دعوی د مدعی رفع کیږی، په هغې سره نه د قصاص ثبوت راځی او نه د دیت. اهـ

اوس احادیث الباب اوګورئ!

[۴۵۲۰] (۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ: "أَنَّ مُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُودٍ، وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ انْطَلَقَا قِبَلَ خَيْبَرَ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ، فَقُتِلَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَهْلٍ فَاتَّهَمُوا الْيَهُودَ، فَجَاءَ أَخُوهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ، وَابْنَا عَمِّهِ حُوَيِّصَةُ وَمُحَيِّصَةُ فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَكَلَّمَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فِي أَمْرِ أَخِيهِ وَهُوَ أَصْغَرُهُمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْكُبْرَ الْكُبْرَ، أَوْ قَالَ: لِيَبْدَإِ الْأَكْبَرُ، فَتَكَلَّمَا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُقْسِمُ خَمْسُونَ مِنْكُمْ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَيُدْفَعُ بِرُمَّتِهِ، قَالُوا: أَمْرٌ لَمْ نَشْهَدْهُ كَيْفَ نَحْلِفُ؟ قَالَ: فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ قَوْمٌ كُفَّارٌ، قَالَ: فَوَدَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِهِ، قَالَ سَهْلٌ: دَخَلْتُ مِرْبَدًا لَهُمْ يَوْمًا فَرَكَضَتْنِي نَاقَةٌ مِنْ تِلْكَ الْإِبِلِ رَكْضَةً بِرِجْلِهَا"، قَالَ حَمَّادٌ هَذَا أَوْ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ وَمَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ فِيهِ أَتَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا وَتَسْتَحِقُّونَ دَمَ صَاحِبِكُمْ أَوْ قَاتِلِكُمْ، وَلَمْ يَذْكُرْ بِشْرٌ دَمًا، وَقَالَ عَبْدَةُ: عَنْ يَحْيَى، كَمَا قَالَ حَمَّادٌ، وَرَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ يَحْيَى، فَبَدَأَ بِقَوْلِهِ: تُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ بِخَمْسِينَ يَمِينًا يَحْلِفُونَ، وَلَمْ يَذْكُرِ الِاسْتِحْقَاقَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهَذَا وَهْمٌ مِنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ.

د سهل بن ابی خیثمه اورافع بن خدیج رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه محیصه بن مسعود اوعبدالله بن سهل د خیبر طرف ته روان شول اوپه نخل مقام کښې جداشول نوعبدالله بن سهل قتل کړې شو اوالزام ئې په یهودیانو ولګولو د عبدالرحمن بن سهل ورور اودده دتره ځامن چه حریصه اومحیصه نبی علیه السلام ته راغلل اوعبدالرحمن دخپل ورور په باره کښې خبرې وکړې اوهغه پدرې کښې کشر وو ،نبی علیه السلام اوفرمائیل کوم یو مشرکس دې خبرې

(۱): صحیح البخاري/الصلح ۷ (۲۷۰۲)، الجزیة ۱۲ (۳۱۷۳)، الأدب ۸۹ (۶۱۴۳)، الدیات ۲۲ (۶۸۹۸)، الأحکام ۳۸ (۷۱۹۲)، صحیح مسلم/القسامة ۱ (۱۶۶۹)، سنن الترمذي/الدیات ۲۳ (۱۴۴۲)، سنن النسائي/القسامة ۲ (۴۷۱۴)، سنن ابن ماجه/الدیات ۲۸ (۲۶۷۷)، (تحفة الأشراف: ۴۶۴۴، ۱۵۵۳۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القسامة ۱ (۱)، مسند احمد (۲/۴، ۳)، سنن الدارمي/الدیات ۲ (۲۳۹۸) (صحیح)

وکړي یعنی ده ته ئي په اشارة ووئیل چه مشرخبرو کولوته پریږده ،بیا دوی دواړودخپل سرې په باره کښې خبرې وکړې نبی ﷺ ورته اوفرمائیل په تاسوکښې به پنځوس کسان ددوی دسرې په باره کښې قسم کوي بیابه دې خپل څښتن تاسوته حواله کړې هغوی ووئیل چه مونږ خودقتل کولوپه وخت کښې نه وو لیدلې نوڅنګه قسم وکړو؟نبی ﷺ اوفرمائیل بیابه دیهودیانو پنځوس کسان قسم وکړي او ځان به درنه آزاد کړي دوی ووئیل چه اې دالله رسوله یهودیان خوکافران دي راوی وائی چه بیا نبی ﷺ دخپل طرف نه دوی ته دیست ورکړو سهل وائی چه یوه ورځ زه ددوی داوښانو تړلوځائي ته ورغلم اوهلته یو اوښ زه په لته ووهلم ، اوحماد هم دابیان یاددې په شان بیان کړې دې. إماما بوداود وائی چه داحدیث بشربن مفضل اومالک دیحي بن سعید نه نقل کړي دي په دې کښې دی چه نبی ﷺ اوفرمائیل ایا تاسوپنځوسو قسمونو کولوته تیاریې؟نودخپل قاتلی دوینې مستحق بشئ بشر په خپل روایت کښې ددم ذکرندي کړې ، بلکه دبشرنه علاوه نورو راویانودیحي نه دحمادپه شان روایت بیان کړې دې ، ابن عیینه خودیحي نه درسول الله ددې قول نه ابتداء کړې ده چه یهودیان به درته پنځوس قسمونه وکړي اوځان به درنه خلاص کړي اوهغه دوینو داستحقاق خبره نه ده ذکرکړې، امام ابوداؤد وائی چه داد ابن عیینه وهم دي.

**قوله:** ﴿ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ أَنَّ مُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُودٍ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ انْطَلَقَا قِبَلَ خَيْبَرَ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ فَقُتِلَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَهْلٍ الخ ﴾

سهل بن ابی حثمه او رافع بن خدیج رضی الله عنهما فرمائی چه محیصه بن مسعود او عبدالله بن سهل دا دواړه د مدینې طیبې نه خیبر ته لاړل، هلته یو باغ ته اورسیدل، هلته د تلو نه پس د یو بل نه جدا شو، بیا چه کوم ځائې کښې جدا شوې وو هلته راتلو سره محیصه خپل ملګری عبدالله بن سهل لره د لیدلو دپاره واپس راغلو نو او ئې کتل چه هغه د یوې کهجورې د اونې لاندې مړ پروت دې، او ښکاره خبره ده چه هلته د یهودو نه علاوه څوک قاتل کیدې شی لهذا د هغوی په باره کښې شک اوکړې شو پس د مقتول رور عبدالرحمن بن سهل او د هغوی دوه د ترهٔ ځامن حویصه او محیصه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، عبدالرحمن کوم چه د مقتول رور او ولی وو هغوی رسول الله ﷺ سره خبره شروع کړه، خو په عمر کښې دې د ټولو نه وړوکې وو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ﴿ الکبر الکبر ﴾ چه کوم په تاسو کښې مشر دې هغه رامخکښې کړئ، پس د هغه دواړو ملګرو په دې سلسله کښې د رسول الله ﷺ سره خبرې اوکړې، دلته دا سوال واردیږی چه د مقتول ولی او اصل مدعی خو عبدالرحمن دې لهذا دعوی او مطالبه د هغوی د طرف نه کیدل پکار وو په قاعده او ضابطه کښې، د دې جواب دا کړې شوې دې چه د رسول الله ﷺ مراد خو دا نه دې چه دعوی دې د منړ د طرف نه وی، دعوی خو به په اصل کښې د ولی د طرف نه وی، بلکه د هغوی مراد دا وو چه واقعه چه کومه پیښه شوې ده د دې صورت حال دې په تاسو کښې مشر بیان کړی، پس رسول الله ﷺ د پوره خبرې اوریدلو نه پس اوفرمائیل : ﴿ یقسم خمسون منکم الخ ﴾ چه په تاسو کښې دې پنځوس کسان قسم اوخوری، دا مضمون په بحث ثالث کښې تیر شوې دې،

دا پوره قصه پورته ذکر شوې ده، وړاندې په آخر د قصې کښې دا دی : ﴿ قَالَ سَهْلٌ دَخَلْتُ مِرْبَدًا لَهُمْ يَوْمًا فَرَكَضَتْنِي نَاقَةٌ مِنْ تِلْكَ الإِبِلِ رَكْضَةً بِرِجْلِهَا ﴾ سهل بن ابی حثمه راوی د حديث وائی چه زه يوه ورځ د اوښانو غوجل ته ننوتلم د يو ضرورت په وجه، نو په اوښو کښې چه کومې په ديت کښې ملاؤ شوې وې يوې اوښې ماته ډيره په زور لته راکړه، په ظاهر کښې د دې ذکر کولو نه مقصود دا دې چه ماته دا د قسامة قصه پوره طريقې سره ياده ده، دا يو خبره پاتې شوه نو دا ولې پريږدم.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ وَمَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ فِيهِ « أَتَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا ﴾ اول روايت د حماد بن زيد وو د يحيى بن سعيد نه، د هغه د روايت الفاظ نور وو او د دوی يعنی بشر او مالک الفاظ دا دی کوم چه ئې دلته ذکر کړی دی، اختلاف الفاظ لره بيانول مقصود دی، دا روايت لکه چه مخکښې تير شو د احنافو خلاف دې ځکه چه د دې نه معلوميږی چه ابتداء د يمين به د مدعين نه کيږی. په دې باندې تفصيلی کلام خو مخکښې تير شو، د دې يو جواب د احنافو د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه په دې باره کښې د رواياتو الفاظ مختلف دی په يو کښې دی ﴿ يقسم خمسون منكم ﴾ او په دې روايت کښې دی په استفهام سره ﴿ اتحلفون خمسين يمينا ﴾ حضرت فرمائی چه دا استفهام انکاری دې، او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه رسول الله ﷺ انصارو ته فرمائی چه ايا ستاسو دا خيال دې چه زه به صرف هم ستاسو نه قسمونه اخستلو سره ستاسو په حق کښې فيصله کوم، د هغه انصارو طرز کلام به داسې وو چه ګويا دا امر يقينی دې چه دا قتل يهودو کړې دې لهذا مونږ په خپله دعوی کښې رشتينی يو، او زمونږ حق دې د هغوی نه واخستلې شی په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آيا تاسو دا غواړئ چه مونږ صرف ستاسو نه قسمونه اخستلو سره ستاسو په حق کښې فيصله اوکړو په دې باندې هغوی بيدار شو چه نه داسې څنګه کيدې شی چه مونږ بغير د ليدلو نه قسمونه اوخورو. د دې نه پس رسول الله ﷺ کوم چه اصل حکم وو هغه بيان کړو چه هر کله تاسو سره بينة نشته نو بيا به د يهودو په قسمونو باندې فيصله کولې شی، په دې باندې هغه خلق تيار نه شو چه د هغوی قسمونه د اعتبار قابل نه دی، لهذا مقدمه خارج، خو بيا رسول الله ﷺ د انصارو د زړهٔ ساتلو دپاره د خپل طرف نه ديت ادا اوفرمائيلو دا جواب هلته هم راتلل پکار دی چرته چه مونږ په شروع کښې د احنافو دليل بيان کړې وو د دې نه پس مصنف رحمه الله يو بل اختلاف بيانوی :

**قوله:** ﴿ وَرَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ يَحْيَى فَبَدَأَ بِقَوْلِهِ « تُبَرِّئُكُمْ يَهُودُ بِخَمْسِينَ يَمِينًا يَحْلِفُونَ ». وَلَمْ يَذْكُرِ الاِسْتِحْقَاقَ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهَذَا وَهَمٌ مِنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ ﴾

د دې نه مخکښې هم مصنف رحمه الله د يحيى بن سعيد د شاګردانو اختلاف په الفاظو د حديث کښې بيان کړې دې کوم چه اوس نزدې تير شو، دلته د يحيى بن سعيد د يو بل شاګرد سفيان بن عيينة اختلاف بيانوی هغه دا چه د دې روايت سياق بالکل بدل دې، د هغوی په روايت کښې د شروع نه د ايمان يهود ذکر دې په ځائې د ايمان مدعين چه د هغې احناف قائل دی خو مصنف رحمه الله دې ته د ابن عيينة وهم وئيلې دې ځکه چه د ابن عيينة نه علاوه

باقي ټولو راويانو حماد بن زيد او بشر بن المفضل او مالک د دې خلاف روايت ذکر کړې دې او په حديث کښې د ايمان مدعين نه د کلام شروع ده، د هغې نه پس مصنف رحمه الله هم دا حديث په تفصيل سره د بشير بن يسار په طريق د ابو ليلى عن سهل بن ابى حثمه ذکر کړې دې چه په هغې کښې بعض الفاظ زائد هم دى پس په هغې کښې دى: ﴿خرجا الى خيبر من جهد اصابهم﴾ چه دا دواړه خيبر ته صرف د سيل دپاره نه وو تلى بلکه د څه ضرورت او مجبورئ د وجې نه تلى وو مثلاً فقر، او په دې کښې دى ﴿قد قتل وطرح فى فقير او عين﴾ چه عبدالله بن سهل د قتل کولو نه پس په يوه کنده يا د اوني نه ګير چاپيره چه د اوبو د اودرولو دپاره کوم حوض شان جوړولې شى په هغې کښې واچولې شو د راوى شک دې، او په دې کښې دا هم دى چه دا صحابى محيصه يهودو ته لاړو او هغوى ته ئې اووې ﴿انتم والله قتلتموه، قالوا والله ماقتلناه﴾ او دا هم پکښې دى ﴿فذهب محيصة ليتكلم﴾ چه د دې مقتول صحابى سره چه کوم صحابى په خيبر کښې وو يعنى محيصه هغه د رسول الله ﷺ سره په دې باره کښې خبرې شروع کړې، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿کبر کبر﴾ يعنى د مشر تعظيم کوه دا رسول الله ﷺ دوه کرته اوفرمائيل مطلب دا چه په کلام کولو کښې مشر مخکښې کړه، بيا په دې باندې د هغه مشر رور حويصه خبره شروع کړه خو د هغې نه په مخکښې روايت کښې دا تير شوى دى چه ابتداء د کلام عبدالرحمن بن سهل اوکړه، ولم يتعرض له فى البذل ولا فى عون المعبود، کيدې شى چه د عبدالرحمن نه پس محيصه خبره شروع کړې وى او هغه ته هم رسول الله ﷺ داسې فرمائيلې وى، او محيصه د عبدالرحمن نه پس په دې وجه رامخکښې شوې وى چه د اصل واقعې په وخت هم هغه موجود وو. والله تعالى اعلم ،،،،،، والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٥٢١] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ أَبِي لَيْلَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، هُوَ وَرِجَالٌ مِنْ كُبَرَاءِ قَوْمِهِ: "أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ، وَمُحَيِّصَةَ خَرَجَا إِلَى خَيْبَرَ مِنْ جَهْدٍ أَصَابَهُمْ، فَأُتِيَ مُحَيِّصَةُ فَأُخْبِرَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ قَدْ قُتِلَ وَطُرِحَ فِي فَقِيرٍ أَوْ عَيْنٍ، فَأَتَى يَهُودَ، فَقَالَ: أَنْتُمْ وَاللَّهِ قَتَلْتُمُوهُ، قَالُوا: وَاللَّهِ مَا قَتَلْنَاهُ، فَأَقْبَلَ حَتَّى قَدِمَ عَلَى قَوْمِهِ فَذَكَرَ لَهُمْ ذَلِكَ، ثُمَّ أَقْبَلَ هُوَ وَأَخُوهُ حُوَيِّصَةُ وَهُوَ أَكْبَرُ مِنْهُ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ، فَذَهَبَ مُحَيِّصَةُ لِيَتَكَلَّمَ وَهُوَ الَّذِي كَانَ بِخَيْبَرَ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَبِّرْ كَبِّرْ، يُرِيدُ السِّنَّ، فَتَكَلَّمَ حُوَيِّصَةُ ثُمَّ تَكَلَّمَ مُحَيِّصَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِمَّا أَنْ يَدُوا صَاحِبَكُمْ وَإِمَّا أَنْ يُؤْذَنُوا بِحَرْبٍ، فَكَتَبَ إِلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ، فَكَتَبُوا إِنَّا وَاللَّهِ مَا قَتَلْنَاهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحُوَيِّصَةَ وَمُحَيِّصَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ: أَتَحْلِفُونَ وَتَسْتَحِقُّونَ دَمَ صَاحِبِكُمْ؟ قَالُوا: لَا، قَالَ: فَتَحْلِفُ لَكُمْ يَهُودُ، قَالُوا: لَيْسُوا مُسْلِمِينَ، فَوَدَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ، فَبَعَثَ إِلَيْهِمْ مِائَةَ نَاقَةٍ حَتَّى أُدْخِلَتْ عَلَيْهِمُ الدَّارَ، قَالَ سَهْلٌ: لَقَدْ رَكَضَتْنِي مِنْهَا نَاقَةٌ حَمْرَاءُ".

دسهل بن ابى حثمة رضي الله عنه اودده په قوم کښې ديوڅو مشرانو نه روايت دې فرمائى چه عبدالله بن سهل او محيصه دڅه پريشانئ په وجه باندې دخيبر طرف ته روان شول محيصه

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٦، ٤٦٤٤، ١٥٥٩٢) (صحيح)

واپس راغي اوخلقو ته ئې اووئيل عبدالله بن سهل قتل کړې شوې دې او هغه ديوې کندې ياچيني خواته غورځولې شوې دې اوهغه بيا يهوديانو ته ورغی او ورته ئې اووئيل په الله قسم هم تاسو دې وژلې دې هغوی اووئيل په الله قسم چه مونږ نه دې وژلې نودې راروان شوتردې چه خپل قوم ته راورسيدو او ټوله واقعه ئې ورته بيان کړه بيا دې پخپله اووده بل ورور حويصه کوم چه دده نه مشر وو اوعبدالرحمن بن سهل لاړل محيصه ورغې چه خبرې وکړې اودا ددوی هغه ورور وو کوم چه په خيبر کښې اوسيدو رسول الله له ورته اووئيل چه مشر خبر کولوته پرېږده نوحويصه هم خبرې وکړې اومحيصه هم وکړې نبی ﷺ ورته اوفرمائيل دغه يهوديان دې ديت اداکړې يا دې جنګ ته تيار شي بيانبی ﷺ په دې سلسله کښې خط اوليکلو دوی دخط په جواب کښې دا اوليکل چه په الله قسم مونږ دې نه دې وژلې ، بيانبی ﷺ حويصه اومحيصه اوعبدالرحمن ته اووئيل ايا تاسوبه قسم وکړئ چه دخپل ورور دويني قصاص وکښئ هغوی عرض اوکړو چه نه ، بيانبی ﷺ اوفرمائيل يهوديان به تاسوته قسم اوکړي هغوی اووئيل يهوديان خومسلمانان نه دي بيانبی ﷺ دخپل طرف نه سل اوښان د ديت په طور باندې دوی ته ورکړل تردې چه دغه اوښان دوی ته ددوی کورونو ته ورسيدل سهل وئيلی دی په دغه اوښانو کښې يوې سرې اوښې زه په لته وهلی وم.

[٤٥٢٢]()حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا. ح حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ قَتَلَ بِالْقَسَامَةِ رَجُلًا مِنْ بَنِي نَصْرِ بْنِ مَالِكٍ بِبَحْرَةِ الرُّغَاءِ عَلَى شَطِّ لِيَّةِ الْبَحْرَةِ، قَالَ: الْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ مِنْهُمْ"، وَهَذَا لَفْظُ مَحْمُودٍ بِبَحْرَةٍ، أَقَامَهُ مَحْمُودٌ وَحْدَهُ عَلَى شَطِّ لِيَّةَ.

عمرو بن شعيب دنبی ﷺ نه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ په قسامت کښې يوکس په بحرة الرغاء مقام کښې دسمندر په غاړه قتل کړو دچاچه دقبيله بن نضر بن مالک سره تعلق وو، راوی وائی چه د قاتل اودمقتول دواړو تعلق ددې قبيلې سره وو اودا د محمود بن خالد د روايت الفاظ دې، د ببحرة لفظ صرف محمودوئيلې دې دلية البحر په غاړه باندې.

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عن ابيه عن جده عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ قَتَلَ بِالْقَسَامَةِ رَجُلاً مِنْ بَنِى نَصْرِ بْنِ مَالِكٍ بِبَحْرَةِ الرُّغَاءِ عَلَى شَطِّ لِيَّةِ الْبَحْرَةِ﴾

يعنی رسول الله ﷺ د قسامت په ذريعه يو سړې چه د قبيله نضر بن مالک نه وو په مقام بحرة الرغا کښې کوم چه د لية البحر طرف ته واقع دې قتل کړو، قاتل او مقتول دواړه د يوې قبيلې نه وو بحرة الرغاء د طائف په طرفونو کښې ليه ته نزدې د يو ځائې نوم دې، په بذل کښې د محمد بن اسحاق نه نقل کړې شوې دی چه رسول الله ﷺ د غزوه حنين نه په واپس کيدو باندې د طائف اراده فرمائيله نو هلته په لاره کښې ئې په بحر الرغاء کښې د يو سړي قصاص واخستلو.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١٧٣) (ضعيف)

﴿ وهذا لفظ محمود ﴾ د مصنف رحمه الله په دې حديث كښې دير استاذان دى د محمد نه علاوه خو مصنف رحمه الله فرمائى چه ﴿ على لية البحر ﴾ دا د محمود لفظ دې او نورو استاذانو لفظ د بحره نه دې ذكر كړې بلكه صرف ﴿ على شط ليه ﴾ ئې ذكر كړې دې.

په دې حديث كښې د قصاص بالقسامة ثبوت دې د كوم چه امام مالك او امام احمد دواړه قائل دى، د احنافو او د شوافعو د طرف نه دا جواب كيدې ى چه د دې واقعې تفصيل زمونږ په علم كښې نشته، كيدې شى چه دلته د قتل ظهور د بينة يا د قسامة نه پس د قاتل د اقرار نه پس شوې وى، كذافي البذل.

## بَابٌ فِي تَرْكِ الْقَوَدِ بِالْقَسَامَةِ

### باب: په قسامت كښې د قصاص پريخودلو بيان

دا ترجمة الباب صرف د احنافو او د امام شافعى رحمه الله د اصح قول مطابق دې څنګه چه په دې مسئلې كښې اختلاف اول بيان كړې شو.

[٤٥٢٣] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الصَّبَّاحِ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّائِيُّ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، زَعَمَ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ سَهْلُ بْنُ أَبِي حَثْمَةَ أَخْبَرَهُ: أَنَّ نَفَرًا مِنْ قَوْمِهِ انْطَلَقُوا إِلَى خَيْبَرَ فَتَفَرَّقُوا فِيهَا، فَوَجَدُوا أَحَدَهُمْ قَتِيلًا، فَقَالُوا لِلَّذِينَ وَجَدُوهُ عِنْدَهُمْ: قَتَلْتُمْ صَاحِبَنَا، فَقَالُوا: مَا قَتَلْنَاهُ وَلَا عَلِمْنَا قَاتِلًا، فَانْطَلَقْنَا إِلَى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَقَالَ لَهُمْ: "تَأْتُونِي بِالْبَيِّنَةِ عَلَى مَنْ قَتَلَ هَذَا"، قَالُوا: مَا لَنَا بَيِّنَةٌ، قَالَ: فَيَحْلِفُونَ لَكُمْ، قَالُوا: لَا نَرْضَى بِأَيْمَانِ الْيَهُودِ، فَكَرِهَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبْطِلَ دَمَهُ، فَوَدَاهُ مِائَةً مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ".

د بشير بن يسار رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه په انصارو كښې يو كس دچاچه سهل بن ابى حصمه نوم وو وئيلى دى چه دده دقوم څه كسان خيبر ته لاړل هلته چه ورسيدل نوجدا جدا شول اوبياهلته په دوى كښې يو كس قتل كړې شو په كوم ځاى كښې چه هغه مړ موندلې شوې وو نودهغه ځائې خلقونه دوى اووئيل چه دې تاسو قتل كړې دې هغوى اووئيل مونږ نه دې قتل كړې اونه مونږ دده د قاتل نه خبر يو، ددينه پس ټول خلق په دربار نبوي كښې حاضر شول ، راوى وائى چه نبى عليه السلام اوفرمائيل تاسوګواه پيشكړئ په هغه كس باندې چاچه دې وژلې دې دوى اووئيل زمونږ سره خوګواه موجود نه دې ، نبى عليه السلام اوفرمائيل بيابه هغوى تاسو ته قسمونه اوكړي دوى په جواب كښې لووئيل چه مونږ ديهوديانوپه قسم باندې نه راضى كيږو نبى عليه السلام دابده ګنړله چه ددغه كس وينه ضايع شي نود زكاة دمال نه ئې سل اوښان دده په ديت كښې وركړل.

**قوله:** ﴿ سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّائِيُّ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ زَعَمَ أَنَّ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ سَهْلُ بْنُ أَبِى حَثْمَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ نَفَرًا مِنْ قَوْمِهِ انْطَلَقُوا إِلَى خَيْبَرَ فَتَفَرَّقُوا فِيهَا الخ ﴾

د دې روايت په آخر كښې دى : ﴿ فَقَالَ لَهُمْ « تَأْتُونِى بِالْبَيِّنَةِ عَلَى مَنْ قَتَلَ هَذَا ». قَالُوا مَا لَنَا بَيِّنَةٌ. قَالَ « فَيَحْلِفُونَ لَكُمْ ». قَالُوا لاَ نَرْضَى بِأَيْمَانِ الْيَهُودِ. فَكَرِهَ نَبِىُّ اللَّهِ -صلى الله عليه

(١): انظر حديث رقم (٤٥٢٠)، (تحفة الأشراف: ٤٦٤٤، ١٥٥٣٦، ١٥٥٩٢) (صحيح)

وسلم- أَنْ يُبْطِلَ دَمَهُ فَوَدَاهُ مِائَةً مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ ﴾

د دې باب په روايت باندې کلام د اول باب د لاندې تير شوې دې، امام بخاري رحمه الله هم د سهل بن ابی حثمه دې حديث لره هم په دې الفاظو سره هم په دې طريق سره ذکر فرمائيلې دې او دا د احنافو د مسلک عين مطابق دې، جمهور چه د دې روايت کوم جواب ورکوی هغه په اول باب کښې تير شو.

[٤٥٢٤] (¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ رَاشِدٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ، حَدَّثَنَا عَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: أَصْبَحَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مَقْتُولًا بِخَيْبَرَ، فَانْطَلَقَ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: "لَكُمْ شَاهِدَانِ يَشْهَدَانِ عَلَى قَتْلِ صَاحِبِكُمْ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ أَحَدٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَإِنَّمَا هُمْ يَهُودُ وَقَدْ يَجْتَرِئُونَ عَلَى أَعْظَمَ مِنْ هَذَا، قَالَ: فَاخْتَارُوا مِنْهُمْ خَمْسِينَ فَاسْتَحْلِفُوهُمْ، فَأَبَوْا، فَوَدَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ".

د رافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه په انصارو کښې يوکس په خيبر کښې قتل کړې شو او وارثان ئې په درباري نبوي کښې حاضر شول او ټوله واقعه ئې بيان کړه نبی عليه السلام دوی ته اوفرمائيل ايا ستاسو سره دوه داسې ګواهان موجود شته څوک چه ستاسو ددې کس په وژلوباندې ګواهی ورکړي؟ هغوی عرض اوکړو اې دالله رسوله هلته خو په مسلمانانو کښې هيڅوک موجود نه وو اوهلته خو ټول يهوديان وو اوهغوی خوددې کار نه په لوئوکارونوباندې جرات کوي نبی عليه السلام اوفرمائيل تاسو په دوی کښې پنځوس کسان خوښ کړئ او قسم ورته ورکړئ مګر دوی انکار اوکړو بيانبی عليه السلام دده ديت دځپل طرف نه ورکړو.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ حَدَّثَنَا عَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ أَصْبَحَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ مَقْتُولاً بِخَيْبَرَ فَانْطَلَقَ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ « لَكُمْ شَاهِدَانِ يَشْهَدَانِ عَلَى قَتْلِ صَاحِبِكُمْ »...الخ﴾

په اول باب کښې د سهل بن ابی حثمه او د رافع بن خديج دواړو حديث په يو طريق او يو مضمون سره تير شوې دې او په دې باب کښې د دواړو احاديثو سند مختلف دې خو مضمون متحد، په دواړو کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدعين نه د بينة مطالبه فرمائيلې ده په پورته حديث کښې ﴿ من ابل الصدقة ﴾ وو او په دې دويم حديث کښې ﴿ من عنده ﴾ دې د دې اختلاف توجيه په اول باب کښې تيره شوې ده.

[٤٥٢٥] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بُجَيْدٍ، قَالَ: إِنَّ سَهْلًا وَاللَّهِ أَوْهَمَ الْحَدِيثَ، "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى يَهُودَ أَنَّهُ قَدْ وُجِدَ بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ قَتِيلٌ فَدُوهُ، فَكَتَبُوا يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ خَمْسِينَ يَمِينًا مَا قَتَلْنَاهُ وَلَا عَلِمْنَا قَاتِلًا، قَالَ: فَوَدَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ مِائَةَ نَاقَةٍ".

د عبد الرحمن بن بجيد رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه سهل په دې حديث کښې وهم کړې دې اصل خبره داده چه نبی عليه السلام يهوديانوته اوليکل چه په تاسوکښې يومړې موندلې شوې دې

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٦٤) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤٥٢٠)، (تحفة الأشراف: ٩٦٨٦) (منكر)

اوس به تاسو ددې مړي دیت ورکوئ ، دوی په جواب کښې اووئیل چه مونږ به پنځوس قسمونه اوکړو او اوبه وایو چه مونږ دې نه دې قتل کړې اونه مونږ دده قاتل پیژنو بیانبی ﷺ دده دیت دخپل طرف نه ادا کړو په یوروایت کښې دی چه سل اوښان ئې ورکړل.

**قوله:**﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بُجَيْدٍ قَالَ إِنَّ سَهْلاً وَاللَّهِ أَوْهَمَ الْحَدِيثَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَتَبَ إِلَى يَهُودَ « أَنَّهُ قَدْ وُجِدَ بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ قَتِيلٌ فَدُوهُ ». فَكَتَبُوا ......الخ ﴾

**د باب اول حديث ګوم چه د جمهورو مستدل دې د هغې وهم ګيدل :**

عبدالرحمن بن بجيد فرمائی چه والله بالتحقيق سهل بن ابی حثمه ته د حديث القسامة په بيان کښې وهم پيدا شوې دې (ځنګه چه هغوی بيان کړو يعنی شروع د قسم د مدعين نه داسې نه ده بلکه داسې ده) چه رسول الله ﷺ د (قتل د قصې د پيښيدو او د انصارو د دعوې قائميدلو نه پس) د خيبر يهودو ته اوليکل چه په تاسو کښې يو مقتول موندلې شوې دې لهٰذا د هغه ديت ادا کړئ، هغوی د دې په جواب کښې په پنځوس قسمونو سره دا مضمون راوليږلو ﴿ ما قتلناه وما علمنا قاتلا الخ ﴾ عبدالرحمن بن بجيد د اول باب حديث لره د کوم نه چه جمهور استدلال کوی وهم منی، د عبدالرحمن بن بجيد د قول نقل کونکو په سند کښې محمد بن ابراهيم دې، حافظ په اصابه کښې د محمد بن ابراهيم قول نقل کړې دې چه هغوی فرمائی ﴿ وما کان سهل بن ابی حثمة باکثر منه علما ولکنه کان اسن منه ﴾ اهـ چه سهل بن ابی حثمة زمونږ داستاد عبدالرحمن بن بجيد نه په علم کښې زيات نه وو خو دا ضرور وه چه هغه ترې نه په عمر کښې مشر وو، د عبدالرحمن په باره کښې په عون المعبود کښې د اصابه وغيره کتب رجال نه د هغوی د صحبت په باره کښې اختلاف نقل کړې شوې دې، بعض حضراتو د هغوی دپاره صحبت ثابت کړې دې او بعضو د تردد اظهار کړې دې، او ابن عبدالبر فرمائی : ﴿ ادرک النبی ﷺ ولم يسمع منه ما احسبه وفی صحبته نظر الا انه روی فمنهم من يقول ان حديثه مرسل وکان يذکر بالعلم ﴾ او حافظ منذری رحمه الله د امام شافعی رحمه الله جواب نقل کړو چه کله يو سائل د هغه نه تپوس اوکړو چه تاسو د ابن بجيد احاديث ولې نه اختياروئ نو هغوی جواب ورکړو چه د هغې حاصل دا دې چه د ابن بجيد په سماع کښې زمونږ تردد دې، که سماع ثابته نه وی نو د هغه حديث مرسل شو په خلاف د سهل بن ابی حثمه چه د هغوی صحبت او سماع دواړه معلوم دی. د دې نه پس مصنف رحمه الله په دې باب کښې يو بل حديث ذکر کړو.

[۴۵۲۶](۱)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رِجَالٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْيَهُودِ وَبَدَأَ بِهِمْ: يَحْلِفُ مِنْكُمْ خَمْسُونَ رَجُلًا، فَأَبَوْا، فَقَالَ لِلْأَنْصَارِ: اسْتَحِقُّوا، قَالُوا: نَحْلِفُ عَلَى الْغَيْبِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَجَعَلَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةً عَلَى يَهُودَ لِأَنَّهُ وُجِدَ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ".

عبدالرحمن اوسليمان بن يسار دانصاری حضراتونه روايت کوی فرمائی چه نبی ﷺ اول يهوديانوته اووئيل چه په تاسوکښې به پنځوس کسان قسمونه کوي هغوی انکار وکړو

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۸۸، ۱۵۶۹۱) (شاذ)

بیانبی ﷺ انصاروته اوفرمائیل تاسو خپل حق ثابت کړئ دوی په جواب کښې اوو‌ئیل ای دالله رسوله ایا مونږ دغیبو په خبره باندې قسمونه وکړو، بیانبی ﷺ دیهودیانو دطرف نه دوی ته دیت ادا کړو ځکه چه مرې دهغوی خواته موندلې شوې وو.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رِجَالٍ مِنَ الأَنْصَارِ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ لِلْيَهُودِ وَبَدَأَ بِهِمْ « يَحْلِفُ مِنْكُمْ خَمْسُونَ رَجُلاً » الحديث ﴾

پس معلومه شوه چه د دې باب ثانی په ټولو رواياتو کښې شروع د ايمان د يهودو نه ده.

## بَابُ يُقَادُ مِنَ الْقَاتِلِ

### بابد آیا قاتل چه څوک په کومه طریقه اوپه کومو څیزونو قتل کړې وی نودې به هم په داسې طریقه قتل کولې شی؟

او په يو نسخه کښې دی ﴿ ايقاد من القاتل بحجر او بمثل ما قتل ﴾ يقاد د قود نه اخستلې شوې دې په معنی د قصاص د دې دویمې نسخې نه معلومه شوه چه د مصنف رحمه الله غرض په دې باب سره قصاص بالمثل لره بیانول دی یعنی څنګه او په کومه آله چه قاتل قتل کړې دې په قصاص کښې قاتل هم هغه شان قتل کول چه د هغې جمهور قائل دی، په خلاف د احنافو چه د هغوی مسلک دا دې چه ﴿ لا قود الا بالسیف ﴾ دا د يو حديث مرفوع الفاظ دی کوم چه امام طحاوی رحمه الله روايت کړې دې په خپل سند سره د نعمان بن بشیر رضی الله عنهما نه واخرجه ابوداؤد والطیالسي ولفظه : لا قود الا بحديدة... كذا في البذل.

[٤٥٢٧] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ: "أَنَّ جَارِيَةً وُجِدَتْ قَدْ رُضَّ رَأْسُهَا بَيْنَ حَجَرَيْنِ، فَقِيلَ لَهَا: مَنْ فَعَلَ بِكِ هَذَا؟ أَفُلَانٌ أَفُلَانٌ؟ حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَتْ بِرَأْسِهَا، فَأُخِذَ الْيَهُودِيُّ فَاعْتَرَفَ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرَضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ".

د انس بن مالک رضی الله عنه نه مروي دي چه يوه جينۍ داسې اوموندې شوه چه دهغې سر ددوه ګټو په مينځ کښې چقولې شوې وو نودهغې نه معلومه کړې شوه چه ستا سره داسې چاکړې دي؟ ایافلانې فلانی کس تردې پورې چه دیو یهودي نوم ئې هم واغستو نوهغې په خپل سر باندې په اشارې کولوسره اووئیل ، بیا دا یهودي اونیولې شو او اقرارئې وکړو اونبی ﷺ ددې یهودي دسر چقولو حکم اوکړو.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسٍ أَنَّ جَارِيَةً وُجِدَتْ قَدْ رُضَّ رَأْسُهَا بَيْنَ حَجَرَيْنِ فَقِيلَ لَهَا مَنْ فَعَلَ بِكِ هَذَا أَفُلاَنٌ أَفُلاَنٌ حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَتْ بِرَأْسِهَا فَأُخِذَ الْيَهُودِيُّ فَاعْتَرَفَ فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– أَنْ يُرَضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ ﴾

### مضمون الحديث :

سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه يو جينۍ په لاره کښې داسې اوموندلې شوه چه د هغې سر د دوه

[1] ): صحيح البخاري/الوصايا ٥ (٢٧٤٦)، والطلاق ٢٤ (تعليقاً)، الديات ٤ (٦٨٧٦)، ٥ (٦٨٧٧)، ١٢ (٦٨٨٤)، صحيح مسلم/القسامة ٣ (١٦٧٢)، سنن الترمذي/الديات ٦ (١٣٩٤)، سنن النسائي/المحاربة ٧ (٤٠٤٩)، القسامة ٨ (٤٧٤٦)، سنن ابن ماجه/الديات ٢٤ (٢٦٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٣/٣، ١٨٣، ٢٠٣، ٢٦٧)، سنن الدارمي/الديات ٤ (٢٤٠٠) (صحيح)

کانړو ترمینځه میده کړې شوې وو، خو لا پکښې لږه سا باقي وه، رسول اللهﷺ ته د دې خبر ورکړې شو، رسول اللهﷺ هغې ته تشریف راوړلو او د څو خلقو نومونه ئې بیل بیل واخستل چه آیا فلانی ته قتل کړې ئې هغې د طاقت د نه کیدو په وجه باندې د سر په اشارې سره انکار کولو، تر دې چه رسول اللهﷺ د هغې مخې ته د یهودی نوم واخستلو نو د هغه په نوم باندې هغې اشاره اوکړه په او سره. د باب په یو حدیث کښې دی، ﴿کان علیها اوضاح﴾ د وضح جمع ده د سپینو زرو کالی ته وائی یعنی چا چه د چاندئ کالی اچولې وو، او دې یهودی دې جینئ لره د دې کالو په لالچ کښې وژلې وه، رسول اللهﷺ د دې یهودی په باره کښې هم دا فیصله اوفرمائیله چه هغه دې هم دغه شان قتل کړې شی څنګه چه هغه دا جینئ قتل کړې ده. ﴿فقتل بین حجرین﴾

## دې حدیث کښې دوه مسئلې :

د دې حدیث نه د قصاص بالمثل ثبوت ملاؤ شو لکه چه د ائمه ثلاث مسلک دې، لهذا دا حدیث د احنافو خلاف شو په دې لحاظ سره، او په یو بل لحاظ سره دا حدیث د امام ابوحنیفهؒ خلاف دې نه د صاحبین، لکه چه د علامه انور شاه صاحب په تقریر د ترمذی عرف الشذی کښې دی هغه دا چه کوم قتل په مثقل کبیر سره وی هغه د امام صاحب په نز دېه شبه عمد کښې داخل دې او د ائمه ثلاث او صاحبینو په نزد په قتل عمد کښې داخل دې.
پس د ائمه ثلاث او صاحبینو په نزد خو دا قتل قتل عمد دې چه په هغې کښې قصاص دې، او د امام صاحب په نزد دا قتل شبه عمد وو چه په هغې کښې دیت دې نه قصاص حال دا چه دلته قصاص واخستلې شو، د دې دواړو خبرو جواب د احنافو د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه د دې یهودی سره چه کومه معامله اوکړې شوه هغه تعزیرا او سیاسة ده، او د قتل شبه عمد والا اشکال جواب دا هم ورکړې شوې دې چه دې قاتل یهودی قطع طریق هم کړې وو لهذا په قطاع الطریق کښې شو، او په قطع طریق کښې د قتل سزا چه هغه هر څنګه وی قتل ده.

## یو دریمه مسئله :

د دې حدیث د بعض طرقو نه چونکه دا معلومیږی چه د دې یهودی د قتل صرف د جینئ په اقرار قتل باندې کړې شوې دې په دې وجه بعض مالکیانو د دې نه په دې استدلال کړې دې چه د قتل دثبوت دپاره صرف د مقتول اقرار کافی دې خو دا استدلال په لا علمئ باندې بنا دې ځکه چه د دې حدیث په بعض طرقو کښې تصریح ده د دې خبرې چه دې یهودی د قتل اقرار کړې وو، کذا فی تقریر شیخ الهند رحمه الله تعالی علی جامع الترمذی، او په بذل المجهود کښې دا دریمه مسئله او په دې کښې د مالکیانو اختلاف د هغې ذکر نه دې کړې شوې خو دا ده چه : ادعی بعض المالکیة ان زیادة قتادة هذه (د دې زیادت نه مراد اقرار د یهودی دې کوم چه د قتاده په روایت کښې ذکر شوی دی) غیر مقبولة قال الحافظ، ولا یخفی فساد هذه الدعوی فقتادة حافظ، زیادته مقبولة الخ.

[٤٥٢٨] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ: "أَنَّ يَهُودِيًّا قَتَلَ جَارِيَةً مِنَ الْأَنْصَارِ عَلَى حُلِيٍّ لَهَا ثُمَّ أَلْقَاهَا فِي قَلِيبٍ وَرَضَخَ رَأْسَهَا بِالْحِجَارَةِ، فَأُخِذَ فَأُتِيَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ حَتَّى يَمُوتَ، فَرُجِمَ حَتَّى مَاتَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ أَيُّوبَ نَحْوَهُ.

د انس بن مالک رضی الله عنه نه مروي دي چه يو يهودي په انصاروکښې يوه جينئ دهغې نه دهغې دزيوراتو داخستلو دپاره مړه کړه اوبيا ئې په يو کوهي کښې وغورځوله اوددې سرېې په کاڼرو باندې وچقولو بيا دغه کس اونيولې شو او نبی عليه السلام ته پيش کړې شو نبی عليه السلام دده درجسم کولوحکم اوکړو تردې چه مړ شي ، نو دې سنګسار کړې شو تردې چه مړ شو، امام ابوداؤدفرمائی دا روايت ابن جريج دايوب نه دمخکښې روايت په شان بيان کړې دې۔

حديث الباب الاول اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، والحديث الثاني اخرجه مسلم والنسائي، والحديث الثالث اخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

**تنبيه** : د باب دويم حديث دې ﴿ قال ابوداؤد : رواه ابن جريج عن ايوب نحوه ﴾ پورته په سند کښې داسې راغلې دی : عبدالرزاق عن معمر عن ايوب، د دې قال ابوداؤد نه دا په فهم کښې راځي چه ابن جريج براه راست د ايوب نه رويت کوی خنګه چه پورته په سند کښې معمر د ايوب نه روايت کوی، د حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې په دې باندې دا نقد کړې شوې دې چه د ابن جريج روايت په طحاوي او دارقطني کښې هم دې او هلته په سند کښې داسې دی : ابن جريج عن معمر عن ايوب، او هم دغه شان په صحيح مسلم کښې په روايت د محمد بن بکر عن ابن جريج، فالظاهر سقوط لفظ معمر من رواية ابی داؤد اهـ لهذا ابن جريج د عبدالرزاق عديل دې نه د معمر کما يتوهم من هذه العبارة.

[٤٥٢٩] (²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ جَدِّهِ أَنَسٍ: "أَنَّ جَارِيَةً كَانَ عَلَيْهَا أَوْضَاحٌ لَهَا فَرَضَخَ رَأْسَهَا يَهُودِيٌّ بِحَجَرٍ، فَدَخَلَ عَلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبِهَا رَمَقٌ، فَقَالَ لَهَا: مَنْ قَتَلَكِ؟ فُلَانٌ قَتَلَكِ؟ فَقَالَتْ: لَا بِرَأْسِهَا، قَالَ: مَنْ قَتَلَكِ؟ فُلَانٌ قَتَلَكِ؟ قَالَتْ: لَا بِرَأْسِهَا، قَالَ: فُلَانٌ قَتَلَكِ؟ قَالَتْ: نَعَمْ بِرَأْسِهَا، فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُتِلَ بَيْنَ حَجَرَيْنِ".

دانس بن مالک رضی الله عنه نه مروي دي چه په انصارو کښې يوې جينئ دسرو زرو کالي اغوستلي وو دا جينئ يو يهودي اونيوله او په کاڼرونې ددې سر اوچقولو بيانبی عليه السلام ددې جينئ خواته لاړو اوددې دژوند يوڅو لحې باقی وې نبی عليه السلام ورنه تپوس اوکړو ته چا وژلې يې ايافلانې وژلې يې هغې پخپل سر باندې په اشارې سره اووئيل چه نه. بيا ورنه نبی عليه السلام تپوس اوکړو ته چا وژلې يې ، ته چا وژلې يې، اودې جينئ به پخپل سر باندې په اشارې سره انکار کولو بيا ئې ورته په دريم ځل اووئيل ايا فلانی کس ته وژلې يې دې پخپل سرسره اشاره وکړه چه هو، بيانبی عليه السلام ددې جينئ دقاتل په باره کښې حکم اوکړو اوهغه ددوه ګټو په مينځ کښې اوچقولې شو.

---

¹): صحيح مسلم/ الحدود ٣ (١٦٧٢)، سنن النسائي/ المحاربة ٧ (٤٠٤٩)، (تحفة الأشراف: ٩٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٣/٣) (صحيح)

²): انظر حديث رقم :(٤٥٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٣١) (صحيح)

## بَابُ أَيُقَادُ الْمُسْلِمُ بِالْكَافِرِ

### باب: آیا مسلمان به د کافر په بدل کښې قصاص کولې شی؟

[۴۵۳۰] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ، قَالَ: انْطَلَقْتُ أَنَا وَالْأَشْتَرُ إِلَى عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَامِ، فَقُلْنَا: هَلْ عَهِدَ إِلَيْكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا لَمْ يَعْهَدْهُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً؟ قَالَ: لَا، إِلَّا مَا فِي كِتَابِي هَذَا، قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: فَأَخْرَجَ كِتَابًا، وَقَالَ أَحْمَدُ: كِتَابًا مِنْ قِرَابِ سَيْفِهِ، فَإِذَا فِيهِ: "الْمُؤْمِنُونَ تَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ وَيَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ أَلَا لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ، مَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا فَعَلَى نَفْسِهِ وَمَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا أَوْ آوَى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ"، قَالَ مُسَدَّدٌ: عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، فَأَخْرَجَ كِتَابًا.

دقیس بن عباد رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زه او اشتر دواړه علی بن ابی طالب رضی الله عنه ته لاړو اوهغه ته مو اووئیل ایا نبی علیه السلام ستا په حق کښې تاته کوم خاص حکم فرمائیلې وو کوم چه هغه دنورو خلقو په حق کښې نه وو فرمائیلې؟ هغه اووئیل نه مګرهغه کوم چه زماپه دې کتاب کښې دی او یو کتاب ئې راوویستلو احمدوئیلی دی چه دخپلې تورې دغلاف نه ئې راوویستلو او په هغه کښې دا لیکلې شوي وو دمومنانو وینې په خپل مینځ کښې یوبرابر دي ، اودوی دمسلمانانونه علاوه نورو خلقوته یو لاس دي اودوی ته دزمواري کولو به ادني مسلمان هم پابند وي اوخبردار مومن به دکافر په بدل کښې نشي وژلې اونه هغه څوک چه دهغه سره معاهده شوي وي دهغه دمعاهدې په دوران کښې ، څوک چه په دین کښې یونوې کار پیدا کړې نوددې ضرر به ده ته رسیږي ، او چاچه په دین کښې نوې کار پیدا کړو او پائي نوي کار پیدا اکونکي ته ځائې ورکړو نوپه ده باندې دالله تعالی اودفرشتو اودټولوخلقو لعنت دې، مسدد دابن ابی عروبه نه داسې نقل کړیدي چه یوکتاب ئې راوویستلو.

**قوله:﴿ عَنْ قَيْسِ بْنِ عَبَّادٍ قَالَ انْطَلَقْتُ أَنَا وَالْأَشْتَرُ إِلَى عَلِيٍّ رضی الله عنه فَقُلْنَا هَلْ عَهِدَ إِلَيْكَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- شَيْئًا لَمْ يَعْهَدْ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً قَالَ لاَ إِلاَّ مَا .....الخ ﴾**

**د ذمی قصاص د مسلمان نه او په هغې کښې د احنافو دلیل :**

د دې حدیث د شروع حصه د الدر المنضود په مقدمه کښې د کتابت حدیث په بحث کښې تیره شوې ده او آخری حصه : الْمُؤْمِنُونَ تَكَافَأُ دِمَاؤُهُم. دا په کتاب الجهاد باب فی السرية وعلى اهل العسکر کښې تیره شوې ده، د دې شرح هلته کتلې کیدې شی، او هلته دا هم تیر شوی دی چه ﴿ لا يقتل مومن بكافر ولا ذو عهد فى عهده ﴾ په مسئلة الباب کښې د احنافو دلیل دې، هغه دا چه د کافر ذمی په بدل کښې به مسلمان قتل کولې شی یا نه؟ د جمهورو په نزد به د ذمی قصاص د مسلمان نه نهٔ شی اخستلې په خلاف د احنافو ، د هغوی په نزد اخستلې شی، په مسئله د قصاص کښې د هغوی په نزد کافر ذمی او مسلمان دواړه برابر دی، په دې حدیث کښې دا هم دی ﴿ مَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا فَعَلَى نَفْسِهِ وَمَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا أَوْ آوَى مُحْدِثًا الخ ﴾ چه کوم سړې په دین کښې

(۱): سنن النسائي /القسامة ۵ (۴۷۳۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۲/۱) (صحيح)

يو نوې خبره جارى كړى يعنى بدعت نو د هغې وبال به هم په هغه باندې وى او كوم سړې چه يو بدعت جارى كړى يا د يو مبتدع حمايت او اعانت اوكړى نو په هغه باندې د الله پاک او د ملائكو او د ټولو انسانانو لعنت دې. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[٤٥٣١]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ عَلِيٍّ، زَادَ فِيهِ: وَيُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ وَيَرُدُّ مُشِدُّهُمْ عَلَى مُضْعِفِهِمْ وَمُتَسَرِّيهِمْ عَلَى قَاعِدِهِمْ.

عمرو بن شعيب د خپل پلار نه اوهغه دده دنيكه نه روايت كوى فرمائى چه رسول الله فرمائيلى دى او باقى حديث ئې دعيه د حديث په شان بيان كړو مګردديې اضافې سره چه پناه به وركولې شي پدوى كښې معمولې كس په تاسو باندې اودغنيمت په مال كښې د كمزورې اوزور ورځارولې والا برابروې او څوک چه دلښكرنه بهراوځي اوجنګ وكړي او څوک په لښكر كښې موجودوى (هغوى هم دغنيمت په مال كښې دبرابرې حصې حق داردې).

## بَابٌ فِي مَنْ وَجَدَ مَعَ أَهْلِهِ رَجُلاً أَيَقْتُلُهُ

### باب: څوک چه د خپلې ښځې سره بل سړې بيامومى نو آيا قتل كوى به ئې؟

[٤٥٣٢]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ الْحَوْطِيُّ المعنى واحد، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ، قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ الرَّجُلُ يَجِدُ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ؟ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا، قَالَ سَعْدٌ: بَلَى وَالَّذِي أَكْرَمَكَ بِالْحَقِّ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اسْمَعُوا إِلَى مَا يَقُولُ سَيِّدُكُمْ"، قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ: إِلَى مَا يَقُولُ سَعْدٌ.

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه سعد بن عبادة رضی الله عنه ووئيل اې دالله رسوله كله چه يوكس دخپلې ښځې سره بل سړې بياموي نو ايا وژنې به ئې؟نبى عليه السلام اوفرمائيل نه سعد عرض وكړو ولې نه قسم په هغه ذات چاچه تاته په رښتيا سره عزت دركړې دې نبى عليه السلام اوفرمائيل واورئ ستاسو سردار څه وائې؟ اودعبد الوهاب په روايت كښې دى چه تاسو واورئ سعد څه وائي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ الرَّجُلُ يَجِدُ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلاً أَيَقْتُلُهُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ ». قَالَ سَعْدٌ بَلَى وَالَّذِى أَكْرَمَكَ بِالْحَقِّ الخ ﴾

### شرح الحديث او د مسئلة الباب تحقيق:

سيدنا سعد بن عبادة رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوكړو چه كه يو سړې څوک اوينى چه هغه د هغه د ښځې سره زنا كوى نو آيا هغه كټونكې يعنى خاوند دې زانى لره قتل كولې شى نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل نه، يعنى قتل كول جائز نه دى، نو په دې باندې هغوى عرض اوكړو، ولې نه قسم په هغه ذات چا چه تاسو ته عزت دركړې دې، يعنى هغه به دې

(): تفرد به أبو داود، وقد مضي بتمامه ٢٧٥١، (تحفة الأشراف: ٨٨١٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الديات ٣١ (٢٦٨٥) (حسن صحيح)

(): صحيح مسلم/اللعان ١ (١٤٩٨)، سنن ابن ماجه/الحدود ٣٤ (٢٦٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٩٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الأقضية ١٩ (١٧)، الحدود ١(٧)، مسند احمد (٢/٤٦٥) (صحيح)

زاني لره ضرور قتل کوي او هغه به په دې کښې لږ تامل هم نه کوي په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل نورو حضراتو ته خطاب کولو سره (غالبا هغوی به هم د هغه د قوم وی ځکه چه هغه رئيس الخزرج وو) اوګورئ دا ستاسو سردار څه وائی. په بذل کښې ليکلې دی چه شراح دا وائی چه د حضرت سعد مراد - والعياذ بالله — د رسول الله ﷺ د کلام ترديد نه دې او نه د هغوی مراد دا دې چه په داسې صورت کښې هغه لره قتل کول جائز دی بلکه د هغوی مراد دا دې چه د باغيرت سړی طبيعت دې معاملې لره ليدلو سره برداشت نه شی کولې او هغه بغير د قتل نه نۀ شی پاتې کيدې، هم په دې وجه رسول الله ﷺ هم د هغوی ترديد يا په دې باندې تنبيه او نه فرمائيله بلکه د تعجب اظهار ئې اوفرمائيلو د هغوی په حميت او غيرت باندې، او بهر حال مسئله هم هغه ده کومه چه رسول الله ﷺ فرمائيلې ده چه قتل کول ئې جائز نه دی، پس دا مسئله په الدرالمنضود کښې په کتاب اللعان کښې تيره شوې ده، د بذل المجهود نه نقل کولو سره، او هغه دا ده چه يو سړې د خپلې ښځې سره څوک په زنا کولو باندې وينی او هغه زانی لره قتل کړی نو په دې صورت کښې د جمهورو رائې دا ده چه دا قاتل به هم قصاصا قتل کولې شی ځکه چه دا قتل بغير د شهود نه دې، خو که بينة قائمه شی يا د زانی وارثان د زنا اعتراف اوکړی نو بيا په دې صورت کښې قصاص نشته، دا حکم خو قضاء دې او ديانة په هغه باندې فيما بينه وبين الله د قتل ګناه نشته د هغه د صادق کيدو په صورت کښې اهـ..... او هم دا خبره په الحل المفهم کښې د حضرت ګنګوهی د تقرير نه نقل کړې شوې ده خو حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې په باب اللعان کښې د درمختار دا مسئله نقل کړې ده: دخل رجل بيته فرای رجلا مع امراته او جاريته فقتله حل له ذلک ولا قصاص عليه اهـ چه په هغې کښې تصريح ده د دې خبرې چه په پورته ذکر کړې شوې مسئله کښې د احنافو مسلک د جمهورو خلاف دې کوم چه په بذل کښې ذکر شوې دې، خو د هغې جواب دا دې چه علامه شامی په دې کښې دوه قيدونه ذکر کړی دی د بعض فقهاء کرامو نه يو دا چه چه هغه پردې سړې محصن وی، او دويم دا چه د کور د مالک يعنی د خاوند په شور باندې هم هغه د زنا نه منع نه شی، خو بيا هغوی د احصان په قيد باندې اشکال کړې دې ځکه چه دلته جواز د قتل زانی په طور د حد نه دې چه د احصان قيد اولګولې شی بلکه د امر بالمعروف او نهی عن المنکر د قبيلې نه دې او بيا ئې وړاندې دا هم ليکلې دی چه که هغه زنانه د دې پردی سړی په فعل باندې راضی وی او د منع کولو بل څه صورت نه وی نو بيا دواړو لره قتل کولې شی. شامی۵/۳۵۹

[۴۵۳۳] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ، قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَرَأَيْتَ لَوْ وَجَدْتُ مَعَ امْرَأَتِي رَجُلًا أُمْهِلُهُ حَتَّى آتِيَ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ؟ قَالَ: نَعَمْ".

د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه سعد بن عبادة رضی الله عنه نبی علیه السلام ته ووئيل ستاڅه خيال

(۱) انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۷۳۷) (صحيح)

دي که چرې زه دخپلې ښځې سره څوک سرې ووینم نو آیا د څلورو ګواهانو د راوستو پورې به ورته انتظارکوم نبی ﷺ اوفرمائیل هو. وحدیث الباب الاول اخرجه مسلم وابن ماجه، والحدیث الثانی اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذري.

## بَابُ الْعَامِلِ يُصَابُ عَلَى يَدَيْهِ خَطَأً

### باب: د عامل د لاسه که څوک په غلطۍ سره زخمي شو

یعنی عامل وغیره کوم چه د صدقاتو وغیره په وصول کولو باندې د حکومت د طرف نه مقرر وی که په څه خبره باندې هغه په رعایا کښې چاته څه تکلیف او نقصان اورسوی نو د هغې څه حکم دې؟ د حدیث الباب نه خو هم دا معلومیږی چه په دې کښې د عامل او غیر عامل دواړو حکم برابر دې.

[٤٥٣٤](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ أَبَا جَهْمِ بْنَ حُذَيْفَةَ مُصَدِّقًا، فَلَاجَّهُ رَجُلٌ فِي صَدَقَتِهِ فَضَرَبَهُ أَبُو جَهْمٍ فَشَجَّهُ، فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: الْقَوَدَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَكُمْ كَذَا وَكَذَا، فَلَمْ يَرْضَوْا، فَقَالَ: لَكُمْ كَذَا وَكَذَا، فَلَمْ يَرْضَوْا، فَقَالَ: لَكُمْ كَذَا وَكَذَا، فَرَضُوا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي خَاطِبٌ الْعَشِيَّةَ عَلَى النَّاسِ وَمُخْبِرُهُمْ بِرِضَاكُمْ، فَقَالُوا: نَعَمْ، فَخَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ، فَقَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ هَؤُلَاءِ اللَّيْثِيِّينَ أَتَوْنِي يُرِيدُونَ الْقَوَدَ، فَعَرَضْتُ عَلَيْهِمْ كَذَا وَكَذَا فَرَضُوا، أَرَضِيتُمْ؟ قَالُوا: لَا، فَهَمَّ الْمُهَاجِرُونَ بِهِمْ، فَأَمَرَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَكُفُّوا عَنْهُمْ فَكَفُّوا، ثُمَّ دَعَاهُمْ فَزَادَهُمْ، فَقَالَ: أَرَضِيتُمْ، فَقَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: إِنِّي خَاطِبٌ عَلَى النَّاسِ وَمُخْبِرُهُمْ بِرِضَاكُمْ، قَالُوا: نَعَمْ، فَخَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَرَضِيتُمْ، قَالُوا: نَعَمْ".

دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائي چه نبي ﷺ ابوجهم بن حذیفه په زکات راټولولو پسې ولیږلو، یوکس ورسره دزکات په ورکولوکښې جیړ جاړ وکړو نوهغه وهل ورکړل او سر ئې مات شو نو په دې سبب دده رشته داران نبي ﷺ ته راغلل او عرض ئې وکړو چه دابوجهم نه زمونږ دپاره قصاص واخله. نبي ﷺ اوفرمائیل تاسو د دیت په طور دومره مال واخلئ هغوی په دې راضي نه شول نونبي ﷺ اوفرمائیل دومره مال قبول کړئ لیکن هغوی خوشحاله نه وو بیانبي ﷺ اوفرمائیل نودومره مال واخلئ نوپه دوی باندې هغوی رضا شول نبي ﷺ اوفرمائیل زه به نن ماښام خطبه ورکوم اوهغه خلقوته به ستاسو راضي کیدو په باره کښې خبر ورکوم، دوی اووئیل سمه ده بیانبي ﷺ خطبه اوفرمائیله اودائې هم اوفرمائیل چه دلیث قبیلې نه داخلق ماته د قصاص اغستلو په عرض باندې راغلل اوما ددوی سره ددومره مال ورکولو وعده اوکړه او دوی تیار شول، بیانبي ﷺ ددوینه تپوس اوکړو ایا تاسویدې باندې راضي یئ؟ دوی اووئیل نه، مهاجرینو دوی ته دسزا ورکولو اراده وکړه نبي ﷺ مهاجرین منع کړل اوهغوی منع شو بیانبي ﷺ دا خلق راوغوښتل اود زیات مال ورکولو ذکر ئې وکړو اوددوینه ئې تپوس اوکړو ایا تاسو راضي

(1): سنن النسائي/القسامة ٢٠ (٤٧٨٢)، سنن ابن ماجه/الديات ١٣ (٢٦٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٣٢) (صحيح)

شوئ؟ دوی اووئیل مونږ راضي یونبی علیه السلام اوفرمائیل زه به ستاسو په مخ کښې خطبه وایم اوددوی په مخ کښې به ستاسو دراضي کیدو بیان کوم دوی اووئیل سمه ده نبی علیه السلام دخلقو په وړاندې خطبه ورکړه اوتپوس ئې ورنه اوکړو چه اوس تاسو رضا يئ دوی اووئیل هو.

**قوله:**( عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- بَعَثَ أَبَا جَهْمِ بْنَ حُذَيْفَةَ مُصَدِّقًا فَلاَجَّهُ رَجُلٌ فِي صَدَقَةٍ فَضَرَبَهُ أَبُو جَهْمٍ فَشَجَّهُ )

**مضمون الحديث:**

عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ ابوجهم بن حذیفه د صدقاتو د وصولئ دپاره اولیږلو نو د صدقې د وصولولو په سلسله کښې د یو سړی سره د هغوی اختلاف شو هغه دغه سړې په یو څیز اوهلو چه د هغه سر زخمي شو نو د هغه د قوم خلق د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل د قصاص یعنی بدلې اخستلو دپاره، نو رسول الله ﷺ یو مقدار د مال د هغوی مخې ته کیخودلو چه هغه دا واخلی خو هغه راضي نه شو، رسول الله ﷺ په دې مقدار کښې نوره هم اضافه اوکړه په هغې باندې هم راضي نه شو بیا ئې نوره هم اضافه اوکړه په هغې باندې راضي شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل تاسو ټول ماښام راشئ زه به په مجلس کښې د ټولو خلقو مخکښې دا معامله او ستاسو رضامندی ښکاره کړم، هغوی اووې غوره ده... پس هم دغه شان اوشوه چه ماښام د ټولو خلقو مخکښې دا خبره کیخودلې شوه یعنی دا چه دا خلق په دومره مال اخستلو باندې راضي شو، رسول الله ﷺ دوباره د خلقو مخکښې د هغوی نه اقرار اخستل غوښتل د رضامندئ، خو هغوی د خپلې خبرې نه واوړیدل، په دې باندې مهاجرینو د هغوی د اصلاح اراده اوکړه خو رسول الله ﷺ چه هغوی د دې نه منع کړل نو منع شو، بیا په بل مجلس کښې رسول الله ﷺ هغوی دا خلق بیا راطلب کړل او د مال په سابقه مقدار کښې اضافه کولو سره ئې هغوی راضي کول اوغوښتل نو هغوی منظور کړه، پس رسول الله ﷺ د خلقو مخکښې د هغوی د رضامندئ ذکر اوفرمائیلو یا ئې د ټولو مخکښې د هغوی نه تپوس اوفرمائیلو چه وایئ تاسو راضي یئ؟ قالوا نعم.... په دې باندې معامله رفع دفع شوه، دا عامل ابوجهم رضی الله عنه هم هغه دې د چا په باره کښې چه په کتاب النکاح کښې تیر شوې دی: اما ابوجهم فلا یضع عصاه عن عاتقه، د هغوی په مزاج کښې تیزی او غصه وه هم په دې وجه دا قصه هم پیښه شوه. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری

## بَابُ الْقَوَدِ بِغَيْرِ حَدِيدٍ

### باب د حد نه علاوه د قصاص اخستلو بیان

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د "رَضّ راسِ جاریه" والا حدیث ذکر کړې دې کوم چه نزدې تیر شوې دې،

[۴۵۳۵]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ: "أَنَّ جَارِيَةً وُجِدَتْ قَدْ رُضَّ رَأْسُهَا بَيْنَ حَجَرَيْنِ، فَقِيلَ لَهَا: مَنْ فَعَلَ بِكِ هَذَا؟ أَفُلاَنٌ أَفُلاَنٌ حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَتْ بِرَأْسِهَا، فَأُخِذَ الْيَهُودِيُّ فَاعْتَرَفَ،

(): انظر حدیث رقم: (۴۵۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۱) (صحیح)

فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرَضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ".

دانس بن مالک ﷺ نه روايت دي فرمائی چه يوه جينۍ وموندلې شوه چه ددوه کاڼړوپه مينځ کښې ئې سرچقولې شوي ووهغې ته ووئيلې شو چه دا درباندې چاکړي دي ايا فلانی ايا فلانی تردې چه ديهوي نوم واخستلې شونوهغې اقرار وکړو نو نبی ﷺ حکم وکړوچه دده سردي په ګټه باندې وچقولې شي.

په بذل کښې ليکلي دی چه : وهذا الحديث مكرر بسنده ومتنه، تقدم قريبا، د تکرار څۀ خاص فائده په فهم کښې رانغله هم په دې وجه په بعض نسخو کښې دا باب او حديث نشته.

## بَابُ الْقَوَدِ مِنَ الضَّرْبَةِ وَقَصِّ الْأَمِيرِ مِنْ نَفْسِهِ

### باب: د وهلو په وجه د حاکم د طرفه د قصاص ورکولو بيان

يعنی په معمولی شان وهلو باندې هم څه قصاص او ضمان وی؟ او دويم جزء د ترجمه دا دې چه که د رعايا په اميرانو کښې څوک په چا باندې څه جنايت اوکړی نو د هغه د خپل نفس نه بدل اخستل.

[٤٥٣٦]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرٍو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ عُبَيْدَةَ بْنِ مُسَافِعٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ قَسْمًا أَقْبَلَ رَجُلٌ فَأَكَبَّ عَلَيْهِ، فَطَعَنَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعُرْجُونٍ كَانَ مَعَهُ فَجُرِحَ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَالَ فَاسْتَقِدْ فَقَالَ بَلْ عَفَوْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ".

د ابوسعيد خدری ﷺ نه روايت دي فرمائی چه يوځل نبی ﷺ تقسيم کولو په دې وخت کښې يو کس راغي اوپه نبی ﷺ باندې راټيټ شو نونبی ﷺ په يوه لختة اووهلو لختة دده په مخ باندې اولګيده اوزخمي شونبی ﷺ ورته اوفرمائيل راشه زمانه قصاص واخله ده عرض اوکړو اې د الله رسوله ماته معاف کړې ئې.

**قوله:** ﴿أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقْسِمُ قَسْمًا أَقْبَلَ رَجُلٌ فَأَكَبَّ عَلَيْهِ فَطَعَنَهُ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– بِعُرْجُونٍ كَانَ مَعَهُ فَجُرِحَ بِوَجْهِهِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم« تَعَالَ فَاسْتَقِدْ »فَقَالَ بَلْ عَفَوْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ﴾

يعنی رسول الله ﷺ يو ځل په خلقو کښې څه مال تقسيمولو پس په دې کښې يو سړې رامخکښې شو کوم چه د مال اخستلو دپاره په رسول الله ﷺ باندې راغورځيدلو او راښکته کيدو، دې وخت کښې رسول الله ﷺ سره په لاس مبارک کښې يو چوکه وه، هغوی تنبيها هغه په هغه چوکه باندې اوهلو(هغه اتفاقا د هغه په مخ باندې اولګيده) چه په هغې سره د هغه مخ زخمی شو، په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل راشه زما نه خپل بدل واخله هغه عرض اوکړو نه يا رسول الله ﷺ بلکه ما معافی اوکړه.

(والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذری)

(): سنن النسائي/القسامة ١٦ (٤٧٧٧)، (تحفة الأشراف: ٤١٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨/٣) (ضعيف)

[٤٥٣٧]([1])حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي فِرَاسٍ، قَالَ: خَطَبَنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: إِنِّي لَمْ أَبْعَثْ عُمَّالِي لِيَضْرِبُوا أَبْشَارَكُمْ وَلَا لِيَأْخُذُوا أَمْوَالَكُمْ، فَمَنْ فُعِلَ بِهِ ذَلِكَ فَلْيَرْفَعْهُ إِلَيَّ أُقِصُّهُ مِنْهُ، قَالَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ: لَوْ أَنَّ رَجُلًا أَدَّبَ بَعْضَ رَعِيَّتِهِ أَتُقِصُّهُ مِنْهُ؟ قَالَ: إِي وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ أُقِصُّهُ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَصَّ مِنْ نَفْسِهِ".

د ابوفراس رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه عمرفاروق رضی الله عنه مونږ ته خطبه راکړه او وئې فرمائيل زه خپل عاملان ددې دپاره نه ليږم چه هغوی دې تاسو اووهي يا دې ستاسو مالونه وصول کړي ، اوکه چرې څوک داسې وکړي نوتاسوماته دهغه معامله پيش کړئ زه به ورنه انتقام اخلم، عمرو بن العاص په جواب کښې اووئيل که چرې کوم عامل خپلو نوکرانوته څه سزا ورکړي نو تاسو به ددې بدله دعامل نه اخلئ؟ عمر رضی الله عنه اووئيل هو په هغه ذات مې دې قسم وي دچاپه اختيار کښې چه زماروح دې زه خوبه بدله اخلم اومانبی علیه السلام ليدلې وو چه دخپل ځان نه ئې قصاص ورکړې وو.

**قوله:**﴿ عَنْ أَبِي فِرَاسٍ قَالَ خَطَبَنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضى الله عنه فَقَالَ إِنِّى لَمْ أَبْعَثْ عُمَّالِى لِيَضْرِبُوا أَبْشَارَكُمْ وَلاَ لِيَأْخُذُوا أَمْوَالَكُمْ فَمَنْ فُعِلَ بِهِ ذَلِكَ فَلْيَرْفَعْهُ إِلَىَّ أَقُصُّهُ مِنْهُ الخ ﴾

ابو فراس فرمائي چه يو ځل عمر بن الخطاب رضی الله عنه خطبه ورکړه (ممکنه ده چه د يو عامل د زياتي او تشدد شکايت به هغوی ته شوې وی چه په هغې باندې) هغوی اوفرمائيل چه زه خپل عمال دې دپاره نه ليږم چه هغوی تاسو اوهی يا درنه د واجب نه زيات مال واخلی، پس کوم سړی سره چه داسې معامله اوکړې شی د يو عامل د طرف نه نو هغه دې خپله معامله زما مخکښ پيش کړی زه به هغه ته د هغه قصاص د هغه عامل نه ورکوم، په دې باندې عمرو بن العاص رضی الله عنه عرض اوکړو چه که څوک د خپل يو ماتحت سره تاديبا يو کار اوکړی نو آيا تاسو به ترې نه بدله اخلئ؟ نو په دې باندې عمر رضی الله عنه اوفرمائيل او قسم په الله زه به د هغې بدله اخلم، ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ليدلې دې چه هغوی د خپل نفس نه قصاص ورکړې دې، غالبا مطلب دا دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم بل ته د قصاص داخستلو درخواست کړې دې لکه چه پورته حديث کښې تير شو. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری

## بَابٌ عَفْوِ النِّسَاءِ عَنِ الدَّمِ

### بابـ زنانه هم قصاص معاف کولې شی

**د مسئلة الباب توضيح :**

مسئله دا ده چه په قتل عمد کښې که د مقتول اولياء کښې د يو کس رائې د ترک قصاص او د معاف کولو وی نو بيا قصاص اخستل جائز نه دی، اوس دلته سوال دا واردیږی چه که په دغه اولياء کښې که څوک زنانه وی او هغه قصاص اخستل نه غواړی نو آيا د هغې عفو کول به معتبر وی يا نه؟ د جمهورو په نزد معتبر ده، امام خطابی رحمه الله فرمائی قال اکثر اهل العلم عفو النساء عن الدم کعفو الرجال، وقال الاوزاعی وابن شبرمة ليس للنساء عفو، يعنی د جمهورو په نزد خو معتبر ده، د امام اوزاعی وغيره په نزد معتبر نه ده.

[1]: سنن النسائي/القسامة ١٩ (٤٧٨١)، (تحفة الأشراف: ١٠٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١/١) (ضعيف)

[٤٥٣٨]() حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ حِصْنًا، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَمَةَ، يُخْبِرُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "عَلَى الْمُقْتَتِلِينَ أَنْ يَنْحَجِزُوا الْأَوَّلَ فَالْأَوَّلَ وَإِنْ كَانَتِ امْرَأَةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَلَغَنِي أَنَّ عَفْوَ النِّسَاءِ فِي الْقَتْلِ جَائِزٌ إِذَا كَانَتْ إِحْدَى الْأَوْلِيَاءِ، وَبَلَغَنِي عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ، فِي قَوْلِهِ: يَنْحَجِزُوا يَكُفُّوا عَنِ الْقَوَدِ.

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي کومو کسانو چه جنګ کړې وي نوهغوی لره پکاردي چه د قصاص اخستلونه ځان بچ وساتي اول کوم چه ډير نزدي رشته داردي هغه معاف کړئ بیاچه کوم په ده پسي دي اګرچه ښځه وي ، امام ابوداؤد فرمائي د وينحجزه معنى دقصاص داغستلونه ځان ساتل دي.

**قوله:** ﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ قَالَ « عَلَى الْمُقْتَتِلِينَ أَنْ يَنْحَجِزُوا الأَوَّلَ فَالأَوَّلَ وَإِنْ كَانَتِ امْرَأَةً » قَالَ أَبُو دَاوُدَ « يَنْحَجِزُوا »الخ﴾

**شرح الحديث:**

سيده عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په اولياء د قاتل او اولياء د مقتول کښې چه کله خپل مينځ کښې جنګ اوشي يعنى اولياء د قاتل اصرار کوی په ترک قصاص او عفو باندې، او اولياء د قتيل په قصاص اخستلو باندې، نو رسول الله ﷺ فرمائي چه دا جنګ دې ختم کړې شي چه د هغې شکل هغوی دا بيانوی: ﴿ان ينحجزوا﴾ چه د مقتول اولياء ته پکار دی چه هغوی د قصاص اخستلو نه منع شی، او يا مراد د مقتتلين نه دا دې چه په اولياء مقتول کښې خپل مينځ اختلاف او جنګ پيدا شو بعض عفو کول غواړي او بعض قصاص، او چونکه د اقرب والی په موجودګئ کښې د ابعد ولى قول ساقط دې په دې وجه رسول الله ﷺ په اولياء کښې چه کوم اقرب القتيل دې هم هغه ته خاص طور سره د بخښنې ترغيب او د پيش قدمئ کولو حکم کوی. د امام اوزاعى رحمه الله قول د دې حديث خلاف دې.

والحديث اخرجه النسائى، قاله المنذرى.

## بَابُ مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّاءَ بَيْنَ قَوْمٍ

### باب: څوک چه په تياره کښې د خلقو په مينځ کښې مړ شی دهغې بيان

[٤٥٣٩]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ وَهَذَا حَدِيثُهُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: مَنْ قُتِلَ؟ وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّا فِي رَمْيٍ يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِحِجَارَةٍ أَوْ بِالسِّيَاطِ أَوْ ضَرْبٍ بِعَصًا فَهُوَ خَطَأٌ وَعَقْلُهُ عَقْلُ الْخَطَإِ، وَمَنْ قُتِلَ عَمْدًا فَهُوَ قَوَدٌ، قَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ: قَوَدُ يَدٍ ثُمَّ اتَّفَقَا، وَمَنْ حَالَ دُونَهُ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَغَضَبُهُ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ"، وَحَدِيثُ سُفْيَانَ أَتَمُّ.

د طاوس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی څوک چه دخلقو دليدونه بغير يعنى په تياره کښې په تير اندازئ کښې دخلقو په مينځ کښې مرشي کومه چه دخلقو په

(): سنن النسائي/القسامة ٢٥ (٤٧٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٠٦) (ضعيف)

(): سنن النسائي/القسامة ٢٦ (٤٧٩٣)، سنن ابن ماجه/الديات ٨ (٢٦٣٥)، ويأتي هذا الحديث برقم (٤٥٩١)، (تحفة الأشراف: ٥٧٣٩، ١٨٨٢٨) (صحيح)

مینځ کښې کیږي یاددرې په وهلو مړشي یادلوړ په وهلو مړشي نودده حکم دقتل خطاء دې اودده دیت هم دقتل خطاء دیت دې اوځوک چه د قتل په قصد سره مړشي نو په دې صورت کښې قصاص واجب دې، ابن عبید وئیلی دی دنوروددیتونو برابر دیت دې اوځوک چه په دې کښې مانع جوړ شي نو په ده باندې دالله تعالی لعنت دې او چه الله ورته په غضب شي نونه به دده فرائض قبول کړې شي اونه نوافل.

**قوله**:﴿حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ ح وَحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ - وَهَذَا حَدِيثُهُ - عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاوُسٍ قَالَ مَنْ قُتِلَ. وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم ﴾

### شرح السند :

په دې حدیث کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی محمد بن عبید او ابن السرح، د محمد بن عبید استاد حماد دې او د ابن السرح استاد سفیان، دا دواړه روایت کوی یعنی سفیان او حماد د عمرو نه اوهغه د طاؤس نه، د ابن السرح سند خو هم دلته ختم شو، لهذا دا روایت موقوف شو بلکه مقطوع شو او د محمد بن عبید په روایت طاؤس روایت کوی د رسول الله ﷺ نه لهذا دا حدیث مرفوع مرسل شو، د حدیث متن دا دې:

**قوله**:﴿ مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيًّا فِي رَمْيٍ يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِحِجَارَةٍ أَوْ ضَرْبٍ بِالسِّيَاطِ أَوْ ضَرْبٍ بِعَصًا فَهُوَ خَطَأٌ وَعَقْلُهُ عَقْلُ الْخَطَإِ ﴾

### شرح الحدیث :

یعنی کوم سړې چه په ګډوډ جنګ کښې قتل شی چه د هغې صورت دا دې چه په دوه جماعتونو کښې جنګ اوشو او لرګی ډنډې او کاڼړی ئې استعمال کړل د جانبینو نه او بیا په هغې کښې یو سړې مړ شو چه په هغې کښې یقین سره معلومه نه ده چه دې څنګه قتل شو په مثقل کبیر سره یا صغیر سره نو دې قتل ته به قتل خطاء وئیلې شی لهذا د قتل خطاء دیت به واجب وی. ﴿ ومن قتل عمدا فهو قود ﴾ یعنی د کوم قتل په باره کښې چه معلومه شی چه هغه قتل قتل عمد دې په داسې طریقه چه د قتل عمد تعریف هلته صادق راځی نو د هغې حکم قصاص دې، او د ابن عبید په روایت کښې دی، ﴿ قود ید ﴾ د ید نه مراد نفس یعنی قصاص فی النفس.

**قوله**:﴿ ثُمَّ اتَّفَقَا « وَمَنْ حَالَ دُونَهُ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَغَضَبُهُ ﴾ تر اوسه پورې د حدیث الفاظ چه کوم تیر شوی دی هغه د ابن السرح د روایت نه وؤ او دا د اخیری الفاظ د ابن السرح او د ابن عبید دواړو دی، مطلب دا دې چه کوم سړې د قاضی د طرف نه د قصاص د فیصلې نه پس د هغه قصاص د اخستلو نه مانع جوړیږی نو هغه به د الله پاک د غضب او د لعنت مستحق وی، نه د هغه نفل عبادت قبلیږی او نه فرض.

**قوله**:﴿ وَحَدِيثُ سُفْيَانَ أَتَمُّ ﴾ یعنی د حماد په مقابله کښې د سفیان روایت اتم دې، په شروع کښې مصنف رحمه الله فرمائیلې وو : ﴿ وهذا حدیثه ﴾ چه مونږ د سفیان حدیث روایت کوو، نو ګویا د سفیان د روایت د اختیارولو وجه د ترجیح دا شوه.

[۴۵۴۰]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي غَالِبٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ سُفْيَانَ.

طاوس دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت بیان کړي دي چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی ، اودسفیان دحدیث په شان حدیث کې بیان کړو.

**قوله:** ﴿ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما الخ ﴾

دا روایت د عمرو بن دینار په روایت د سلیمان بن کثیر مسندا دي. والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه مرفوعا، قاله المنذری

## بَابُ الدِّيَةِ كَمْ هِيَ

### باب د دیت د مقدار بیان

د کتاب الدیات په شروع کښې تیر شوي دي چه د دیت اطلاق د فقهاء کرامو په عرف کښې په بدل النفس باندې، او په بدل الاطراف باندې د ارش اطلاق کولې شي او هسې توسعا په ارش باندې د دیت اطلاق هم کولې شي.

### د قتل اقسام او تعریفات :

چه کله دا معلومه شوه چه د دیت استعمال په قتل د نفس کښې کیږي او د مصنف رحمه الله غرض دلته د دیت مقدار بیانول دی چه د هغې مقدار د قتل په نوعیت باندې دې، ځکه چه د قتل د ائمه ثلاث او صاحبین په نزد درې قسمونه دی قتل عمد او قتل شبه عمد او قتل خطاء (۲) او د هر یو حکم او دیت بیل بیل دې لهذا اوس حاجت دې ته دې چه د دې قتل قسمونه اوپیژندلې شی او د هغې تعریف معلوم کړې شي او د هغې نه پس د هر یو دیت معلوم کړې شي. پس ځان پوهه کړه چه د قتل آلات درې دی محدد ، مثقل کبیر، مثقل صغیر.... قتل عمد هغه دې کوم چه د وسلې په ذریعه وی یا په هغه ځیز چه جاری مجری السلاح وی یعنی محدد (هر تیرهٔ ځیز). او شبه عمد هغه دې کوم چه په مثقل صغیر سره وی یعنی هغه بې سوکې او پس ځیز چه په هغې باندې اکثر هلاکت نه واقع کیږي لکه معمولی شان ډنډه، وړوکې کانړې، او قتل خطاء عام دې که هغه په هر څه آله وی، بیا د خطاء دوه قسمونه دی یو خطاء فی الفعل او بل خطاء فی الظن (سیاتی بیانه) او کوم قتل چه په مثقل کبیر سره وی یعنی هغه پس ځیز چه په هغې سره اکثر هلاکت واقع شی په هغې کښې اختلاف دې چه هغه په قتل عمد کښې داخل دې یا په شبه عمد کښې، د امام صاحب په نزد په شبه عمد کښې، او د صاحبین او د جمهورو په نزد په قتل عمد کښې.

د دې تفصیل نه معلومه شوه چه مثقل کبیر د امام صاحب په نزد ملحق دې د مثقل صغیر سره، او د جمهورو او د صاحبین په نزد ملحق دې د محدود سره، او کوم پورته تیر شوې دی چه د خطاء دوه صورتونه دی خطاء فی الفعل دا ده چه یو سړې وژل غواړي یو

---

(۱): انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۵۷۳۹، ۱۸۸۲۸) (صحیح)

(۲) او د امام مالک رحمه الله په نزد صرف دوه قسمونه دی هغه د شبه عمد قائل نه دې)

ځناور لره خو نخښه ئې خطاء شوه او انسان پرې اولګیدو، او خطاء فی الظن دا دې چه د لرې نه یو سړې یو انسان په کمبل اغوستلو کښې اولیدو دې ګنړلو سره چه دا شیر یا پړانګ دې او هغه ئې مړ کړو، دا خطاء فی الظن ده قصاص صرف په قتل عمد کښې دې او په قتل شبه عمد او خطاء کښې صرف دیت دې، په شبه عمد کښې دیت مغلظه او په خطاء کښې غیر مغلظه دې، بله دا چه په قسمین اخرین کښې دیت سره کفاره هم ده په خلاف د قتل عمد چه په دې کښې کفاره واجب نه ده.

## د اهل دیت تفصیل:

دیت که په اوښانو سره ورکړې شی نو د هغې تعداد بالاتفاق سل دې، د قتل خطاء دیت بالاتفاق احماسا دی یعنی سل اوښان د پنځو قسمونو، هر یو د شلو شلو، چه په هغې کښې څلور قسمونه خو متفق علیه دی بنت محاض، بنت لبون، حقه، جذعه، د پنځم په تعیین کښې اختلاف دې، د احنافو او د حنابله په نزد هغه ابن محاض دې او د شوافع او مالکیانو په نزد ابن لبون، او د شبه عمد دیت د امام شافعی او امام محمد په نزد اثلاثا دې حقه، جذعه، خلفه، اول دوه دیرش دیرش او خلفه څلویښت، خلفه یعنی حامله، او د شیخین (ابوحنیفه او ابویوسف) او د امام محمد رحمه الله په نزد د شبه عمد دیت ارباعا دې یعنی سل اوښان څلور قسم د هر یو نه پنځویشت، بنت محاض، بنت لبون حقه، جذعه، او دا مخکښې تیر شو چه امام مالک رحمه الله د شبه عمد قائل نه دې.

## د دیت مصداق کوم کوم څیزونه دی:

د ذکر کړې شوې تفصیل خو په هغه صورت کښې دې چه کله په دیت کښې اوښان ورکړې شی، اوس دا چه په دیت کښې کوم کوم څیزونه ورکولې شی؟ په دې کښې د ائمه اختلاف دې د امام شافعی رحمه الله په نزد په دیت کښې اصل ابل دې، د امام احمد رحمه الله په نزد هم یو روایت هم دغه دې که اوښان ملاویږی نو هغه دې ورکړې شی ﴿ فان لم توجد فقیمته بالغة ما بلغت ﴾ یعنی د سلو اوښانو قیمت به ورکولې شی هر څومره چه وی. او د امام ابوحنیفه او امام مالک رحمهما الله په نزد د دیت مصداق درې څیزونه دی، الابل، الدارهم، الدنانیر، د امام صاحب په نزد په درې واړو کښې اختیار دې او د امام مالک رحمه الله په نزد د کلی په حق کښې ابل متعین دې او د سرو او سپینو والو په حق کښې سرۀ او سپین زر. او د حنابله په قول راجح کښې د دیت مصداق پنځه څیزونه دی درې هغه کوم چه پورته ذکر شو او دوه د هغې نه علاوه بقر او شاة، او څلورم مذهب په دې کښې د صاحبینو دې، د هغوی په نزد د دیت مصداق شپږ دی، پنځه پورته ذکر شوی څیزونه او شپږم څیز حلل..... د ابل په باره کښې خو تیر شوی دی چه هغه بالاتفاق سل دی، او د بقر تعداد دوه سوه دې هم دغه شان د حلل هم او د ګډو دوه زره، کذا فی هامش البذل عن الاوجز، وړاندې په یو حدیث کښې د دې شپږو څیزونو ذکر دې، د دراهم په تعداد کښې هم اختلاف دې، امام ترمذی رحمه الله په ابواب الدیات کښې اول باب تړلې دې: ﴿ باب ما جاء فی الدیة کم هی من الابل ﴾ او دویم باب دې ﴿ باب ما جاء فی الدیة کم هی من الدراهم ﴾ په دویم باب کښې هغوی دا حدیث ذکر کړو ﴿ عن ابن

عباس رضي الله عنهما عن النبي ﷺ انه جعل الدية اثنى عشر الفا ﴾ د دې نه پس فرمائي : والعمل على هذا الحديث عند بعض أهل العلم وهو قول أحمد و إسحق ورأى بعض أهل العلم الدية عشرة آلاف وهو قول سفيان الثوري وأهل الكوفة وقال الشافعي لا أعرف الدية إلا من الإبل وهي مائة من الإبل ﴾ د دراهمو تعداد د جمهورو په نزد دولس زره دي او د احنافو په نزد لس زره دي، روايات دواړه قسمه شته، او جمع بين الروايتين داده چه د دراهمو دوه اقسام دي: وزن ستة او وزن سبعه، د وزن ستة په اعتبار سره دولس زره، او د وزن سبعه په لحاظ سره لس زره، د وزن ستة مطلب دا دې چه هر لس درهمه د شپږو مثقالو برابر وي او په وزن سبعه کښې دا ده چه هر لس درهمه د اووهٔ مثقالو برابر وي.

او امام ترمذي رحمه الله په اول باب کښې دا هم فرمائيلي دي: ﴿ وقد أجمع أهل العلم على أن الدية تؤخذ من ثلاث سنين في كل سنة ثلث الدية ورأوا أن دية الخطإ على العاقلة الخ ﴾ يعنى ديت فوري په يو ځل نه شي اخستلې بلکه په درې قسطونو کښې په درې کالو کښې، او دا چه د قتل خطاء ديت د قاتل په عاقله باندې يعنى په عصبه باندې واجب وي، او بيا د دې نه پس هغوي د عاقله مصداق او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف ليکلې دې او مونږ سره مخکښې تير شو چه د قتل عمد ديت د قاتل په مال کښې واجب وي او دا اجماعي مسئله ده.

وفي الهداية : والدية في الخطأ مائة من الإبل أخماسا، ومن العين ألف دينار ومن الورق عشرة آلاف درهم وقال الشافعي رحمه الله من الورق اثنا عشر ألفا، ولا تثبت الدية إلا من هذه الأنواع (الابل والذهب والفضة) وقالا منها ومن البقر مائتا بقرة ومن الغنم ألفا شاة ومن الحلل مائتا حلة كل حلة ثوبان لأن عمر رضي الله عنه هكذا جعل على أهل كل مال منها....... يعنى د عمر رضي الله عنه نه په دې پورته ذکر شوې شپږو څيزونو کښې ديت اخستل ثابت دي کوم چه د څه اهل وو د هغې نه ئې هم هغه واخستلو، د اهل ابل نه ابل او د اهل دراهم نه دراهم، او د اهل ذهب نه دنانير او هم دغه شان، او د امام صاحب رحمه الله په دليل کښې دا ليکلي دي چه دا اشياء ثلاثه باقيه چه کوم دي چه د هغې صاحبين قائل دي د هغې ثبوت په آثار مشهوره سره نه دې، په دې وجه امام صاحب دا درې واړه نه دي اخستلې.

اوس أحاديث الباب اوګورئ!

[٤٥٤١](1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ. ح وحَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ مَنْ قُتِلَ خَطَأً فَدِيَتُهُ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ: ثَلَاثُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ، وَثَلَاثُونَ بِنْتَ لَبُونٍ، وَثَلَاثُونَ حِقَّةً، وَعَشَرَةٌ بَنِي لَبُونٍ ذَكَرٍ".

عمروبن شعيب دخپل پلار نه روايت کوي او دده پلار دده دنيکه نه روايت کوي فرمائي چه نبي عليه السلام فيصله کړې وه څوک چه چالره په خطاسره مرکزي نو ددغه مقتول ديت سل اوښان دي په دې کښې به ديرش اوښان يوکلن وي او ديرش اوښان به دوه کلن وي او ديرش اوښان به

[1]: سنن الترمذي/الديات ١ (١٣٨٧)، سنن ابن ماجه/الديات ٤ (٢٦٢٦)، (تحفة الأشراف: ٨٧٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٣/٢، ١٨٤، ١٨٥، ١٨٦، ٢١٧، ٢٢٤) (حسن)

درې کلن وي اولس اوښان به هغه وي دوه کاله ئې پوره شوي وي او په دريم ورګډ شوي وي.

**قوله:** ﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَضَى أَنَّ مَنْ قُتِلَ خَطَأً الخ﴾

په دې حديث کښې د قتل خطاء ديت سل اوښان په دې ترتيب سره ذکر دی، بنت لبون، بنت محاض او حقه هر يو ديرش ديرش او لس ابن لبون، په بذل کښې د خطابی نه نقل کړې دی لا اعرف احدا قال به من الفقهاء..... چه زما په علم کښې نشته چه دا قول په فقهاء کرامو کښې چا اختيار کړې وی، په دې باندې حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکی چه ابن قدامة دې ته د طاؤس مذهب وئيلې دې هم د دې حديث په بناء باندې.

والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٥٤٢]()حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "كَانَتْ قِيمَةُ الدِّيَةِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ ثَمَانِيَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ، وَدِيَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ يَوْمَئِذٍ النِّصْفُ مِنْ دِيَةِ الْمُسْلِمِينَ، قَالَ: فَكَانَ ذَلِكَ كَذَلِكَ حَتَّى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ فَقَامَ خَطِيبًا، فَقَالَ: أَلَا إِنَّ الْإِبِلَ قَدْ غَلَتْ، قَالَ: فَفَرَضَهَا عُمَرُ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أَلْفَ دِينَارٍ، وَعَلَى أَهْلِ الْوَرِقِ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا، وَعَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ، وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ، وَعَلَى أَهْلِ الْحُلَلِ مِائَتَيْ حُلَّةٍ، قَالَ: وَتَرَكَ دِيَةَ أَهْلِ الذِّمَّةِ لَمْ يَرْفَعْهَا فِيمَا رَفَعَ مِنَ الدِّيَةِ".

عمرو بن شعيب دخپل پلار نه روايت کوی اودده پلاردده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه دنبی ﷺ په زمانه کښې ددیت مقدار اته سوه ديناره يا اته زره درهمه وو اوداهل کتابو ددیت مقدار په دغه وخت کښې دمسلمانانو ددیت په نيمه باندې وو، راوی وائی چه بيا ددیت مقدار په هم دې طريقه اوچليدو تردې چه عمرفاروق خليفه شواوهغه دخطبې ورکولو دپاره اودريدو او وئې فرمائيل چه اوس داوښ قيمت زيات شوي دې راوی وائی چه عمرفاروق زر ديناره يادولس زره درهمه مقررکړل او په غوا او اوښانووالا کس باندې ئې دوه سوه غواګانې اوپه چيلړ والاباندې دوزره چيلی مقررکړې اوپه کپړو والا باندې ئې دوه سوه جوړې مقررې کړې اود اهل ذمه ديت ئې پريخود ويعنی زيات پې نکړو، لکه څنګه چه ئې باقی اهل اسلام ديت زيات کړو.

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَتْ قِيمَةُ الدِّيَةِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- ثَمَانَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ ثَمَانِيَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ﴾

عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه فرمائی چه د ديت قيمت يعنی د ديت د سلو اوښانو قيمت ځکه چه اصل په ديت کښې ابل دې، د رسول الله ﷺ په زمانه کښې اته سوه ديناره يا اته زره درهمه وو، او ديت د اهل کتابو يعنی ذميانو هغه وخت يعنی د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د مسلمانانو د ديت نصف وو، پس د ديت هم دا مقدار چليدو يعنی اته سوه ديناره يا اته زره درهمه، تردې چه سيدنا عمرفاروق رضی الله عنه کله خليفه شو نو هغوی د خپل خلافت په زمانه کښې خطبه اوفرمائيله چه اوښان اوس ګران شو، په دې باندې اوس عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما

[١]: تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٦٨٨) (حسن)

فرمائی : پس هغوی (یعنی خلیفه ثانی) د اتو سوو دینارو په خائې زر مقرر کړل د اهل ذهب په حق کښې او دراهم ئې دولس زره مقرر کړل د چاندئ والو په حق کښې، او په اهل بقر باندې ئې دوه سوه او په اهل شاة باندې ئې دوه زره شاة او په اهل حلل باندې ئې دوه سوه حلې، وړاندې عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما فرمائی چه هغوی د اهل ذمه دیت نه دې زیات کړې بلکه هغه ئې هم په هغه حال باندې پریخودلو. د اهل ذمه د دیت باب وړاندې مستقل راروان دې، په هغې باندې به کلام هم هلته راشي، په دیت کښې چه کوم څیزونه ورکولې شي هغه ټول شپږ دی په دې حدیث کښې هغه ټول ذکر شوې دی.

[٤٥٤٣]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي الدِّيَةِ عَلَى أَهْلِ الْإِبِلِ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ، وَعَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ، وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ، وَعَلَى أَهْلِ الْحُلَلِ مِائَتَيْ حُلَّةٍ، وَعَلَى أَهْلِ الْقَمْحِ شَيْئًا لَمْ يَحْفَظْهُ مُحَمَّدٌ".

د عطاء بن ابی رباح نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام د دیت په سلسله کښې فرمائیلي دي چه په اوښانو والاباندې سل اوښان دي اوپه غواوالاباندې دوه سوه دي اوپه چیلړ والا باندې دوه زره او په کپړو والا باندې ئې دوه سوه جوړې مقررې کړې اوغنمو والاپه باره کښې چه پې څه اوفرمائیل هغه ماته یاد نه دي.

[٤٥٤٤]([2])قَالَ أَبُودَاوُد: قَرَأْتُ عَلَى سَعِيدِ بْنِ يَعْقُوبَ الطَّالَقَانِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، قَالَ: ذَكَرَ عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مِثْلَ حَدِيثِ مُوسَى، وَقَالَ: وَعَلَى أَهْلِ الطَّعَامِ شَيْئًا لَا أَحْفَظُهُ.

امام ابوداؤد فرمائی چه ماته داحدیث سعید بن یعقوب په واسطه دابو تمیله دمحمد بن اسحق نه اوهغه دعطاء نه اوهغه دجابر بن عبدالله رضی الله عنه نه اوهغه دنبی علیه السلام نه دموسی د روایت په شان بیان کړو او وئې وئیل دغمنو والا په باره کښې چه ئې څه اوفرمائیل هغه ماته یاد نه دي.

[٤٥٤٥]([3])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ خِشْفِ بْنِ مَالِكٍ الطَّائِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فِي دِيَةِ الْخَطَإِ عِشْرُونَ حِقَّةً، وَعِشْرُونَ جَذَعَةً، وَعِشْرُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ، وَعِشْرُونَ بِنْتَ لَبُونٍ، وَعِشْرُونَ بَنِي مَخَاضٍ ذُكُرٍ، وَهُوَ قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ".

عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه دقتل خطاء متعلق نبی علیه السلام فرمائیلی دی په دې کښې شل حقې دي اوشل جذعې دي اوشل بنت مخاض اوشل بنت لبون ارشل بنت مخاض دي (یعنی دیوکال والا نران اوښځې اوښې)

**قوله:** ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « فِي دِيَةِ الْخَطَإِ الخ﴾

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٤٨٢) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٤٨٢) (ضعيف)

[3]: سنن الترمذي/الديات ١ (١٣٨٦)، سنن النسائي/القسامة ٢٨ (٤٨٠٦)، سنن ابن ماجه/الديات ٦ (٢٦٣١)، (تحفة الأشراف: ٩١٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٤، ٤٥٠)، دي/الديات ١٣ (٢٤١٢) (ضعيف)

## په دية الخطاء کښې د احنافو او د حنابله دليل:

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په دې حديث کښې د قتل خطاء ديت کښې سل اوښان په دې تفصيل سره ذکر دي، حقه، جذعة، بنت محاض، بنت لبون او ابن محاض، هر يو شل شل، په دې حديث کښې پنځم څيز ابن محاض دې، هم دا مذهب د احنافو او حنابله دې، او د امام مالک او امام شافعي رحمهما الله په نزد د ابن محاض په ځائې ابن لبون دې.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري

[٤٥٤٦] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي عَدِيٍّ قُتِلَ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَتَهُ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عَبَّاسٍ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام دقتل خطاء دديت په باره کښې فرمائيلي دي چه په قبيله بنی عدي کښې يوکس قتل کړې شو نونبی عليه السلام دده ديت دولس زره (درهمه) مقرر کړو امام ابوداؤد فرمائي چه دا روايت ابن عيينه دعکرمه په ذريعه باندې بيان کړې دې او په دې کښې دابن عباس ذکر نشته.

## بَاب دِيَةِ الْخَطَإِ شِبْهِ الْعَمْدِ

### باب د قتل خطاء او د قتل شبه عمد د ديت بيان

[٤٥٤٧] (٢) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ يَوْمَ الْفَتْحِ بِمَكَّةَ فَكَبَّرَ ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ صَدَقَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ، إِلَى هَاهُنَا حَفِظْتُهُ، عَنْ مُسَدَّدٍ، ثُمَّ اتَّفَقَا، أَلَا إِنَّ كُلَّ مَأْثُرَةٍ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تُذْكَرُ وَتُدْعَى مِنْ دَمٍ أَوْ مَالٍ تَحْتَ قَدَمَيَّ، إِلَّا مَا كَانَ مِنْ سِقَايَةِ الْحَاجِّ وَسِدَانَةِ الْبَيْتِ، ثُمَّ قَالَ: أَلَا إِنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ شِبْهِ الْعَمْدِ مَا كَانَ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ مِنْهَا أَرْبَعُونَ فِي بُطُونِ أَوْلَادِهَا"، وَحَدِيثُ مُسَدَّدٍ أَتَمُّ.

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام دفتح مکې په ورځ په مکه کښې خطبه ورکړله درې ځله الله اکبري ووئيلو اوبيائي دا دعا اوفرمائيده: «لا إله إلا الله وحده صدق وعده ونصر عبده وهزم الأحزاب وحده» امام ابوداؤد وائي چه دا روايت مې تردې ځائې پورې دمسددنه يادکړې دې او په باقي روايت کښې دواړه راويان متفق دي ، واورئ دجاهليت چه څومره فضيلت رو يادجاهليت دوخت چه څومره وعدې وي برابره خبره ده چه دغه وعدې دوينووي اوکه دمال وي هغه ټولې زما دپخولاندې دي مګر حاجيانوته اوبه ورکول اودبيت الله خدمت کول اوبيائي اوفرمائيل خبردار دقتل خطاء ديت دشبه عمد دديت برابر دې، کله چه څوک په دره يا لوړ باندې قتل شوي وي نودهغه ديت سل اوښان دي په دې کښې څلويښت اوښان حامله وي، اودمسدد روايت مکمل دې.

(١): سنن الترمذي/الديات ٢ (١٣٨٨)، سنن النسائي/القسامة ٢٩ (٤٨٠٧)، سنن ابن ماجه/الديات ٦ (٢٦٢٩)، (تحفة الأشراف: ٦١٦٥)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الديات ١١ (٢٤٠٨) (ضعيف)

(٢): سنن النسائي/القسامة ٢٧ (٤٧٩٧)، سنن ابن ماجه/الديات ٥ (٢٦٢٨)، (تحفة الأشراف: ٨٨٨٩) (حسن)

## شرح الحديث :

**قوله:** ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- خَطَبَ يَوْمَ الْفَتْحِ بِمَكَّةَ فَكَبَّرَ ثَلاَثًا ثُمَّ قَالَ « لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ صَدَقَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ ».« أَلاَ إِنَّ كُلَّ مَأْثُرَةٍ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تُذْكَرُ وَتُدْعَى مِنْ دَمٍ أَوْ مَالٍ تَحْتَ قَدَمَيَّ إِلاَّ مَا كَانَ مِنْ سِقَايَةِ الْحَاجِّ وَسِدَانَةِ الْبَيْتِ »﴾ يعنی په کومه ورځ باندې چه مکه مکرمه فتح شوه رسول اللهﷺ خطبه ارشاد اوفرمائيله او په روستو روايت کښې دی چه دا خطبه رسول اللهﷺ د بيت الله په پاوړئ باندې اودريدلو سره ورکړه [1] چه په هغې کښې ئې درې کرته تکبير اوکړو او بيا ئې دا جملې ارشاد اوفرمائيلې چه د الله پاک نه سوا هيڅوک معبود نشته، چا چه خپله وعده رشتينې کړه او د خپل بنده نصرت ئې اوفرمائيلو. د وعدې نه مراد د مکې مکرمې فتح کيدل دی او د اسلام غلبه. او وړاندې دی او کوم ذات چه د کفارو لښکرو ته شکست ورکړو. اشاره ده غزوه احزاب او غزوه خندق طرف ته، او دا ئې هم ارشاد اوفرمايه چه بيشکه کوم امور چه د جاهليت په زمانه کښې عزت او فخر ګڼړلې کيدو او هغه حقوق کوم چه به هغوی خپل حق ګڼړلو، مثلا ديت يا د سود مال يا سودی قرضه، هغه ټول زما د خپو لاندې دی، يعنی زه هغې ته باطل وايم، يعنی اسلام راتلو سره هغه باطل کړل، خو بعض امور د جاهليت د دې نه مستثنی دی (چه د هغې ذکر وړاندې راځی) يعنی سقاية الحاج د حج په زمانه کښې د حاجيانو دپاره سبيل لګول او هغوی ته اوبه ورکول. او د بيت الله خدمت او دربانی، او بيا په حديث کښې قتل خطاء کوم چه شبه عمد وی د هغې ديت ذکر دې چه هغه سل اوښان دی چه په هغې کښې څلويښت اوښې بلاربې وی.

والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، واخرجه البخاري في التاريخ الكبير وساق اختلاف الرواة فيه، واخرجه الدارقطني في سننه وساق ايضا اختلاف الرواة فيه، قاله المنذري.

[۴۵۴۸] [2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ خَالِدٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَ مَعْنَاهُ.

وهيب د خالد په دې سند سره د مخکنی روايت هم معنی روايت بيان کړې دې.

[۴۵۴۹] [3] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ أَوْ فَتْحِ مَكَّةَ عَلَى دَرَجَةِ الْبَيْتِ أَوِ الْكَعْبَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا رَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَيْضًا، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، رَوَاهُ أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، مِثْلَ حَدِيثِ خَالِدٍ، وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ يَعْقُوبَ السَّدُوسِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَوْلُ زَيْدٍ، وَأَبِي مُوسَى، مِثْلَ حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه د نبی عليه السلام نه د تير شوی روايت په شان روايت بيان کړې دې مګر دا

---

[1] د بيت الله شريف دروازه د زمکې د سطح نه کافی اوچته ده د انسان د قد نه هم زياته هم په دې وجه بيت الله ته د داخليدو دپاره د پاوړئ ضرورت وی.

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸۸۸۹)

[3]: سنن ابن ماجه/الديات ۵ (۲۶۲۸)، وانظر حديث رقم: (۴۵۴۷)، (تحفة الأشراف: ۷۳۷۲) (ضعيف)

اضافه ئي کړې ده چه نبی ﷺ دفتح مکي په ورځ په مکه کښې یادبیت الله په پوړوکښې خطبه ورکړله. » امام ابوداؤد وائی چه دا روایت ابن عینه هم دعلی بن زید نه اوهغه دقاسم بن ربیعه نه اوهغه دابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړي دي.

# بَابُ أَسْنَانِ الْإِبِلِ

## باب: داوښانو دعمرونو تفصیل

[٤٥٥٠]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: "قَضَى عُمَرُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ ثَلَاثِينَ حِقَّةً، وَثَلَاثِينَ جَذَعَةً، وَأَرْبَعِينَ خَلِفَةً، مَا بَيْنَ ثَنِيَّةٍ إِلَى بَازِلِ عَامِهَا".

**ترجمه**: دمجاهد نه دشبه عمد دقتل متعلق منقول دي چه عمرفاروق رضی الله عنه فیصله کړې وه چه درې دیرش حقي اودیرش جذعي اوڅلویښت هغه اوښان کوم چه عمردشپږو اونهوکالو په مینځ کښې وي.

### د امام شافعی او امام محمد دلیل:

**قوله**: ﴿ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قَضَى عُمَرُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ ثَلَاثِينَ حِقَّةً وَثَلَاثِينَ جَذَعَةً وَأَرْبَعِينَ خَلِفَةً ﴾ د شبه عمد دا دیت کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دې هم دا د امام شافعی او امام محمد رحمهما الله مسلک دې یعنی اثلاثا، او د شیخین او امام احمد په نزد ارباعا دې وتقدم بیان الاختلاف قبل ذلک... په دې حدیث کښې دا هم دی چه دا اوښان د ثنیه او بازل عام ترمینځه کیدل پکار دی، ثنیه هغه اوښه ده کومه چه د پنځو کالو کیدو سره په شپږم کال کښې داخله شی، او په بازل هغه دی چه د اتم کال کیدو سره په نهم کښې داخله شی، د بازل اوښو په نومونو کښې چه کومې د عمر په لحاظ سره وی دا آخری نوم دې یعنی کوم چه په نهم کال کښې داخل وی، د دې نه پس چه کله په لسم کال کښې داخل شی نو دې ته مخلف وائی، او دا دواړه نومونه د خپلې مادې په اعتبار سره آخری دی پس د هغې نه روستو داسې وئیلې شی. بازل عام بازل عامین، مخلف عام او مخلف عامین وهکذا.

[٤٥٥١]() حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: "فِي شِبْهِ الْعَمْدِ أَثْلَاثٌ: ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ حِقَّةً، وَثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً، وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ ثَنِيَّةً، إِلَى بَازِلِ عَامِهَا وَكُلُّهَا خَلِفَةٌ".

دعاصم بن ضمره نه روایت دې چه علی بن ابی طالب کرمه الله وجهه دشبه عمد په باره کښې وئیلی دی په درې ثلثونوتقسیم دې درې دیرش حقي دي اودرې دیرش جذعي دي اوڅلوردیرش هغه دوه کلن اوښان دي چه تول غاښونه ئې راختلي وي یعنی عمر ئې اته کالوته رسیدلي اوحامله شوي وي.

**قوله**: ﴿ عَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه أَنَّهُ قَالَ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ أَثْلَاثٌ الخ ﴾ په دې کښې د شبه عمد دیت خو دې اثلاثا خو په اعداد کښې فرق دې پس په دې کښې درې دیرش حقه او جذعه درې

[1]: تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)

[2]: تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)

دیرش او خلفه څلور دیرش دی، دا په ائمه اربعه کښ د چا مذهب هم نه دې.

[۴۵۵۳](۱)حدثنا هَنَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ "فِي شِبْهِ الْعَمْدِ: خَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ".

د ابوعیاض نه روایت دې فرمائی چه د عثمان بن عفان به او زید بن ثابت نه د دیت مغلظه په باره کښې مروي دي چه څلویښت جزعه اوښان اودیرش حقي اودیرش بنت لبون، اودقتل خطاء په دیت کښې دیرش حقي دیرش بنت لبون شل ابن لبون اوشل بنت مخاض دي.

**قوله:** ﴿ قال علی رضی الله تعالی عنه فی الخطاء ارباعا ﴾ یعنی د قتل خطاء دیت ارباعا دې. په دې تفصیل سره حقه، جذعة، بنت لبون، بنت مخاض، هر یو پنځویښت پنځویشت.

[۴۵۵۲](۲)عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ " فِي شِبْهِ الْعَمْدِ: خَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ" .

عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د شبه العمد متعلق فرمائیلی دی چه په دې کښې پنځه ویشت حقیې دی اوپنځه ویشت جزعې دی اوپنځه ویشت بنت لبون اوپنځه ویشت بنت مخاض.

**قوله:** ﴿ عن علقمة والاسود قال عبدالله فی شبه العمد الخ ﴾

په دې حدیث کښ د شبه عمد دیت ارباعا ذکر دې په هغه تفصیل سره کوم چه شیخین او امام أحمد اختیار کړې دي وقد تقدم.

[۴۵۵۴](۳)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ، عَنْ أَبِي عِيَاضٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ "فِي الْمُغَلَّظَةِ: أَرْبَعُونَ جَذَعَةً خَلِفَةً، وَثَلَاثُونَ حِقَّةً، وَثَلَاثُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ، وَفِي الْخَطَإِ: ثَلَاثُونَ حِقَّةً، وَثَلَاثُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ، وَعِشْرُونَ بَنُو لَبُونٍ ذُكُورٍ، وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ".

دعاصم بن ضمره نه روایت دې چه علی بن ابی طالب کرمه الله وجهه دقتل خطاء په باره کښې وئیلی دی په څلور ربع و تقسیم دې پنځه ویشت حقي دي او پنځه ویشت جزعي دي او پنځه ویشت بنت لبون او پنځه ویشت بنت مخاض.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ فِي الْمُغَلَّظَةِ الخ ﴾

په دې روایت کښ د شبه عمد دیت هم اثلاثا دې په دې تفصیل سره، څلویښت جذعه چه خلفه وی یعنی حامله او دیرش حقه او دیرش بنت لبون او د قتل خطاء دیت په دې کښ ارباعا دې حقه، او بنت لبون دیرش دیرش، او ابن لبون او بنت مخاض شل شل.

[۴۵۵۵](۴)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ فِي الدِّيَةِ الْمُغَلَّظَةِ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ سَوَاءً.

دسعید بن مسیب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه د زید بن ثابت رضی الله عنه نه د دیت مغلظه په باره کښې په دې طریقه باندې روایت منقول دې لکه څنګه چه مخکښې تیر شو،

---

(۱): تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)
(۲): تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)
(۳): تفرد به أبو داود (صحيح)
(۴): تفرد به أبو داود (صحيح الإسناد)

(¹) قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ وَعَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ إِذَا دَخَلَتِ النَّاقَةُ فِي السَّنَةِ الرَّابِعَةِ فَهُوَ حِقٌّ وَالْأُنْثَى حِقَّةٌ، لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّ أَنْ يُحْمَلَ عَلَيْهِ وَيُرْكَبَ، فَإِذَا دَخَلَ فِي الْخَامِسَةِ فَهُوَ جَذَعٌ وَجَذَعَةٌ، فَإِذَا دَخَلَ فِي السَّادِسَةِ وَأَلْقَى ثَنِيَّتَهُ فَهُوَ ثَنِيٌّ وَثَنِيَّةٌ، فَإِذَا دَخَلَ فِي السَّابِعَةِ فَهُوَ رَبَاعٌ وَرَبَاعِيَةٌ، فَإِذَا دَخَلَ فِي الثَّامِنَةِ وَأَلْقَى السِّنَّ الَّذِي بَعْدَ الرَّبَاعِيَةِ فَهُوَ سَدِيسٌ وَسَدَسٌ، فَإِذَا دَخَلَ فِي التَّاسِعَةِ وَفَطَرَ نَابُهُ وَطَلَعَ فَهُوَ بَازِلٌ، فَإِذَا دَخَلَ فِي الْعَاشِرَةِ فَهُوَ مُخْلِفٌ ثُمَّ لَيْسَ لَهُ اسْمٌ، وَلَكِنْ يُقَالُ بَازِلُ عَامٍ وَبَازِلُ عَامَيْنِ وَمُخْلِفُ عَامٍ وَمُخْلِفُ عَامَيْنِ إِلَى مَا زَادَ، وَقَالَ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ: ابْنَةُ مَخَاضٍ لِسَنَةٍ، وَبِنْتُ لَبُونٍ لِسَنَتَيْنِ، وَحِقَّةٌ لِثَلَاثٍ، وَجَذَعَةٌ لِأَرْبَعٍ، وَثَنِيٌّ لِخَمْسٍ، وَرَبَاعٌ لِسِتٍّ، وَسَدِيسٌ لِسَبْعٍ، وَبَازِلٌ لِثَمَانٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَبُو حَاتِمٍ، وَالْأَصْمَعِيُّ: وَالْجُذُوعَةُ وَقْتٌ وَلَيْسَ بِسِنٍّ، قَالَ أَبُو حَاتِمٍ: قَالَ بَعْضُهُمْ: فَإِذَا أَلْقَى رَبَاعِيَتَهُ فَهُوَ رَبَاعٌ، وَإِذَا أَلْقَى ثَنِيَّتَهُ فَهُوَ ثَنِيٌّ، وَقَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: إِذَا أَلْقِحَتْ فَهِيَ خَلِفَةٌ، فَلَا تَزَالُ خَلِفَةً إِلَى عَشَرَةِ أَشْهُرٍ، فَإِذَا بَلَغَتْ عَشَرَةَ أَشْهُرٍ فَهِيَ عُشَرَاءُ، قَالَ أَبُو حَاتِمٍ: إِذَا أَلْقَى ثَنِيَّتَهُ فَهُوَ ثَنِيٌّ، وَإِذَا أَلْقَى رَبَاعِيَتَهُ فَهُوَ رَبَاعٌ.

امام ابوداؤد فرمائی ابوعبید دیونه دزیاتو کسانونه نقل کوي کله چه یو اوښ په څلورم کال کښې داخل شي نوداحق دي اوددي مونث حقة دي ځکه چه دا دسورلئ اودبار وړلو لائق ګرځي شي ، اوکله چه په پنځم کال کښې داخل شي نودا جزعه ده اوکله چه په شپږم کال کښې داخل شي او مخامخ غاښونه وغورځوي ثني دي کله چه بیاپه اوم کال کښې داخل شي نودي ته رباع اورباعیه وئیلې شي کله چه په اتم کال کښې داخل شي اوهغه غاښونه وغورځوي کوم چه په څلورم کال راخیژي نودغه اوښ ته سدیس وئیلې شي اودغه اوښ چه کله نهم کال ته واوړي او نوي غاښونه ئي راوخیژي نودي ته بازل وائی اودغه اوښه چه کله په لسم کال کښې داخل شي نودي ته مخلف وائی اوددینه پس داوښې بل نوم نشته لیکن بیا داسې وئیلې شي چه دیوآل بازل اود دوو کالو بازل دیو کال مخلف آود دوو کالو مخلف ، نضر بن شمیل راوی وئیلی دی بنت مخاض دیوال بجي ته اوبنت لبون داوښ دوه کلن بچي ته وئیلې شي اوحقه د درې کالو اوښې ته اوجزعه څلورکلن اوښ ته وئیلې شي ثني پنځه کلن رباع شپږ کلن سدیس اوه کلن بازل اته کلن، ابوحاتم او اصمعي وئیلی دی چه جذوعه دیووخت نوم دې د کوم عمر نوم نه دې ابوحاتم وئیلی دی چه کله دغه اوښ رباعي غاښونه وغورځوي نودا رباع شي ، ابوعبیده وئیلی دی چه کله دغه اوښه حامله شي نودي ته حلفه وئیلې شي دلسو میاشتو پورې اودلسومیاشتونه پس دغي اوښې ته عشره وئیلې شي ، امام ابوحاتم وئیلی دی چه کله ددغه اوښ مخامخ غاښونه راوخیژي نوثني ورته وئیلې شي اوکله چه درباعیه اوښې غاښونه راوخیژي نه رباع ورته وئیلې شي.

﴿ قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ وَعَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ ﴾ په بعض نسخو کښې د دې عبارت نه مخکښې ﴿ باب اسنان الابل ﴾ ذکر دې، او د دې نه مخکښې په کتاب الزکوة کښې د﴿ تفسیر الاسنان الابل ﴾ په عنوان سره یو مفصل باب تیر شوې دې چه په هغې کښې د دې نه زیات تفصیل ذکر دې فتذکر خو هلته دا جمله نه ده تیره شوې فاذا بلغ عشرة اشهر فهی عشراء.... باقی چونکه هر څه تیر شوي په دې وجه دلته د لیکلو حاجت نشته.

(¹): تفرد به أبو داود (صحيح الإسناد)

# بَابُ دِيَاتِ الْأَعْضَاءِ

## باب: د اندامونو د دیت بیان

[٤٥٥٦] [1] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ غَالِبٍ التَّمَّارِ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ مَسْرُوقِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْأَصَابِعُ سَوَاءٌ عَشْرٌ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ".

دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي ګوتي په دیت کښې یوشان دي دهري ګوتي په دیت کښې به لس لس اوښان ورکولي شي.

[٤٥٥٧] [2] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ غَالِبٍ التَّمَّارِ، عَنْ مَسْرُوقِ بْنِ أَوْسٍ، عَنِ الْأَشْعَرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْأَصَابِعُ سَوَاءٌ، قُلْتُ: عَشْرٌ عَشْرٌ، قَالَ: نَعَمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ غَالِبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ مَسْرُوقَ بْنَ أَوْسٍ، وَرَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ، قَالَ: حَدَّثَنِي غَالِبٌ التَّمَّارُ، بِإِسْنَادِ أَبِي الْوَلِيدِ، وَرَوَاهُ حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي صَفِيَّةَ، عَنْ غَالِبٍ، بِإِسْنَادِ إِسْمَاعِيلَ.

دمسروق بن اوس رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه ابوموسی رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي ګوتي په دیت کښې یوشان دي ماورته ووئیل ایا دهري ګوتي په دیت کښې به لس لس اوښان ورکولي شي؟هغه ووئیل هو امام ابوداؤد فرمائي دا روایت محمد بن جعفر په واسطه دشعبه سره دغالب نه بیان کړې دي اوهغه دمسروق بن اوس نه اوریدلی دی او اسماعیل دغالب نه دابوالولید په سند سره بیان کړې دي، اوحنظله دغالب نه داسماعیل په سند سره بیان کړې دي۔ دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائي نبی کریم و فرمائیلي دي:دا اودا یعنی مینځنۍ مسواکي اورکچه ګوتمه په دیت کښې یوبرابر دي

[٤٥٥٨] [3] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، كُلُّهُمْ عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "هَذِهِ وَهَذِهِ سَوَاءٌ يَعْنِي الْإِبْهَامَ وَالْخِنْصَرَ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ده فرمائي ئي کریم فرمائیلي دي تولي ګوتي په دیت کښې یوشان دي اوتول غاښونه په دیت کښې یوشان دي مخامخ غاښونه اودجامو غاښونه دا اودا په دیت کښې یوشان دي امام ابوداؤد وائی همدارنګي نقل کړې دي دا روایت نضر بن شمیل دشعبه نه دعبدالصمد دمتن په شان ، ابوداؤد وائی دا حدیث مونږ ته داري هم دنضرنه بیان کړې دي

[1]: سنن النسائي/القسامة ٣٨ (٤٨٤٧)، سنن ابن ماجه/الديات ١٨ (٢٦٥٤)، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٧/٤، ٣٩٨، ٤٠٤)، دي/الديات ١٥ (٢٤١٤) (صحيح)

[2]: انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٠) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الديات ٢٠ (٦٨٩٥)، سنن الترمذي/الديات ٤ (١٣٩٢)، سنن النسائي/القسامة ٣٨ (٤٨٥١)، سنن ابن ماجه/الديات ١٨ (٢٦٥٢)، (تحفة الأشراف: ٦١٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٩/١)، سنن الدارمي/الديات ١٥ (٢٤١٥) (صحيح)

[٤٥٥٩](1)حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنِي شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الأَصَابِعُ سَوَاءٌ وَالأَسْنَانُ سَوَاءٌ الثَّنِيَّةُ وَالضِّرْسُ سَوَاءٌ، هَذِهِ وَهَذِهِ سَوَاءٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، عَنْ شُعْبَةَ، بِمَعْنَى عَبْدِ الصَّمَدِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدَّثَنَاه الدَّارِمِيُّ، عَنِ النَّضْرِ.

دابن عباس ﷠ نه روايت دې فرمائى نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى دټولو ګوتو په ديت كښې حكم يو دې او ټولې غاښونه په ديت كښې يوشان دي

[٤٥٦٠](2)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ، أَخْبَرَنَا أَبُو حَمْزَةَ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الأَسْنَانُ سَوَاءٌ وَالأَصَابِعُ سَوَاءٌ".

دابن عباس ﷠ نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ دخپو ګوتې يوبرابر وګرځولې (د ديت په باره كښې) برابر خبره ده چه دخپوهره يوه ګوته وي اوكه دلاس ګوته وي.

[٤٥٦١](3)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ أَبَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ سَوَاءً".

عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوددہ پلار دده دنيكه نه روايت كوى فرمائى چه نبى كريم ﷺ دخطې په دوران كښې اوفرمائيل او په دې وخت كښې نبى ﷺ خپله شاه مباركه بيت الله شريف ته كړې وه، په ګوتو كښې ديت لس لس اوښان دي.

[٤٥٦٢](4)حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "فِي خُطْبَتِهِ وَهُوَ مُسْنِدٌ ظَهْرَهُ إِلَى الْكَعْبَةِ فِي الأَصَابِعِ: عَشْرٌ عَشْرٌ".

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷠ وائى چه نبى كريم ﷺ په خپله خطبه كښې كله چه هغوى خپله شا كعبې ته لګولې وه، اوفرمائيل: په ګوتو كښې لس لس اوښان دى.

[٤٥٦٣](5)حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ أَبُو خَيْثَمَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فِي الأَسْنَانِ: خَمْسٌ خَمْسٌ".

عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اوددہ پلار دده دنيكه نه روايت كوى فرمائى چه نبى كريم فرمائيلى دى دهر غاښ په ديت كښې به پنځه پنځه اوښان وركولې شي.

د دې باب د شروع ډير روايتونه د اصابع او اسنان په ديت يعنى ارش كښې ذكر دى، هغه دا چه په هر اصبع كښې من اصابع اليد والرجل لس اوښان دى او په اسنان كښې د هر سن په بدل كښې پنځه اوښان دى، لهذا د دواړو لاسونو د لسو ګوتو ديت به سل اوښان وى، او هم دغه شان په اصابع الرجلين كښې هم، او د دې نه معلومه شوه چه صرف د لاس په ګوتو كښې

(1): سنن ابن ماجه/الديات ١٧ (٢٦٥٠)، (تحفة الأشراف: ٦١٩٣) (صحيح)

(2): سنن الترمذي/الديات ٤ (١٣٩١)، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٩/١) (صحيح)

(3): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٩) (صحيح)

(4): سنن النسائي/القسامة ٣٨ (٤٨٥٤)، (تحفة الأشراف: ٨٦٨٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الديات ١٨ (٢٦٥٣)، مسند احمد (٢٠٧/٢) (حسن صحيح)

(5): سنن النسائي/القسامة ٣٨ (٤٨٥٤)، سنن ابن ماجه/الديات ١٩ (٢٣٥٤)، (تحفة الأشراف: ٨٦٨٥) (حسن صحيح)

پنځوس اوښان دی هم دغه شان صرف د یوې خپې په ګوتو کښې هم پنځوس اوښان دی، د ید او د رجل د هر یو جنس بیل بیل دې او د دیت اصول او قاعده دا ده چه په هغې کښې د جنس منفعت اعتبار وی او جنس منفعت پوره ضائع کړې شو نو پوره دیت به وی او په نیم کښې به نصف دیت وی، هم دغه شان به په عینین کښې دا قاعده جاری کیږی، او پوزه چونکه په خپل جنس کښې یوه ده لهذا د هغې په ضائع کولو کښې به پوره دیت واجب وی، دلته په حدیث کښې دی ﴿ هذه وهذه سوآء ﴾ یعنی الابهام والخنصر په بل روایت کښې دی ﴿الاسنان سواء والاصابع سواء اصابع الیدین والرجلین سواء﴾ قال الخطابی واتفق عامة اهل العلم علی ترک التفصیل وان فی کل سن خمسة ابعرة وفی کل اصبع عشر عشر من الابل، خناصرها واباهمها سواء، الی آخر ما ذکر فی البذل....... یعنی صحیح مسئله هم بالاتفاق هم دا ده. د سیدنا عمر رضی الله عنه په باره کښې منقول دی چه هغوی به په شروع کښې د ګوتو ترمینځه فرق فرمائیلو ففی البذل عن الخطابی : أنه کان یجعل في الإبهام خمس عشرة ، وفي السبابة عشراً ، وفي الوسطی عشراً ، وفي البنصر تسعاً ، وفي الخنصر ستاً حتی وجد کتاباً عند أبي عمرو بن حزم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم أن الأصابع کلها سواء فأخذ به ﴾.

## د اندامونو د دیت ضابطه او قاعده :

د اندامونو په دیت کښې فقهاء کرامو دا قاعده لیکلې ده چه په کوم صورت کښې د جنس منفعت تفویت په طریقه د کمال وی، یا د جمال مقصود تفویت وی هلته به پوره دیت واجب وی، ففی الهدایة:وفي المارن الدیة وفي اللسان الدیة وفي الذکر الدیة والأصل في الأطراف أنه إذا فوت جنس المنفعة علی الکمال أو أزال جمالا مقصودا في الآدمي علی الکمال یجب کل الدیة لإتلافه النفس من وجه وهو ملحق بالإتلاف من کل وجه تعظیما للآدمي..... یعنی جنس منفعت لره فوت کول دا فی الجمله اتلاف نفس دې او د فی الجمله اتلاف نفس حکم هغه مقرر کړې شوې دې کوم چه اتلاف د من کل وجه دې تعظیما للادمی او د جمال مقصود په مثال کښې لحیه هم لیکلې ده ففی الهدایة ۵۷۰/۴ ﴿ وفی اللحیة اذا خلقت فلم تنبت الدیة لانه یفوت به منفعة الجمال ﴾ یعنی که د چا ګیره ئې داسې اوخریله چه د هغې نه پس دوباره را اونه خیژی نو هلته به هم کامل دیت واجب وی ځکه چه ګیره د سړی په حق کښې داسې جمال دې کوم چه مقصود دې، په خلاف د زنانه د ګیرې چه که د هغې په مخ باندې ویښته راوځی او هغه ترې نه څوک لرې کړی نو په هغې کښې هیڅ واجب نه دی ځکه چه ګیره د زنانو په حق کښې نقص دې نه جمال، کذافی الشامی۳۷۰/۵.

خان پوهه کړه چه د اندامونو دیت بعض وخت دنفس د دیت نه زیاتیږی پس فقهاء کرامو تصریح کړې ده چه که څوک د چا ټول غاښونه مات کړی نو چونکه په یو غاښ کښې پنځه اوښان منصوص دی په دې اعتبار سره به په ټولو غاښونو کښې یو سل شپیتۀ اوښان واجب وی لکه چه په بذل المجهود کښې د درمختار نه نقل کړې شوې دی او د دې په باره کښې ئې لیکلې دی : ولا باس فیه لانه ثابت بالنص علی خلاف القیاس اهـ.

حدیث ابی موسی رضی الله تعالی عنه الثانی اخرجه النسائی وابن ماجه وحدیث ابن عباس رضی الله تعالی عنهما الاول اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه وحدیث الثانی اخرجه الترمذی وابن ماجه (بالفاظ مختلفة) وحدیث عمرو بن شعیب الاول اخرجه النسائی وابن ماجه والثانی اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[٤٥٦٤]()قَالَ أَبُو دَاوُد: وَجَدْتُ فِي كِتَابِي، عَنْ شَيْبَانَ، وَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْهُ، فَحَدَّثْنَاهُ أَبُو بَكْرٍ صَاحِبٌ لَنَا ثِقَةٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ رَاشِدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَوِّمُ دِيَةَ الْخَطَإِ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى أَرْبَعَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ عَدْلَهَا مِنَ الْوَرِقِ وَيُقَوِّمُهَا عَلَى أَثْمَانِ الْإِبِلِ، فَإِذَا غَلَتْ رَفَعَ فِي قِيمَتِهَا، وَإِذَا هَاجَتْ رُخْصًا نَقَصَ مِنْ قِيمَتِهَا، وَبَلَغَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ أَرْبَعِ مِائَةِ دِينَارٍ إِلَى ثَمَانِ مِائَةِ دِينَارٍ، وَعَدْلُهَا مِنَ الْوَرِقِ ثَمَانِيَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ، وَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ، وَمَنْ كَانَ دِيَةُ عَقْلِهِ فِي الشَّاءِ فَأَلْفَيْ شَاةٍ، قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْعَقْلَ مِيرَاثٌ بَيْنَ وَرَثَةِ الْقَتِيلِ عَلَى قَرَابَتِهِمْ فَمَا فَضَلَ فَلِلْعَصَبَةِ، قَالَ: وَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَنْفِ إِذَا جُدِعَ الدِّيَةَ كَامِلَةً، وَإِنْ جُدِعَتْ ثَنْدُوَتُهُ فَنِصْفُ الْعَقْلِ خَمْسُونَ مِنَ الْإِبِلِ أَوْ عَدْلُهَا مِنَ الذَّهَبِ أَوِ الْوَرِقِ أَوْ مِائَةُ بَقَرَةٍ أَوْ أَلْفُ شَاةٍ، وَفِي الْيَدِ إِذَا قُطِعَتْ نِصْفُ الْعَقْلِ، وَفِي الرِّجْلِ نِصْفُ الْعَقْلِ، وَفِي الْمَأْمُومَةِ ثُلُثُ الْعَقْلِ ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ مِنَ الْإِبِلِ وَثُلُثٌ أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ أَوِ الْوَرِقِ أَوِ الْبَقَرِ أَوِ الشَّاءِ وَالْجَائِفَةُ مِثْلُ ذَلِكَ، وَفِي الْأَصَابِعِ فِي كُلِّ أُصْبُعٍ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ، وَفِي الْأَسْنَانِ فِي كُلِّ سِنٍّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ، وَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ عَصَبَتِهَا مَنْ كَانُوا لَا يَرِثُونَ مِنْهَا شَيْئًا إِلَّا مَا فَضَلَ عَنْ وَرَثَتِهَا، وَإِنْ قُتِلَتْ فَعَقْلُهَا بَيْنَ وَرَثَتِهَا وَهُمْ يَقْتُلُونَ قَاتِلَهُمْ، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْسَ لِلْقَاتِلِ شَيْءٌ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَارِثٌ فَوَارِثُهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِ وَلَا يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئًا"، قَالَ مُحَمَّدٌ: هَذَا كُلُّهُ حَدَّثَنِي بِهِ سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ مِنْ أَهْلِ دِمَشْقَ هَرَبَ إِلَى الْبَصْرَةِ مِنَ الْقَتْلِ.

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه اوده پلار دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه په غاښونو کښې دیت پنځه پنځه اوښان دي (یعنی دهر غاښ دیت پنځه اوښان دي) امام ابوداؤد فرمائی ماپخپل کتاب کښې دشعبان رحمه الله نه روایت نقل کړې دې لیکن مادهغه نه داحدیث نه دې اوریدلې بیازمایوملګري ابوبکر ماته روایت بیان کړو دشعبان نه اوهغه د محمد بن راشد نه اوهغه دسلیمان بن موسی نه اوهغه دعمرو بن شعیب نه هغه دخپل پلار نه اوده پلار د خپل پلار نه یعنی دده دنیکه نه چه نبی علیه السلام به دقتل خطاء دپاره دیت مقررولو دلو په اوسیدونکوباندې څلورسوه دیناره یاددې برابر سپین زر اویابه ئې ددې قیمت ولګولو اوداوښانو قیمت به ئې هم اولګولو (یعنی دزرود قیمت برابر به اوښان په دیت کښې ورکړې شو) بیاچه کله ګراني شروع کیده نوددې په مالیت کښې به ئې اضافه کوله اوچه کله به ارزاني راتله نودیت به ئې کمولو دنبی علیه السلام په دور کښې ددیت قیمت دڅلور سوه دینارونه اته سوه دینارونه رسیدلې وو اوددې برابر سپین زر اته زره درهم اونبی علیه السلام په غوار اوغوایانو والاخلقوباندې دوه سوه غوا مقررکړې وې اوپه

(): سنن النسائي/القسامة ٢٧ (٤٨٠٥)، سنن ابن ماجه/الديات ٦ (٢٦٣٠)، (تحفة الأشراف: ٨٧١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٣/٢، ٢١٧، ٢٢٤) (حسن)

چیلوو الابا ندې دوه زره راوی وائی چه نبی ﷺ اوفرمائيل ددیت مال دمقتول دوارثانو میراث دې دخپلې رشته داری مطابق دې چه کوم مالی ددې وارثانونه فالتو پاتې شي نوهغه به دمړي عصبات ته ملاویږي ، راوی وئیلی دی چه نبی ﷺ اوفرمائيل کله چه دچانه پوره پوزه پریکړې شي نوپوره دیت به ورباندې لازمیږي ، اوکله چه دپوزې لاندې نرمه حصه پریکړې شي نونیم دیت به وي یعنی پنځوس اوښان یاددې برابر سره زر یاسیل غواګاني یازر چیلی اوکله چه دچاپولاس پریکړې شي نو په دې صورت کښې به نیم دیت ضروری وي او په دې طریقې سره په یوه خپه کښې هم نیم دیت اداکول ضروری دی او ماموه (یعنی هغه زخم وغیره کوم چه دماغوته ورسیږي) ـ په دې کښې ددیت دریمه حصه اداکول دي یعنی درې دیرش اوښان اویوثلث یاددې برابر سپین زر یاسره زر یاغواګاني یاچیلۍ او په جائفه (یعنی هغه زخم چه خیټې ته ورسیږي) کښې هم داحکم دې یعنی کوم حکم چه دماموه د هغه دجائفه هم دې اوپه ګوتوکښې دهرې ګوتې په عوض کښې لس اوښان اداکول ضروری دی اودهرغاښ په بدل کښې پنځه اوښان ، اونبی ﷺ حکم اوکړو چه دښځې دجنایت دیت به ددې په عصباتو باندې تقسیمیږي یعنی هغه عصبات کوم چه دښځې دکوم څیز وارثان نشي جوړیدې البته کوم چه دذوي الفروض باقی پاتې شي دوی دهغوی وارثان جوړیدې شي پس که چرې کومه ښځه خپل ځان پخپله مړ کړي نوددې دیت به ددې په ټولو وارثانو تقسیمیږي اوغه خلق به دقصاص مالکان هم وي نبی ﷺ اوفرمائيل قتل کونکي ته به دترکي نه هیڅ نه ملاویږي اوکه چرې دمقتول وارث نه وي نوبیاچه کوم دټولونه نزدې رشته داز وي هغه ددې وارث دې لیکن قتل کونکه هرګز وارث نشي جوړیدې محمد اووئیل چه داټول څه چه بیان شول سلیمان دعمرو بن شعیب نه اوهغه دخپل پلارنه اوده پلار دده دنیکه نه اوهغه دنبی ﷺ نه نقل کړیدي.

**قوله:** ﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يُقَوِّمُ دِيَةَ الْخَطَإِ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى أَرْبَعَمِائَةِ دينارا وَعَدْلَهَا مِنَ الْوَرِقِ يُقَوِّمُهَا عَلَى أَثْمَانِ الإِبِلِ فَإِذَا غَلَتْ رَفَعَ فِى قِيمَتِهَا....الخ﴾

## شرح الحديث:

یعنی رسول الله ﷺ به د قتل خطاء د دیت قیمت د اهل قری په حق کښې څلور سوه دینارونه متعین فرمائیلو یا د هغې د قیمت برابر سپین زر، او د دیت مقدار متعین کولو کښې به ئې د اوښانو د قیمت اعتبار کولو، چه کله به اوښان ګران شو نو د دیت قیمت به رسول الله ﷺ زیاتولو او کله به چه ارزان شو نو قیمت به ئې کمولو او د دیت قیمت د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د څلورو سوو دینارو نه تر د اتو سوو دینارو پورې پاتې شوې دې یا د هغې برابر اته زره درهم، حاصل دا چه په دیت کښې د اوښانو تعداد خو متعین دې په هغې کښې هیڅ کمې یا زیادت نشته، او که یو سړې د اوښانو په ځائې دراهم او دنانیر ورکړی نو هغه به د اوښانو د قیمت په اعتبار سره ورکولې شي.

وړاندې په روایت کښې دی : ﴿قال رسول الله ﷺ إِنَّ الْعَقْلَ مِيرَاثٌ بَيْنَ وَرَثَةِ الْقَتِيلِ عَلَى قَرَابَتِهِمْ

فَمَا فَضَلَ فَلِلْعَصَبَةِ ﴾ يعنى د مقتول ديت به د هغه په ميراث كښې شمارلې كيږى، او د مقتول په وارثانو كښې به د نور ميراث سره تقسيميږى په حسب د قرابت چه د چا څومره حصه وى، چه په هغې كښې به ذوى الفروض مقدم ساتلې شى، د هغوى نه چه څه پاتې شى هغه به د عصبه دپاره وى.

او وړاندې په روايت كښې دى چه د رسول الله ﷺ فيصله د انف په باره كښې دا ده چه كه هغه د جرړې نه پرې كړې شى نو پوره ديت به وى، او كه د هغې پورته نرمه حصه پرې كړې شى نو بيا نيم ديت دې، پنځوس اوښان يا دهغې د قيمت برابر سرۀ او سپين زر. ياسل غواګانې يا زر بيزې، اوديو لاس په پرې كيدو كښې نيم ديت او هم دغه شان په يوه خپه كښې

﴿ وفى المامومة ثلث العقل ﴾ مامومه د سر هغه زخم كوم چه ام الدماغ ته اورسيږى په دې كښې رسول الله ﷺ ثلث ديت يعنى درې ديرش اوښان او د يو اوښ ثلث مقرر كړې دې، او جائفه كښې هم ثلث ديت دې، جائفه هغه زخم كوم چه خيټې ته اورسيږى، په دې حديث كښې د شجتين ذكر يا د مامومة او جائفه، په كنز كښې د الديات د لاندې د شجاج په باره كښې مستقل يو فصل دې د هغې په حاشيه كښې ليكلې دى چه مصنف رحمه الله د شجاج دپاره يو مستقل فصل منعقد كړو د هغې د مسائلو د كثرت د وجې نه، او په هغې كښې دا هم ليكلې دى چه شجاج جمع ده د شجة او دا په لغت كښې د هغه زخم نوم دې چه په سر يا مخ كښې وى، او كوم چه د دې نه علاوه د بدن په نورو حصو كښې وى هغه ته جراحت وائى. لهذا چه كوم زخم په مخ يا سر كښې وى، د هغې د ديت مقدار خو به متعين وى، او عام جراحاتو كښې د ديت مقدار معين نه دې بلكه هلته د حكومت عدل اعتبار دې، او په هغې كښې دا هم ليكلې دى چه د شجاج دوه قسمونه دى بيا ئې د هغې تفصيل ليكلې دې، هم دغه شان په حاشيه د بذل كښې دى : وقال ابن رشد قال اهل اللغة والفقه عشرة اولها الدامية وهى التى تدمى ثم الحارصة هى التى تشق الجلد، ثم الباضعة الخ.....

وړاندې هم په دې حديث كښې دى : ﴿ وَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ عَصَبَتِهَا مَنْ كَانُوا لاَ يَرِثُونَ مِنْهَا شَيْئًا إِلاَّ مَا فَضَلَ عَنْ وَرَثَتِهَا ﴾

**شرح الحديث :**

يعنى رسول الله ﷺ دا فيصله اوفرمائيله چه كوم ديت د يوې زنانه د قتل كولو د وجې نه واجب شى هغه به په عصبة القاتله (د هغه زنانه په عصبه) باندې واجب وى هغه كه هر څوك وى، او د قاعدې مطابق به عاقله يعنى عاقلة المقتول د هغه وارث نه وى بلكه ورثة المقتول به د هغه د ديت وارثان وى، خو څه چه ذوى الفروض ته د وركولو نه پس بچ شى هغه به بيشكه عصبه ته ملاويږى. مطلب دا دې چه څنګه د سړى د جنايت قاعده ده چه هغه ديت د جانى په عصبه باندې واجب كيږى او د مجنى عليه وارثانو ته ملاويږى هم دا حكم د زنانه د جنايت هم دې چه هر كله خبره دا ده چه كوم حكم د سړى د جنايت دې هم هغه د زنانه د جنايت هم دې نو بيا په دې باندې تنبيه ولې اوكړې شوه، هغه په دې وجه چه هسې نه چه څوك دا اوګڼرى چه كيدې شى زنانه په دې مسئله كښې د سړى په شان وى بلكه د عبد

په شان نه وی چه د هغې د جنایت عاقله متحمل نه وی، د دې وهم د لرې کولو دپاره دا تصریح اوکړې شوه.

وړاندې دی: فان قتلت فعقلها بين ورثتها وهم يقتلون قاتلهم، يعنی اوکه په ښځه باندې جنايت اوکړې شی اوهغه قتل کړې شی نواوس چه د جانی د عاقله نه ددې څه ديت حاصليږی هغه به د ښځې په ورثاؤ کښې تقسيمولې شی، که حاصليدونکې څيز ديت وی، اوکه د ديت په ځائې د قصاص مسئله وی نود قصاص اخستلوحق به هم د ښځې وارثانو ته وی.

**قوله**: ﴿ وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لَيْسَ لِلْقَاتِلِ شَىْءٌ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَارِثٌ فَوَارِثُهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِ وَلاَ يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئًا » ﴾

يعنی که يو سړې خپل رشته دار قتل کړی او حال دا چه هغه قتل کونکې د مقتول په وارثانو کښ وی نو د هغه د قتل په ديت کښ به د دې قاتل وارث حصه نه وی بلکه نورو وارثانو ته به ملاويږی. او که د مقتول بل څوک وارث نه وی سوا د هغه نه نو بيا به داسې کوو چه د قاتل نه علاوه بل څوک رشته دار چه د باقي رشته دارانو په نسبت اقرب الى المقتول وی هغوی ته به ورکولې شی، مثلا ځوی پلار قتل کړو او د دې مقتول څوک وارث نه وو سوا د هغه ځوی نه، خو دې مقتول يو نمسئ هم پريخودلې دې نو اوس به د دې مقتول پلار ميراث په ځائې د قاتل د ځوی د هغه د ځوی ځوی ته ملاويږی چه د ځوی نه پس بيا اقرب الى المقتول هم دغه نمسې دې، كذا قالوا فى شرح هذا الحديث. والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذری

[٤٥٦٥]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكَّارِ بْنِ بِلَالٍ الْعَامِلِيُّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ رَاشِدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "عَقْلُ شِبْهِ الْعَمْدِ مُغَلَّظٌ مِثْلُ عَقْلِ الْعَمْدِ وَلَا يُقْتَلُ صَاحِبُهُ"، قَالَ: وَزَادَنَا خَلِيلٌ: عَنِ ابْنِ رَاشِدٍ: وَذَلِكَ أَنْ يَنْزُوَ الشَّيْطَانُ بَيْنَ النَّاسِ فَتَكُونُ دِمَاءٌ فِي عِمِّيًّا فِي غَيْرِ ضَغِينَةٍ وَلَا حَمْلِ سِلَاحٍ.

عمرو بن شعيب دخپل پلارنه اودده پلار دده دنيکه نه روايت کوی فرمائی چه نبی کريم اه اوفرمائيل: دقتل شبه عمد ديت دقتل عمد په شان سخت وي ، او په دې صورت کښې به قاتل نشي وژلې راوی وائی خليل دابن راشد نه دا الفاظ نقل کړي دي چه شيطان دخلقومينځ ته ننوځي اوکر وه قتل اوقتال وشي په کومه کښې چه د دشمنی يا اصلي څه دخل نوي

**قوله**: ﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِىَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « عَقْلُ شِبْهِ الْعَمْدِ مُغَلَّظٌ مِثْلُ عَقْلِ الْعَمْدِ وَلاَ يُقْتَلُ صَاحِبُهُ ». « وَذَلِكَ أَنْ يَنْزُوَ الشَّيْطَانُ بَيْنَ النَّاسِ فَتَكُونَ دِمَاءٌ فِى عِمِّيَّا فِى غَيْرِ ضَغِينَةٍ وَلاَ حَمْلِ سِلاَحٍ »﴾

يعنی د شبه عمد ديت د قتل خطاء نه زيات سخت دي او مغلظ دې څنګه چه د قتل عمد ديت مغلظ دې او د شبه عمد والا قاتل به قتل کولې نه شی يعنی اخستلې خو به ترې

[1]: تفرد به أبو داود، انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ٨٧١٣) (حسن)

شي دیت او قتل کولي به نه شي خو دیت مغلظ به ترې نه اخستلې شي.

## د قتل عمد د دیت مسئله او د هغې تحقیق:

د دې حدیث نه معلومیږي چه په قتل عمد کښې هم دیت وي، د احنافو په نزد خو د دې هیڅ ضابطه نشته بلکه په هر یو څیز باندې چه صلح اوشوه د طرفینو په رضامندئ سره د قصاص نه اخستلو په صورت کښې، خو د شوافعو په کتابونو کښې د دې تصریح ده چه په قتل عمد کښې به دیت وي او هغه به مغلظ وي، پس دا اختلاف مخکښې تیر شوې دې چه د شوافعو او حنابله په نزد په قتل عمد کښې د مقتول اولیاء ته اختیار دې، د قصاص خو شته شته د دیت هم اختیار شته که قاتل راضي وي او که نه وي، هم په دې وجه د هغوی په نزد د دې مصداق هم متعین دې، د هغوی په کتابونو کښې لیکلي دي چه د قتل عمد دیت اثلاثا دې حقه او جذعه دیرش دیرش او خلفه څلویښت. او هم دا د هغوی په نزد په شبه عمد کښې هم دیت دې، خو په دې کښې یعنې په عمد کښې نور تغلیظ په دوه اعتبار سره نور دې او هغه دا چه دیت به په قاتل باندې واجب وي نه په عاقله باندې بل دا چه حالاً به وي او موجل به نه وي، په خلاف د شبه عمد د دیت چه هغه په عاقله باندې وي او موجل وي په درې کالو کښې په درې قسطونو باندې اخستلې شي، کماتقدم فی محله.[1]

وړاندې په روایت کښې دي ﴿ وذلک ان ینزو الخ ﴾ رسول الله ﷺ د شبه عمد صورت بیان فرمائی چه په هغې کښې څه وي چه د خلقو مینځ ته شیطان راټوپ کړي او معمولي خبره زیاتولو زیاتولو سره ویني ته خبره اورسیږي او د ګرم جنګ کار شروع شي بغیر د کینې او دشمنئ نه او بغیر د وسلې د استعمال نه، حاصل دا چه د قتل عمد خو یو معقول وجه او بنیاد وي عداوت او کینه وغیره، او په دې کښې قصدا انسان وسله استعمالولو سره قتل کوي، په خلاف د شبه عمد چه هغوی هسې په څه معمولي خبره باندې په ناپوهئ سره خبره په زیاتیدو زیاتیدو په هغې کښې قتل ته خبره اورسیږي، قتل کول هلته مقصود نه وي، هم په دې وجه ورته شبه عمد وائي.

> [٤٥٦٦] ([2]) حَدَّثَنَا أَبُوكَامِلٍ فُضَيْلُ بْنُ حُسَيْنٍ، أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: أَخْبَرَنَا حُسَيْنٌ يَعْنِي الْمُعَلِّمَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّ أَبَاهُ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "فِي الْمَوَاضِحِ: خَمْسٌ".

عمرو بن شعیب دخپل پلارنه اودده پلار دده دنیکه نه روایت کوي فرمائي چه نبی کریم

[1]) پس د شوافعو په کتاب فیض الاله المالك ٢٩١/٢ کښې دي: فصل اذا کان القتل خطاء او عمد خطاء (شبه العمد) او آل الامر في العمد بالعفو الي الدية وجبت الدية ودية الحر المسلم الذكر مائة من الابل، فان كان عمدا فهي مغلظة من ثلاثة اوجه كونها حالة وعلي الجاني ومثلثة ثلاثين حقة وثلاثين جذعة واربعين خلفة اي حوامل، وان كان شبه عمد فهي مغلظة من وجه (واحد) كونها مثلثة مخففة من وجهين كونها موجلة وعلي العاقلة الخ..... یعنې د قتل عمد دیت مغلظ دې په درې لحاظو او د شبه عمد دیت هم مغلظ دې صرف په یو لحاظ سره او مخفف دې په دوو حیثیتو سره. او بیا وړاندې په دې کښې دي چه د قتل خطاء دیت په درې واړو لحاظو سره مخفف دې فارجع الیه لو شئت)

[2]): انظر حدیث رقم (٣٥٤٧)، (تحفة الأشراف: ٨٦٨٠، ٨٦٨٣) (حسن صحیح)

ﷺ اوفرمائیل: د مواضح په دیت کښې به پنځه اوښان ورکولې شي «مواضح هغه زخم ته وئیلې شي په کوم کښې چه هډوکې ښکاره شوې وي اودداسې زخم دیت پنځه اوښان دي اومواضح دموضحه جمع ده».

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « فِى الْمَوَاضِحِ خَمْسٌ »﴾

یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په شجه موضحه کښې پنځه اوښان دی، موضحه هغه زخم دې کوم چه د غوښې او څرمنې نه تیرېدو سره هډوکی ته اورسیږی او هغه ښکاره کړی او د دې نه په روستو حدیث کښې دی.

﴿قَضَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِى الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ لِمَكَانِهَا بِثُلُثِ الدِّيَةِ﴾

[٤٥٦٧](١) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ السُّلَمِيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنِي الْعَلَاءُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ لِمَكَانِهَا بِثُلُثِ الدِّيَةِ".

عمرو بن شعیب دخپل پلار نه اوده پلار دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی کریم و فیصله اوفرمائیله چه یوه سترګه پخپل ځائی کښې موجوده وي لیکن دهغې نظر ختم شوې وي نوپه دې کښې ددیت دریمه حصه ده.

## شرح الحديث من حيث الفقه وبيان المذاهب:

یعنی رسول الله ﷺ فیصله اوفرمائیله د سترګې په باره کښې کومه چه په خپل ځائې باندې قائمه او باقی وی یعنی چه صرف نظر ئې ضائع شو د ثلث دیت ٣/١ دیت، دا حدیث د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاث خلاف دې صرف د امام احمد رحمه الله د یو روایت موافق دې کینې د ټولو علماء کرامو رائې په دې کښې دا ده چه په دې صورت کښې حکومت عدل دې (٢) یعنی د یو عادل سړی فیصله، د دې حدیث توجیه دا هم کیدې شی چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد یعنی ثلث دیت په طور د معیار او قاعده کلیه نه دې بلکه په یو خاص واقعه کښې رسول الله ﷺ دا فیصله فرمائیلې وه، او کیدې شی چه په دې واقعه کښې حکومت عدل هم دا وی. والله اعلم

حديث المواضح اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، وحديث العين اخرجه النسائی، قاله المنذری.

[الحمد لله ! اتم جلد ختم شو]

---

(١): سنن النسائي/القسامة ٣٦ (٤٨٤٤)، (تحفة الأشراف: ٨٧٧٠) (حسن)

(٢) په هدایه کښې دی: وفيما دون الموضحة حكومة العدل لانه ليس فيها ارش مقدر ولا يمكن اهداره فوجب اعتباره بحكم العدل، یعنی په موضحه کښې چونکه دیت منصوص دې په دې کښې به هم هغه واجب وی او د کوم زخم اثر چه د هغې نه کم وی په هغې کښې حکومت عدل واجب دې، او د حکومت عدل تفسیر دا لیکلې شوې دې چه د حر په ځائې دې سړی له غلام فرض کولو سره دا اوکتلې شی چه د هغه قیمت بغیر د زخم نه څومره دې په بازار کښې او د جراحت سره څومره دې نو د دې جراحت د وجې نه چه په قیمت کښې څومره نقصان موندلې شی مثلاً عشر قیمت نو په دې کښې به عشر دیت واجب وی، دا تفسیر د امام طحاوی نه منقول دې په هدایه کښې، په دې کښې یو قول بل هم دې کوم چه د امام کرخی نه نقل کړې شوې دې.